په پښتو ژبه کښي د حديثو د جليل القدر کتاب (آثار السنن)
د امام النيموی (رح) مدلله، ملخصه او آسان فهمه شرحه

# انوار السنن

پښتو شرح د

# آثار السنن

خصوصيات

عبارت باندي اعراب

سليس ترجمه

اصول حديث

د کلماتو تحقيق

د هريو حديث تخريج

مسئلة الباب

اختلاف الائمه

راجح قول

غرض د امام نيموي


ضبط و ترتيب و تخريج

حضرت مولانا حافظ

سميع الحق حقانی

فاضل جامعه دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک



مکتبه رحمانيه

محله جنگی قصه خوانی پېښور 0302-6209815 0316-9400041

## فهرست :

بسم الله الرحمن الرحیم

## غرض مرتب:

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم . أما بعد !

دالله تعالی بې شمیره احسانات او دوالدینو او داستاذانو مخلصانه دعا او دتوجهاتو اثر دی چې ماته ئې دعلم حدیث په موضوع باندې په اول ځل څه دلږ شان خدمت سعادت رانصیب کړ په دې باندې څه دالله تعالی په دربار کې ډیر شکر گزاریم .

دا خو هر چاته معلومه ده چې اهل سنت والجماعت څلور واړه فقهي مسلکونه په حق دي او د مسلکونو مقتدایان عندالله او عندالأنام دمقبولیت په کوم مقام باندې چې فائز دی او دامت یوه لویه طبقه کوم چې په دې اکابرینو باندې بطور تقلید اعتماد دی هغه اظهر من الشمس دی بیا خاص کر امام ابو حنیفه رحمه الله کوم ته چې په ائمو اربعو کې واحد دتابعیت شرف هم حاصل دی ددوي فقاهت او په ټولو قرآني علوموا و سنتو باندې مهارت او قابلیت لره همیشه لپاره معتدل مزاج اصحاب علمو تعریف کړې دی او ټول محدثین ، فقهاء ، عابدین ، او دعقل خاوندان دامام صاحب مقلدین گرځیدلي دي لیکن بدقسمتئ نه څه خلکو دشروع نه ددې سره حسد دی او هغوي باوجود دټولو حجت او دلیلونونه دفقه حنفي اکثر مسائلو لره دنصوص شریعت نه متعارض گرځوي او فقهاء احناف لره دصراط مستقیم نه دمنحرف ښکاره کولو لپاره سرگردانه دي ترڅو چې دخلکو هم داحنافو سره حسد پیدا کړي .

بیا هم چې کله دلامذهبه خلکو له طرفنه دعوام الناس دگمراه کیدو ویره شوه نو دناقدینو یو لوي جماعت مستقل دتصانیفو په ذریعه دفقه حنفي باني او ددستور اسلامي اولنې باضابطه مدون امام ابوحنیفه رحمه الله او ددوي دشاگردانو سوانح حیات ، قرآن او سنت او ددین په علومو کې مهارت او خدماتو لره ئې واضحه کړل په کوم کې چې دفقهاؤ متبع مؤرخین مثلا علامه جلال الدین سیوطي شافعي رحمه الله (صاحب تبییض الصحیفه) ابن عبدالبر مالکي رحمه الله (صاحب الانتقاء) او سبط ابن الجوزي حنبلي رحمه الله (صاحب الانتصار) وغیره نومونه قابل ذکر دی. بل طرفته دفقه حنفي سره پیوست او وابسته محدثین او فقهاء حضراتو یوه طبقه دمسلک مسائل هغه مآخذ کوم چې په وخت داجتهاد دامام ابو حنیف رحمه الله او داصحابو دنظر لاندې وو ، مستقل تصنیف په ذریعې سره ئې بیان کړل ، په دې تصانیفو کې (الجمع بین السنة والکتاب) لأبي محمد المنبجي رحمه الله متوفی ٦٨٦هجري (اعلاء السنن) مؤلفه حضرت مولانا ظفر احمد عثماني او هادي الأنام الی أحادیث الأحکام للشیخ مفیض الرحمن قابل ذکر دی . دغه شان دحدیثو په شروحاتو کې هم متعدد کتابونه

دفقه حنفي په ترجماني کولو کې اوليکلې شوي مثلا عمدة القاري للبدر العيني ، نصب الرايه للامام الزيلعي رحمه الله او معارف السنن لمحدث العصر الامام محمد يوسف البنوري رحمه الله .

ليکن په فتنه غير مقلديت او تحريک لامذهبيت په ضد او دفقه حنفي په باب کې چې يو اندازه اوليت حاصل دی هغه زمونږ دا کتاب يعنې آثار السنن دی.علامه ظهير احسن المعروف به شوق نيموي رحمه الله په لوي کوشش سره دکتاب وسنت نه دفقه حنفي دمسائلو په ثبوت باندې داسې يو ناقابل ترديد دلائل جمع کړي دي . خو کاش چې دا تصنيف ئې تکميل ته رسيدلې وې ليکن دا هم د الله تعالى دطرفنه يو لوي نعمت او دفقه حنفي لپاره **قياس کن زګلستان من بهار مرا** مصداق دی .

ډير مدارس چې ددې کتاب قدر وقيمت اوددې اهميت نه خبر شو نو خپل تعليمي نصاب کې ئې شامل کړ مصنف په دې تاليف کې څنې څنګه په باريکۍ سره احاديث ذکر کړي دي او دفريق مخالف په دلائلو باندې ئې چې څنګه مدلل انداز کې کلام کړې دی نو هم ددې مطابق دڅه وخت نه ددې کتاب دشروحاتو سلسله جاري ده ، ليکن تر اوسه پورې په مطبوع(چاپ کړې شوې) شروحاتو کې غير ضروري طوالت يا اختصار مخل يا دناکافي وضاحت په بناء باندې داسې ديوې معتدلې شرحې ضرورت محسوس کيدو په کوم کې چې احاديثو باندې اعراب ، دعبارت آسانه او سليس ترجمه ، دکلماتو تحقيق اوتشريح ، او دمباحثو خلاصه ، او دمختلفو مکاتب فکر دبنيادي کتابونو نه ددوې فقهي مسلک نچوړ بيانول او دفريق مخالف ددلائلو وضاحت ، دفقه حنفي دترجيح وجې ، دمصنف غرض بالخصوص د قال النيموي وضاحت او په ظاهر کې دمتعارض حديثونو په مينځ کې تطبيق ، ددې امورو په کې خاص اهتمام شوې دې دغه شان دې سره سره اصول حديث تفصيل هم موجود دی .په ابتداء کې دمقدمة العلم دعنوان لاندې دطالبانو درهنمائي لپاره داصول حديث دفن يو څو ضروري اصطلاحات هم ذکر کړې شوی دی دمقدمة العلم مطالعه نه صرف دآثار السنن په کتاب کې نه بلکه دفقهي نور کتابونه مثلا حسامي کې به هم تاسو ته په کار راشي انشاءالله .

دفقهي مباحث او دادلو په بيان کې دکوم بحث دلاندې چې ديو کتاب نه استفاده کړې شوې ده دهغه کتاب حواله دصفحې په لاندې طرف کې ورکړلې شوې ده .

زه په دې موقع باندې دخپلو ټولو استاذانو او دوالدينو دزړه نه شکرګزار يم چې دوي بنده سره دکومک سره سره دعاګانو نه هم مستفيد کړکوم چې ديو څيز دمقبوليت لپاره خاص شئ دې دالله تعالى نه دعا ده چې دبنده دا محنت او کوشش دې قبول کړي او دعلماؤ او طالبانو لپاره دې بې حده نافع اوګرځوي او دټولو استاذانو ، او دوالدينو لپاره دې صدقه جاريه وګرځوي .آمين.

**ستاسې ورور : حافظ سميع الحق حقاني**

# مقدمة العلم

## دعلم حديث يو څو اهم اصطلاحات:

### په حديث، خبر او اثر کې فرق:

دحديث او دخبر متعلق يو قول دادى چې دواړه مترادف دي او دويم قول دادى چې دحديث اطلاق درسول الله ﷺ په اقوالو افعالو وغيره باندې کيږي او خبر عام دى په احاديث نبوي او دبادشاهانو ملکانو په خبرونو باندې ددې اطلاق کيږي.

حديث او اثر کې فرق دادى چې دحديث اطلاق عموما په اقوالو او افعالو دنبي عليه السلام باندې کيږي او اثر عموما دصحابه کرامو رضي الله عنهم په اقوالو او افعالو باندې ويلې کيږي.

### دحديث اقسام:

حديث په دوه قسمه باندې دى: ۱- خبر متواتر. ۲- خبرواحد.

**خبر متواتر**: هغه حديث دى دکوم چې روايت کونکي په هره زمانه کې دومره ډير وي چې دهغوي په دروغ جوړولو باندې اتفاق لره عقل سليم (کامل عقل) محال ګڼي.

**خبرواحد**: هغه حديث دى دکوم چې روايت کونکي دومره ډير نه وي.

دخبر واحد په مختلفو اعتباراتو سره تقسيم کيږي.

### دخبرواحد اولنى تقسيم:

خبر واحد دخپل منتهى په اعتبار سره په درې قسمه دى: ۱- مرفوع. ۲- موقوف. ۳- مقطوع.

**مرفوع**: هغه حديث دى په کوم کې چې درسول الله ﷺ قول يا فعل يا تقرير (يعني صحابه کرام رضي الله عنهم په يو کار ليدل او په هغې نکير نه کول يعني بد ئې نه ګڼل) مذکور وي.

**موقوف**: هغه حديث دى کوم کې چې دصحابي قول يا فعل يا تقرير ذکر وي.

**مقطوع**: هغه حديث دى کوم کې چې دتابعي قول يا فعل يا دتقرير ذکر وي.

### دخبر واحد دويم تقسيم:

خبرواحد دراويانو دتعداد په اعتبار سره هم په درې قسمه باندې دى.

۱- مشهور. ۲- عزيز. ۳- غريب.

**مشهور**: هغه حديث دى دکوم چې راوي په هره مانه کې ددرېو نه کم نه وي.

**عزيز**: هغه حديث دى دکوم چې راوي په هره زمانه کې د دوو (۲) نه کم نه وي.

**غريب**: هغه حديث دى دکوم چې راوي کم نه کم يو وي.

## د خبر واحد دریم تقسیم :

خبرواحد (که مشهور وي یا عزیز وي اویا غریب) دقوت او ضعف په اعتبار سره په دوه قسمه باندې دی .۱- مقبول .۲- مردود.

**مقبول** : هغه حدیث دې دکوم چې راوي ربښتوني کیدل غالب وي .

**مردود** : هغه حدیث دکوم چې دراوي ربښتوني کیدل غالب نه وي .

**حکم** : د حدیث مقبول نه استدلال کول او ددې مطابق عمل کول واجب دي او د حدیث مردود نه خو به استدلال کولې شي او نه په دې باندې عمل کول واجب دي تر څو چې دراویانو د حالات نه مکمل طور باندې بحث او نکړې شي.

## د حدیث مقبول اولنې تقسیم

حدیث مقبول دخپل مراتب په اعتبار سره بنیادي طور باندې په دوه قسمه باندې دی .۱- صحیح .۲- حسن .

**صحیح** : هغه حدیث دی دکوم چې ټول راویان عادل (معتبر) او حدیث لره ضبط(یادول او محفوظ کول ) کونکې وي او دده سند خپل قائل پورې متصل وي (مینځ کې کوم راوي حذف شوي نه وي ) معلل او شاذ کیدو نه محفوظ وي .

**حسن** : هغه حدیث دی دکوم په راوي کې چې صرف ضبط ناقص وي باقي ټول شرائط د حدیث صحیح په دې کې موجود وي .

صحیح او حسن دوو قسمونو ته تقسیمېږي .۱- لذاته .۲- لغیره .

**صحیح لذاته** : هغه حدیث دی دکوم چې ټول راویان عادل(ثقه یعنې نهایت معتبر)وي او حدیث شریف د سند سره په خه طریقې سره محفوظ کونکې وي او سندئې هم متصل وي .

**صحیح لغیره** :هغه حدیث دی کوم چې په اصل کې حسن لذاته دی لیکن ددې سندونه دومره دیر دي چې په دې سره دراوي په حفظ کې چې کومه کمي وه دهغې پوره والې اوکړې شو.

**حسن لذاته** : هغه حدیث دی دکوم چې راوي خفیف الضبط وي (یادداشت یې کمزورې وي).

**حسن لغیره** : هغه حدیث دی دکوم په راوي کې چې دثقاهت (داعتماد قابل کیدل) ټول صفات یا بعضې نه بعضې موندلې کیږي لیکن دسندونو ددیر والي دوجې نه ددې نقصان پوره والې شوي وي.

## د حدیث مقبول دویم تقسیم

په آحادیثو کې په ظاهره تعارض واقع کیدو په اعتبار سره د حدیث مقبول اوه (۷) قسمونه دي کوم چې په لاندې دول دي:

۱- محکم. ۲- مختلف الحدیث. ۳- ناسخ. ۴- منسوخ. ۵- راجح. ۶- مرجوح. ۷- متوقف فیه.

**محکم**: هغه حدیث دی چې د کوم مخالف یو حدیث هم نه وي.

**مختلف الحدیث**: هغه متعارض حدیثونه دي کوم چې په صحت کې برابر وي او دهغې جمع کول ممکن وي.

**ناسخ او منسوخ**: هغه متعارض حدیثونه دي کوم چې په صحت کې برابر وي او په هغې کې تطبیق هم ممکن نه وي لیکن د تاریخ نه یو مقدم او بل مؤخر ثابت شي نو مقدم ته منسوخ او مؤخر ته ناسخ ویلې شي.

**راجح او مرجوح**: هغه متعارض حدیثونه دي کوم چې په صحت کې برابر وي او په هغې کې نه تطبیق ممکن وي او نه کوم یو مخکې او نه کوم یو وروسته کیدل ثابت وي لیکن یو لره په بل باندې ترجیح ورکول ممکن وي نو کوم حدیث لره چې دعمل دپاره ترجیح ورکړې شي هغې ته راجح ویلې شي او هغه بل ته مرجوح ویلې شي.

**متوقف فیه**: هغه متعارض حدیثونه دي کوم چې په صحت کې برابر وي لیکن په هغې کې خو نه جمع ممکن وي او نه تقدم او تأخر ثابت وي او نه یو لره په بل باندې ترجیح ورکول ممکن وي نو تر څو پورې چې ددې حدیثونو نه په یو باندې دعمل کولو څه صورت ظاهر نه وي نو توقف به کولې شي.

**ضعیف حدیث**: ضعیف هغه حدیث دی دکوم په راوي کې چې دصحیح او دحسن حدیث شرائط اونه موندلې شي.

**حکم**: دحدیث ضعیف دضعف بیانولو نه بغیر روایت کول صحیح دي البته عقائد، فرض او واجب تري نه شي ثابتیدلې او داستحباب ثابتولو دپاره هم درې شرطونه دي:

۱- ضعف شدید نه وي. ۲- دکومې شرعي قاعدې خلاف نه وي. ۳- دعمل کولو په وخت مکمل طور باندې ددې دثبوت گمان دې نه ساتي بلکې په دې باندې عمل کول دې احتیاط اوگڼي.

## دحدیث مردود اقسام:

دحدیث غیر مقبول کیدو سبب یا خو په سند کې دننه دیو راوي سقوط کیدل وي او یا په راوي باندې جرح او طعن. که ددې سبب دراوي ساقطیدل وي نو ددې پنځه مشهور قسمونه دي:

۱- معلق. ۲- مرسل. ۳- معضل. ۴- منقطع. ۵- مدلس.

**معلق**: هغه حدیث دی دکوم سند چې اولنۍ حصه حذف کړې شوې وي.

**مرسل**: هغه حدیث دی دکوم چې دسند آخرنۍ حصه نه وي بیان کړې شوي که ثقه راوي حدیث

مرسل نقل کړي نو دجمهورو په نزد هغه حديث مقبول دی او چې کوم غیر ثقه مرسل نقل کړي نو هغه عند الجمهور غیر مقبول دی.

**معضل تعریف**: هغه حدیث دی دکوم چې دسند دمینځ نه دوه یازیات راویان مسلسل حذف شوي وي.

**منقطع**: هغه حدیث دی دکوم چې دسند دمینځ نه صرف یو راوي حذف شوي وي یا په شمار یو څو راویان حذف شوي وي لیکن مسلسل نه بلکې جدا جدا مقام باندې حذف شوي وي.

**مدلس**: هغه حدیث دی دکوم چې دراوي دا عادت وي چې هغه دخپل شیخ یا دشیخ شیخ نوم پټوي یعنې په سند کې یې نه ذکر کوي.

## حدیث متصل او حدیث مسند

که دحدیث په سند کې یو راوي ساقط نه وي نو هغه حدیث ته حدیث متصل ویلې شي او چې کله داسې یو حدیث وي چې دهغې نسبت درسول الله ﷺ ذات مقدس طرف ته اوشي نو هغه حدیث ته مسند ویلې شي.

## په راوي باندې دطعن لس اسباب

راوي باندې دطعن نه مراد په راوي کې یو داسې خرابي او عیب کیدل دي کوم چې دقبول حدیث دپاره مانع وي ددې لس اسباب دي چې ددې دوجې نه دحدیث مقبول درجې هم مختلفې دي. هغه لس اسباب دادي :۱- کذب .۲- تهمت کذب .۳- فسق.۴- جهالت.۵- بدعت .۶- فحش غلطي.۷- کثرت غفلت.۸- وهم.۹- مخالفت ثقات. ۱۰- سوء حفظ.

**کذب في الحديث** : یعنې رسول الله ﷺ طرف ته قصدا یو دروغجنه خبره منسوب کول ډیر سخت عیب او ډیره لویه ګناه ده.

**تهمت کذب** : یعنې ددروغو الزام او ددې مطلب دادې چې دراوي متعلق خو دا خبره ثابته نشي چې ده رسول الله ﷺ طرفته قصدا یو دروغه خبره منسوب کړي ده لیکن څه داسې قرائن پیدا کیږي چې دکوم نه دکذب في حدیث الرسول بدګماني کیږي.

**فسق**: یعنې بې دینه کیدل دا طعن په هغه راوي باندې لګي کوم چې دیو قولي یا فعلي ګناه کبیره مرتکب وي مثلا زنا ، غلا وغیره کوي.

**جهالت** : یعنې دراوي حال معلوم نه وي چې ثقه دی او که غیر ثقه.

**بدعت** : یعنې په دین کې داسې یو نوې کار پیدا کول دکوم چې اصلیت په قرآن کریم کې یا حدیث شریف کې یا قرون مشهود لها بالخير (زمانه صحابه وتابعين وتبع تابعين) کې نه موندلې کیږي.

**فحش غلطي**: دا طعن په هغه راوي باندې لګي دکوم چې غلط بیاني دصحت بیانې نه زیاته وي.

**کثرت غفلت**: یعنې ډیر زیات غفلت دا طعن په هغه راوي باندې لګي کوم چې دحدیث داتقان یعنې ځان سره خه مخفوظ کولو نه ئي اکثر غفلت زیات وي .

**وهم** : په هیره غلطي کول یعنې په سند کې یا په متن کې تغیر وتبدیل راوستل مثلا حدیث مرسل یا منقطع لره متصل کول .

**سوء حفظ**: یعنې دیادداشت خرابي ، دا طعن په هغه راوي باندې لګي دکوم چې غلط بیاني دحافظې دکمزورتیا دوجې نه ، دصحت بیاني نه زیات یا برابر وي .

## په اعتبار دطعن في الراوي سره دحدیث غیر مقبول اقسام

**موضوع**: یعنې من ګرت (دځان نه جوړ کړې شوې) حدیث او دا هغه حدیث دی دکوم په راوي باندې چې په حدیث نبوي کې ددروغو ویلو طعن موجود وي .

**متروک** : یعنې پریخودلې شوې ساقط الاعتبار حدیث او دا هغه حدیث دی دکوم چې راوي متهم بالکذب وي یا هغه روایت دقواعد معلومه في الدین مخالف وي .

**منکر** : هغه حدیث دی کوم چې دیو داسې راوي نه روایت کړې شوې وي کوم چې فحش غلطي یا کثرت غفلت یا فسق سره مطعون وي دغه شان هغه حدیث دکوم چې راوي باوجود دضعیف کیدو نه دثقاتو جماعت مخالف روایت اوکړي .

**معروف** : هغه حدیث دی کوم چې دمنکر مقابل وي .

**معلل**: هغه حدیث کوم کې چې راوي دوهم دوجې نه تغیر او تبدیل کړې وي همدارنګې هغه حدیث کوم کې چې داسې یو پټ علت وي کوم چې په صحت حدیث کې نقصان ورکوي ، دې لره معلومول دماهر فن کار دی .

**شاذ**: هغه حدیث دکوم چې راوي پخپله ثقه وي لیکن دیو داسې کثیر جماعت خلاف روایت کوي کوم چې ددېنه زیات ثقه دي.

**محفوظ**: هغه حدیث کوم چې دشاذ مقابل وي.

**مضطرب** : هغه حدیث دکوم په سند کې یا په متن کې دتغیر او دبدلیدو دوجې نه دثقه راوي سره اختلاف پیدا شوې وي او ددواړو روایتونو نه یو لره ترجیح ورکول یادواړوتر مینځ تطبیق ممکن نه وي.

**مصحف ومحرَف**: هغه حدیث کوم کې چې سند او دمتن صورت خو پخپل ځاي باقي وي لیکن دیو یا دیو څو حروفو دبدلیدو دوجې نه دثقه راوي مخالفت کړې شوې وي ، بیا که دحرف بدلون صرف دنقطو په ذریعه سره وي (مثلا طاء لره ظاء یا صاد لره ضاد نقل کول ) نو هغه مصحف دی او

که دیو حرف شکل دبل حرف سره بدل شوي وي (مثلا سین لره صاد یا ضاد لره ظاء نقل کول) نو هغه محرف دی.

**مقلوب**: هغه حدیث دکوم چې دراویانو په نومونو کې یا دحدیث په متن کې روستوالې او مخکې والې شوي وي.

**مدرج**: هغه حدیث کوم کې چې یو راوي خپل کلام داخل کړي او فرق کول مشکل وي.

**تنبیه**: که صحیح حدیث یا دحسن راوي یو زائد مضمون بیان کړي او هغه زیاتوالې ددبنه زیات دثقه راوي دبیان خلاف وي نو دې مضمون لره به یا خو مستقل حدیث او گرځولې شي یا به ورته دحدیث باقي مانده (پاتې کړې شوي) حصه اوویلې شي.

## دبدعتي روایت

دبدعت دوه قسمونه دي: اول: مستلزم کفر یعنې دکوم نه چې کفر لازمیږي لکه دختم نبوت نه انکار. دویم: مستلزم فسق: لکه عام عقائد او خیالات فاسده.

دبدعتي دروایت حکم: دمستلزم کفر حدیث دجمهورو په نزد مقبول نه دی او دمستلزم فسق حدیث هغه وخت قبول دی چې کله هغه حدیث دده دمنشا او دبدعت دترویج خلاف وي او په ده باندې دې حدیث لره دخپل مذموم مقاصدو دپوره کولو لپاره دروایت الزام هم نه وي.

## شاهد او متابع

کچرته په یو درجه کې دخبرواحد گڼلو والا حدیث هم معنی یا هم لفظ حدیث موجود وي نو دې دویم حدیث ته شاهد ویلې شي او که دداسي خبرواحد سند دیو راوي په ځاي دوو یا ددوو نه زیات راویان نقل کړي نو اولنې حدیث متابَع او دویم حدیث ددې متابِع ویلې شي.

**دصحابي تعریف**: هغه کس کوم چې درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په حالت دایمان ملاقات کړې وي او هم په اسلام باندې یې خاتمه شوي وي.

**دتابعي تعریف**: هغه کس کوم چې په حالت دایمان دیو صحابي سره ملاقات کړې وي او هم په اسلام باندې یې خاتمه شوي وي لکه دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ چې د انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره یې ملاقات ثابت دی.

## دجرح او تعدیل مرتبې

محدثین چې کله دراوي توثیق اوتعدیل(قابل داعتبارگرځول)بیانوي یاپه راوي باندې جرح (تنقیدو تضعیف)کوي نو دې دپاره یو مخصوص الفاظ استعمالوي په دې الفاظو کې څه دیراعلی دي او څه درمیانه او څه ادنی. نو مونږ به دې ټولو الفاظو لره داعلی نه ادنی پورې دمعتبر ترتیب

مطابق ليکو .

**دتعديل الفاظ** : (١) ثبت حجة (٢) ثبت حافظ (٣) أوثق يعني دټولو نه زيات معتبر (۴) ثقه متقن (۵) ثقه ثبت (٦) ثقة ثقة (٧) ثقة (٨) صدوق (٩) لا بأس به (١٠) ليس به بأس (١١) محله الصدق (١٢) جيد الحديث (١٣) صالح الحديث (١۴) شيخ وسط (١۵) شيخ حسن الحديث (١٦) صدوق ان شاء الله (١٧) صوَيلح او داسې نور .

## د جرحي الفاظ :

(١) أكذب الناس (٢) دجَال كذّاب (٣) وضاع يضع الحديث (۴) متهم بالكذب (۵) متفق على تركه (٦) متروک (٧) ليس بثقة (٨) سکتو عنه (٩) ذاهب الحديث (١٠) فيه نظر (١١) هالک (١٢) ساقط (١٣) واه بمرة (١۴) ليس بشئ (١۵) ضعيف جداً (١٦) ضعّفوه (١٧) ضعيف واه (١٨) يضعف (١٩) فيه ضعف (٢٠) قد ضُعّف (٢١) ليس بالقوي (٢٢) ليس بحجة (٢٣) ليس بذاک (٢۴) يعرف وينکر (٢۵) فيه مقال (٢٦) تکلم فيه (٢٧) لين (٢٨) سيئ الحفظ (٢٩) لا يحتج به (٣٠) اُختلفَ فيه (٣١) صدوق لکنه مبتدع او داسې نور .

## د احاديثو د کتابونو اقسام :

د احاديثو کتابونه دخپل خاص ترتيب او وضع په اعتبار سره دوه تقسيمونه مشهور دي :

**اول تقسيم** : د حديثو کتابونه د مسئلو د ترتيب او د وضع په اعتبار سره په نه (٩) قسمه دي : (١) جامع (٢) قسم سنن (٣) قسم مُسند (۴) قسم معجم (۵) قسم جزء (٦) قسم مفرد (٧) قسم غريب (٨) قسم مُستخرج (٩) قسم مستدرک .

**(١) جامع** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې د تفسير ، عقائد ، اداب ، سير ، مناقب احکام ، فتن او د قيامت د علامو او داسې نورټول مسائل ذکر شوي وي لکه بخاري او ترمذي .

**(٢) سنن** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې د احکامو احاديث د فقهي بابونو سره موافق ذکر شوي وي لکه سنن نسائي . سنن ابوداؤد . سنن ابن ماجه .

**(٣) مسند** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې د صحابه کرامو رضی الله تعالیٰ عنهم د رتبې او درجې او يا د حروف هجاء په ترتيب اويا د اسلام د وړاندې والي او وروسته والي په وجه سره احاديث ذکر شوي وي لکه مسند د احمد رحمه الله او مسند د دارمي .

**(۴) معجم** : هغه کتاب ته ويلې شي چې په هغې د احاديثو ذکر کول د استاذانو د ترتيب په لحاظ سره وي لکه معجم د طبراني شو .

**(۵) جزء** : هغه کتاب ته ويلې شي چې په هغې کې فقط د يوې مسئلې حديثونه راجمع شوي وي لکه

**جزء القرأة** او **جزء رفع اليدين** د بخاري رَحِمَهُ اللهُ شو او يا **جزء القرأة** د بيهقي رَحِمَهُ اللهُ شو .
(۶)**مفرد يا أفراد**:هغه کتاب ته ويلي شي چې په هغې کې فقط د يو کس ټول روايت شوي حديثونه ذکر شوي وي .
(۷)**غريب**:هغه کتاب ته ويلي شي چې په هغې کې د يو محدث متفردات ذکر شوي وي عام د دې نه چې د هر شيخ نه وي .
(۸)**مستخرج** :هغه کتاب ته ويلي شي چې په هغې کې د کوم بل کتاب د احاديثو د زائدو سندونو استخراج شوي وي لکه مستخرج د ابوعوانه .
(۹)**مستدرک** : هغه کتاب ته ويلي شي چې په هغې کې د بل کتاب د شرط موافق ددې پاتې حديثونه پوره شوي وي .
(۱۰) **تجريد**: هغه کتاب کوم کې چې ديو بل دحديثو کتاب احاديثو لره دسند او دمکرراتو نه بغير صرف دصحابي په واسطې سره نقل کړې شي لکه تجريد صحيح البخاري للزبيدي رحمه الله او تجريد دصحيح مسلم للقرطبي رحمه الله .
(۱۱) **اربعين** : يعنې څلويښت حديث هغه کتاب کوم کې چې ديو يا دزياتو موضوعاتو سره متعلق کم او زيات څلويښت جمع کړې شي لکه دامام نووي رحمه الله الاربعين وغيره .
صحيح : هغه کتاب دکوم مصنف چې پخپل کتاب کې دصحيح احاديثو ذکر کولو التزام اوکړي .
**دوهم تقسيم** : د حديثو کتابونه د مقبوليت او غير مقبوليت په اعتبار سره په پنځه قسمه دي .
**اول قسم** : هغه کتابونه چې په هغې کې ټول حديثونه صحيح وي لکه صحيح بخاري ، مؤطا امام مالک رَحِمَهُ اللهُ. صحيح مسلم، صحيح حاکم ، صحيح ابن خزيمه ، صحيح ابن حبان ، صحيح ابن عوانه ، صحيح ابن سکن ، منتقى ابن جارود .
**دوهم قسم** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې هر قسم صحيح ، حسن او ضعيف حديثونه وي خو ولې هغه ټول د احتجاج قابل دي او دا ځکه چې په دې کې کوم ضعيف حديثونه دي هغه هم د حسن مرتبې ته نژدې دي لکه سنن ابوداود ، جامع ترمذي ، مسند احمد او سنن نسائي شو .
**دريم قسم** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې حسن ، منکر او صالح هر قسم حديثونه وي لکه سنن ابن ماجه (۲) مسند طيالسي (۳) زيادات محمد ابن احمد بن حنبل (۴) مسند عبدالرزاق (۵) مسند سعيد بن منصور (۶) مصنف د ابي بکر ابن ابي شيبه (۷) مسند ابويعلي الموصلي (۸) مسند بزار (۹) مسند ابن جرير (۱۰) تفسير ابن جرير (۱۱) تهذيب ابن جرير (۱۲) تاريخ ابن مردويه (۱۳) تفسير ابن مردويه (۱۴) معجم کبير د طبراني (۱۵) معجم صغير (۱۶) معجم اوسط

(۱۷) سنن دارقطني (۱۸) غرائب دار قطني (۱۹) حليه ابو نعيم (۲۰) سنن بيهقي (۲۱) شعب الايمان بيهقي شو.

**څلورم** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې ټول حديثونه ضعيف دي **الا ماشاء الله** لکه نوادر الاصول. حکيم ترمذي، تاريخ الخلفاء ، تاريخ ابن نجار ، مسند الفردوس الديلمي ، کتاب العقيلي . کامل ابن عدي. تاريخ خطيب بغدادي ،تاريخ ابن عساکر .

**پنځم قسم** : هغه کتابونه دي چې په هغې کې موضوعي حديثونه معلوم شوي وي لکه موضوعات ابن جوزي. موضوعات شيخ محمد طاهر نهرواني او داسې نور

## د حديثو شپږ صحيح کتابونه :

د حديثو د شپږو صحيحو کتابونو نه مراد دغه شپږ کتابونه دي . (۱) صحيح بخاري (۲) صحيح مسلم (۳) ابوداود (۴) نسائي (۵) ترمذي (۶) ابن ماجه .

## دطلب حديث آداب

دطلب حديث يو څو اهم آداب به بيانولې شي :

۱- طالب حديث له پکار دي چې نيت دې صرف او صرف دالله درضا دحصول لپاره اوګرځوي او د حديثو علم دې حاصل کړي .

۲- دخپل استاذ حديث دې دبل عالم دين نه زيات عزت او احترام اوکړي .

۳- په زده کړه کې دې هيڅ شرم اونکړي .

۴- دفرائضو او واجباتو او دسنتو اهتمام دې اوکړي .

۵- دګناهونو نه دې دحد نه زيات پرهيز اوکړي .

٦- خاص کر غيبت. مذاق او ملګرو ته تکليف ورکولو نه دې ځان اوساتي.

۷- دکتاب او ددرسګاه او نور آلات دعلم دې پوره پوره احترام اوکړي .

۸- دشروع نه تر آخيره پورې دې په سبق کې حاضر اوسي.

## دآثار السنن د مصنف مختصر حالات :

**نوم او نسب** :دحضرت رَحِمَهُ اللهُ صاحبزاده مولانا عبدالرشيد رَحِمَهُ اللهُ ليکي :

چې د آثار السنن د مؤلف يعنې زماد والد محترم نوم مبارک حضرت العلامة مولانا الإمام محمد بن سبحان علي النيموي رَحِمَهُ اللهُ دې کنيت يې ابو الخير دې مشهور ؤ په ظهير احسن سره او تخلص يې شوق النيموي دي،امام نيموي رَحِمَهُ اللهُ د عارف بالله حضرت شيخ سبحان علي صديقي فرزند دي، نيموي صاحب منسوب دې نيمي طرف ته او نيمي د يو کلي نوم دي او داد هندوستان د مشهور ښار

عظیم آباد نه تقریباً څلور فرسخه لرې شوق طرف ته واقع دي .

**د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ تاریخ پیدائش** : امام نیموي رحمه الله په ۴ جمادي الاول ۱۲۷۸هـ کې د چهارشنبې په ورځ د خپلې خاله په کور کې پیدا شوې دي او ددې کور په صالح پور کې واقع ؤ او صالح پور د بهار صوبې یوه کلي والا علاقه ده .

**د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ علمي لیاقت او مرتبه** : امام نیموي رحمه الله جید عالم دین ، کثیر العلم ، ډیر بردبار ، وسیع النظر ، محقق ومحدث ، عظیم الاطلاع ، وسیع المطالعه ، صدیقي النسب او امام العصر ؤ ، امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ ته په علم عروض کې یوه لویه ملکه حاصله وه او د امام اعظم ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په زړه پورې متبع او مقلد ؤ .

**مشائخ او اساتذه کرام د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ** : امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ د خپلې زمانې د لویو لویو علماء کرامو او مشائخو عظامو نه خپل علم حاصل کړې دي ، دهغوي په مشائخو کې لوي محدث حضرت مولانا عبد الله غازي پوري رَحِمَهُ اللهُ ، محمد سعید عظیم آبادي رَحِمَهُ اللهُ ، محقق العصر علامه عبد الحي لکهنوي رَحِمَهُ اللهُ او قطب الزمان مولانا شاه فضل الرحمن مراد آبادي رَحِمَهُ اللهُ ډیر زیات مشهور دي ، امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ د خپل شیخ حضرت مراد آبادي رَحِمَهُ اللهُ په لاس بیعت کړې ؤ .

**د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ مشهور تالیفات** : د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ په مختلفو علومو او فنونو کې متعدد او ډیر مفید تألیفات دي کله چې امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ په ۱۳۱۴هـ کې د آثار السنن د تسوید نه فارغ شو نو هغوي ددې کتاب شروع په هم هغه طریقې سره وکړه چې د کومې طریقې تصریح هغوي رَحِمَهُ اللهُ د کتاب په اولنی صفحه کې کړې ده خو بیا ژوند ورسره وفا ونه کړې نو دا کتاب یې تر کتاب الصلوة پورې مکمل کړو او وفات شو . کم حسرات في بطون المقابر

**نور مشهور تالیفات**: (۱) الحبل المتین في الاخفاء بآمین (۲) جلاء العین في ترک رفع الیدین (۳) وسیلة العقبی في أحوال المرضی و الموتی (۴) لامع الانوار (۵) اوشحة الجید في بیان التقلید ، (۶) ازاحة الاغلاط وغیره ادي .

**د امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ تاریخ وفات** : امام نیموي رَحِمَهُ اللهُ په ۱۷ رمضان المبارک ۱۳۲۲ هـ کې د جمعې مبارکې په ورځ په عظیم آباد بنار کې وفات شوې دي او همدلته په عظیم آباد بنار کې خاورو ته سپارل شوې دي .

کتبه : ابن النیموي سن ۱۳۴۳ هجري

ماخوذ از آخر کتاب آثار السنن

## آثار السنن او ددې منهج او طريقه

محدث العصر مولانا محمد يوسف بنوري رحمه‌الله فرمايي:

د حديث شغل لرونکي بعضي علماء د فقيه الأمت امام اعظم امام ابو حنيفه رحمه‌الله دلائل لره مطعون کوي او وايي چې دا د احاديث صحيحو مخالف دي . نو شيخ ظهير احسن مجبور شو او د کتاب العمدة للمقدسي رحمه‌الله ، المنتقى لابن تيميه رحمه‌الله ، بلوغ المرام للحافظ ابن حجر رحمه‌الله او داسې د نورو کتابونو په طرز باندې يو کتاب اوليکو چې په دې کې د امام اعظم ابو حنيفه رحمه‌الله د مذهب مطابق د صحيح رواياتو اهتمام اوکړې شو . او ددې نوم يې آثار السنن کيخودو .

ليکن هغه دا عظيم خدمت لره پوره نه کړې شو . بيا هم ده پخپله په دې باندې متين علمي او تنقيدي تعليقات اوکړل چې نوم يې ورله التعليق الحسن کيخود . مؤلف به چې کله هم خپل کتاب تاليف کولو نو اول به يې د محدث کبير ، امام العصر شيخ محمد انور شاه کاشميري رحمه‌الله په خدمت کې وړاندې کولو . کوم چې د علم سمندر ، وقت نظر ، معتدل ذوق سليم او د لوي بصيرت سره د فقهاء امت د مذاهبو په باره کې وسيع معلومات لرلو کې آية من آيات الله وو . د خپلې ځوانۍ په شروع شروع کې د هندوستان په اطرافو کې مشهور شوې وو . دده علمي عظمت ، او د حديث سره تعلق ، او د دېنه اخذ و استنباط شهرت يې په ټول عالم کې خور شوې وو .

حضرت کشميري رحمه‌الله دې کتاب سره متفق وو لکه څنګه چې هغه پخپل کتاب نيل الفرقدين کې ذکر کړې دې .

بې شکه حضرت شيخ ددې کتاب نه ډير خوشاله وو او ددې کتاب طرز او طريقه ورته ډيره خوښه وه چې کله ددې کتاب طباعت مکمل شو نو کتاب يې واخيست او خه په غور يې مطالعه کړو او په دې باندې يې دلائل ، ابحاث ، نکات او ډګن شمير فائدو اضافه يې وکړه.(۱)

(۱) ماخوذ از توضيح السنن بطور قليل : ۱/۶۸،۶۷.

## المقدمة

بسم الله الرحمن الرحيم

نَحْمَدُکَ يا مَنْ جَعَلَ صُدُوْرَنَا مِشْكَاةً لِمَصَابِيحِ الانْوَارِ. وَنَوَّرَ قُلُوْبَنَا بِنُوْرِ مَعْرِفَةِ مَعَانِي الاٰثَارِ وَنُصَلِّي وَنُسَلِّمُ عَلىٰ حَبِيبِکَ الْمُجْتَبٰى الْمُخْتَارِ وَرَسُوْلِکَ الْمَبْعُوْثِ بِصِحَاحِ الاَخْبَارِ وَعَلىٰ اٰلِهِ الاَخْيَارِ وَاَصْحَابِهِ الْكِبَارِ وَمُتَّبِعِيهِمُ الَّذِينَ اخْتَارُوْا سُنَنَ الْهُدٰى وَاسْتَمْسَكُوْا بِاَحَادِيثِ سَيِّدِ الاَبْرَارِ.

اَمَّا بَعْدُ ! فَيَقُوْلُ الْخَادِمُ لِلْحَدِيثِ النَّبَوِي مُحَمَّدُبْنُ عَلِي نِ النِّيمَوِي اِنَّ هٰذِهٖ نُبْذَةٌ مِنَ الاَحَادِيثِ وَالاٰثَارِ وَجُمْلَةٌ مِنَ الرِّوَايَاتِ وَالاَخْبَارِ اِنْتَخَبْتُهَا مِنَ الصِّحَاحِ وَالسُّنَنِ وَالْمَعَاجِمِ وَالْمَسَانِيدِ وَعَزَوْتُهَا اِلىٰ مَنْ اَخْرَجَهَا وَاَعْرَضْتُ عَنِ الاِطَالَةِ بِذِكْرِ الاَسَانِيدِ وَبَيَّنْتُ اَحْوَالَ الرِّوَايَاتِ الَّتِي لَيْسَتْ فِي الصَّحِيحَيْنِ بِالطَّرِيقِ الْحَسَنِ وَسَمَّيْتُ هٰذَ الْكِتَابَ مُسْتَخِيرًا بِاللهِ تعالىٰ بِاٰثَارِ السُّنَنِ اَسْاَلُهُ اَنْ يَجْعَلَهُ خَالِصًا لِوَجْهِهِ الْكَرِيمِ وَوَسِيلَةً اِلىٰ لِقَائِهِ فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ.

**ترجمه** : مونږ ستا حمد او ثنا وايو اي هغه ذاته چې ګرځولي يې دي سيني زمونږ طاقچې دپاره د روښانه چراغونو او روښانه کړي يې دي زړونه څمونږ په رڼرا د معرفت د معنی ګانو د احاديثو. او مونږ درود د رحمت او سلام ليږو په محبوب ستا غوره کړي شوي بهتر کړي شوي او په رسول ستا هسي رسول چې ليږلي شوي دي د صحيحو اخبارو او حديثونو سره (او درود او سلام دي وي) د ده په نيک آل او د ده په لويو اصحابو او د دوي په هغه تابعدارانو چې غوره کړي يې دي لارې د هدايت او مضبوط يې نيولي دي دپاره د استدلال حديثونه د سيد الابرار.

دحمد او صلوة نه پس د نبوي ﷺ دحديثو خادم محمد بن علي نيموي وايي يشکه دا د احاديثو او د آثارو يوه ټوټه او ټوکړه ده او د رواياتو او اخبارو يوه جمله او مجموعه ده چې د صحاحو . سننو . معاجمو او مسانيدو څخه مي منتخب کړي ده او هغه چاته مي يې نسبت کړي چاچې هغه خارج کړي او د هغه اسانيدو او سندونو د ذکر نه مي اعراض کړي کوم چې د اوږد والي سبب کيږي او د هغه رواياتو احوال چې په دوارو صحيحو کتابونو کې نه وي په ښه او حسني طريقي سره بيان کړي او دي کتاب ته مي نوم ايښي دي په داسي حال کې چې خير غوښتونکې يم الله تعالى څيني په آثار السنن سره او د همدغه ذات څخه غوارم چې دغه کتاب خاص د خپلي رضا

او په نعمتونو د جنتونو کې يې د خپلې لقاء (ملاقات) د پاره وسيله وګرزوي.

**تشريح:**

**قوله: وَعَزَوْتُهَا إِلَىٰ مَنْ أَخْرَجَهَا:** امام نيموي رحمه الله په اکثرو ځايونو کې د ماخذ په ځاي په علاماتو اکتفاء کړي ده لکه څنګه چې مصنف په التعليق الحسن کې بيان کړې دی چنانچې د الشيخان نه مراد د شيخينو ځني مراد مسلم او بخاري دي او د ثلاثه ؤ څخه مراد ابوداود نسائي او ترمذي دي او د اربعه څخه مراد دا دري او ورسره ابن ماجه دي او د خمسه ؤ ځيني مراد دا څلور او ورسره احمد دي او د سته ؤ څخه مراد هغه څلور او ورسره شيخين دي. او د الجماعة ځيني مراد صاحبان د شپږو کتابونو دي (امام بخاري، مسلم، ترمذي، ابوداوٗد، نسائي وابن ماجه) او امام احمد دي.

چې کله امام نيموي رحمه الله يو حديث ذکر کړي او دهغې نسبت ديو نه زيات محدثينو طرفته ددوي دنومونو تصريح يا القابو سره کوي نو حديث الفاظ ددېنه دمخکيني روايت مطابق وي، دنورو حضراتو الفاظ ددېنه مختلف هم کيدې شي، دغه شان چې کله حديث لره صحيح ګرځوي نو صرف داولني محدث په نزد دحديث حکم بيانول مقصود وي قطع نظر دنورو نه. چې کله الجماعة الستة يا الشيخان ووايي نو دحديث الفاظ به دبخاري يا دمسلم مطابق وي او که الدارمي وابن أبي شيبة وآخرون په شان الفاظ ووايي نو دحديث الفاظ به ددوينه ديو وي ليکن دصحت حکم به دټولو يا ديو روايت په بنياد باندې وي، او چې کله داسې يو روايت ته ضعيف اويلې شي نو هغه حديث دهر يو روايت په بنياد به ضعيف منلې شي.

**قوله: وَبَيَّنْتُ أَحْوَالَ الرِّوَايَاتِ الَّتِي لَيْسَتْ فِي الصَّحِيحَيْنِ:**

صحيحين يعنې بخاري او دمسلم روايتونو باندې کلام نه کولو وجه داده چې ددې کتابونو رواياتو لره دعلماء امت بالاتفاق قبول کړي دي ځکه چې هغه دصحت په اوچته مرتبه باندې دي لهذا دهغې احوالو ذکر کولو او دهغې په سندونو باندې بحث کولو ضرورت نه وو، او د نورو محدثينو په روايتو کې دصحت او دسقم ددواړو امکان موجود وو او علماء امت ددوي ټولو رواياتو لره صحيح نه دي ګرځولي نو ځکه هلته دکلام کولو ضرورت راغې.

# كِتَابُ الطَّهَارَة

## دپاكوالي بيان

**دباب مقصد** : چونكه ددې كتاب موضوع داحاديثو نه دفقهي مسائلو لره ثابتيدل دي او عام طور باندې دفقهي بابونو ابتداء دكتاب الطهارة نه كيږي نو لهذا امام شوق نيموي رحمه الله هم خپل كتاب لره دكتاب الطهارة نه شروع كړ .

اوس سوال دا كيږي چې فقهاء دكتاب الطهارة نه شروع ولې كوي ، نو ددې وجه داده چې دانسان پيدائش دعبادت لپاره شوې دى كما هو المعلوم . او په عباداتو او په اركان داسلام كې له ټولو نه اهم مونځ دى او دمونځ لپاره څه شرائط دي چې په هغې كې له ټولو نه اقوى شرط هغه طهارة يعني پاكوالې دى ، او دا ظاهره ده چې شرط هميشه لپاره مقدم وي په مشروط باندې ، نو ځكه فقهاء حضرات او اصحاب سنن خپل كتابونو كې كتاب الطهارة له ټولو نه مخكې راوړي.

## دكتاب او دباب اصطلاح

بعضې علماؤ فرمايلي دي كه دمسائلو اعتبار بجنسها اوكړې شي يعني جنس مسائل بيانول نو دې لره په كتاب سره تعبير كولې شي ، ځكه چې دكتاب هم لغوي معنى ده جمع ، او كه دمسائلو اعتبار بنوعها اوكړې شي يعني صرف ديو نوعې مسائل ذكر كول مقصود وي نو دې لره په باب سره تعبيرولې شي ، ځكه چې دباب لغوي معنى هم په يو لغت كې دنوع راځي ، او كه بعضې جزئيات لره دماقبل نه ممتاز كول او بيانول مقصود وي نو دې لره په فصل سره تعبيرولې شي . ځكه چې هغه دماقبل نه مفصول او جدا دى .

## دطهارت معنى او اقسام

طهارة مصدر دى دطهر يطهر دنصر كرم نه ، ددې لغوي معنى ده **النظافة والتنزه من الاقذار والادناس** ، يعني دپليتيو او خيرو نه پاكوالي ته ويلې شي ، او شرعا طهارة وايي ازاله دحدث يا دخبث لپاره دقاعده شرعيه مطابق احد المطهرين (اوبه يا خاوره) لره استعمالول .

نو دطهارة دوه قسمونه شو :۱- ازاله حدث(نجاست حكمي) .۲- ازاله خبث (نجاست حقيقي). بيا داول دوه قسمونه دي :۱- عن الحدث الاصغر كوم ته چې وضو (اودس) ويلې شي .۲- عن الحدث الاكبر كوم ته چې غسل ويلې شي . دلته مطلق او جنس طهارة مراد دى ځكه چې د مصنف

مقصود دوا ړو لره ذکر کول دي .(۱)
مصنف د کتاب الطهارة لاندې درې څلویښت (۴۳) بابونه ذکر کړي دي.

## ﴿ بَابُ الْمِيَاه ﴾
## د اوبو احکام

میاه : د ماء جمع ده . لغوي معنی ده اوبه ، په ابتداء کې به د اوبو احکام بیانیږي ، د پلیتو او د پاکو اوبو مسائل یعني اوبه کله پلیتیږي او کله نه ؟ څومره پلیتیږي او څومره نه ؟.

۱......عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَبُولَنَّ أَحَدُكُمْ فِي الْمَاءِ الدَّائِمِ الَّذِي لَا يَجْرِي ثُمَّ يَغْتَسِلُ فِيهِ. رَوَاهُ الْجَمَاعَةُ .(۲)

**ترجمه** :حضرت ابي هریره رضي الله عنه نه روایت دی، فرمایي : چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې هیڅکله دې یو د ستاسو نه دې په هغه ولاړو اوبو کې چې رواني نه وي تش اودس ماتې دې نه کوي چې بیا پکې غسل کوي دا حدیث د محدثینو یو جماعت نقل کړی دی .

**د کلماتو تحقیق او د حدیث مفهوم:**

ماء دائم نه مراد داسې اوبه دي چې کمې وي او عادتا نه منقطع کیږي، مثلا یو لوي تالاو یا چینه چې دهغې نه چې څومره اوبه اویستلې شي نو دهغې په اندازه ورته نورې اوبه راشي او دهغې تللو اوبو ځاي ډک کړي . او د ماء جاري په معنې مراد کې دوه قوله دي : ۱) داسې روانې او تیزې اوبه چې یو ډکې دوه ډکو لره وړلې شي .۲) داسې ډیرې اوبه چې دهغې یو طرفته په پلیتې پریوتو سره دویم طرف متاثر نه شي.

په حدیث کې د الماء الذي لایجري نه مراد ماء راکد (ولاړې اوبه) دي کومې چې دباران نه پس په صحراګانو ، لوي لوي تالابونو کې جمع کیږي چې دهغې دبهیدلو او دوتلو هیڅ صورت نه کیږي چې آخر هغه دلمر په تب (ګرموالي) او په زمکه کې دجذب کیدو دوجې نه وچې شي . په حدیث کې له دې خبري نه منع کړې شوې ده چې اول په اوبو کې متیازې اوکړي او بیا په دې کې غسل اوکړي، منفردا دهر یو ممانعت نه دی نو لهذا د ماء دائم نه په غسل کولو کې هیڅ حرج نشته دی.

---

(۱) الدر المنضود :۷۶/۱، ۷۷.

(۲) بخاري: کتاب الطهارة ج۱ص ۳۷ باب البول في الماء الدائم ، مسلم کتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۳۸ باب النهي في الماء الراکد ، ترمذي ابواب الطهارات ج ۱ص۲۱ باب کراهية البول في الماء الراکد .

۲...... وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ ﷺ أَنَّهُ نَهَى أَنْ يُبَالَ فِي الْمَاءِ الرَّاكِدِ.
(رواه مسلم). (۱)

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه د حضرت رسول اکرم ﷺ نه بیان فرمایي چي رسول الله ﷺ په ولاړو اوبو کي د تشو متیازو کولو نه منع فرمائلي ده . دا حدیث مسلم نقل کړي.

دکلماتو تحقیق او دحدیث مفهوم

په دې دویم حدیث کې هم دماء راکد ذکر راغلي دی په دې حدیث کې مطلقا په ولاړو اوبو کې دمتیازو کولو نه منع کړې شوي ده خکه چې عموما خلک ددې اوبو نه غسل او اودس کوي دمتیازوکولو دوجې نه به دا اوبه پلیتې شي

۳ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ ﷺ قَالَ: إِذَا شَرِبَ الْكَلْبُ فِي إِنَاءِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْسِلْهُ سَبْعًا. رَوَاهُ الشَّيْخَانِ.(۲)

**ترجمه** : د ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې بي شکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي چې کله سپي په لوخي د يو ستاسو کې اوبه أسکې نو اوه(۷) خله دي يې ووينځي . دا حديث شيخين نقل دي.

۴..... وَعَنْهُ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُوْلِ اللهِ ﷺ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّا نَرْكَبُ الْبَحْرَ وَنَحْمِلُ مَعَنَا الْقَلِيْلَ مِنَ الْمَاءِ فَإِنْ تَوَضَّأْنَا بِهِ عَطِشْنَا أَفَنَتَوَضَّأُ مِنْ مَاءِ الْبَحْرِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ ﷺ هُوَ الطَّهُوْرُ مَاءُهُ وَالْحِلُّ مَيْتَتُهُ.(رَوَاهُ مَالِكٌ وَآخَرُوْنَ وَإِسْنَادُهُ صَحِيْحٌ) (۳)

**ترجمه** :د حضرت ابي هريره رضي الله عنه روايت دی هغه فرمايي چي يوسړي درسول اکرم ﷺ په حضور کي حاضر شو نو وي ويل اي دالله رسوله بي شکه مونږ په کشتئ کي په درياب کي سفر کوو او د خان سره لږي اوبه اوړو که په هغه اوبو اودس کوو تږي کيږو آيا د درياب په اوبو اودس کولي شو نو رسول الله ﷺ وفرمائل :د دي اوبه پاکي دي او د دي مرداره حلاله ده . دا حديث امام مالک رحمه الله او نورو محدثينو نقل کړي دي او د دي سند صحيح دي .

---

(۱) مسلم كتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۳۸ باب النهي عن البول في الماء الراكد .
(۲) بخاري كتاب الطهارة ج ۱ ص ۲۹ باب اذا شرب الكلب في الاناء ، مسلم كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۳۷ باب حكم ولوغ الكلب .
(۳) موطا امام مالک كتاب الطهارة ص ۱۵ باب الطهور للوضوء،ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ص ۱۱ باب الوضوء بماء البحر ، نسائي كتاب المياه ج ۱ ص ۶۳ باب الوضوء بماء البحر .

## دكلماتو تحقيق او د حديث مفهوم :

"جاء رجل" ديو قول مطابق ددې كس تعلق د قبيله بني مدلج سره وو . او دده نوم حميد بن صخره رضي الله عنه وو يا عبد الله وو .

**قوله** : تحمل معنا القليل من الماء : په اصل كې سائل ته ددرياب اوبو متعلق داودس د جواز او دعدم جواز وهم وو . ځكه چې په درياب كې دننه بې شميره ځناور پيدا كيږي او بيا په همغې كې مره كيږي ددېنه علاوه دعامو اوبو په ذائقه كې او ددريابي اوبو په ذائقه كې هم ډير لوي فرق دی . عموما په سفر كې دمسافرو سره دضرورت په اندازه اوبه اوداسي نور سامان وي نو سائل داپوښتنه كړل او غوختل چې كه مونږ سره دسفر په وخت كې دڅكلو اوبو نه علاوه داودس دپاره اوبه نه وي نو آيا مونږ ددرياب داوبو نه اودس كولې شو او كه نه ؟ نو په جواب كې رسول الله صلى الله عليه وسلم دسائل اصل مسئله حل نه كړه چې نعم يې ويلې وې بلكې يو څو فائدو باندې مشتمل جواب يې وركړو ، مثلا :

۱- ددرياب اوبه مطلقا پاكې دي ددېنه اودس كول په هر حال كې صحيح دی برابره خبره ده كه يو سړي سره موجودې اوبو په استعمال سره دده دتږي كيدو يره وي او يا نه .

۲- الحل ميتة په اضافه كولو سره يې دسائل دنورو سوالونو منشا جوړيدو شبه يې ختمه كړه يعنې په درياب كې مركيدونكې ځناور پاک دی ددې دوجې نه داوبو په پاكوالي كې شبه نه دي كول پكار.

۳- كه الحل دحلال په معنی كې دی نو گويا په دريابي سفر كې غذاء مسئله يې هم حل اوفرمايله چې ميتة البحر حلال دی خوړلې يې شي.

**۵..... وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا قَالَ سُئِلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَاءِ وَمَا يَنُوْبُهُ مِنَ الدَّوَابِّ وَالسِّبَاعِ فَقَالَ إِذَا كَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ رَوَاهُ الْخَمْسَةُ وَآخَرُوْنَ وَهُوَ حَدِيْثٌ مَّعْلُوْلٌ** .(۱)

**ترجمه** :حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه د اوبو او اوبو ته د بار بار راتلونكو ځناورو او خيرونكو ځناورو په باره كې پوښتنه وكړه نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائل كله چې اوبه دوه قلې وي پليتي ئې نه ده اخيستي يعنې نه پليتيږي . د دي حديث روايت پنځه

(۱) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ ص ۹ باب ما ينجس الماء ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ص ۲۱ باب ماجاء ان الماء لا ينجسه شيء .

کــو اوداسي نورو کړي دي او دا حديث معلول دي .

۶...... وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرٍو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِذَا بَلَغَ الْمَاءُ أَرْبَعِينَ قُلَّةً لَمْ يَنْجُسْ رواه الدار قطني و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : د عبدالله بن عمرو رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې کله اوبه څلويښتو قلو ته ورسيږي نه پليتيږي . روايت يې دار قطني کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

۷. وَعَنْ اِبْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّ اِمْرَأَةً مِنْ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِغْتَسَلَتْ مِنْ جَنَابَةٍ فَتَوَضَّأَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِفَضْلِهِ فَذَكَرَتْ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ إِنَّ الْمَاءَ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ رواه احمد وَفِي اسناده لين.(۲)

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بيبيانو نه يوې بې بې د جنابت نه غسل وکړ بيا نبي عليه السلام د هغې نه په پاتې شوي اوبو باندې اودس وکړو ام المؤمنين دا خبره نبي عليه السلام ته وکړه نو هغه وفرمائل اوبه په هيڅ شي نه پليتيږي . او د دې حديث روايت احمد کړي او د دې په اسناد کې لين دي يعني کمزوري دی .

۸.... وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قِيلَ يَارَسُولَ اللهِ أَنَتَوَضَّأُ مِنْ بِئْرِ بُضَاعَةَ وَهِيَ بِئْرٌ يُطْرَحُ فِيهَا لُحُومُ الْكِلَابِ وَالْحِيَضِ وَالنَّتْنِ فَقَالَ الْمَاءُ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ رَوَاهُ الثَّلَاثَةُ وَآخَرُونَ وَصَحَّحَهُ أَحْمَدُ وَحَسَّنَهُ التِّرْمِذِيُّ وَضَعَّفَهُ اِبْنُ الْقَطَّانِ .(۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې د نبي عليه الصلاة والسلام نه پوښتنه وکړې شوه چې اې دالله رسوله ! ايا مونږ د بير بضاعة نه اودس کولې شو حال دا چې دا يو داسې کوهې دې چې په هغې کې د سپو غوښې، د حيض په وينولړلي جامې کېږې اونور بدبويه شيان غورځولې شي نورسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل اوبه پاکې دي هيڅ شي يې نشي پليتولې . دا حديث درې کسو اوداسې نورونقل کړي دي.امام احمد رحمه الله صحيح اوامام ترمذي حسن اوابن قطان ضعيف ګرځولې دي.

---

(۱) سنن دار قطني کتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۲۷ باب حکم الماء اذا لاقته النجاسة .

(۲) مسند احمد ج۱صـــ ۲۳۵،۲۸۴،۳۰۸، نسائي کتاب الطهارة ج ۱صـــ ۴۲.

(۳) ابوداؤد کتاب الطهارة ج ۱صـــ ۹ باب ماجاء في بير بضاعة ، ترمذي ابواب الطهارة ج ۱صـــ ۲۱ باب ماجاءان الماء لا ينجسه شيء.

## د کلماتو تحقيق:

**بُضاعه**:د باء په پيش او زير سره دواړه جائز دي او په پيش سره ډير مشهور دي دا د يو مشهور کوهي نوم دي چې په مدينه منوره کې د بني ساعده د قبيلې د بضاعه په محله کې واقع دي څرنګه چې په دغه محله کې واقع دي نو د همدي په نوم ياد شوي دي چې تر اوسه پورې دغه کوهي موجود دي چې د دي په اوبو خمکه اوبه کيږي او سبزياني او ترکارياني پرې کرل کيږي.

۹..... وَعَن عَطَاء إِنَّ حَبَشِيا وَقَعَ فِي زَمزَمَ فَمَاتَ فَأَمَرَ ابنُ الزُّبَيرِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَنُزِحَ مَائها فَجَعَلَ المَاء لَا ينقَطِعُ فَنَظَرَ فَإِذَا عَين تَجرِي مِن قِبَلِ الحَجَرِ الأَسوَدِ فَقَالَ ابنُ الزُّبَيرِ حَسبُكُم رَوَاه الطَحَاوِي وابنُ أَبِي شَيبَة واسنَادُه صَحِيح.(۱)

**ترجمه**:د حضرت عطاء رحمه الله نه روايت دي چې يو حبشي د زمزم په کوهي کې وغورځيدنو مړشو نو ابن زبير رضي الله عنه امر وکړو نو وويستل شوي اوبه د هغې کوهي نه خو اوبه نه ختميدې ناڅاپه يې وکتل چې د حجراسودله خوانه يوه چينه راروانه وه نو ابن زبير رضي الله عنه وفرمائل چې بس دي تاسولره نور د اوبو ويستلو ضرورت نشته. دا حديث امام طحاوي رحمه الله او ابن ابي شيبه روايت کړي. د دي سند صحيح دي.

۱۰..... وَعَن مُحَمَّدُ بنُ سِيرِينَ اَنَّ زَنجِيا وَقَعَ فِي زَمزَمَ يعنِي فَمَاتَ فَأَمَرَ بِهِ ابنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَأُخرِجَ وَ اَمَرَ بِها اَن تُنزَحَ قَالَ فَغَلَبَتهُم عَينٌ جَاء تهم مِنَ الرُّكنِ فَأَمَرَ بِها فَدُسَّت بِالقَبَاطِي وَالمَطَارِفِ حَتَّى نَزَحُوها فَلَمَّا نَزَحُوها اِنفَجَرَت عَلَيهِم رواه الدارقطني و اسناده صحيح.(۲)

**ترجمه**:د محمد بن سيرين رحمه الله نه روايت دي چې يو حبشي په زمزم کې پريوت يعني مړ شو نو ابن عباس رضي الله عنه حبشي د ويستلو امر وکړ نو هغه وويستلي شو او د ټولو اوبو د ويستلو امر يې وکړ نو د کوهي چينه په دوي غالبه شوه کومه چې دوي ته دحجر اسود لطرفه راغلي وه نو د هغې چينې د بندولو امر يې وکړ نو بنده کړې شوه په تاري او ريښمي کپړو باندي تردي چې ټولې اوبه يې ترې وويستلې نو په يو ځل اوبه په دوي باندي راخلاصي شوي، دار قطني د دي روايت کړي او د دي سند صحيح دي.

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صــ ۱۹ باب الماء يقع فيه النجاسة ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الطهارات ج۱ صــ۱۴۲ باب في الفارة و الدجاجة واشباهها تقع في البئر .

(۲) سنن دار قطني كتاب الطهارة ج ۱ صــ ۳۳ باب البئر اذا وقع فيها حيوانٌ .

۱۱..... وَعَن مَيسَرَة أَنَّ عَلِيا رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ فِي بِئرٍ وَقَعَت فِيهَا فَارَة فَمَاتَت قَالَ يُنزَحُ مَاؤُهَا رواه الطحاوي واسناده حسن .(۱)

**ترجمه** :د ميسره رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دي چې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فرمانلي دي د هغه كوهي په باره كې چې په هغې كې مږه پريوتي او مړه شوي وه د هغې تولې اوبه به ويستلې شي . طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د دې حديث روايت كړي او دا حديث حسن دي

قَالَ النِّيمَوِي وَفِي البَابِ آثَارٌ عن التَّابِعِينَ

**ترجمه** :نيموي ويلي دي چې په دې باب كې د تابعينو نه هم اثار منقول دي

## ددې باب فقهي مسائل او دمذاهبو اختلاف

ددې باب لاندې يو څو مسائل اختلافي دي ، په ترتيب سره به دهر يو نه بحث كولې شي

**اولنۍ مسئله** : په اوبو كې دپليتۍ لويدلو حكم ؛ په دې باب كې څلور مشهور مذاهب دادي

۱- داؤد ظاهري او د موجوده دور د بعض غير مقلدينو مسلک دا دي چې اوبه لږې وي او که ډيرې وي چې پليتي پکې وغورځيږي نو تر هغې نه پليتيږي ترڅو چې دپليتۍ اجزاء داوبو په اجزاء باندې غالب رانشي او تر څويوري يې چې بهيدل اونرميدل نه وي ختم شوي اوددې پليتۍ د غورځيدو په وجه يې درې واړه اوصاف متغيرشوي هم وي او به د پاكوالي نه ،نه وځي نو له دې دوجې نه دداود ظاهري په نزد كه په دې غټ بول اوكړې شي يا غير انسان پکې متيازې اوكړي يا انسان دې اوبو ته نزدې متيازې اوكړي چې هغه اوبهيږي او اوبو ته لاړې شي نو هيڅ حرج نشته اوبه پخپل خاي پاكې دي امام نووي فرمايي چې دا د جمود على الظاهر بدترين مثال دى .

جمهور اهل سنت په دې خبره باندې متفق دي چې ماء كثير دپليتۍ په غورځيدو سره نه پليتيږي برابره ده كه هغه پليتي لږه وي او كه ډيره ، او ماء قليل دپليتۍ غورځيدو سره پليتيږي كه هغه پليتي لږه وي او كه ډيره ، البته دلږې او د زياتې په تعيين كې دجمهورو په خپل مابين كې اختلاف دى ، چنانچې :

۲- دمالكيو په نزد اوبه تر هغه وخت پورې نه پليتيږي ترڅو چې داوصاف ثلاثه (رنګ ، بوي، خوند) نه يو وصف بدل شوي نه وي ګويا چې دا حضرات ماء متغير لره قليل او غير متغير لره كثير ګرځوي .

(۱) معاني الاثار كتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۹ باب الماء يقع فيه النجاسة .

۳- دشافعيو او حنابلو په نزد کومې اوبه چې دقلتينو برابر يا ددېنه زياتې وي هغه ډيرې اوبه دي او کومې چې دقلتين نه کمې وي هغه ماء قليل دي.
۴- داحنافو په نزد کومې اوبه چې ماء جاري وي يا دماء جاري په حکم کې وي هغه ماء کثير دي او چې کومې داسې نه وي هغه ماء قليل دي ماء جاري خو واضحې دي يعنې کومې چې يو ډکې لره يو سي . البته هغه څومره اوبه دي کومې چې دماء جاري په حکم کې اچولې شي يعنې هغې ته ماء جاري ويلې شي نو دهغې دمعيار په باره کې درې قوله دي:
۱- **اعتبار تحريک**: يعنې چې يو تالاب دومره لوي وي چې که ددې يو طرف اوبو ته حرکت ورکړې شي چې دويم طرف يې فورا متحرک نشي يعنې ديو طرف په خوزولو سره بل طرف اونه خوزي. تحريک بالوضو وبالغسل دواړه ممکن دي.
۲- **اعتبار مساحت**: يعنې په دې کې دپيمائش اعتبار دی چې کوم تالاب عشر في عشر يعنې لس په لس وي هغه ماء کثير دي.
۳- **اعتبار ظن مبتلی به**: يعنې که مبتلی به (ضرورت مند کس) دغالب گمان مطابق داوبو ديو طرف دپليتوالي اثر بل طرفته نشي رسيدلې نو هغه ماء کثير دي.

## دلائل

۱- دظاهريو استدلال دباب حديث نمبر ۷ او حديث نمبر ۸ نه دی په اولني حديث کې دا فرمايلې شوي دي چې إِنَّ الْمَاءَ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ او بل حديث يعنې بئر بضاعة واله حديث مطابق په کوهي کې ددېرې پليتئ غورځيدو باوجودددې اوبو ته پاکې ويلې شوي دي.
۲- دامام مالک رحمه الله استدلال هم دبئربضاعه واله حديث دی ليکن هغه دارقطني روايت لره مدار گرځوي کوم کې چې اَلْمَاءُ طَهُورٌ لَا يُنَجِّسُهُ شَيْءٌ نه پس د الا ماغلب على ريحه أو طعمه اضافه ده.
۳- امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله استدلال دپنځم (۵) نمبر حديث نه دی دکوم الفاظ چې دادي: إِذَاكَانَ الْمَاءُ قُلَّتَيْنِ لَمْ يَحْمِلِ الْخَبَثَ په دې کې صراحة دقلتينو اوبو کې دنجاست غير مؤثر کيدل خودلې شوي دي.
۴- داحنافو استدلال دڅو احاديثو نه دی مثلا:
الف: دباب اولني حديث او دويم حديث دکوم مطابق چې مطلق ماء دائم او ماء راکد کې متيازو کولو نه منع کړې شوې ده چې متيازو کولو نه هغه اوبه پليتيږي که ماء دائم قلتين وي يا نه وي.
(ب) دباب دريم نمبر حديث دکوم مطابق چې حضور صلى الله عليه وسلم دهغه لوښي په باره کې کوم کې چې سپي خوله وهلې وي داوه ځله وينځلو حکم فرمايلې دی او دقلتينو تخصيص يې نه دی کړې.

(ج) دبخاري او دمسلم حديث : اذا استيقظ أحدكم من نومه فلا يغمس يده في الاناء.... الحديث کچرته په لړو اوبو کې دپليتئ غورځيدل دناپاکئ سبب نه وئ نو صرف دنجاست لګيدلو وهم سره به په لوښي کې دلاس لګيدلو نه ممانعت نه کيدو . غرض په دې حديثو کې دتغير أحد الأوصافو ذکر دی نه دقلتينو تخصيص ، دا هم معلومه شوه چې هر څنګه نجاست غورځيدل اوبو لره پليتوي .

(د) دباب حديث نمبر نهم او لسم دکوم مطابق دوو صحابو يعنې حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه د هغه کوهي په باره کې چې يو انسان ورته پريوتې وو دټولو اوبو ويستلو حکم يې وفرمايلو ،حالانکه کوهي خو يقينا دقلتينو نه لوي او جوړ به وي . همدرانګې تغير أحد الاوصاف ته هم ونه کتلې شو .دغه شان دباب حديث نمبر ١١ دکوم مطابق چې حضرت علي رضي الله عنه په کوهي کې دمږي دغورځيدونه پس دمړکيدو دوجې نه دټولو اوبو ويستلو حکم ورکړاو د مذکوره قيوداتو هيڅ اعتبار يې اونکړو معلومه شوه چې په قليل او کثير کيدو کې دمبتلي به رائ باندې مدار دی.

## دفريق مخالف ددلائلو جواب

١- دظواهرو داولني حديث جواب اولا دادې چې دې حديث لره ضعيف ګرځولې شوې دی لهذا دباب د صحيح احاديث سره ددې تعارض نشي کيدې دويمه داچې په دې حديث کې دالماءمصداق فضل ماء الجنابة دی يعنې دغسل جنابت نه پاتې شوي اوبه ترڅو پورې چې پليتي په کې اونه غورځي نه پليتيږي.

٢- دامام مالک رحمه الله او داهل ظواهرو دبئر بضاعه والا دحديث نه داستدلال څو جوابات ورکړې شوي دي :

الف- دا حديث ضعيف دی يحي بن سعيد القطان او داسي نورو ناقدينو دحديث ددې په سند باندې کلام کړې دی په وجه ديو راوي عبيدالله بن عبدالله .

ب- ددې په سند کې اضطراب دی ځکه چې دراوي نوم او نسب مختلف بيانولې شي .

١....عن عبيدالله بن عبدالله بن رافع . ٢..... عن عبيدالله بن عبدالرحمن بن رافع . ٣... عن عبدالله بن عبيدالله بن رافع .

ج- الماء طهور کې دالماء نه مراد خاص دبئر بضاعه اوبه دي او دبئر بضاعه اوبه دماء جاري په حکم کې وې ، ځکه چې ددېنه به باغات سيراب کيدل ورنه داڅنګه ممکنه ده چې په يو کوهي کې دومره پليتي غورزيږي او بيا دې هم ددې اوبه جاري نه وي بلکې په يو ځاي کې اودريدلې وي بيا

هم ددې وصف متغير نه وي او ددې دپاکيدو حکم دې اولګولې شي ؟ لهذا دمالکيو او دظواهرو ددې حديث نه استدلال صحيح نه دی .

د - که بالفرض دالماء نه عام اوبه مراد شي نو بيا به ددې مطلب داشي چې اوبه هيشه دپاره نه ناپاک کيږي بلکې چې کله دې لره دپليتي دغورزيدلو نه پاکې کړي نو پاکې به شي .

هـ- په اصل کې دبئربضاعه والا کوهي په يو جَوَر ځاي کې وو او په سر يې يو ديوال هم نه وو تاو کړې شوې نو دسيلاب او دتيز باران دوجې نه به هر قسمه پليتياني دمختلفو ځايونو نه راتلې او په دې کې به غورزيدلې . ليکن چې وروسته دکوهي صفائي اوکړلې شوه او دحفاظت انتظام يې هم اوشو نو اوس صرف دپليتي دغورزيدو احتمال پاتې شو چې په دې باندې خلکو سوال اوکړو او حضور ﷺ ورته تسلي بخش جواب ورکړو چې ترڅو دنجاست غورزيدو يقين نه وي راغلې صرف وهم او احتمال سره اوبه نه پليتيږي او که داسې خبره نه وي نو عام کافر هم اوبو کې ګند نه غورزوي بلکې ددې دحفاظت بندوبست کوي نو مسلمان به څنګه په يو پاکه معاشره کې په کوهي کې دګند غورزولو او دګند نه دډکيدو تصور اوکړي .

۳- دامام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اللَّهُ ددليل جواب دادې چې :

۱... حديث قلتين لره علی بن المديني رَحِمَهُ اللَّهُ ، اسماعيل القاضي رَحِمَهُ اللَّهُ ، ابن تيميه ، ابن عبدالبر او اکثرو محدثينو ضعيف ګرځولې دی .

۲.... دحديث په متن ، معنی او دمصداق په تعين کې هم سخت اضطراب دی ، تفصيل يې دادی :

(الف) سنداً اضطراب دا چې راوي وليد بن کثير کله روايت کوي دعن محمد بن جعفر بن زبير ، عن محمد بن عباد بن جعفر . يا کله دعبيدالله بن عبدالله او کله عبدالله بن عبدالله وايي او په يو روايت کې دابن عمر نه موقوفا مروي دی او بل روايت کې مرفوعا.

(ب) متنا اضطراب دا چې دباب حديث نمبر ۵ کې قلتين يعني ددوو قلو ذکر دی او په حديث نمبر ٦ کې کوم لره چې دارقطني صحيح ويلې دی لفظ اربعين قلة يعني دڅلويښتو قلو ذکر دی ، همدارنګې ددارقطني وابن عدي په يو روايت کې قلتين او ثلاثا په تشکيک سره راغلې دی .

(ج) معنا اضطراب دادې چې دقلة په لغت کې څو معناګانې راځي مثلا : دغر څوکه ، دانسان قد ، او منګې .

(د) په مصداق کې اضطراب دادې چې که دقله مراد په حديث کې منګې دی لکه څنګه چې شوافع ددې تاويل کوي نو بيا داتعين کول به مشکل وي چې منګې به څومره غټ پکار وي .

نو بهر حال ددې اضطراباتو دوجې نه هم بعضي حضراتو حديث قلتين لره ضعيف ګرځولې دی .

۳... حضرت علامه محمد انور شاه کشمیري رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې ددې حديث نه هم مقصود دفع دوسوسې ده چې ترڅو پورې په خپلو سترګو باندې دې اوبو ته دځناورو راتلل نه وي کتلي هسې دې شبه نه کوي تردې چې يقين يې پيدا شي.

**دويمه مسئله**: کچرته يو سپې په يو لوښي کې خوله اووهي نو ددې څه حکم دی ؟؛
نو ددې جواب به په راروان دريم باب باب سؤر الکلب، په ضمن کې راشي.

**دريمه مسئله**: دڅلورم حديث لاندې يو اهمه خبره داده چې ددرياب کوم کوم يو ځناور حلال دی او کوم کوم يو حرام دی ؟ ددې په باره کې يو څو مذاهب دي ،

۱- دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد سمک طافي (چې په خپل مرګ مړ شي او داوبو دپاسه راتلونکې ماهي) نه علاوه دماهيانو ټول قسمونه حلال دي او دماهي نه علاوه سمندر هر ځناور حرام دی.

۲- دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد دخنزير نه علاوه هر سمندري ځناور حلال دی.

۳- دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دلته دراجح قول مطابق دپنځه شيانو نه علاوه باقي ټول حلال دي يعنې مګرمچ، چيندخه، مار، چينجي، او شمشتې.

۴- امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد ددري شيانو نه علاوه باقي ټول حلال دي يعنې مګرمچ ، شمشتې ، البته دهغه په نزد دماهي نه علاوه دهر ځناور ذبح کول ضروري دي.

## دائمه ثلاثو دلائل:

۱- دآيت کريمه أُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ په دې آيت کې صيد عام دی لهذا هر يو ځناور حلال.

۲- په حديث کې الحل ميتة فرمايلې شوي کوم چې هر يو دميتة البحر ځناور ته شامل دي.

## داحنافو دلائل:

**۱- آيت قرآني** : وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ :مطابق خبائث يعنې هغه شيانه کوم نه چې فطري طور باندې انساني طبيعت دهغې نه کرکه کوي حرام دي او دماهي نه علاوه سمندري ځناور نه کرکه ظاهريږي.

**۲-آيت قرآني**: حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ: مطابق هر ميتة يعنې مرداره حرام ده بغير دهغه مرداري نه دکومې چې تخصيص اوکړې شي، اوس حديث ( **أحلت لكم ميتتان ودمان . فأما الميتتان فالحوت والجراد وأما الدمان فالكبد والطحال** ) (۱) کې ددوو مرداردو يعنې دماهي او دمولخ

---

(۱) ابوداؤد ، ابن ماجه ، دار قطني ، بيهقي ، وغيره عن ابن عمر .

تخصیص شوې دی لیکن ددې دوو نه علاوه دباقي ځناورو بیان نه کړې شو لهذا هغه دخپل اصل مطابق حرام دي.(۱)

۳- اهمه خبره داده چې دحضور ﷺ په پوره ژوند کې دحضور ﷺ نه او دحضور ﷺ نه پس دحضور ﷺ صحابه کرامو نه دماهي نه علاوه دسمندر نور ځناورو خوړل ثابت نه دي نو کم ازکم دبیان جواز لپاره خو به یې خوړلې وه واذلیس فلیس.

## دائمه ثلاثه رَحِمَهُ اللَّهُ ددلائل جواب:

۱- په آیت کې لفظ صید مصدر یعني اصطیاد (ښکار کول) په معنی کې دی نه اسم مفعول مصید (ښکار کړې شوې) په معنی کې ځکه چې داصطیاد معنی حقیقي اومصید معنی مجازي ده همدارنګې په آیت کې محرم لره په حالت داحرام سمندر کې دخکار کولو اجازت ورکول مقصود دي نه دښکار خوړلو حلالیدل.

۲- په حدیث الباب کې په میتة کې اضافت الی البحر ددریاب ټولو ځناورو لپاره نه دي بلکې مراد هغه مخصوص میتة البحر دي دکوم حلت چې په دویم نص کې بیان شو لکه ځنګه چې دحنافو د دلائلو په ضمن کې بیان شو، پخپله ائمه ثلاثه خنزیر، مګر مچ وغیره استثناء کوي معلومه شوه چې حدیث بالاتفاق په خپل عموم باندې نه دی.

# أبواب النجاسات

## دپلیتیو بیان

# باب سؤر الهر

## دپیشو پس خورده او جوټه

په دې باب کې پوره پنځه حدیثونه دي.

(۱۲) عَن كَبشَة بِنتِ كَعبِ بنِ مَالِكٍ وَكَانَت عِندَ ابنِ أَبِي قَتَادَةَ أَنَّ أَبَا قَتَادَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ دَخَلَ عَلَيهَا قَالَت فَسَكَبتُ لَهُ وَضُوءً قَالَت فَجَاءَت هِرَّةٌ تَشرَبُ فَأَصغَى لَهَا الإِنَاءَ حَتَّى شَرِبَت قَالَت كَبشَة فَرَآنِي أَنظُرُ إِلَيهِ فَقَالَ أَتَعجَبِينَ يَا ابنَةَ أَخِي فَقُلتُ نَعَم فَقَالَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّهَا

---

(۱) معارف السنن: ۱/۲۵۷.

لَيسَت بِنَجَسٍ إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيكُمْ أَوِ الطَّوَّافَاتِ رواه الخمسة وصححه الترمذي.(۱)

**ترجمه** :د حضرت كعب بن مالك رضي الله عنه د لور كبشي رضي الله عنها نه روايت دي او دا د ابي قتادة رضي الله عنه د زوي په نكاح كې وه چې بشكه ابي قتاده رضي الله عنه د هغې كره تشريف راوړو كبشه رضي الله عنها فرمايي چې ما هغه ته د اوداسه اوبه واچولې هغه فرمايي چې پيشو راغله اوبه يې سكلې ابوقتا ده رضي الله عنه لوخي وركوږ كړ تر دې چې پيشو اوبه او سكلې كبشه فرمايي چې ابو قتاده رضي الله عنه زه اوليدم چې ما هغه ته كتل نو وې ويل ايا ته تعجب كوې اې وريرې نو ما وويل چې هو ، نو هغه وويل چې بيشكه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې بيشكه پيشو نه ده پليته خكه چې دا پيشو دهغه خاورو نه ده كومه چې ډيره گرځيدونكې ده په تاسو رواه الخمسة وصححه الترمذي رحمه الله.

(۱۳)وَعَن دَاوُدَ بنِ صَالِحِ بنِ دِينَارٍ التَّمَّار عَن أُمِّهِ أَنَّ مَولَاتَهَا أَرسَلَتهَا بِهَرِيسَةٍ إِلَى عَائِشَةَ رضي الله عنها فَوَجَدتُهَا تُصَلِّي فَأَشَارَت إِلَى أَن ضَعِيهَا فَجَاءَت هِرَّةٌ فَأَكَلَت مِنهَا فَلَمَّا انصَرَفَت أَكَلَت مِن حَيثُ أَكَلَتِ الهِرَّةُ فَقَالَت إِنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ إِنَّهَا لَيسَت بِنَجَسٍ إِنَّمَا هِيَ مِنَ الطَّوَّافِينَ عَلَيكُمْ وَقَدْ رَأَيتُ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يَتَوَضَّأُ بِفَضلِهَا . رواه ابو داود و اسناده حسن .(۲)

**ترجمه**: د داؤد بن صالح بن دينار التمّار د خپلې مور نه روايت كوي چې دا خپلې مولاگې (مالكې) وليږله چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته هريره (يو قسمه حلوه) وسې حضرت عائشه رضي الله عنها يې په مانځه ومونده هغې ورته اشاره وكړه چې كې يې ږده نو پيشو راغله او د حلوا نه يې څه وخوړه كله چې حضرت عائشه رضي الله عنها د مانځه نه فارغه شوه نو د هغه ځاي نه يې حلوا وخوړه د كوم ځاي نه چې پيشو خوراک كړې ؤ نو وې ويل چې بې شكه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې دا پيشو نده پليته بې شكه دا په تاسو باندې ډيره گرځيدونكې ده او په تحقيق ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم وليده چې د پيشو نه په پاتې شوو اوبو يې اودس وكړ دې لره ابوداؤد روايت كړې او اسناد يې حسن دې .

۱۴...عَن أَبِي هُرَيرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم أَنَّهُ قَالَ يُغسَلُ الإِنَاءُ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الكَلبُ سَبعَ مَرَّات أُولَاهُنَّ أَو أُخرَاهُنَّ بِالتُّرَابِ وَإِذَا وَلَغَت فِيهِ الهِرَّةُ غُسِلَ مَرَّةً. رواه الترمذي وصححه.

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه روايت كوي فرمايي چې حضور صلى الله عليه وسلم او فرمايل : چې لوښې دې اووه ځله اوينځل شي چې كله په دې كې سپې خوله اووهي او

---

(۱) ترمذي ابواب الطهارة ج ۱ ص ۲۷ باب ماجاء في سؤر الهرة ابوداؤد كتاب الطهارات ج ۱ ص ۱۰ باب سؤر الهرة .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ ص ۲۷ باب سؤر الهرة .

ولښي يا په اخيره يي په خاوره کې ککړ کړئ ، او چې کله په دې لوښي کې پيشو خوله اووهي نو يو ځل دې اووينځلې شي ( دې لره ترمذي روايت کړي دی او صحيح يي ګرځولې دی).

**۱۵..... وعنه عن النبي ﷺ قال طهور الاناء إذا ولغ فيه الهر أن يغسل مرة أو مرتين**

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه نبي کريم ﷺ نه روايت کوي فرمايي چې حضور ﷺ او فرمايل :چې دلوښي صفا کول چې په دې کې کله پيشو خوله اووهي دادې چې يو يا دوه ځل دې دغه لوښي لره اووينځل شي ( طحاوي او نورو دې لره روايت کړي دی او دار قطني دې لره صحيح ګرځولې دی )

**۱۶... وعنه رضي الله عنه قال : اذا ولغ الهرة في الإناء فأهرقه واغسله مرة . رواه الدار قطني وإسناده صحيح . قال النيموي : والموقوف أصح في الباب.**

**ترجمه** : ابو هريره رضي الله عنه ويلي دي چې کله پيشو په لوښي کې خوله اووهي نو دغه اوبو لره اوغرځوئ او دغه لوښي لره يو ځل اووينځئ ( دې لره دار قطني روايت کړي دی او ددې سند صحيح دی ) نيموي وايي چې په دې باب کې موقوف روايت صحيح دی

## دکلماتو تحقيق :

ولوغ :دباب فتح نه مصدر دی د ولوغ معنی ده په يوبهيدونکي شي کې دپيشو يا ديو سپي خوله وهل او ژبې له حرکت ورکول برابره خبره ده که اوبه اوڅکي يا اونه څکي ، او دخوړلو لپاره يي لحس لفظ او ديو خالي لوښي څټلو لپاره لعق الفاظ مستعمل دي، دلته دولوغ نه مراد مطلق خوله وهل دي په کوم کې چې لحس او لعق دواړه شامل دي

**مسئلة الباب** : په عام څيرونکي ځناورو باندې دقياس تقاضا خو داوه چې سؤر هره(دپيشو جوټا) هم دې ناپاکه وي . ليکن ديو علت په بنا باندې ددې دپليت والي حکم اونه لګولې شو او هغه علت کثرت طواف دی چې په حديث کې بيان شوې دی يعنې پيشو چونکه په کورونو کې په کثرت سره داخليږي نو ځکه ددې نه هر قسمه دلوښو حفاظت مشکل دی لهذا (وَمَا جَعَلَ عَلَيْكُمْ فِي الدِّينِ مِنْ حَرَجٍ) داصول تر لاندې په دې حکم کې څه تخفيف او اسانتيا اوکړې شوه .

اوس ددې تخفيف په مقدار کې دائمه کرامو اختلاف دې کوم چې په لاندې ډول ذکر کيږي :

۱ . دائمه ثلاثو او دامام ابويوسف رحمه الله په نزد دپيشو جوټه بغير دڅه کراهت نه پاکه ده .

۲ . دطرفينو په نزد سره دکراهت نه پاکه ده او دراجح قول مطابق مکروه ده په کراهت تنزيهي سره يعنې که نوري اوبه پيدا نشي نو ددې استعمال بالکل صحيح دی .

## د اول فريق دلائل:

۱ د باب اولني حديث يعني حديث د ابي قتاده رضي الله عنه إِنَّهَا لَيسَت بِنَجَسٍ.
۲... د حضرت عائشه رضي الله عنها حديث چې د هغه ځاي نه يې خوراک اوکړ کوم ځاي چې پيشو جوته کړې وو او بياد حضور صلى الله عليه وسلم ارشاد إِنَّهَا لَيسَت بِنَجَسٍ او دوي صلى الله عليه وسلم د عمل نه استدلال اوکړې شو.

## د دويم فريق دلائل:

۱- د باب دريم حديث يعني حديث د ابو هريره رضي الله عنه إذا ولغت فيه الهرة غسل مرة.
۲- د باب څلورم حديث کوم کې چې د پيشو د جوتې د پاکولو حکم وکړې شو.
۳- قياس: يعني چې کله د پيشو غوښه پليته ده نو لعاب (لياړي) به يې هم پليتې وي نو لهذا جوته بې هم پليته پکار ده ځکه چې لعاب خو د غوښې نه جوړيږي ليکن د طواف د علت د وجې نه د دې په حکم کې تخفيف اوکړې شو او حکم د عين نجاست نه کراهت طرفته منتقل شو.

## ائمه ثلاثه و امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللَّهُ ته جواب:

۱... کراهت تنزيهي هم د جواز يوه شعبه ده لهذا ستاسو مستدل روايتونه بيانِ جواز باندې محمول دي، د غه شان ظاهراً متعارض حديثونو په مينځ کې به تطبيق اوکړې شي.
۲... د حديث ابي قتاده دوه راويان حميده او کبشه باندې کلام کړې شوې دى ليکن حقه خبره دا ده چې د بعضې قرائنو په رڼا کې کبشه صحابيه معلوميږي او دواړه ثقه دي.
۳. حديث عائشه رضي الله عنها ضعيف دى ځکه چې په دې کې ام داؤد په نوم يو راوي مجهول دى

# ﴿ بَابُ سُؤْرِ الْكَلْبِ ﴾

## باب دى په بيان د پس خورده د سپي کې

۱۷.... وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طُهُورُ إِنَاءِ أَحَدِكُمْ إِذَا وَلَغَ فِيهِ الْكَلْبُ أَن يَغْسِلَهُ سَبْعَ مَرَّاتٍ أُولَاهُنَّ بِالتُّرَابِ رواه مسلم.(۱)

**ترجمه:** د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دى چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي: ستاسو د يو

---

(۱) کتاب الطهارة ج۱ ص ۱۳۷ باب حکم ولوغ الکلب.

هغه لوښي پاکوالی چې په هغې کې سپي خوله وهلې وي دا دي چې هغه دي اووه خلي ووينځي او اول خل دي يې په خاوره ووينځي د دې حديث روايت مسلم رَحِمَهُ اللّٰه کړي دي

۱۸... وَ عَن عَبدِالله بنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ أَمَرَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بِقَتلِ الكِلَابِ ثُمَّ قَالَ مَا بَالُهم وَ بَالُ الكِلَابِ ثُمَّ رَخَّصَ فِي كَلبِ الصَّيدِ وَ كَلبِ الغَنَمِ وَ قَالَ إِذَا وَلَغَ الكَلبُ فِي الإِنَاءِ فَاغسِلُوهُ سَبعَ مَرَّاتٍ وَاعفِرُوهُ الثَّامِنَةَ بِالتُّرَابِ رواه مسلم (۱)

**ترجمه**: د عبد الله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي ده ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د سپو په وژلو حکم وفرمايلو بيا يې وفرمائل چې د خلکو د سپو سره څه تعلق دي بيا يې د ښکاري او د ګډو بيزو د ساتلو په باره کې رخصت ورکړ او وي فرمائل چې کله سپي په لوخي کې خوله ووهي نو هغه اوه خلي ووينځئ او په اتم خلي يې په خاورو ککړ کړئ د دې حديث روايت مسلم کړي دي

۱۹... وَ عَن عَطَاء عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا وَلَغَ الكَلبُ فِي الإِنَاءِ أَهرَاقَهُ وَ غَسَلَه ثَلَاثَ مَرَّاتٍ. رواه الدار قطني و آخرون و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه**: حضرت عطاء رَحِمَهُ اللّٰه د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت کړي چې بې شکه ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې کله به سپي په لوخي کې خوله ووهله نو هغه اوبه به يې توي کړئ او لوخي به يې دري خلي وينځلو روايت يې دارقطني اونورو کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

(۲۰) وَ عَنه عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ إِذَا وَلَغَ الكَلبُ فِي الإِنَاءِ فَأَهرِقهُ ثُمَّ اغسِلهُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ رواه الدار قطني والطحاوي و اسناده صحيح .(۳)

**ترجمه**: عطاء رَضِيَ اللهُ عَنهُ د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت کړي دي ده ويلي دي کله چې سپي په لوخي کې خوله ووهي نو هغه اوبه توي کړه او بيا يې دري خلي ووينځه . د دې حديث روايت دار قطني او طحاوي کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

۲۱... وَعَنِ ابنِ أَبِي جُرَيجٍ قَالَ: « قُلتُ لِعَطَاءٍ: كَم يُغسَلُ الإِنَاءُ الَّذِي وَلَغَ الكَلبُ فِيهِ قَالَ كُلُّ ذَلِكَ سَبعًا وَخَمسًا وَثَلَاثَ مَرَّاتٍ » رواه عبدالرزاق في مصنفه واسناده صحيح.

---

(۱) مسلم کتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۳۷ باب حکم ولوغ الکلب .

(۲) سنن دار قطني کتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۶۶ باب ولوغ الکلب في الاناء .

(۳) سنن دار قطني کتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۶۶ باب ولوغ الکلب في الاناء شرح معاني الاثار کتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۲۳ باب سؤر الکلب

**ترجمه**: ابن جریج رضی الله عنه نه روایت دی فرمایي چې ما ته عطاء رضی الله عنه او فرمایل چې په کوم لوخي کې چې سپي خوله ووهي نو هغه دی ووینځلې شي هغه وویل چې دا ټول صحیح دي یعنې اوه ځل یا پنځه ځل اویا دري ځله (عبدالرزاق په خپل مصنف کې دي لره روایت کړي دی او ددې سند صحیح دی

## تشریح:

**اولنی مسئله**: دسپي جوټا (پس خورده، پاکه ده یا پلیته؟ دې باره کې دوه اقوال دي

۱. امام مالک رحمه الله، بخاري رحمه الله او اهل ظواهرو په نزد دسپي غوښه پاکه ده لهذا ددې جوټا هم پاکه ده او په کوم لوښي کې چې سپي خوله اووهي هغه لوښي هم صفا دې، باقي ددې وینځلو حکم تطهیر او پاکوالي نه دی بلکې بطور تعبد او علاج دی.

۲. دامام ابوحنیفه رحمه الله شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد دسپي جوټا ناپاکه ده او د وینځلو حکم یې تطهیر لپاره دی. (۱)

## دفریق اول دلائل:

۱....دقرآن مجید آیت ﴿ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ تُعَلِّمُونَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللهُ فَكُلُوا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ ﴾ چې په دې کې دښکاري سپي ښکار کړې شوي ځناور خوړلو اجازت ورکړې شوې دی او ددې دوینځلو حکم نه دې شوې حالانکه چې سپي کله ښکار پخپل خوله کې نیسي نو په هغه ښکار باندې خامخا ددې سپي دخولې لاړې لګي.

۲... په ابوداود شریف کې دابن عمر رضی الله عنه نه روایت دی: **كانت الكلاب تقبل وتدبر في مسجد النبي صلى الله عليه وسلم ولم يكونوا يرشون عليه ماء**، نو ددې حدیث نه معلومیږي چې جمات ته به دسپي دداخلید و نه پس خلکو ددې جمات دپاکولو کوشش نه کول حالانکه دسپو دا عادت دی چې چرته لاړ شي نو ګندګي ترې څاځي او تیریږي.

## دجمهورو دلائل:

۱...دقرآن آیت: ﴿وَيُحَرِّمُ عَلَيْهِمُ الْخَبَائِثَ﴾ چې ددې مطابق هر خبیث شې حرام دی او سپي اخبث الخبائث دی لهذا هغه هم حرام شو، نو چې کله دده غوښه حرامه شوه نو لعاب هم حرام شو ځکه چې لعاب خو دغوښې نه جوړیږي.

---

(۱) رحمة الامة ص ۷.

۲ دباب اولني حديث چې ابتدائي الفاظ يې دادي: **طهور إناء أحدكم** ....**الحديث** ، دلوښي پاکولو حکم کړې شوې دی معلومه شوه چې دسپي دخولې لګولو سره لوښې پليتيږي

## فريق اول ته جواب :

۱ دقرآن آيت ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ﴾ دآيت مقصد صرف داخودل دي چې دښکاري سپي کړې شوې ښکار بغير دذبح نه هم حلال دی خو بيا هغه څنګه خوړل دي او نور داسې جزئي احکامات دي چې هغه به دنورو دلائلو نه معلوم شي بيا چې څنګه په آيت کې دسپي دلاړې لګيدلو نه دپاکوالي حکم مذکور نه دی نو دښکار کړې شوې ځناور ددم مسفوح دوينځلو حکم هم مذکور نه دی نو آيا ته به دم مسفوح نه پاک اوائې ؟ هيڅکله هم نه ، لهذا دآيت نه دسپي دلاړو په پاکوالي باندې استدلال صحيح نه دي

۲ دزمکې دپاکوالي يو طريقه دپليتې لګيدلو نه پس دزمکې وچيدل هم دي لهذا حديث دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې ممکنه ده چې په دې باندې عمل کړې شوې وي ، ددې لوبه نښه داده چې په يو روايت کې د سپو په جمات کې دمتيازو کول ذکر هم دی (يعني په ابتداء کې چې کله دجمات نه ګير چاپيره چارديواري نه وه او دجمات صحن بالکل کولاو وو ) حالانکه دسپي متيازې بالاتفاق نجسې دي

**دويمه مسئله** : سپې چې کله په يو لوښي کې خوله اووهي نو دپاکولو يې څه طريقه ده ؟

۱- ائمه ثلاثه بغير داحنافو نه لوښي لره داوه (۷) څله وينځلو قائله دي البته امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په اتم خل په خاوره کې دراخکلو هم قائله دی .

۲- احناف دنورو پليتو په شان ددېنه هم لوښي لره ددريو خله وينځل کافي ګرځوي البته اوه(۷) خل وينځل مستحب دي .

## داحنافو دلائل :

۱ **عن ابي هريرة** رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **قال : قال رسول الله** صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **: اذا ولغ الکلب في اناء أحدکم فليهرقه وليغسله ثلاث مرات**، په دې حديث کې صراحةً دري خله دوينځلو حکم موجود دی (۱)

۲... په باب کې مذکور دحضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سؤر کلب لره دري خله وينځلو فتوی.

۳... دقياس مطابق هم دري خله وينځل کافي دي ځکه چې دسختو نه سخته پليتي مثلا متيازې،شراب، او پخپله دسپي متيازې هم دري خله وينځلو باندې پاکيږي .

## ائمه ثلاثه ته جواب :

۱.. د اوه څله وينځلو حکم استحباب يا علاج باندې محمول دی : ځکه چې دسپو په لاړو کې يو خاص

---

(۱) معارف السنن ۱/۳۲۵.

قسم جراثيم (ميکروب) وي کوم چې په اوه ځله وينځلو سره پاکيږي ، او په اتم ځل په خاوره کې دراخکلو حکم هم په اصل کې په همدې حکمت باندې مبني دی ځکه چې دخاورې په اجزاء کې شامل نوشادر دسپي دخولې نه دوتونکو جراثيمو او دزهرو خاتمه کوي

۲... داوه ځله وينځلو حکم په ابتداء داسلام کې وو وروسته بيا منسوخ شو په اول اول کې خلک دسپو ساتلو عادي وو نو هغوي ته ددېنه دنفرت پيدا کولو لپاره سخت حکم اوکړې شو بيا په دې کې په آرام آرام سره نرمي اوکړلې شوه بيا صرف دتورو سپو دوژلو حکم او دعامو سپو نه دلرې کيدو حکم اوشو . بيا څه وخت پس دحفاظتي سپو دساتلو اجازت اوکړې شو نو داوه ځله وينځلو حکم ددغه دجاهليت دزمانې سره متعلق وو اوس بې صرف استحباب پاتې دی راوي حديث دحضرت ابو هريرة رضي الله عنه دری ځله وينځلو دا فتوی دنسخ دليل دی

**دسپي دساتلو حکم**: په غير دضرورت نه د سپي ساتل ناجائز او شرعًا ممنوع دي البته د ضرورت او بعضې حالاتو په بنا شريعت ددري قسمه سپو د ساتلو اجازت ورکړی د نبي عليه السلام ارشاد مبارک دي :

**لايدخل الملائکة بيتاً فيه کلب ولا صورة** . ليکن په حديث کې د دري قسمه سپو استثناء راغلې ده د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او د حضرت عبدالله ابن مغفل رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي عليه السلام فرمائلي

دي **من اتخذ کلباً الا کلب صيد او ماشية او زرع نقص من اجره کل يوم قيراطان** .

په دي حديث شريف کې د دري قسمه سپو د ساتلو استثناء شوي ده (۱) د ښکار سپي (۲) د ګډو او چيلو د حفاظت سپي (۳) د فصل د نګرانۍ او ساتلو سپي شريعت کې د دي دري قسمه سپو نه علاوه د باقي هر قسمه سپي دساتلونه منع کړي شوي دي .

## ﴿ بَابُ نَجَاسَةِ الْمَنِيِّ ﴾

## دمني دناپاکوالي بيان

(۲۲) وعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ يَسَارٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا عَنِ الْمَنِيِّ يُصِيبُ الثَّوْبَ فَقَالَتْ كُنْتُ اَغْسِلُهُ مِنْ ثَوْبِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيَخْرُجُ إِلَى الصَّلَاةِ وَأَثَرُ الْغُسْلِ فِيْ ثَوْبِهِ بُقَعُ الْمَاءِ رواه الشيخان(۱)

**ترجمه** : د حضرت سليمان بن يسار نه روايت دي ده فرمايلي دي چې ما د حضرت عائشې رضي الله عنها نه د هغه منيّ په باره کې تپوس وکړ کومه چې جامو پورې ولګي نو هغې وفرمائل چې ما به د رسول الله صلى الله عليه وسلم د جامو نه هغه وينځله بيا به هغه مانځه ته تللو او په جامو کې به يې د اوبو

(۱) بخاري کتاب الغسل ج ۱ ص ۳۶ باب غسل المني و فرکه . مسلم بمعنا، کتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۴۰ باب حکم المني.

د وينځلو نښي او ټاکي ؤ دا حديث مسلم او بخاري روايت کړي دي .

(۲۳) وَعَن مَيمُونَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت اَدنَيتُ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم غُسلَهُ مِنَ الجَنَابَة فَغَسَلَ كَفَّيهِ مَرَّتَينِ اَو ثَلَاثًا ثُمَّ اَدخَلَ يَدَهُ فِي الاِنَاء ثُمَّ اَفرَغَ بِه عَلٰى فَرجِه وَغَسَلَهُ بِشِمَالِه ثُمَّ ضَرَبَ بِشِمَالِه الاَرضَ فَدَلَكَهَا دَلكًا شَدِيدًا ثُمَّ تَوَضَّأَ وُضُوئَهُ لِلصَّلَاة ثُمَّ اَفرَغَ عَلٰى رَاسِه ثَلَاثَ حَفَنَاتٍ مِلأَ كَفِّه ثُمَّ غَسَلَ سَائِرَ جَسَدِه ثُمَّ تَنَحّٰى عَن مَقَامِه ذٰلِكَ فَغَسَلَ رِجلَيه اخرجه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : د حضرت ميموني رضي الله عنها نه روايت دي دي ويلي دي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم ته مي د جنابت د غسل د پاره اوبه ورنزدي کړي نو نبي کريم صلی الله عليه وسلم دوه يا دري ځلي خپل مبارک لاسونه ووينځل بيا يې په لوخي کې خپل مبارک لاس دننه کړ بيا يې په خپل مخصوص اندام اوبه راواړولي او په خپل ګس لاس يې هغه ووينځه بيا يې په خپل ګس مبارک لاس ځمکه ووهله او په ښه سختو موږلو يې ومږله بيا يې لکه د مانځه د اودسه په شان اودس وکړ بيا يې دري د کې لپي اوبه په خپل مبارک سر باندي راواړولي بيا يې ټول بدن ووينځه بيا د دغه ځاي نه اخوا شو نو بيا يې دواړه مبارکې خپې ووينځلي ، دا حديث شيخينو نقل کړي دي .

(۲۴) وَعَن عَبدِ الله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّهُ قَالَ ذَكَرَ عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم اَنَّهُ تُصِيبُهُ الجَنَابَة مِنَ اللَّيلِ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم تَوَضَّأ وَاغسِل ذَكَرَكَ ثُمَّ نَم . رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** : د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي ده فرمايلي دي چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم ته حضرت عمر رضي الله عنه د دي خبري بيان وکړ چې ما ته د شپي جنابت ورسيږي (نو په داسې وخت کې زه سه وکړم) نو رسول الله صلی الله عليه وسلم ورته وفرمائل چې اودس وکړه او مخصوص اندام ووينځه بيا اوده شه . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

(۲۵) وَعَن اَبِي السَّائِبِ مَولٰى هِشَامِ بنِ زَهرَة عَن اَبِي هُرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم لَا يَغتَسِلُ اَحَدُكُم فِي المَاءِ الدَّائِمِ وَهُوَ جُنُبٌ فَقَالَ كَيفَ يَفعَلُ يَا اَبَاهُرَيرَة قَالَ يَتَنَاوَلُهُ

(۱) بخاري في الغسل ج ۱ ص ۴۰ باب تفريق الغسل والوضوء ، مسلم كتاب الحيض ج ۱ ص ۱۴۷ باب صفة غسل الجنابة .
(۲) بخاري في الغسل ص ۴۳ باب الجنب يتوضأ ثم ينام ، مسلم كتاب الحيض ج۱ص ۱۴۴ باب غسل الوجه واليدين...الخ.

تَنَاوُلًا . رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** :د ابي سائب مولی د هشام بن زهره نه روايت دي چې حضرت ابي هريره رضي الله عنه فرمايلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي : ستاسو نه دي يو کس هم په ولاړو اوبو کې غسل نه کوي چې د جنابت په حالت کې وي . راوي ووېل اي ابوهريره هغه به څه کوي نو هغه ووېل چې هغه دي د دېنه اوبه راواخلي او بيا دي غسل وکړي .

(۲۶)وَ عَنْ مُعَاوِيَة بْنِ أَبِي سُفْيَانَ رضي الله عنه أَنَّهُ سَأَلَ أُخْتَهُ أُمَّ حَبِيبَة رضي الله عنها زَوْجَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم هَلْ كَانَ رَسُوْلُ الله صلى الله عليه وسلم يُصَلِّي فِي الثَّوبِ الَّذِي يُجَامِعُهَا فِيه فَقَالَتْ نَعَمْ إِذَا لَمْ يَرَ فِيه أَذًى . رواه ابو داود و آخَرُونَ و اسنادُهُ صحيح .(۲)

**ترجمه** : د حضرت معاويه ابن ابي سفيان رضي الله عنه نه روايت دي چې دہ د خپلي خور حضرت ام حبيبه رضي الله عنها نه چې د حضرت رسول اكرم صلى الله عليه وسلم مباركه بي بي ده پوښتنه وكړه چې آيا په كومه جامه كې به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم جماع وكړه نو په هغې كې به يې مونځ كاوه نو هغې وفرمائل چې هو چې كله به په هغې كې پليتي نه ليدل كيده، ددې حديث روايت ابوداوُد او نورو كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

(۲۷)وَ عَنْ يَحْيَى بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حَاطِبٍ أَنَّهُ اعْتَمَرَ مَعَ عُمَرَ ابْنِ الْخَطَّابِ رضي الله عنه فِي رَكْبٍ فِيهِمْ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ رضي الله عنه وَ أَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ عَرَّسَ بِبَعْضِ الطَّرِيقِ قَرِيبًا مِنْ بَعْضِ الْمِيَاهِ فَاحْتَلَمَ عُمَرُ رضي الله عنه وَ قَدْ كَادَ أَنْ يُصْبِحَ فَلَمْ يَجِدْ مَعَ الرَّكْبِ مَاءً فَرَكِبَ حَتَّى إِذَا جَاءَ الْمَاءَ فَجَعَلَ يَغْسِلُ مَا رَأَى مِنْ ذٰلِكَ الاحْتِلَامِ حَتَّى أَسْفَرَ فَقَالَ لَهُ عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ رضي الله عنه أَصْبَحْتَ وَ مَعَنَا ثِيَابٌ فَدَعْ ثَوْبَكَ يُغْسَلُ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رضي الله عنه وَا عَجَبًا لَكَ يَا عَمْرُو بْنُ الْعَاصِ لَئِنْ كُنْتَ تَجِدُ ثِيَابًا أَفَكُلُّ النَّاسِ يَجِدُ ثِيَابًا وَاللهِ لَوْ فَعَلْتُهَا لَكَانَتْ سُنَّةً بَلْ أَغْسِلُ مَا رَأَيْتُ وَ أَنْضَحُ مَا لَمْ أَرَ . رواه مالك و اسناده صحيح .(۳)

---

(۱) كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۳۸ باب النهي عن الاغتسال في الماء الراكد .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۵۳ باب الصلوة في الثوب الذي يصيب اهله .

(۳) موطا امام مالك كتاب الطهارة صـــ ۳۶ باب اعادة الجنب الصلوة .

**ترجمه** : د يحيي بن عبد الرحمن بن حاطب نه روايت دي چې د حضرت عمر رضي الله عنه سره يې په يوه داسې قافله کې عمره کوله چې په هغې کې حضرت عمرو بن عاص رضي الله عنه هم ؤ حضرت عمر رضي الله عنه شپې په اخري حصه کې اوبو ته نزدې په يوې لارې کې ارام وکړو نو حضرت عمر رضي الله عنه محتلم شو نزدې ؤ چې هغه په ځان سحر کړې وې او د قافلې والاؤ سره اوبه هم نه وې نو حضرت عمر رضي الله عنه سور شو کله چې اوبو ته ورغې نو په خپلو جامو يې د احتلام نښانې او نښې وليدې د هغې په وينځلو يې شروع وکړه تردې پورې چې رڼا شوه نو ده ته حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه وويل تاسو په ځان سحر کړې دې حال دا چې ماسره جامې موجود دي ته خپلې کپړې پريږده وبه وينځل شي نو حضرت عمر رضي الله عنه وويل تعجب دې تاته اې عمرو بن العاص رضي الله عنه که تاسره جامې شته نو ټولو خلکو سره به جامې وې په الله مې دې قسم وي که چرې ما دا کار کړې وې نو دغه به يوه مسنونه طريقه ګرځيدلې وې بلکه اوبه وينځم هغه چې زه يې وينم او اوبه به واړوم په هغې چې نه يې وينم. د دې حديث روايت مالک رحمه الله کړې دې او اسناد يې صحيح دي.

(۲۸) وَعن عَائشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَنها قَالَتْ فِي الْمَنِي اِذَا اَصَابَ الثَّوْبَ اِذَا رَاَيْتَهُ فَاغْسِله وَاِنْ لَمْ تَرَهُ فَانْضَحْهُ. رواه الطحاوي و اسناده صحيح (۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې د منی په باره کې چې جامې ته ورسيږي فرمايلي دي کله چې دې وليده نو وې وينځه او که دې ونه ليده نو اوبه پرې واړوه. روايت يې طحاوي کړې او اسناد يې صحيح دي

(۲۹) وَعن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ فِي الْمَنِي يصِيبُ الثَّوبَ اِنْ رَاَيْتَهُ فَاغْسِله وَاِلَّا فَاغْسِلِ الثَّوْبَ كُلَّهُ رواه الطحاوي و اسناده صحيح. (۲)

**ترجمه** : دحضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دی ده دهغه منئ باره کې چې جامې ته ورسيږي فرمايلي دي. چې که ته دې لره اوګورې نو وې وينځه ورنه پوره جامې لره وو وينځه.

(۳۰) وَعَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيرٍ قَالَ سُئِلَ جَابِرُ بْنُ سَمُرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَاَنَا عِنْدَهُ عَنِ الرَّجُلِ يصَلِّي فِي الثَّوْبِ الَّذِي يجَامِعُ فِيه اَهلَهُ قَالَ صَلِّ فِيه اِلَّا اَنْ تَرَي فِيه شَيئا فَتَغْسِلهُ وَلَا تَنْضِحْهُ فَاِنَّ

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۴۳ باب حكم المني.

(۲) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۴۳ باب حكم المني.

النَّضْحَ لَا يَزِيْدُهُ إِلَّا شَرًّا رواه الطحاوي واسناده حسن .(١)

**ترجمه** : د عبدالملک بن عمير نه روايت دی ده وېلي دي چې د جابر بن سمره رضي الله عنه نه په داسې حال چې څه د هغه سره وم د يو داسې سړي په باره کې پوښتنه وکړې شوه چې هغه به هغه جامه کې مونځ کاوه چې په کومه جامه کې به يې د خپل کورولاسره مجامعت کاوه جابر رضي الله عنه فرمائل په هغې کې مونځ کوه مګر که ووينې ته په هغې کې څه شئ نو وې وينځه او اوبه پرې مه تيروه ځکه چې اوبه تيرول نه زياتوي مګر شر د دې حديث روايت طحاوي کړې دې او اسناد يې حسن دي

(٢)وَ عَنْ عَبْدِ الْكَرِيمِ بْنِ رَشِيدٍ قَالَ سُئِلَ اَنَسُ بْنُ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن قَطِيفَةٍ اَصَابَتْهَا جَنَابَةٌ لَا يَدْرِي اَيْنَ مَوْضِعُهَا قَالَ اَغْسِلْهَا . رواه الطحاوي واسناده صحيح .(٢)

**ترجمه** : عبدالکريم بن رشيد فرمايلي دي چې د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه پوښتنه وکړې شوه د يو خادر په باره کې چې جنابت ورته رسيدلې ؤ خو معلوم نه ؤ چې کوم ځاي ته رسيدلې دې ده ووېل چې وې وينځئ، دا حديث طحاوي روايت کړې دې تفصيل يې تير شوي دي .

**دکلماتو تحقيق** : مني ، مذي ، ودي د سړي د مخصوص اندام نه د تشو بولو نه علاوه درې نور شيان هم راوځي چې ديته ، مني ، مذي او ودي وېلې شي :

## د مني ، مذي او ودي تعريف :

**مني** : **ماء ابيض ثخين يتولد منه الولد وهو يتدفق في خروجه ويخرج بشهوة من صلب الرجل وترائب المرأة ويستعقبه الفتور** ، يعني معنىٰ دا چې مني تکې سپينې او سختې اوبه دي چې د هغې نه د ولد پيدائش کيږي او د سړي د شا او د ښځې د سينو نه په توپ او خوند سره خارجيږي او د بدن سستوب ورسره پيدا کيږي .

او فقهاؤ د ښځې د منې داسې تعريف کړې دې :

«**ومني المرأة اصفر رقيق وقد يبيض لفضل قوتها**» او د ښځې مني زيړه او نرمه وي او کله کله د قوت له وجې نه سپينيږي

**مذي** : **هو ماء ابيض رقيق لزج يخرج عند الملاعبة او تذكير الجماع او اراد به من غير شهوة ولا دفق ولا يعقبه فتور وربما لا يحس بخروجه وهو اغلب في النساء من الرجال ابن حجر وابن**

(١) طحاوي كتاب الطهارة ج ١ صـ ٣٣ باب حكم المني.
(٢) طحاوي كتاب الطهارة ج ١ صـ ٣٣ باب حكم المني .

**نجيم** . مذي سپينې نرې سليخناكې اوبه دي چې د ملاعبت او مستي په وجه او د جماع د يادولو او يا د جماع د ارادې په وخت كې خارجيږي په غير د شهوت او توپ نه او په غير د فتور او سستوب نه دا په ښځو كې د سړو نه غالب او ډير وي دا د ابن حجر او ابن نجيم قول دي

**ودي** :د طبعي عوارضو او امراضو په بناء په عام ډول سره د تشو بولو نه وروسته او يا مخكې خارجيږي او په شكل كې د منئ په شان وي مګر د وتو په وخت كې يې احساس نه شي كيدي

مؤلف دلته د منئ په باره كې د نجاست باب ايښي دي او په راتلونكي باب كې په ښكاره د منئ پاكوالي معلوميږي راتلونكي باب هم د منئ د احكامو سره تعلق لري . د دي نه روسته د مذئ باب راځي چې مذي پاكه ده كه ناپاكه ده او د ودئ حكم څه دي .

## تشريح :

**مسئلة الباب**: مني شرعا پاكه ده او كه پليته ؟ددې په باره كې دوه قوله دي :

١- د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد مني شرعا پاكه ده (طبعي كركه هغه جدا خبره ده)

٢- امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ومالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد مني شرعا پليته ده .

**دفريق اول دلائل** :دقرآن آيت ( هُوَ الَّذِي خَلَقَ مِنَ الْمَاءِ بَشَرًا فَجَعَلَهُ نَسَبًا وَصِهْرًا ) كې الله تعالى مني لره ماء وفرمايل او له دېنه يې دانسان پيدائش لره دنعمت په طور باندې ذكر اوفرمايلو . نو لهذا كوم شي چې په طور دنعمت ذكر شي نو هغه څنګه پليت كيدي شي .

٢- مني څنګه ناپاک كيدې شي چې دا دانبياء كرامو او دنيكانو او دبزرګانو په شان دپاک خلكو ماده د توليد ده يعني دپيدائش ذريعه يې ده ؟

٣- راروان باب دباب مايعارضه حديث : عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا كَانَتْ تَحُتُّ الْمَنِيَّ مِنْ ثِيَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ نو كه مني ناپاک وې نو په مونځ كې به دمړلو سوال نه پيدا كيدو .

۴- حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا مني لره دلاړو او دبلغمو سره تشبيه وركړي ده .

**دويم فريق دلائل**:

داحاديثو په پوره ذخيره كې يو روايت هم داسې نشته چې دهغې مطابق كله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جامو كې بغير دوينځلو دمني نه مونځ كړې وي نو كه مني پاكه وې نو بيان جواز له پاره به يو ځل نيم خامخا كړې وې و اذ ليس فليس.

٢- دباب هغه احاديث دكوم مطابق چې امهات المؤمنين رضي الله عنهن په مني لګيدلې شوې كپړو لره وينځلي دي او دځيني روايتونو مطابق خو يې په مړلو مړلو سره وينځلي .

٣-دباب دويم حديث چې دهغې الفاظ دادي فدلكها دلكا شديدا يعنې مني لره دصفا كولو نه پس حضور ﷺ خپل لاس مبارک په زمكه پورې اووهلو او خه سخت يې اومږلو .نو دصفايي او دپاكوالي دومره اهتمام مني دناپاک كيدو خبر وركوي .

۴- دصحابه كرامو عمل او دهغوي اقوال بالخصوص دباب حديث نمبر ٧ چې دهغې مطابق حضرت عمر رضي الله عنه دسفر په حالت كې دانتهائي مشقت باوجود دشپې دمحتلم كيدو په بناء باندې خپلو كپړو لره اوينځلې او په دې معامله كې يې معمولي نرمي هم اونكړه .

۵- قياس هم دمني دناپاک كيدو تقاضا كوي . ځكه چې وړې بولې (متيازي) . مذي او ودي بالاتفاق ناپاكې دي نو مني هم ناپاكه پكار ده . بيا امام احمد رحمه الله دانسان نه غير مني لره ناپاكه گرځوي نو پكار دې چې دانسان مني دې هم ناپاكه اوگرځوي.

**امام شافعي رَحِمَهُ اَللَّهُ او احمد رَحِمَهُ اَللَّهُ ته جواب:**

١- دا توجيه ضعيفه ده او مني ته ماء ويلو سره ددې پاكوالې نه ثابتيږي ځكه چې الله تعالى دټولو ځناورو ماده تخليق هم مني گرځولي ده «والله خلق كل دابة من ماء» ، بيا خو دهر حيوان مني پاكيدل پكار دي يو حيوان هم ناپاک نه دي پاتې كيدل پكار حالانكه ددې خبرې هيڅوک قائل نه دي .

٢- دحقيقت بدليدو سره 'حكامات هم بدليږي ، دمور په خيټه كې دماشوم غذا دحيض وينه وي نو دستاسو حضراتو دقياس مطابق دحيض وينه هم پاكيدل پكار ده حالانكه داسې نه ده ، بيا خو كمال په دې كې دى چې الله رب العزت ديو ناپاک شي نه يو پاک مخلوق چې انسان دې پيدا كړو دكوم مادة تخليق لره چې په يو آيت كې ماء مهين يعنې يو حقيرې اوبه و فرمايلې.

٣- تينگې او وچې منې لره په مږلو او گرولوسره صفا كول دپاكولو په غرض سره وو نه ددې دپاكيدو په بناء باندې . ځكه چې دمنې د پاكوالي دوه طريقې دي :١- غَسل يعنې وينځل چې كله نرئ او لونده وي . ٢- گرول او مږل چې كله مني وچې وي نو كه څه معمولي ذرات كوم چې معفو عنه په مقدار كې وو او دمونځ په وخت كې به يې پرې نظر پريوت نو هغې لره به يې هم صفا كول . بهر حال ددې حديث نه دمنئ په پاكوالي كې اهتمام ثابتيږي نه تخفيف ، علاوه ددېنه چې د محارب بن دثار عن عائشه روايت منقطع دى .

۴- مني لره دلاړو يا دبلغمو سره تشبيه وركول داد حضرت ابن عباس رضي الله عنه ذاتي رايه ده كوم چې دصحيح او دمرفوع رواياتو مقابله نشي كولې ، امام نيموي رحمه الله فرمايي چې دا هم ممكنه ده چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما مني لره دلاړو سره تشبيه په پاكولو كې وركړې وي يعنې چې ددې دپاكولو طريقه څه گرانه نه ده بلكې دلاړو او دبلغمو په شان لرگي سره هم لرې كيږي .

# ﴿بَابُ مَا يعَارِضُهُ﴾

## دا باب د هغه احاديثو په بيان کې دی چې د تير شوو حديثونو ضد او مقابل دي

**{۳۲} عَنْ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سُئِلَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمَنِي يصِيبُ الثَّوبَ قَالَ اِنَّمَا هوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُخَاطِ وَالْبُزَاقِ وَ اِنَّمَا يكْفِيکَ اَنْ تَمْسَحَهُ بِخِرْقَةٍ اَو بِاِذْخَرَةٍ رواه الدارقطني و اسناده ضعيف ورَفْعُهُ وَهم.**(۱)

**ترجمه** : ابن عباس رضي الله عنهما فرمائيلي دي چې د نبي عليه السلام نه پوښتنه وکړې شوه د هغه مني په باره کې چې جامې ته رسيدلي وي نو نبي عليه السلام وفرمائل چې دا د خړينګ (خراشکي) او د لاړو په شان دي او په ټوټه او يا په وښو سره يې تاته لريکول کافي دي د دې حديث روايت دار قطني کړي او اسناد يې ضعيف دي او په رفعه کې يې وهم دي

**{۳۳} وَعَنْ مُحَارِبِ بْنِ دِثَارٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّها كَانَتْ تَحُتُّ الْمَنِي مِنْ ثِيابِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهوَ فِي الصَّلَاة . رواه البيهقي وابن خزيمة و اسناده منقطع.**(۲)

**ترجمه** : محارب بن دثار د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت کړي دي چې بې شکه هغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د جامو نه مني مرږله حال دا چې نبي عليه السلام په مانځه کې ؤ د دې حديث روايت بيهقي او ابن خزيمه کړي دي او اسناد يې منقطع دي.

**{۳۴} وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّهُ قَالَ فِي الْمَنِي يصِيبُ الثَّوبَ قَالَ اَمِطْه عَنْکَ بِعُودٍ اَوْ اِذْخِرَةٍ فَاِنَّمَا هوَ بِمَنْزِلَةِ الْمُخَاطِ اَوِ الْبُصَاقِ رواه البيهقي في المعرفة و صَحَّحَهُ.**(۳)

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنهما نه روايت دي ده ويلي د مني په باره کې کله چې جامې ته ورسيږي په لرګي او يا ګياه سره يې لرې کړه خکه بې شکه دا په شان د خړينګ (خراشکي) او يا د لاړو دي ، د دې حديث روايت په معرفت کې بيهقي کړي دي او صحيح يې ګرځولي دي.

---

(۱) سنن دار قطني كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۲۴ باب ما ورد في طهارة المني ......الخ .

(۲) صحيح ابن خزيمة جماع ابواب تطهير الثياب ج ۱ صـــ ۱۴۷ رقم الحديث ۲۹۰ معرفة السنن والآثار كتاب الصلوة ج ۳ صـــ ۳۸۳ باب المني رقم الحديث صـــ ۵۰۱۲.

(۳) معرفة السنن والآثار للبيهقي كتاب الصلوة ج ۳ صـــ ۳۸۳ باب المني ، رقم الحديث ۵۰۱۲، وايضاً سنن الكبرى كتاب الصلوة ج ۲ صـــ ۴۱۸ باب المني يصيب الثوب .

قَالَ النَّيمَوِي هٰذَا اَقْوىٰ الآثَارِ لِمَنْ ذَهَبَ إِلىٰ طَهارَة المَنِي وَلٰكِنَّهُ لَا يُسَاوِي الأَخْبَارَ الصَّحِيحَة الَّتِي أُسْتُدِلَّ بِهَا عَلَى النِّجَاسَة وَمَعَ ذٰلِكَ يَحْتَمِلُ اَنْ يَكُونَ التَّشْبِيهُ فِي الإِزَالَة وَالتَّطْهِيرِ لَا فِي الطَّهَارَة .

**ترجمه** : نيموي ويلي دي چې دا د هغه چا لپاره قوي اثر دي څوک چې مني پاکه ګڼړي ليکن دا د هغه صحيحو اخبارو سره نه دي برابر په کومو چې د منی په نجاست استدلال شوي،اودا هم احتمال لري چې دا تشبيه به په لري کولو او پاکولوکې وي نه په پاک کيدو کې

**يادونه** : ددې باب تشريح په تير شوي باب لاندې تيره شوي ده

## ﴿ بَابٌ فِي فَرْكِ الْمَنِي ﴾

## دا باب د منئ دګرولو په بيان کي دی

{۳۵} عَنْ عَلْقَمَة وَالأَسْوَدِ اَنَّ رَجُلًا نَزَلَ بِعَائِشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَأَصْبَحَ يَغْسِلُ ثَوْبَه فَقَالَتْ عَائِشَة إِنَّمَا كَانَ يُجْزِيكَ إِنْ رَأَيْتَه اَنْ تَغْسِلَ مَكَانَه فَإِنْ لَمْ تَرَه نَضَحْتَ حَوْلَه لَقَدْ رَأَيْتُنِي اَفْرُكُه مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَرْكًا فَيُصَلِّي فِيه . رواه مسلم

وفي رواية له لَقَدْ رَأَيْتُنِي وَإِنِّي لَأَحُكُّه مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يابِسًا بِظُفْرِي .[۱]

**ترجمه** : د علقمه او اسود نه روايت دي چې بې شکه يو سړي د حضرت عائشې رضي الله عنها ميلمه شوي ؤ نو سهار ده خپله جامه وينځله نو حضرت عائشې رضي الله عنها وويل چې بې شکه کافي ؤ تا لره وينځل د هغه ځاي چې ليده تا هغه او که دي نه ليده نو اوبه به دې پرې اچولې وې په چاپيره د هغې په تحقيق ليده ما خپل ځان چې ګروله ما هغې (مني) لره د رسول الله صلى الله عليه وسلم د جامې نه په ګرولو سره نو مونځ وکړ رسول الله صلى الله عليه وسلم په هغه جامه کې . د دې حديث روايت مسلم کړي دي .

او د مسلم په يو روايت کې د حضرت عائشې رضي الله عنها د پاره دي چې ( په تحقيق خامخا ليده ما خپل ځان په داسې حال کې چې ګروله ما مني وچه د جامې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په خپلو نوکانو باندې .

{۳۶} وَعَنْهَا رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ كُنْتُ اَفْرُكُ المَنِي مِنْ ثَوْبِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَابِسًا

[۱] مسلم كتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۴۰ باب حكم المني .

وَاَغْسِلُه اِذَا كَانَ رَطْبًا رواه الدار قطني والطحاوي وَاَبُوعَوَانَة في صحيحه و اِسْنَادُه صحيح .(۱)

**ترجمه** : او د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي دي ويلي دي زه ؤم چې مرله به مي مني د جامي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه كله به چې اوچه وه او وينځله به مي كله به چې لمده وه د دي حديث روايت دار قطني او طحاوي كړي او ابو عوانه كړي په خپل صحيح كې او اسناد يې صحيح دي

{۲۷} و عَنْ هَمَّامِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ كَانَ ضَيف عِنْدَ عَائِشَة رضي الله عنها فَاَجْنَبَ فَجَعَلَ يغْسِلُ مَا اَصَابَه فَقَالَتْ عَائِشَة رضي الله عنها كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يأمُرُنَا بِحُتِّه رواه ابن الجارُوْدِ في الْمُنْتَقٰي و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : د همام بن الحارث نه روايت دي ده فرمايلي دي چې د حضرت عائشي رضي الله عنها يو ميلمه ؤ نو هغه جنب شوي ؤ نو هغه وينځلو هغه ځاې كوم ځاې ته چې مني رسيدلې وه نو حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل چې ؤ رسول الله صلى الله عليه وسلم چې امر به يې كاوه مونږ ته په مږلو د مني سره ، د دي حديث روايت ابن الجارود په منتقي كې كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

**د كلماتو تحقيق** : فرک دضرب نه په معنى ديو شي لره دجامي نه په گرولو يا په مږلو سره زائل كول.

حک دنصر نه په معنى مږلو سره ،حت دنصر نه په معنى دجامي سره كيچړا وغيره ملاوول او لري كول

**مسئلة الباب**: دخارج من السبيلين كې دمني نه علاوه نور نجاستونه په هر صورت وينځل ضروري دي ، گرول يا مږل په هيڅ صورت نه كافي كيږي ، ليكن دمني حكم ددې نه لږ مختلف دى ځكه چې دمني په مږلو سره پاكولو په باره كې دائمه كرامو اختلاف دى كوم چې په لاندې ډول دي :

۱-امام شافعي رحمه الله او امام احمد رحمه الله خودمني دپاكوالي قائله دي په دې بناءباندې ددوي په نزد مني لره په گرولو سره پاكولو په باره كې هيڅ حرج او باک نشته بلكې مني لره په گرولو سر د پاكولو متعلق وارد احاديث هم دمني دپاكوالي دليل دى دكوم جواب چې دتير شوي باب تر لاندې تير شو .

۲- امام مالک رحمه الله مني لره په عامو پليتيو باندې قياس كوي او دغَسل يعني دوينځلو حكم وركوي برابره خبره ده كه وچه وي او لمده.

(۱) دار قطني كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۲۵ باب ما ورد في طهارة المني ....الخ ، طحاوي كتاب الطهارة ج ۱صـــ ۴۱ باب حكم المني ، ابو عوانة ج ۱ صـــ ۲۰۳ بيان تطهير الثوب .

(۲) منتقي ابن جارود صـــ ۵۵ باب التنزه في الابدان والثياب .....الخ

۳- امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد که مني ټینګه او وچه وي نو په ګرولو سره هغه پاکیږي ، او که نرۍ یا لمده وي نو ددې وینځل لازمي دي .( په دې زمانه کې د خلکو صحتونه هغه شان نه دي پاتې او مني نرۍ وي نو احتیاط ضروري دی .(کما في رد المختار :۱/ ۳۱۳).

**امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دلیل:** دادې چې دوي مني له متیازو او وینه او نورو پلیتو باندې قیاس کوي چې وینځل یې ضروري دي .

**داحنافو دلائل:** دباب ټول احادیث داحنافو دلیل دی ، او امام مالک رحمه الله ته جواب دادې چې د حدیث په مقابله کې قیاس لره حجت نشي جوړیدې همدارنګې داقیاس مع الفارق دی ځکه چې مني ذي جرم (جسم والا) او غلیظه ده او متیازې او وینه ددې په مقابله کې رقیق نرۍ او غیر ذي جرم دي

## ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي الْمَذِيِ﴾

## باب دي په هغه حدیثونو کې چې د مذۍ په باره کې راغلي دي :

{۳۸} عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَكُنْتُ أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِمَكَانِ ابْنَتِهِ فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ بْنَ الْأَسْوَدِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَ يَتَوَضَّأُ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دي ده ویلي دي چې زه یو داسې سړي وم چې ډیره مذي به رانه تلله ما ته حیا راتله چې د رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړم ځکه د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ لور ځما په نکاح کې وه نوما مقداد ابن اسود ته امروکړنو هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائل ذکر ( مخصوص اندام ) دې وونیځي او اودس دې وکړي . د دې حدیث روایت شیخینو کړي دي .

{۳۹} وَعَنْ سَهْلِ بْنِ حُنَيْفٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أَلْقَى مِنَ الْمَذْيِ شِدَّةً وَكُنْتُ أُكْثِرُ الِاغْتِسَالَ فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ إِنَّمَا يُجْزِيكَ مِنْ ذٰلِكَ الْوُضُوءُ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ فَكَيْفَ بِمَا يُصِيبُ ثَوْبِي مِنْهُ قَالَ يَكْفِيكَ بِأَنْ تَأْخُذَ كَفًّا مِنْ مَاءٍ فَتَنْضَحَ بِهَا مِنْ ثَوْبِكَ حَيْثُ تَرَى أَنَّهُ أَصَابَهُ رواه الاربعة الا النسائي و اسناده حسن .(۲)

---

(۱) بخاري في الغسل ج ۱ صـــ ۴۱ باب غسل المذي والوضوء منه ومسلم كتاب الحيض ج ۱صـــ ۱۴۳ باب المذي .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۲۸ باب في المذي ، ترمذي ابواب الطهارات ج ۱ صـــ ۳۱ باب في المذي يصيب الثوب ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـــ ۳۹ باب الوضوء من المذي .

**ترجمه** : د حضرت سهل بن حنيف رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې زه د مذي د وجې نه د سختئ سره مخ شوم او ډير خلي مې د مذي د وجې نه غسل كوؤ نو ما په دي باره كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه ذكره نو هغه صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې بې شكه د مذي د وجې نه نا د پاره اودس كافي او بس دي ماوويل اي دالله رسوله دمذي نه چې زماجامي ته څه رسيدلي وي دهغي څه حال دي هغه صلى الله عليه وسلم ووېل چې يو چونږ او يو موټي اوبه نا د پاره بس دي چې د جامې په هغه حصه يې ووشيندي چې نه هغه ځاي وينې د دي حديث روايت څلورو محدثينو كړي مګر نسائي نه دي كړي او اسناد يې حسن دي

{۲۰} وعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ هُوَ الْمَنِيُّ وَالْمَذِيُّ وَالْوَدِيُّ فَأَمَّا الْمَذِيُّ وَالْوَدِيُّ فَإِنَّهُ يغْسِلُ ذَكَرَهُ وَيَتَوَضَّأُ وَأَمَّا الْمَنِيُّ فَفِيهِ الْغُسْلُ رواه الطحاوي و اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : د عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې هغه مني . مذي او ودي ده نو د مذي او ودي نه دي استنجاء او اودس كوي او مني چې ده په هغې كې غسل دي د دي حديث روايت طحاوي كړي او اسناد يې حسن دي

**دكلماتو تحقيق** : مذي . دا لفظ په دوه طريقو سره ويل كيږي ۱- مَذْيٌ ۲- مَذِيٌّ . اولنې صورت فصيح دی

**مذي تعريف** :(هو ماء ابيض رقيق لزج يخرج عند الملاعبة او تذكير الجماع او اراد به من غير شهوة ولا دفق ولا يعقبه فتور بما لا يحس بخروجه وهو اغلب في النساء من الرجال ابن حجر وابن نجيم)

**ترجمه** : مذي سپيني نري سليخناكې اوبه دي چې د ملاعبت او مستي په وجه او دجماع د يادولو او يا د جماع د ارادي په وخت كې خارجيږي په غيرد شهوت او توپ نه او په غير د فتور او ستوب نه دا په ښځو كې د سړو نه غالب او ډير وي .دا د ابن حجر او ابن نجيم قول دي .

**تشريح** :

**اولنی بحث** : مذي پاكه ده يا ناپاكه ؟ ائمه اربعه او جمهور علماء سلفا وخلفا دټولو په نزد مذي نجسه ده . په خلاف دروافضو نه فرقه اماميه چې هغوي دي لره پاكه ګرځوي او لفظ "نضح" نه استدلال كوي ليكن مونږ دا وايو چې لفظ " نضح " خو ددم حيض او دبول صبي په باره كې هم راغلې دى حالانكه دم حيض بالاتفاق نجسه او ناپاكه ده لهذا د "نضح" يو معنى متعينه نه ده.

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۴۰ باب الرجل يخرج من ذكره المذي .

**دویم بحث** :دمذي دوتلو نه پس دنجاست ځاي وینځل کافي کیږي او که نا؟

۱- دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ مذهب دادی چې پوره عضو تناسل اندام مخصوص لره دي اوینځي ۲- دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد دذکر سره خصیتین وینځل هم ضروري دي ۳- حنفیه رحمهم الله او شافعیه رحمهم الله په نزد صرف ځاي دنجاست وینځل ضروري دي

**دامام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **دلیل** : دبخاري شریف روایت **اِغْسِلْ ذَكَرَكَ** (۱/٤) همدارنګې دباب اولې او دریم حدیث کوم کې چې "**یغسل ذکره**" دی

**دامام احمد** رَحِمَهُ اللهُ **دلیل** : دابوداود شریف روایت **لیغسل ذکره وأنثییه** او درافع بن خدیج رضي الله عنه حدیث دکوم الفاظ چې دادي "**یغسل مذاکیره**" (ابوداود:۱/۲۸) "**مذاکیر**" جمع ده لهذا دعضو تناسل سره خصیتین وینځل هم ضروري دي

**دامام ابوحنیفه** رَحِمَهُ اللهُ **او دامام شافعي** رَحِمَهُ اللهُ **دلیل** : اول دحضرت علي کرم الله وجهه رضي الله عنه روایت **من المذي الوضوء** (معارف السنن ۱/۳۸۰) ، همدارنګې چې کله خروج مذي دماتونکو داوداسه نه دی نو دعامو نجاساتو په شان ځاي دنجاست وینځل کافي کیدل پکار دي.

**امام مالک واحمد رحمهم الله ته جواب :**

۱ دټول عضو تناسل او دخصیتینو وینځل دا استحبابي حکم دی نه وجوبي ، ترڅو چې که قطرې خورې شي نو هغه دي هم ورسره پاک شي.

۲- دا حکم بطور علاج دی ځکه چې اوبه (بالخصوص یخې اوبه) مذي لره قطع کونکې دي یعنې دقطرې دبندیدو ذریعه ده . اکثر روایات دمذاکیر او دانثیین دالفاظو نه خالي کیدل ددې دلیل دی

**دریم بحث** : کومې کپړې باندې چې مذي اولګې نو دهغې وینځل ضروري دي یا داوبو چنړ پرې کول هم کافي دي ؟

۱- جمهور علماء او ائمه ثلاثه په نزد صرف وینځل ضروري دي البته دامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد دلوټو استعمال هم جائز دی.

۲- دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد راجح قول مطابق اوبه پرې چانړ کول هم کافي دي .

**دامام احمد** رَحِمَهُ اللهُ **دلیل:**

دباب دویم حدیث " **یَکْفِیکَ بِأَنْ تَأْخُذَ کَفًّا مِنْ مَاءٍ فَتَنْضَحَ بِهَا مِنْ ثَوْبِکَ حَیْثُ تَرَی أَنَّهُ أَصَابَهُ** " په دې حدیث کې صراحة داوبو دچانړ کولو ذکر دی .

**دجمهورو دلائل**: "**واغسل ذکرک**" یعنې هغه روایات کوم کې چې دغسل یعنې دوینځلو

حکم وارد دی (بیا امام صاحب رحمه الله په نزد چې کله مذي ، دوړو بولو په شان شوه نو چې څنګه په متیازو کې دلوتو استعمال صحیح دی مذي کې هم صحیح دی ).

**امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ته جواب** : "نضح" معنی صرف اوبه چاړ کول نه دي بلکې مطلق غسل او غسل خفیف هم د دې په معنی دې . چنانچې باب نجاسة دم الحیض لاندې حدیث نمبر ۵۵ کې حیض دوینې له پاره " **ثم تنضحه** " ویلې شو حال دا چې بالاتفاق دحیض وینې لره وینځل ضروري دي همدارنګه چې کله مذي نجاست دی نو دعام نجاستونو په شان په دې کې هم وینځل ضروري دي نه اوبه چاړ کول .

**څلورم بحث: دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دمذي په باره کې دپوښتنې کولو والا څوک وو؟**

۱- ترمذي او دابوداود شریف دروایتونو مطابق حضرت علي کرم الله وجهه پخپله سائل وو .

۲- دنسائي دیو روایت مطابق حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته دپوښتنې کولو ویلي وو

۳- د باب داولني روایت مطابق حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته حکم کړې وو .

دري روایتونه په ظاهر کې مختلف دي لیکن په دې کې دتطبیق صورت دادی چې په یو مجلس کې حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ یوځاي وو، چې کله دمذي متعلق خبره اوشوه نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ځان لره په دې کې دابتلاء( اخته کیدو) ذکر اوکړو بیا ددې دوو حضراتو نه یو نه حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ددې دحکم په باره کې دپوښتنې کولو حکم وکړ ، لیکن چې کله ددې یو نه په پوښتنه کې لږ ورروسته والې اوشو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دې دویم ته حکم وکړ بیا هغه دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه اوکړه دیو روایت مطابق اول حضرت مقداد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سوال وکړو وروسته بیا حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ وپوښتل ، ددېنه پس چې کله بیا مسئله عامه شوه او په عام مجلس کې ددې په باره کې بحث اوشو نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم سوال وکړو یا دا چې په آخر کې د اطمینان لپاره حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ سوال وکړو .

# بَابُ مَاجَاءَ فِي الْبَوْلِ

## باب دې په بیان دهغه حدیثونه کې چې د بولو په باره کې راغلي دي :

**{۲۱} عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَرَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِقَبْرَيْنِ فَقَالَ إِنَّهُمَا لَيُعَذَّبَانِ وَمَا يُعَذَّبَانِ فِي كَبِيرٍ أَمَّا أَحَدُهُمَا فَكَانَ لَا يَسْتَتِرُ مِنَ الْبَوْلِ وَأَمَّا الْآخَرُ فَكَانَ يَمْشِي بِالنَّمِيمَةِ ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً فَشَقَّهَا**

نِصْفَيْنِ فَغَرَزَ فِي كُلِّ قَبْرٍ وَاحِدَةً قَالُوا يَارَسُولَ اللهِ لِمَ فَعَلْتَ هٰذَا قَالَ : لَعَلَّه يُخَفَّفُ عَنْهُمَا مَا لَمْ يَيْبَسَا رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې نبي عليه السلام په دوه ؤ قبرونو باندي تيريدو نو وي فرمائل چې دا دواړه قبرونه په عذاب وهلي شي او نشي په عذاب وهلي دا دواړه په کومه لويه او سخته خبره او معامله کې پس وه يو د دوي نه چې د بولو نه به يې ځان نه ساته او دا بل ؤ چې چغلي به يې کوله بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم يوه شنه لخته راواخيسته نو دوه نيمه يې کړه او په هر يو قبر باندي يې ښخه او وتومبله صحابه ؤ وويل اي دالله رسوله ولي دي دا کار وکړ نبي عليه السلام وفرمائل د دي د پاره چې په دوي باندي عذاب اسان کړي شي څو پوري چې دا دوړه لختي نه وي وچي شوي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

{۴۲} وَعَنْ أَبِي صَالِحٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْثَرُ عَذَابِ الْقَبْرِ مِنَ الْبَوْلِ رواه ابن ماجه وآخرون وصححه الدارقطني والحاكم .

**ترجمه** : ابوصالح د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت کړي ده ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي د قبر عذاب زيات د بولو نه د ځان نه بچ کولو په وجه دي د دي حديث روايت ابن ماجه او اخرونو کړيدي او دار قطني او حاکم صحيح ګرځولې دي .

{۴۳} وَعَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلْنَا رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبَوْلِ فَقَالَ : إِذَا مَسَّكُمْ فِيهِ فَاغْسِلُوهُ فَإِنِّي أَظُنُّ أَنَّ مِنْهُ عَذَابَ الْقَبْرِ ، رواه البزار وقال في التلخيص (ج۱ص۱۰۶) اسناده حسن .(۲)

**ترجمه** : د حضرت عباده بن الصامت رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه د بولو په باره کې نو هغه صلى الله عليه وسلم وفرمائل کله چې ورسيږي تاسي ته د بولو يو څه شئ نو هغه ووينځئ بې شکه زه ګمان کوم چې د قبر عذاب د بولو د وجي نه دي . د دي حديث روايت بزار کړي او په تلخيص کې يې ويلي دي چې اسناد يې حسن دي .

---

(۱) بخاري في الوضوء ج ۱ صــ ۳۵ ، مسلم كتاب الطهارة ج ۱ صــ ۱۴۱ باب الدليل على نجاسة البول .

(۲) ابن ماجة ابواب الطهارة صــ ۲۹ باب التشديد في البول ، سنن دار قطني كتاب الطهارت ج ۱ صــ ۱۲۸ باب نجاسة البول ....الخ مستدرک حاکم کتاب الطهارة ج ۱صــ ۱۸۳ باب عامة عذاب القبر من البول .

## دمتيازو څاڅكي او دقبر عذاب

په دې خبره کې دټولو اتفاق دی چې دانسان متيازې ناپاکې دي، البته دانسان دبچي دمتيازو په باره کې اختلاف دی چې راروان باب لاندې به ذکر شي، او دحرام خناورو متيازې هم بالاتفاق ناپاکې دي البته ماكول اللحم يعنې دحلال خناورو دمتيازو په باره کې لگ اختلاف دی چې ددينه به په "باب في بول ما يؤكل لحمه" کې په تفصيل سره بحث اوکړې شي انشاءالله

## داحاديثو تشريح:

"مر بقبرين" داوه قبرونه دچا وو ؟ دبعضې علماؤ داوينا ده چې دادکافرانو قبرونه وو ليکن جمهور علماء وايي چې دا قبرونه دمسلمانانو وو ددې دوه وجهې دي ١- يو په صحيح روايت کې "بقبرين جديدين" راغلي دي ٢- او په يو روايت کې دمدينې منورې مقبره "بقيع الغرقد" ذکر هم راغلی دی همدارنگه خطاب هم مسلمانانو ته دی

**قوله: وما يعذبان في كبير:** په دې روايت کې خو په ظاهره ددې مذکوره گناهونو دکبيره کيدو نفي ده ليکن په بخاري کې دکبيره دنفي کيدو سره "بلى وإنه لكبير" الفاظ هم موجود دي يعنې ولې نه دواړه لوی گناهونه دي نو دغه شان په دوو روايتونو ترمينځ تعارض واقع شو ؟ علماؤ ددې دواړو تر مينځ تطبيق داسې کړې دی چې داولني روايت مطلب دبچ کيدو په اعتبار سره کبيره يعنې ددروندوالي او دمشکل کيدو نفي ده او په دويم روايت کې دمعصيت او دعذاب په اعتبار سره دهغه لويه ويلې کيږي.

**قوله: لايستتر من البول:** بعضې روايتونو کې ددې په ځاې "لايستنزه" او "لايستبرئ" الفاظ راغلي دي . مفهوم دټولو الفاظو يو دی يعنې مذکوره کس به دمتيازو څاڅکو نه خان نه بچ کولو.

**په گناه او عذاب کې مماثلت:** طهارت عن البول دعباداتو او دطاعاتو طرفته اولنی قدم دی او قبر دعالم آخرت اولنی منزل دی . بيا دقيامت په ورځ دټولو نه مخکې دمونځ حساب کتاب به کيږي او طهارت دمونځ نه مقدم دی . نو ځکه دآخرت دمنزلونونه اولني منزل په قبر کې دمقدم ترين عبادت لازمي شرط دطهارت په پريخودلو باندې مؤاخذه اوکړې شوه . والله تعالى اعلم (معارف السنن ۱/ ۲۲۳)

## په قبرونو باندې گلونه شيندل:

بعضې اهل بدعتو دحديث الفاظ "ثُمَّ أَخَذَ جَرِيدَةً رَطْبَةً" لره په قبرونو باندې دگلونو شيندلو د ثبوت لپاره مستدل گرځوني دي ليکن دا استدلال بالکل غلط دی . ځکه چې په دې حديث کې د گلونو شيندلو سره ذکر نشته دی . البته ديو شنې څانگې غوځولو متعلق دحضور ﷺ ديو عمل ذکر شته . په دې باره کې فيصله کونکې او حقه خبره داده چې دحديث نه ثابتيدونکې هر يو شي تر خپل حده پورې ساتل پکار دي تر کومه حده پورې چې هغه ثابت دی . په حديث کې يو يا دوه

ځل ځانګه ثابت ده نو له دېنه معلومېږي چې کله نا کله داسې کول پکار دي لیکن دايو ځاي کې هم نه دي ثابت چې ددې واقعې نه علاوه حضور ﷺ په يو بله موقع باندې هم قبر باندې يو ځانګه ايخې وي ، دغه شان حضرت بريده رضي الله عنها ( چاچې دا وصيت کړې وو چې زما په قبر دې ځانګه کېخودلې شي ) نه علاوه ديو بل صحابي نه دا منقول نه دي چې هغه ځانګې لره په قبر باندې ايخودل خپل معمول ګرځولې وي ، تردې پورې چې حضرت ابن عباس رضي الله عنهما کوم چې ددې حديث راوي دی ، دهغه نه هم دا منقول نه دي چې هغوي دتخفيف عذاب له پاره دا طريقه اختيار کړې وي ، ددېنه داخبره واضحېږي چې دا عمل اګرچې جائز دی ليکن دسنت جاريه او دمستقل عادت ګرځولو والاشئ نه دی "**فالحق أن يعطى كل شئ حقه ولا يتجاوزعن حده وهو الفقه في الدين**" **. والله أعلم بالصواب.** (١)

# ﴿بَابُ مَاجَآءَ فِي بَوْلِ الصَّبِيِّ﴾

## باب دې په بيان د هغه احاديثو کې چې د ماشوم د بولو په باره کې راغلي دي

**{٢٤} عَنْ أُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا أَتَتْ بِإِبْنٍ لَهَا صَغِيرٍ لَمْ يَأْكُلِ الطَّعَامَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَجْلَسَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَجْرِهِ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَنَضَحَهُ وَلَمْ يَغْسِلْهُ رواه الجماعة** (٢)

**ترجمه** : د قيس بنت محصن رضي الله عنها نه روايت دي چې دي خپل وړوکې زوي چې طعام يې لانه و خوړلي (خوراک يې لانه وو شروع کړې) رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راوست . نو هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپله مبارکه غېږه کې کيناو نو هغه يې په مبارکو جامو باندې بولې وکړې نو اوبه يې راوغوښتې نو په مبارکه جامه يې واړولې او وي نه وينځلې . د دې حديث روايت جماعت کړې دي

**{٢٥} وَعَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا أَنَّهَا قَالَتْ أُتِيَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِصَبِيٍّ فَبَالَ عَلَى ثَوْبِهِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَأَتْبَعَهُ إِيَّاهُ رواه البخاري** (٣)

---

(١) (درس ترمذي : ٢٨٦/١ بتغير وتسهيل )

(٢) كشف الاستار عن زوائد البزار ج ١ص ١٣٠ باب الاستنجاء بالماء وتلخيص الحبير ج ١ ص ١٠٦.

(٣) بخاري في الوضوء ج ١ ص ٣٥ باب بول الصبيان ، مسلم كتاب الطهارة ج ١ص ١٣٩ باب حكم بول الطفل الرضيع... الخ ، ابوداؤدكتاب الطهارة ج ١ ص ٥٣ باب بول الصبي يصيب الثوب ، ترمذي ابواب الطهارة ج ١ ص ٣١ باب ماجاء في نضح بول الغلام

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يو هلک راوړې شو نو هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مبارکو جامو باندي بولي وکړي نو اوبه يې راوغوښتې او ر بولو په ځاي يې واچولې ، وي نه وينخلې ، د دي حديث روايت بخاري کړي دي

{۴۶} وَعَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يُؤتٰى بِالصِّبيانِ فَيدْعُو لَهمْ فَأُتِيَ بِصَبِيٍ مَرَّةً فَبَالَ عَلَيه فَقَالَ صُبُّوا عَلَيه المَاءَ صَبًّا رواه الطحاوي واسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : او د دي يعني د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي ،دي ويلي دي چې وو نبي عليه السلام چې واړه به ورته راوړلي شو نو ده به ورته دعا فرمائله يو ځلي ورته يو وړوکي راوړې شو نو هغه په نبي عليه السلام باندي بولي وکړي نو نبي عليه السلام وفرمائل چې واړوئ په دي باندي اوبه په اړولو سره د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد يې صحيح دي

{۴۷} و عن علي رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم بَولُ الغُلَامِ يُنضَحُ عَلَيه وَبَولُ الجارِيَةِ يُغسَلُ قَالَ قَتَادَة هٰذَا مَا لَمْ يَطْعَمَا فَإِذَا طَعِمَا غُسِلَ بَولُهُمَا رواه احمد و ابوداود و اخرون و اسناده صحيح (۲)

**ترجمه** : د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې د هلک په بولو باندي به اوبه بيولي شي او د جينئ بولي به وينځلي شي قتاده رحمه الله ويلي دي چې دا به دي شرط چې طعام يې لاته وي خوړلي او که طعام يې خوړلي وي نو د دواړو بولي به وينځلي شي ، د دي حديث روايت احمد ، ابوداؤد او اخرونو کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۴۸} و عن ابي السَّمح رضي الله عنه قَالَ كُنتُ خادمَ النَّبي صلى الله عليه وسلم فَجِيءَ بِالحسنِ اَوِ الحُسينِ رضي الله عنهما فَبَالَ عَلٰى صَدرِه فَارَادُوا اَنْ يغسِلُوه فَقَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم رُشَّه فَإِنَّه يُغسَلُ بَولُ الجَارِيَةِ وَيُرَشُّ مِن بَولِ الغُلَامِ رواه ابن ماجه وابوداود والنسائي و آخرون و صححه ابن خزيمة و حسنه البخاري.(۳)

---

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج ۱ صـــ ۳۵ باب بول الصبيان . طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۶۸ باب حكم بول الغلام .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۵۴ باب بول الصبي يصيب الثوب ، مسند احمد ج ۱ صـــ ۷۶.

(۳) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۵۴ باب بول الصبي يصيب الثوب ، نسائي ابواب الطهارة ج ۱ صـــ ۵۷ باب بول الجارية ابن ماجة ابواب الطهارات صـــ ۴۰ باب ماجاء في بول الصبي ...الخ ابن خزيمة كتاب الوضوء ج ۱ صـــ ۱۴۳ رقم الحديث ۲۸۳، مستدرک حاكم كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۶۶ باب ينضح بول الغلام ....الخ .

**ترجمه** : د ابي السمح رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې زه د نبي عليه السلام خادم وم چې حضرت حسن او يا حضرت حسين رضي الله عنهما راوستلي شو نو هغه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مباركه سينه باندي بولي وكړي نو صحابه كرامو غوښتل چې وي يې وينځي نو نبي عليه السلام وفرمائل چې اوبه پري واړوه چې بېشكه د جينۍ بولي وينځلي شي او د هلك په بولو اوبه اچولي شي . د دي حديث روايت ابن ماجه ، ابوداؤد ، نسائي او اخرونو كړي دي او ابن خزيمه او حاكم صحيح ګڼلي دي او بخاري دا حديث حسن ګڼلي دي

{۴۹} وَعَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي لَيْلٰي عَنْ اَبِيهِ رضي الله عنه قَالَ كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ رَسُوْلِ اللهِ صلى الله عليه وسلم وَعَلٰي بَطْنِهِ اَوْ عَلٰي صَدْرِهٖ حَسَنٌ رضي الله عنه اَوْ حُسَيْنٌ رضي الله عنه فَبَالَ عَلَيْهِ حَتّٰي رَأَيْتُ بَوْلَهٗ اَسَارِيْعَ فَقُمْنَا اِلَيْهِ فَقَالَ دَعُوْهُ فَدَعَا بِمَاءٍ فَصَبَّهٗ عَلَيْهِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : د عبدالرحمن بن ابي ليلى نه روايت دي هغه د خپل پلار نه روايت كړي دي ده ويلي دي چې زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره ناست وم او په مباركه خيټه او يا په مباركه سينه ددوي حضرت حسن رضي الله عنه او يا حضرت حسين رضي الله عنه وو نو په هغه صلى الله عليه وسلم يې بولي وكړي تردي چې ما د هغه د بولو لاري وليدلي نو مونږ هغه صلى الله عليه وسلم ته ورپاڅيدو نو هغه صلى الله عليه وسلم وفرمائل دا پريږدئ نو اوبه يې راوغوښتي او اوبه يې په هغه ځاي ورواړولي ، د دي حديث روايت طحاوي كړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۵۰} وعن اُمِّ الْفَضْلِ رضي الله عنها قَالَتْ : لَمَّا وُلِدَ الْحُسَيْنُ رضي الله عنه قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ اَعْطِنِيْهِ اَوِ ادْفَعْهُ اِلَيَّ فَلْاُكَفِّلْهُ اَوْ اُرْضِعْهُ بِلَبَنِيْ فَفَعَلَ فَاَتَيْتُهٗ بِهٖ فَوَضَعَهٗ عَلٰي صَدْرِهٖ فَبَالَ عَلَيْهِ فَاَصَابَ اِزَارَهٗ فَقُلْتُ لَهٗ يَارَسُوْلَ اللهِ اَعْطِنِيْ اِزَارَكَ اَغْسِلْهُ قَالَ اِنَّمَا يُصَبُّ عَلٰي بَوْلِ الْغُلَامِ وَيُغْسَلُ بَوْلُ الْجَارِيَةِ رواه الطحاوي واسناده حسن .(۲)

**ترجمه** :دام الفضل رضي الله عنها نه روايت دي ويلي يې دي چې كله حضرت حسين رضي الله عنه پيدا شو (وزيږدلي شو نوما رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل ياد الله رسوله ماته يې راكړه چې زه يې كفالت وكړم او ياتي وركړم په خپلو پئو (شيدو) سره نو نبي عليه السلام هغي ته وركړ ام الفضل وايي يو خلي مي هغه نبي عليه السلام ته راوړ نو نبي عليه السلام هغه په خپله مباركه سينه باندي كيناوه هغه پري بولي وكړي او پرتوګ ته يې ورسيدي نو

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ ص ۶۸ باب حكم بول الغلام .

(۲) طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ ص ۶۸ باب حكم بول الغلام .

ما ورته وويل اي دالله رسوله پرتوګ دي ماته راکړه چې زه يې ووينځم نبي عليه السلام وفرمائل چې بېشکه د هلک په بولو اوبه اړولې شي او د جينۍ بولې وينځلې شي. د دې حديث روايت طحاوي کړي او اسناد يې صحيح دي

{۵۱} وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ اُمِّه اَنَّها اَبْصَرَتْ اُمَّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا تَصُبُّ الْمَاءَ عَلَىٰ بَوْلِ الْغُلَامِ مَالَمْ يَطْعَمْ فَاِذَا طَعِمَ غَسَلَتْهُ وَكَانَتْ تَغْسِلُ بَوْلَ الْجَارِيَةِ رواه ابو داود و اسناده صحيح (۱)

**ترجمه**: د حسن رحمه الله نه روايت دي دده د مور نه روايت کړي چې دې ام سلمه اوليده چې د هلک په بولو به يې اوبه اړولې ترڅو چې يې طعام نه وو خوړلې او که طعام به يې خوړلې نو هغه به يې وينځه او د جينۍ بولې به يې وينځلې د دې روايت ابوداود کړي او اسناد يې حسن دي

قَالَ النِّيمَوِي لِاَجْلِ اَمْثَالِ هٰذِهِ الرِّوَايَاتِ ذَهَبَ الطَّحَاوِي اِلٰى اَنَّ الْمُرَادَ بِالنَّضْحِ فِي بَوْلِ الْغُلَامِ صَبُّ الْمَاءِ عَلَيهِ تَوفِيقاً بَيْنَ الاخبارِ.

**ترجمه**: نيموي رحمه الله ويلي دي چې د دغه روايتونو د وجې نه طحاوي د هلک د بولو د نضح نه مراد صب الماء اخستي د پاره د دې چې تطبيق راشي د اخبارو ترمينځ.

## دهلک او دجينۍ دبولو (متيازو) حکم

دومره خبره خو اتفاقي ده چې که هلک وي يا جينۍ چې کله دپئو نه علاوه ورته نوره غذا شروع شي نو دلويو په شان ددې دمتيازو نه هم ځان ساتل ضروري دي او پاکول يې ضروري دي البته دمور د سينې پئ خوړونکي ماشوم په باره کې اختلاف دی:

۱- امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد دماشوم په متيازو باندې اوبه ورچانړ کول کافي دي. ليکن دماشومې متيازې وينځل ضروري دي.

۲- دامام ابوحنيفه او دامام مالک رحمه الله په نزد دجينۍ په شان دهلک ماشوم متيازې هم وينځل ضروري دي. البته دماشوم په متيازو وينځلو کې ډيره مبالغه ضروري نه ده، بلکې لږ شان وينځل هم کافي کيږي.

**دامام شافعي او دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ دليل**: دا حضرات دباب دهغه حديثونو نه استدلال کوي کوم کې چې دجينۍ دمتيازو لپاره "غسل" او دماشوم دمتيازو لپاره "نضح" او "رش" په

---

(۱) ابوداود کتاب الطهارة ج ۱ صـ ۵۴ باب بول الصبي يصيب الثوب.

شان الفاظ راغلي دي مثلا : " بَولُ الغُلَامِ يُنْضَحُ عَلَيه وَبَولُ الجارِيَة يُغسَلُ" په دې حديث کې ددواړو په حکمونو کې فرق بالکل واضح دی .

**دامام ابوحنيفه او دامام مالک** رَحِمَهُمَاالله **دليل** :۱- حديث : " استنزهو عن البول فان عامة عذاب القبر منه" په دې حديث کې عموم دی چې په دې کې دهر قسمه متيازو نه دبچ کيدو تاکيد ني حکم راغلې دی .۲- دباب دويم نمبر حديث :فدعا بماء فاتبعه اياه .۳- دباب دريم نمبر حديث :صبوا عليه الماء صبا ديرې او به اړول دوينځلو په صورت کې کيږي .

**امام شافعي او امام احمد** رَحِمَهُمَاالله **ته جواب** :

۱... د "نضح" هم ديرې معناګاني راځي مثلا : اوبه چاڼړ کول . اوبه بهول. استنجاء کول . معمولي وينځل . او مطلق وينځل وغيره صرف اوبه ورچاڼړ کولو نه ددې تعبير کافي نه دی . "رش" هم دوينځلو په معنی کې مستعمل دی ، همدارنګه امام شافعي رَحِمَهُ الله دمذي په سلسله کې وارد لفظ "نضح" لره دغسل په معنی کې اخيستې دی او ددم حيض وينځل بالاتفاق ضروري دي ليکن هلته هم په حديث کې لفظ "نضح" راغلې دی دکوم نه چې مراد غسل دی .

۲... عامو پليتو باندې دقياس نه هم د "غسل" والا معني ته ترجيح ورکړې کيږي.

**قوله** : **"فنضحه ولم يغسله" أي لم يغسله غسلا شديدا.**

## دماشوم او ماشومې د متيازو په حکم کې دفرق وجه :

۱.... په ماشوم کې ابتلاء زياته وي خلک يې عموما خپلو اوګو باندې کينوي او عامو مجلسونو ته يې له ځانه سره بوزي او په خپلو غيږو کې يې کينوي ، نوله دې دوجې دده دمتيازو په پاکوالي کې نرمي وکړې شوه ، په خلاف دماشومې جينۍ چې هغه داسي نه ده ځکه چې ددې په معامله کې هماغه شدت برقرار ساتل شوې دی .

۲... دماشوم په متيازو کې حرارت زيات وي او بدبو او تعفن کم وي ، او دماشومې جينۍ په متيازو کې برودت او تعفن او بدبو زياته وي .

# ﴿ بابٌ في بَولِ مَا يوكَلُ لَحمُه ﴾

## دا باب د هغه حيواناتو د بولو په باره کې دي چې غوښې يې خوړلې شي

{۵۲} عن البَراء رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَا بَأسَ بِبَولِ مَا اُكِلَ لَحمُه رواه الدارقطني و ضعَّفه و في الباب عن جابرٍ و اسنادهٔ واهٍ جدًّا .(۱)

**ترجمه** : د حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دی ده ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي د هغه خاورو د بولو څه باک نشته چې غوښې يې خوړې شي ، دا حديث دار قطني روايت کړي او په باب کې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت شويدي او اسناد يې نهايت ضعيف دي

**مسئلة الباب** : ماكول اللحم خناورو متيازي پاكي دي يا ناپاكي ؟ په دې باره کې دوه قوله دي

۱. امام مالک او احمد او محمد رحمهم الله په نزد "بول ما يؤكل لحمه" پاكه ده ۲. امام ابوحنيفه . شافعي او ابويوسف رحمهم الله په نزد ناپاكه ده .

### دطهارت قائلينو دلائل:

۱- حديث الباب " لابأس ببول ما أكل لحمه". ۲- دباب حديث دجابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ کوم حواله چې مصنف ورکړه . ۳- حديث دعرنينو "اشربوا من ألبانها وأبوالها".

**دنجاست قائلينو استدلال** : دا حضرات دهغه ټولو احاديثو نه دليل پيش کوي کوم کې چې مطلقا متيازو ته نجس ويلې شوي دي او ددېنه دبچ کيدو تاکيد پکې وارد شوې دی مثلا " استنزهو عن البول فأن عامة عذاب القبر منه ".

**دطهارت قائلينو ته جواب** : ۱- "لابأس" والا حديث ډير ضعيف دی ، ددې يو راوي سوار بن مصعب باندې امام بخاري . نسائي . ذهبي . ابوداود ، او ابن حزم او نور داسې سخته جرح کړې ده .
۲- حديث دجابر هم ضعيف دی ، ددې په دوه راويانو عمرو بن الحصين او يحي بن العلاء باندې كلام موجود دی ، عمروبن حصين لره خو امام احمد رَحِمَهُ اللهُ پخپله هم واضع حديث ګرځوي .
۳- حديث دعرنينو دوه مشهور جوابونه دي : يو دا چې په يو روايت کې وضاحت راغلې دی چې دې خلکو ته دپېۍ (شودو) څکلو او دمتيازو بوئي کولو حکم ورکړې شوې وو "اشربو من ألبانها

(۱) دار قطني كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۲۸ باب نجاسة البول ........۱ع .

واستشفوا من أبوالها" لهذا د دېنه دماكول اللحم طهارت نه ثابتيږي او دويم جواب ددې دادې چې دا خلک په حقیقت کې کافران وو ، په ظاهره مسلمان شوي وو او حضور صلی الله علیه وسلم ته په ذریعه دوحي ددوي دحالت خبر شوي وو ، نو ځکه دمریض دطبیعت موافق دوائي تجویز کړې شوه ، ددېنه دمسلمانانو لپاره دماكول اللحم دمتیازو په طهارت باندې استدلال صحیح نه دی .

# ﴿بَابٌ فِي نِجَاسَةِ الرَّوْثِ﴾

## دا باب دي د خوشئ په پليتوالي کې :

{۵۳} عن عَبْدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الغَائِطَ فَأَمَرَنِي أَنْ آتِيَهُ بِثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ فَوَجَدتُ حَجَرَيْنِ وَالتَمَسْتُ الثَّالِثَ فَلَمْ أَجِدْ فَأَخَذْتُ رَوْثَةً فَأَتَيْتُهُ بِهَا فَأَخَذَ الحَجَرَيْنِ وَأَلْقَى الرَّوْثَةَ وَقَالَ هٰذَا رِكْسٌ رواه البخاري (۱)

**ترجمه** : د حضرت عبدالله رضي الله عنه نه روايت دى ده ويلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم قضاء حاجت ته تشريف وي وړ نو ماته يې حكم وكړ چې زه دوي ته دري كاڼي راوړم نو دوه كاڼي مې پيدا كړل او دريم مې ولټاوه خوپيدا مې نه كړ نوخوشئ مې راواخيسته نوهغه مې ورته راوړه نوهغه صلی الله علیه وسلم دواړه كاڼي واخيستل او خوشئ يې وغورځولو او وي فرمائل چې دا پليتي ده.د دي حديث روايت بخاري كړي دي

**دكلماتو تحقيق** : " عن عبدالله" په صحابه كرامو كې مطلق عبدالله نه مراد حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه وي . "الروثة" سوتي ته او "حثاء" خراشنو ته او "روثة" دواړو ته ويلې كيږي .

**مسئلة الباب** : ددې باب نه خو اصل مقصود داستنجاء لپاره دخوشئ دناقابل استعمال كيدل بيانول دي . ليكن چې كوم حديث راوړلې شوې دی ددېنه په ظاهره دوه مسئلې مستنبط كيږي :

**اولنۍ مسئله** : كاڼي او لوټي په ذريعې سره استنجاء كول جائز دي داستنجاء تول دري صورتونه جوړيږي : ۲- استنجاء بالحجارة فقط. ۲- استنجاء بالماء . ۳- جمع بين الماء والحجر.

دادريم صورت له ټولو نه افضل دی ځكه چې الله تعالي داهل قباؤ په همدې عمل تعريف فرمايلې ى . په دې زمانه كې فقهاء دتغير غذا او دطبائعو دوجې نه جمع بين الماء والحجر يا استنجاء بالماء باندې زيات زور وركوي .

---

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج ۱ ص ۲۷ باب لا يستنجي بروث .

**دويمه مسئله**: په کاڼي (ډبره) سره داستنجا مسائل.

۱- انقاء: موضع نجاست لره پاکول. دا بالاتفاق واجب دي. ۲- ایتار: په طاق عدد کې دکاڼي استعمال. دا بالاتفاق مستحب دي. ۳- تثلیث: یعنې دري کاڼي استعمالول. ددې په حکم کې اختلاف دی. دامام شافعي او دامام احمد رحمه الله په نزد تثلیث واجب دی او امام ابو حنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په نزد تثلیث واجب نه دی بلکې مستحب دی.

**امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَاالله دلائل**:

**۱- دلیل**: دحضرت سلمان فارسي رضي الله عنه حدیث: (**نهانا ان نستقبل القبلة بغائط او ببول او ان نستنجي باليمين او ان يستنجي احدنا باقل من ثلاثة احجار. ترمذي باب الاستنجاء بالحجارة**).

**ترجمه**: منع کړي یو مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم قبلې طرف ته د مخ کولو نه د تشو بولو او د ډک اودس ماتي په وخت کې او منع کړي یې یو مونږ په ښي لاس سره د استنجاء کولو نه او د دې خبرې نه چې استنجاء وکړي یو زمونږ د دریو کاڼو نه په کمو سره. امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمائلي دي چې په حدیث شریف کې خاص عدد ذکر شوي دي نو د دي وجي نه تثلیث واجب دي ځکه چې په حدیث شریف کې د دریو نه د کمو کاڼو د استعمال نه منع راغلي ده نو د دي وجي نه خاص عدد واجب دي.

(**۲**)**دلیل**: د باب په حدیث (**فامرني ان آتيه بثلاثة احجار**) په الفاظو هم شوافعو استدلال نیولي دي دکوم روایت په آخر کې چې "**ائتني بحجر**" او په یو روایت کې "**ابغني بحجر**" یعنې دخوشې په ځاي ددریم کاڼي دلټولو حکم یې وکړو.

**د امام ابو حنیفه او دامام مالک رَحِمَهُمَاالله دلائل**:

**۱**- دحدیث باب مذکوره روایت کوم کې چې ددریم کاڼي دلټولو او دراوړلو حکم نشته.

۲- د امام ابو حنیفه رحمه الله او د ده د موافقینو دویم دلیل د رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه صحیح حدیث دي چې ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت کړي دي. (**من استجمر فليوتر من فعل فقد احسن ومن لا فلا حرج**) [1] **الحديث**. په دې کې ایتار یعنې طاق عدد کې دکاڼي استعمال لره وجوبي نه بلکې صراحةً استحبابي حکم ګرځولې شوې دی.

---

(۱) ابوداود. ۱/۶.

۳- داوبو په استعمال کې بالاتفاق تثلیث شرط نه دی ځکه چې اصل مقصود انقا، یعنې پاکي او صفائي ده نه عدد ، لهذا قیاسا د کاڼي په استعمال کې هم تثلیث ضروري نه دي کیدل پکار .

**امام شافعي او امام احمد** رحمهما الله **ته جواب :**

۱- حدیث سلمان رضي الله عنه کې د دریو نه کم کاڼو نه ممانعت یو حکمت عملي باندې مبني دی او هغه دا چې عموما د دریو نه په کمو کاڼو باندې پاکوالي نه حاصلیږي او دریو له د صفائي د حصول لپاره کافي ګڼړلې کیږي په یو حدیث کې ددې همدغه علت بیان کړې شوې دی **"فان ذلک کافیه"** ددې دویم جواب دادې چې د حدیث **"ومن لا فلا حرج"** په رڼا کې به دامنلې شي چې په حدیث سلمان رضي الله عنه کې نهي د دریو د حرمت لپاره نه ده بلکې د دریو د اهتمام لپاره ده.

۲- په حدیث کې **"فأمرني"** د وجوب لپاره نه دی ، ګني حضور صلی الله علیه وسلم به د دریم کاڼي د لټولو لازمي حکم ورکولو او **"ائتني بحجر"** یا **"ابغني بحجر"** وغیره زیاتوالي د صحیح روایت نه ثابت نه دي

**دحجر تعریف:** فقهاؤ د استنجاء لپاره **"دحجر"** تعریف دا کړې دی **"کل شيء قالع للنجاسة"** یعنې هر هغه شئ چې پخپله پاک وي او نجاست له لري کونکی وي . په موجوده زمانه کې په بیت الخلاء ګانو کې د لوټو په استعمال کې دقت او تکلیف وي نو ځکه د مذکوره تعریف په رڼا کې ځینو علماؤ د ټائلټ پیپر (توش ناب کاغذ) داستعمالولو مشوره ورکړې ده .

**دشوتي داستعمال نه دممانعت وجه :**

۱- سوټه دجناتو یا د دوي دځناورو خوراک دی ، دهغوي لپاره سوټي له خپل اصلي حالت ته اړونې شي او هغې نه غله او غذا جوړولې کیږي .(۱)

۲- سوټه پخپله پلیتي ده لکه څنګه چې حدیث الباب کې وو ، لهذا دا نجاست نشي لري کولې .

## ﴿بَابُ فِي أَنَّ مَا لَا نَفْسَ لَهُ سَائِلَةً لَا يَنْجُسُ بِالْمَوْتِ﴾

**داباب دي په بیان دهغه څیز کې چې بهیدونکي وینه نه لري نو دهغه په مرګ څه شي نه پلیتیږي**

{۵۴} عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم اِذَا وَقَعَ الذُّبَابُ فِي شَرَابِ أَحَدِكُمْ فَلْيَغْمِسْهُ ثُمَّ لِيَنْزِعْهُ فَإِنَّ فِي أَحَدِ جَنَاحَيْهِ دَاءً وَفِي الْأٰخَرِ شِفَاءً رواه البخاري .(۲)

---

(۱) معارف السنن : ۱/۱۱۲-۱۲۹.

(۲) في بدء الخلق ج ۱ صـ ۴۶۷ باب اذا وقع الذباب ....الخ .

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې کله ستاسي د څکلو په څيز کې مچ ولويږي نو ډوب يې کړئ بيا يې راوباسئ بې شکه چې په يو د دوه وُ وزرونو کې يې بيماري ده او په بل کې يې شفاء ده . د دي حديث روايت بخاري کړې دی .

**دباب قائمولو مقصد**: په ظاهره مصنف دا ويل غواړي چې مچ يا دده په شان داسي ځناور کوم کې چې بهيدونکې وينه نه وي ، په اوبو کې د مړکيدلو په صورت کې اوبه نه پليتيږي دا مسئله متفق عليه ده . (رحمة الامة ص ۹)

## ﴿بَابُ نِجَاسَةِ دَمِ الْحَيْضِ﴾

## دا باب د حيض دويني د پليتوالي په بيان کې دی :

{ ۵۵ } عَنْ اَسْمَاءَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَتْ اِمْرَأَةٌ اِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ اِحْدَانَا يُصِيْبُ ثَوْبَهَا مِنْ دَمِ الْحَيْضَةِ كَيْفَ تَصْنَعُ بِهِ قَالَ تَحُتُّهُ ثُمَّ تَقْرُصُهُ ثُمَّ تَنْضَحُهُ ثُمَّ تُصَلِّيْ فِيْهِ رواه الشيخان (۱)

**ترجمه** : د حضرت اسماء رضي الله عنها نه روايت دې دي ويلي چې يوه ښځه نبي علیه السلام ته راغلله نو وي ويل که زمونږ د يوې کسي جامي ته د حيض وينه ورسيږي د هغي سره به څه کوي نبي علیه السلام وفرمايل چې په ګوتو دي وګروي ودي مږي بيا دي يې په اوبو ووينځي بيا دي پري اوبه اوپاشي بيا دي پکې مونځ وکړي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

{ ۵۶ } وعن اُمِّ قَيْسٍ بِنْتِ مِحْصَنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ دَمِ الْحَيْضِ يَكُوْنُ فِي الثَّوْبِ قَالَ حُكِّيْهِ بِضَلْعٍ وَاغْسِلِيْهِ بِمَاءٍ وَسِدْرٍ رواه ابوداود والنسائي وابن ماجه وابن خزيمة وابن حبان واسناده صحيح (۲)

**ترجمه** : د ام قيس ابن محصن رضي الله عنها نه روايت دی دي ويلي چې ما د نبي علیه السلام نه پوښتنه وکړه د هغه حيض د ويني په باره کې چې په جامه لګيدلي وي نبي علیه السلام وفرمايل د جامي په يو کونج د هغه ومورئ او په اوبو او بيره يې ووينځئ. د دي حديث روايت ابوداؤد ، نسائي ابن ماجه ابن خزيمه او ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

باب غسل الدم، مسلم كتاب الطهارة ج ۱ صـ ۱۴۰ باب نجاسة الدم وكيفية غسله.
(۱) بخاري في الوضوء ج ۱ صـ ۳۶ باب المرأة تغسل ثوبها...الخ ، نسائي كتاب المياه ج ۱ صـ ۶۹ باب دم الحيض يصيب الثوب ،
(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـ ۵۲ باب ماجاء في دم الحيض يصيب الثوب ، صحيح ابن خزيمة ج ۱ صـ ۲۲ بـاب استحباب غسل دم
ابن ماجة ابواب الطهارة صـ ۴۶ باب ماجاء في دم الحيض يصيب الثوب ، ابن حبان كتاب الطهارة ج ۳ صـ ۲۸۲ باب تطهير النجاسة .
الحيض من الثوب بالماء والسدر رقم الحديث ۲۷۷ ،

**دکلماتو تحقیق**: "**تحت**" دباب نصر نه په معنی دکېږي سره کېچړا وغیره ملاوول او صفا کول **تقرص** د باب نصر نه په معنی دګرول او وینځل او بوسره. **نضح** دلته دنضح نه مراد بالاتفاق وینځل دي "**حکي**" صیغه دامر ده دنصر نه په معنی د مږل.

دحیض لغوي معنی ده بهېدل او په اصطلاح کې دحیض تعریف دادي، "**هو دم ینفضه رحم امرأة بالغة من غیر داء**" حیض وینه ده چې د بالغې ښځې رحم یې غورزوي په غیر د څه مرض او بیمارئ نه. او استحاض هم د حیض نه د استفعال باب دي د استفعال په باب کې د مبالغې خاصیت دي او د استفعال په باب کې د ماهیت د انقلاب خاصیت هم شته لکه د حیض ماهیت بدل شي او استحاض وګرځي. د حیض متعلق حضور ﷺ ارشاد وفرمایل: "**هذا شیء کتبه الله علی بنات آدم**" یعنې دالله تعالی په حکم سره دا بیماري ښځو ته لاحقه ده.

**مسئلة الباب**: د باب دحدیثونو نه دحیض وینه پلیتېدل خو ظاهر شو او دا هم چې دعامو پلیتیو په شان ددې وینځل هم ضروري دي، البته په دم حیض کې مقدار دمعفو عنه (کوم سره چې مونځ روا کېږي) شته او که نه؟ ددې په باره کې اختلاف دی.

۱- دامام ابوحنیفه او دامام مالک او دامام احمد رحمهم الله په نزد دم قلیل معاف دی او ددم کثیر وینځل واجب دي، لیکن د مقدار معفو عنه په تعیین کې ددوي اختلاف دی:

۱..... دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد په اندازه دیو درهم معیار دی، که وینه دیو درهم برابره یا ددې نه زیاته وي نو وینځل یې واجب او په همدې حالت کې مونځ کول مکروه تحریمي دي او که مونځ یې په همدې حالت کې وکړو نو مونځ یې کېږي خو سره دکراهت نه.

۲..... دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ دراجح قول مطابق دمبتلی به رائ لره اعتبار دی. ۳... دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد د قلیل او دکثیر مقدار معلوم نه دی.

۲..... امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد په قلیل او کثیر کې هیڅ فرق نشته، تر دې پورې چې یو څاڅکې دحیض دوینې هم ددوي په نزد نجس ده او په همدې حالت کې چې دحیض وینه یې په جامو وي مونځ یې نه کېږي.

**قوله**: "**جاءت امرأة**" دراجح قول مطابق سوال کونکې دحضرت اسماء رضي الله عنها نه علاوه بل څوک وه. چونکه په دم حیض کې دښځو ابتلاء عام ده او عموم بلوی سره په حکم کې تخفیف راځي لیکن په حیض کې هیڅ تخفیف رانغې پس همدا منشأ دسوال وه.

# ﴿بَابُ الْاَذٰى يصِيبُ النَّعلَ﴾

## باب دې په بيان دهغه پليتئ کې چې رسيدلې وي پڼې ته :

{۵۰} عَنْ اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَذَا وَطِئَ الاَذٰى بِخُفَّيه فَطهورُهمَا التُّرَابُ

رواه ابوداود و اسناده حسن و عنده له شاهد بمعناه من حديث عَائشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا (۱)

**ترجمه** : د ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دى چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې د چا په موزو پليتي ولويږي نو د هغې پاکوالې خاوره ده ، د دي حديث روايت ابوداوُد کړې او د دي سند حسن دى او په ابوداوُد کې د دي حديث لپاره په همدې معنى شاهد موجود دى چې د حضرت عائشي صديقي رضي الله عنها نه يې روايت شوې دى .

## د کلماتو تحقيق او د حديث مفهوم :

**قوله** : " له شاهد بمعناه " د شاهد معنى او مفهوم په مقدمة العلم کې او ګورئ .

**فقه الحديث** : که موزي يا پڼې باندې د تللو په وخت په لاره کې څه پليتي اولګي او دا کس يې له څنه سره په پڼو يا موزو کې ويسي نو په پاکه زمکه راخکلو سره به ددې نه دغه پليتي پاکه شي په حديث کې د نعل (چپړا) او د خف (د چمړې موزه) ذکر دى ليکن فقهاؤ ددې دوو شيئنو په حکم کې هر هغه شي لره هم شامل کړې دى کوم چې صيقل شده او پاک وي او په دې کې د ننه څه سوري نه وي لکه آئينه . توره . وغيره .

## مسئلة الباب :

" اذا وطئ أحدکم بنعله الأذى " په دې کې اختلاف دى چې د "اذى" نه څه مراد دى ؟ په دې کې درې اقوانه دي :

۱- د امام احمد رحمه الله په نزد راجح قول مطابق او د امام شافعي د قول قديم کې د دېنه مطلق نجاست مراد دى وچ وي او که تر (لوند) . په هر صورت کې د مږلو سره پاکيږي .

۲- د امام مالک رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله قول جديد دادى چې د اذى نه مراد شئ مستقذر (يعني هغه چې طبيعت ئي ناخوخه ګڼي) او نجاست يابسه دى ، لونده پليتي وينځل ضروري دي .

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ صـ ۵۵ باب الاذى يصيب النعل .

۳- داحنافو په نزد د دېنه مراد وچې پليتي او هغه لونده پليتي تري مراد ده كومه چې ذي جرم(جسم وال) وي يعني هغه نجاست مرئيه كومه چې دوچيدو نه پس هم په نظر راځي لكه غټې بولې . بيا امام صاحب په نزد داسې قسمه پليتي چې وچه شي نو په مږلو سره پاكيږي ، دوچيدو نه بغير مږل كافي نه دي ، او د امام ابو يوسف رحمه الله په نزد جفاف يعني دوچيدو قيد نشته دى ، بلكې دوچيدو نه مخكې مږلو سره هم پاكي حاصليږي ،حديث الباب د امام ابو يوسف رحمه الله د قول مؤيد معلوميږي .

## ﴿ بَابُ مَا جَاءَ فِي فَضْلِ طُهورِ الْمَرْأَةِ ﴾

## دا باب دې په بيان د هغه حديثونو كې چې د ښځې د اودس نه پاتې شوو اوبو په باره كې راغلي دي

{۵۸} عن الحَكَمِ بنِ عَمْرٍو الغِفَارِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَهَى أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طُهورِ الْمَرْأَةِ رواه الخمسة و آخرون و حَسَّنَه الترمذي و صححه ابن حبان (۱)

**ترجمه** : د حكم بن عمرو غفاري رضي الله عنه نه روايت دى چې بې شكه نبي عليه السلام منع كړي ده د سړي د اودس كولو نه په پاتې شوو اوبو د اودس د ښځې سره د دې حديث روايت پنځو كسو او نورو كړي دي ترمذي دا حديث حسن او ابن حبان صحيح ګڼړلي دي .

{۵۹} وَ عَنْ حُمَيدِ الحِمْيَرِي قَالَ لَقِيتُ رَجُلًا صَحِبَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرْبَعَ سِنِينَ كَمَا صَحِبَه أَبُو هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ تَغْتَسِلَ الْمَرْأَة بِفَضْلِ الرَّجُلِ وَ يغْتَسِلُ الرَّجُلُ بِفَضْلِ الْمَرْأَة وَلِيغْتَرِفَا جَمِيعًا رواه ابو داود والنسائي و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : د حميد حميري نه روايت دى ده ويلي دي چې زه يو داسې سړي سره ملاو شوم چې څلور كاله يې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره صحبت كړي وُ لكه څنګه چې ابوهريره رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره صحبت كړي وُ ده ويلي دي چې نبي عليه السلام منع كړي ده د ښځې د غسل كولو نه په پاتې شوو اوبو د سړي او منع يې كړي ده د غسل كولو د سړي نه په پاتې شوو اوبو د ښځې سره او

(۱)ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـ۱۱ باب الوضوء بفضل المرأة ، ترمذي ابواب الطهارات ج ۱صـ ۱۹باب كراهية فضل طهور المرأة . نسائي كتاب المياه ج۱صـ ۶۴ باب النهي عن فضل وضوء المرأة ،ابن ماجة كتاب الطهارة صـ۳۱ باب النهي عن ذلك،صحيح ابن حبان كتاب الطهارة ج ۳ صـ ۲۲۳ باب الوضوء بفضل وضوء المرأة .

(۲)ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱صـ۱۱باب الوضوء بفضل المرأة،نسائي كتاب الطهارة ج۱صـ ۴۷ باب ذكر النهي عن الاغتسال بفضل الجـ

دواړه دي په لپو سره اوبه رااخلي . د دي حديث روايت ابوداؤد او نسائي کړيدي او اسناد يې صحيح دي .

{۶۰} وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَغْتَسِلُ بِفَضْلِ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د حضرت ام المؤمنين ميموني رضي الله عنها نه په پاتي شوؤ اوبو غسل اوفرمايه . دا حديث مسلم روايت کړې دى .

{۶۱} وَعَنه قَالَ اِغْتَسَلَ بَعْضُ اَزْوَاجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي جَفْنَةٍ فَجَاءَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيَتَوَضَّأَ مِنْهَا اَوْ يَغْتَسِلَ فَقَالَتْ لَهُ يَارَسُولَ اللهِ اِنِّي كُنْتُ جُنُبًا فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ الْمَاءَ لَا يُجْنِبُ رواه ابوداود و آخرون و صححه الترمذي وابنُ خزيمة .(۲)

**ترجمه** : او د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دى ده ويلي دي چې د نبي عليه السلام بعض بيبيانو په يو لوښي کې اوبه واچولي او غسل يې وکړو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم تشريف راوړ چې په دغه اوبو اودس او يا غسل وکړي نو دوي رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل چې اي دالله رسوله بې شکه زه جنبه ووم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې اوبه نه پليتي کيږي او نه جنبيږي . د دي حديث روايت ابوداؤد او اخرونو کړې دى او ترمذي او ابن خزيمه صحيح ګرځلې دى .

قَالَ النِّيمَوِيُّ اِخْتَلَفُوا فِي التَّوْفِيقِ بَيْنَ الْاَحَادِيثِ فَجَمَعَ بَعْضُهُمْ بِحَمْلِ النَّهْيِ عَلَى التَّنْزِيهِ وَبَعْضُهُمْ بِحَمْلِ اَحَادِيثِ النَّهْيِ عَلَى مَا تَسَاقَطَ مِنَ الْاَعْضَاءِ لِكَوْنِهِ صَارَ مُسْتَعْمَلاً وَالْجَوَازِ عَلَى مَا بَقِيَ مِنَ الْمَاءِ وَبِذٰلِكَ جَمَعَ الْخَطَّابِيُّ .

**ترجمه** : نيموي رحمه الله ويلي دي چې د دي حديثونو ترمنځ په تطبيق او توفيق کې علماو اختلاف کړي دى بعضي علماؤ ددي احاديثو ترمنځ جمع او تطبيق کړيدې چې د نهي احاديث په تنزيهي نهي محمول دي او بعضي علماؤ د نهي احاديث محمول کړي دي په هغه اوبو سره چې د اعضاؤ نه څڅيږي لدې وجې نه چې دا اوبه مستعملي شوي دي او د جواز احاديث محمول دي په باقي پاتي

(۱) كتاب الحيض ج۱ صـ ۱۴۸ باب القدر المستحب من الماء .....الخ .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـ ۱۰ باب الماء لا يجنب ، ترمذي ابواب الطهارات ج ۱ صـ ۱۹ باب الرخصة في ذلك، صحيح ابن خزيمة ج۱ صـ ۵۸ باب اباحة الوضوء بفضل غسل المرأة .....الخ رقم الحديث ۱۰۹ .

شوو اوبو باندي.

**دباب قائمولو مقصد** : عموما په ښځو کې دسړو په نسبت صفائي او پاکوالي اهتمام کم وي ددېنه به چاته وهم دا کيدو چې کيدې شي دښځي نه پاتې شوي اوبه دسړي لپاره استعمال ناجائز وي ددې وهم ددفعه کولو دپاره دې باب لره قائم کړې شو .

**مسئلة الباب** : کومې اوبه چې ښځي داودس يا دغسل لپاره استعمال کړي وي ددې استعمال نه پس چې په لوښي کې کومې اوبه پاتي دي ددېنه دسړي لپاره اودس او غسل جائز دي يا نه ؟دجواب نه مخکې په دې ځان پوهه کول ضروري دي چې مطلق فضل طهور( دطهارت نه پاتې شوي اوبه) دري صورتونه کثير الوجود دي :

١- سړې او ښځه دواړه په يو لوښي کي اوبه راواخلي او اودس يا غسل تري اوکړي ، نو په دې کې به په دواړو ديو بل پاتي شوي اوبه استعمالول لازم راشي .

٢- زانله دسړي داستعمال نه پس پاتې شوي اوبه ښځه استعمال کړي

٣- ددې عکس ، يعنې دښځي داستعمال نه پس سړې دا اوبه استعمال کړي .

**حکم** : اولني دوه صورتونه بالاتفاق جائز دي ، اختلاف صرف په دريم صورت کې دی . امام احمد رَحِمَهُ‌اللَّه او اهل ظواهرو په نزد ناجائز دی او دجمهورو علماؤ او دائمه ثلاثه په نزد جائز دی .

**د امام احمد رَحِمَهُ‌اللَّه او داهل ظواهرو دليل** : دباب اولنې حديث نَهَى أَنْ يَتَوَضَّأَ الرَّجُلُ بِفَضْلِ طَهُورِ الْمَرْأَةِ.

**دجمهورو دليل** :

١- دباب دريم حديث " كَانَ يَغْتَسِلُ بِفَضْلِ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ".

٢- دباب څلورم حديث دکوم په آخر کې چې دي " إِنَّ الْمَاءَ لَا يُجْنِبُ ".

**امام احمد رَحِمَهُ‌اللَّهُ او اهل ظواهرو ته جواب** :

١... داولني حديث په سند باندې امام بخاري رَحِمَهُ‌اللَّه او بيهقي کلام کړې دی او جواز والا روايتونه صحيح هم دي او دير هم دي .

٢.... په متعارض حديثونو کې داسي تطبيق ممکن دی چې په اولني حديث کې نهي لره کراهت تنزيهي باندې او جواز لره خلاف اولی باندې محمول کړې شي .

٣... يا دفضل طهور المرأة نه مراد دښځي مستعملې اوبه دي .

۴... منع کونکي روايات اوس منسوخ شوي دي ، څلورم روايت کې دحضرت ميمونه رضي الله عنها د وبو مستعمل کيدو وجې نه شبه ظاهرول دليل دی ددې خبرې چې دې سره څه حديث وو ليکن چې کله حضور ﷺ "إِنَّ الْمَاءَ لَا يَجْنُبُ" اوفرمايل نو اوس به مخکينې حکم منسوخ ګڼړلې شي .

# ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي تَطْهِيرِ الدِّبَاغِ﴾

## داباب دی په بيان د هغه احاديثو کې چې په دباغت سره د څرمنو دپاکيدو په باره کې راغلي دي

{ ۶۲ } عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ تُصُدِّقَ عَلَى مَوْلَاةٍ لِمَيْمُونَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بِشَاةٍ فَمَاتَتْ فَمَرَّ بِهَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ هَلَّا أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَدَبَغْتُمُوهُ فَانْتَفَعْتُمْ بِهِ فَقَالُوا إِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ إِنَّمَا حُرِمَ أَكْلُهَا رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی ده ويلي دي چې د حضرت ميموني رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ازادي شوي وينځي ته په صدقه کې يو ګډ ورکړي شوي ؤ نو هغه مړ شوي ؤ نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغه ګډ تير شو نو وي فرمايل چې ولي مو د دې پوستکې ونه ويست چې رنګ کړي مو وې او فائده مو ترې اخيستې وې نو هغوي وويل چې بې شکه دا خو مرداره ده نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې بې شکه خوراک يې حرام کړې شوې دی ، د دې حديث روايت مسلم شريف کړې دی .

{ ۶۳ } وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا دُبِغَ الْإِهَابُ فَقَدْ طَهُرَ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روايت دی ده ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل يې کله چې رنګ کړي شي کچې څرمن په تحقيق سره پاکيږي . د دې حديث روايت مسلم کړې دي

{ ۶۴ } وَعَنْ مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَ مَرَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِشَاةٍ يَجُرُّونَهَا فَقَالَ لَوْ أَخَذْتُمْ إِهَابَهَا فَقَالُوا إِنَّهَا مَيْتَةٌ قَالَ يُطَهِّرُهَا الْمَاءُ وَالْقَرَظُ رواه ابوداود والنسائي و آخرون وصححه ابن السَّكَن وَ

(۱) مسلم كتاب الحيض ج۱ صـ ۱۵۸ باب طهارة جلود الميتة بالدباغ .
(۲) مسلم كتاب الحيض ج ۱ صـ ۱۵۹ باب طهارة جلود الميتة بالدباغ .

الحَاكِمُ .(۱)

**ترجمه** : د حضرت میموني رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دی دي ویلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په یو پسه او ګډ باندې تیر شو چې دوي رابنکوده نو وي فرمایل که د دي څرمن مو ویستلي وې هغو وویل چې دا مردار دي نو وي فرمایل چې اوبه او رنګ یې پاکوي . د دي حدیث روایت ابوداؤد او نسائي او اخرونو کړي دي او ابن السکن او حاکم صحیح ګڼړلي دي .

{۶۵} وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعَا بِمَاءٍ مِنْ قِرْبَةٍ عِنْدَ امْرَأَةٍ فَقَالَتْ اِنَّهَا مَيْتَةٌ فَقَالَ اَلَيْسَ قَدْ دَبَغْتِهَا قَالَتْ بَلٰى قَالَ دِبَاغُهَا ذَكَاتُهَا رواه احمد و آخرون و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : د سلمه ابن محبق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د یو مشک نه چې د ښځي سره ؤ اوبه یې راوغوښتي هغي وویل دا مردار دي نو هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل ایا هغه دي رنګ کړي نه دي هغي وویل چې ولي نه رنګ کړي مي دی نو هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې رنګول د دي پاکول د دي دي د دي حدیث روایت احمد رَحِمَهُ اللهُ او اخرونو کړي دی او اسناد یې صحیح دی .

{۶۶} و عن عَبدِ اللهِ بْنِ عُكَيمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَتَبَ اِلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَبْلَ وَفَاتِهِ بِشَهرٍ اَنْ لَا تَنْتَفِعُوا بِمَيْتَةٍ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ رواه الخمسة وهو معلولٌ بِالِانْقِطَاعِ والِاضْطِرَابِ .(۳)

**ترجمه**: حضرت عبدالله ابن عکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي لیکلي ؤ مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل وفات نه یو میاشت مخکې چې فائده به نه اخلئ د مرداري په څرمن سره او نه په پلو . د دي حدیث روایت پنځو محدثینو کړي دی او دا دانقطاع او داضطراب دوجې نه معلول دی .

## د دباغت طریقې او احکام

دباغت ویلې کیږي : " دیو شي په استعمال سره د څرمې رطوبت او لوندوالې ختمول ".

(۱) ابوداؤد کتاب اللباس ج ۱ صـــ ۲۱۳ باب في اهاب الميتة ،نسائي كتاب الفرع والعتيرة ج ۲ صـــ ۱۹۰ باب ما يدبغ به جلود الميتة .

(۲) مسند احمد ج ۵صـــ ۷ نسائي كتاب الفرع والعتيرة ج ۲ صـــ ۱۹۰ باب جلود الميتة .

(۳)ابوداؤد كتاب اللباس ج ۲ صـــ ۲۱۴باب في اهب الميتة ، ترمذي ابواب اللباس ج ۱ صـــ ۳۰۳ باب ماجاء في جلود الميتة اذا دبغت ، نسائي كتاب الفرع والعتيرة ج۲ صـــ ۱۹۱ باب ما يدبغ به جلود الميتة ، ابن ماجة كتاب اللباس صـــ ۲۶۶ باب من كان لا ينتفع مـــن الميتة باهاب ولا عصب ، مسند احمد ج ۴ صـــ ۳۱۰ .

ددباغت دري طريقې دي : ١- چمړي لره لمر ته ايخودل .٢- خاوره او مالگه پري اچول .٣- قَرَظ (دکيکر په شان يو ونه ده) وغيره جړي بوټي يا دوايانې او کيميکل استعمالول .
په دې کې اولنې او دويم صورت ددباغت حکمي دی او دريم صورت ددباغت حقيقي دی.
حکم : که چمړې ته دباغت حقيقي ورکړې شوي وي نو داوبو په لگيدو سره که رطوبت واپس راشي نو په هغه صورت کې چمړا نه ناپاکه کيږي .ليکن ددباغت حکمي په صورت کې به ناپاکه گرځي .
**مسئلة الباب** : کوم قسمه چمړې ته دباغت ورکول کيږي ؟
دباغت لپاره چمړه ددباغت کيدو قابله جوړيدل شرط دي پس د مږي او دمار چمړي ته دباغت نه ورکول کيږي . ددېنه علاوه دځناورو دچمړې په باره کې اختلاف دی :
١- امام مالک رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد صرف دمذبوحه ځناورو چمړي ته دباغت ورکول کيږي.
٢- دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد انسان او دخنزير نه علاوه دهر ځناور چمړې ته دباغت ورکول کيږي مذبوحه وي يا غير مذبوحه . دانسان استثناء دده دمکرم کيدو او دخنزير دده دنجس العين کيدو دوجې نه کړې شوې ده .
٣- دامام شافعي رحمه الله په نزد دسپي استثناء هم ده ځکه چې دخنزير په شان سپې هم دده په نزد نجس العين دی .
**امام مالک رَحِمَهُ اَللَّهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اَللَّهُ دليل** :حديث دعبد الله بن حکيم رضي الله عنه " لَا تَنْتَفِعُوا بِمَيتَةٍ بِإِهَابٍ وَلَا عَصَبٍ".
دامام ابوحنيفه رحمه الله او دامام شافعي رحمه الله دلائل: دباب اولني څلور حديثونه کوم کې چې حضور صلى الله عليه وسلم دمرداري ييزې چمړي لره ددباغت ورکولو باندې پاک گرځولي دي ، همدارنگې او فرمايل : "إذا دبغ الإهاب فقد طهر".
**امام مالک او امام احمد رَحِمَهُ اَللَّهُ ته جواب :**
١... د عبد الله بن عکيم رضي الله عنه والا حديث سند منقطع دی ، دکوم تفصيل چې دادی :
(الف) امام بخاري رحمه الله په خپل کتاب التاريخ کې ددې سند داسې ذکر کړې دی : **عن عبدالله بن عُكيم قال حدثنا مشيخة لنا من جهينة ان النبي صلى الله عليه وسلم الخ** د دې سند نه معلوميږي چې عبدالله بن عکيم په خپله دغه حديث د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه نه دې اوريدلې او نه يې په خپله د رسول

الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لیک لوستي دي ګويا که د ابن عکیم او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تر منځ د جهینه مشیخه واسطه واقع شویده

(ب) د عبدالله بن عکیم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت کونکې ابن ابي لیلی دی مګر دده د عبدالله بن عکیم نه ددې حدیث اوریدل محل د تردد دی. ځکه چې دطبراني او دابن عدي سند خو دادی: شبیب عن سعید عن الحکم عن عبدالرحمٰن ابن ابي لیلیٰ عن عبدالله بن عکیم ولفظه جآنا کتاب رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ونحن بارض جهینة اني کنت رخصت لکم في اهاب المیتة وعصبها. فلا تنفعوا باهاب ولا عصب لیکن دابوداود ردوایت مطابق ابن ابي لیلی پخپله دا حدیث نه دي اوریدلې بلکې دده ملګري دهغه نه دا حدیث بیان کړېدې

۲. سند په شان په متن کې هم اختلاف دی ۳. په مذکوره حدیث کې "اهاب" نه دانتفاع نه ممانعت دی او اهاب غیر مدبوغ چمړې ته ویل کیږي دکوم په عدم جواز کې چې هیڅ کلام نشته دی. نو ددېنه دمدبوغ ممانعت ځنګه کیدې شي؟

# ﴿ بَابُ آنِيَةِ الْكُفَّارِ ﴾

## د کافرو د لوښو باب:

{٦٤} عَنْ اَبِي ثَعْلَبَةَ الْخُشَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ يَارَسُوْلَ اللهِ اَنَا بِاَرْضِ قَوْمٍ اَهْلِ الْكِتَابِ اَفَنَأْكُلُ فِي آنِيَتِهِمْ فَقَالَ لَا تَأْكُلُوْا فِيْهَا اِلَّا اَنْ لَا تَجِدُوْا غَيْرَهَا فَاغْسِلُوْهَا وَكُلُوْا فِيْهَا. رواه الشيخان. (١)

**ترجمه**: د حضرت ابي ثعلبه الخشني رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی ده ویلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وویل چې اې دالله رسوله بې شکه چې مونږ د اهل کتابو د قوم په ځمکه کې اوسیږو ایا د دوي په لوخو کې خوراک وکړو نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې په دې لوخو کې خوراک مه کوئ مګر که د دي نه په غیر نور پیدا نه کړئ نو هغه ووینځئ او په هغې کې خوراک وکړئ، د دي حدیث روایت شیخینو یعني امام مسلم او امام بخاري کړي دي.

فقه الحدیث: دجمهور فقهاؤ په دې خبره باندې اتفاق دی که دکافرانو په لوښو کې پلیتي نه وي یا دغالب ګمان مطابق هغه پاک وي نو دوینځلو نه بغیر ددې استعمال صحیح دی ورنه نه دی صحیح.

---

(١) بخاري کتاب الذبائح ج ٢ صـ ٨٢٤ باب آنية المجوس والميتة ومسلم کتاب الصيد ج ٢ صـ ١٤٤ باب الصيد بالکلاب المعلمة.

په حدیث کې دکافرانو د داسې لوښو حکم بیان کړې شوې دی کوم کې چې هغو د خنزیر غوښې پخولې . شراب به یې پکې څښل وغیره وغیره همدارنګې احتیاط او د مسلمانانو د غیرت تقاضا هم همدا ده چې دوی سره اختلاط او معامله کمه وي

# ﴿بَابُ آدَابِ الْخَلَاءِ﴾

## د بیت الخلاء د آدابو باب :

{۶۸} عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَتَيْتُمُ الْغَائِطَ فَلَا تَسْتَقْبِلُوا الْقِبْلَةَ وَلَا تَسْتَدْبِرُوهَا بِبَوْلٍ وَلَا بِغَائِطٍ وَلٰكِنْ شَرِّقُوا أَوْ غَرِّبُوا رواه الجماعة .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې لاړ شئ تاسي بیت الخلاء او وړو او غټو بولو ته نو قبلې طرفته مخ مه ګرځوئ او مه ورته شا کوئ نه په وړو بولو او نه په غټو بولو سره لکن لمرخاته طرف ته کیننئ او یا لمر پریواته طرف ته ، د دې حدیث روایت الجماعة کړې دی .

{۶۹} وَعَنْ سَلْمَانَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَقَدْ نَهَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةَ بِغَائِطٍ أَوْ بَوْلٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِأَقَلَّ مِنْ ثَلَاثَةِ أَحْجَارٍ أَوْ أَنْ نَسْتَنْجِيَ بِرَجِيعٍ أَوْ بِعَظْمٍ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : حضرت سلمان رضي الله عنه وایلي دي چې مونږ رسول الله صلی الله علیه وسلم منع کړي یو چې د غټو او وړو بولو په وخت کې قبلې ته مخ واړوو او یا په ښي لاس استنجاء وکړو او یا د دریو کاڼو نه په کمو کاڼو استنجا موکړو او یا په خوشئ او یا په هډوکې استنجا موکړو . د دې حدیث روایت مسلم کړې دی

{۷۰} وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عن رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا جَلَسَ أَحَدُكُمْ عَلَى حَاجَتِهِ فَلَا يَسْتَقْبِلَنَّ الْقِبْلَةَ وَلَا يَسْتَدْبِرْهَا رواه مسلم .(۳)

**ترجمه** : د ابي هریره رضي الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې یو د ستاسي نه په قضاء حاجت باندې کیني نو نه دې قبلې ته مخ اړوي او نه دې ورته شا اړوي . د دې حدیث

---

(۱) بخاري کتاب الوضوء ج ۱ ص ۲۶ باب لا تستقبل القبلة ....الخ ، مسلم کتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۳۰ باب الاستطابة، ابوداؤد کتاب الطهارة ج ۱ ص ۳ باب کراهية استقبال القبلة عند ...الخ

(۲) مسلم کتاب الطهارة ج۱ ص ۱۳۰ باب الاستطابة .

(۳) کتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۳۱ باب الاستطابة .

روايت مسلم کړي دي

{۷۱} وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَقِيتُ يومًا عَلَى بَيتِ أُخْتِي حَفْصَة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَرَأَيتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاعِدًا لِحَاجَتِهِ مُسْتَقْبِلَ الشَّامِ مُسْتَدْبِرَ الْقِبْلَة رواه الجماعة.(۱)

**ترجمه** : عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې زه يو ورځ د خپلي خور حضرت حفصي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په کوټه وختم نو ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليد چې حاجت ته ناست و په داسي حال کې چې شام طرف ته يې مخ او قبلي طرف ته يې شا وه . د دي حديث روايت الجماعة کړي دي .

{۷۲} عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ نَهَي نَبِي اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ نَسْتَقْبِلَ الْقِبْلَة بِبَوْلٍ فَرَأَيْتُه قَبْلَ اَنْ يُقْبَضَ بِعَامٍ يستقبلُها رواه الخمسة الا النسائي و حسنه الترمذي و نَقَلَ عَنِ الْبُخَارِي تصحيحَه.(۲)

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نبي دالله منع کړي د دي نه چې د بولو په رخت کې قبلي طرف ته مخ واړوو نو ليدلي دي ما نبي عَلَيْهِ السَّلَام د وفات نه يو کال مخکې چې مخ يې اړولي و قبلي ته د دي حديث روايت خمسه و کړي مگر نسائي يې روايت نه دي کړي او ترمذي حسن گڼرلي دي او نقل يې کړي دي د بخاري نه د تصحصح د دي حديث.

قَالَ النِّيمَوِي اَلنَّهي لِلتَّنْزِيه وَفِعْلُه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لِلْإِبَاحَة أَو مخصُوصًا بِه جمعًا بَيْنَ الْأَحَادِيثِ.

**ترجمه** : نيموي ويلي دي چې نهي او منعه تنزيهي ده او فعل د نبي عَلَيْهِ السَّلَام د پاره د اباحت او د بيان جواز و او يا فعل خاص دي په نبي عَلَيْهِ السَّلَام پوري د پاره د جمع په مابين د احاديثو کې .

{۷۳} وَعَن مَرْوَانَ الأَصفَرِ قَالَ رَأَيتُ ابنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَاخَ رَاحِلَتَه مُستَقبِلَ القِبلَة ثُمَّ جَلَسَ يَبُولُ اِلَيهَا فَقُلتُ يَا أَبَا عَبدِ الرَّحمٰنِ أَلَيسَ قَد نُهِيَ عَن ذٰلِكَ قَالَ بَلٰى إِنَّمَا نُهِيَ عَن ذٰلِكَ فِي الفَضَاءِ فَإِذَا كَانَ بَيْنَكَ وَبَيْنَ القِبلَة شَيءٌ يَستُرُكَ فَلَا بَأسَ رواه ابو داودَ وَآخَرُونَ وَإِسنَادُه حَسَنٌ.(۳)

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ صـ۳ باب الرخصة في ذلک ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱صـ ۹ باب ماجاء في الرخصة في ذلک ، نسائي کتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۰ باب الرخصة في ذلک في البيوت ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـ ۲۸ باب الرخصة في ذلک في الکنيف ، مسند احمد ج ۲ صـ ۱۲ .

(۲) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ صـ ۳ باب کراهية استقبال القبلة ....الخ ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـ ۸ باب ماجاء من الرخصة في ذلک ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـ ۲۸ باب الرخصة في ذلک في الکنيف ...الخ ، مسند احمد ج۳ صـ ۳۶۰ .

(۳) ابوداؤد کتاب الطهارة ج ۱ صـ ۳ باب کراهية استقبال القبلة .

**ترجمه** : مروان اصفر ويلي دي چې ما ابن عمر رضي الله عنهما ليدلې دی چې اوښه يې چوکړه قبلي طرف ته يا کيناست او قبلي طرف ته يې تشي بولي وکړي مروان وايي چې ما ورته وويل چې اي ابا عبد الرحمن ايا د دي نه منع نه ده کړي شوي هغه وويل چې ولي نه بي شکه د دي نه په فضاء کې منع کړې شوي ده کله چې ستا او د قبلي ترمنځ يو شې وي چې تا پټوي او پنا کوي نو باک يې نشته. د دي حديث روايت ابوداؤد او اخرونو کړې دی او اسناد يې حسن دي.

قَالَ النِّيمَوِي هٰذَا اِجتِهَادٌ مِن اِبنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَلَم يُروَ فِي البَابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِيهِ.

**ترجمه** : نيموي رحمه الله ويلي دي چې دا د ابن عمر رضي الله عنه خپل اجتهاد دې او په باب کې د نبي عليه السلام نه په دې باره کې د هيڅ شي روايت نه دې شوي.

{۷۴} وَعَن أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ الخَلَاءَ قَالَ اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوذُ بِکَ مِنَ الخُبثِ وَالخَبَائِثِ رواه الجماعة .(۱)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې وو رسول الله صلی الله عليه وسلم چې کله به داخليدو (ننوتلو) بيت الخلاء ته نو ويل به يې چې اي الله بي شکه زه پناه نيسم په تا سره د تکليف رسوونکو نارينه ؤ او ښځينه ؤ شيطانانو نه. د دي حديث روايت الجماعة کړي دي.

{۷۵} وَعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا خَرَجَ مِنَ الخَلَاءِ قَالَ غُفرَانَکَ رواه الخمسة الا النسائي وصححه ابن خُزَيمَة وابن حِبَّانَ والحَاكِم وابو حاتم .(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها فرمايلي دي چې وو نبي عليه السلام چې کله به د بيت الخلاء نه راته فرمايل به يې يعني دا دعاء به يې فرمايله چې اي الله زه ستا نه بخښنه غوارم، دا حديث خمسه ؤ

---

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج۱ ص ۲۶ باب ما يقول عند الخلاء ، مسلم كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۶۳ باب ما يقول اذا اراد الدخول ...الخ ، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ ص ۲ باب ما يقول رجل اذا دخل الخلاء ترمذي ابواب الطهارة ج۱ ص ۷ باب ما يقول اذا دخل الخلاء ، نسائي كتاب الطهارة ج۱ ص ۹ باب القول عند دخول الخلاء ، ابن ماجة ابواب الطهارة ص ۲۶ با ما يقول اذا دخل الخلاء مسند احمد ج ۳ ص ۳۶۹ .

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ ص ۵ باب ما يقول اذاخرج من الخلاء،ترمذي ابواب الطهارات ج۱ ص ۷ باب ما يقول اذا خرج من الخلاء ، ابن ماجة ابواب الطهارة ج۱ ص ۲۶ باب ما يقول اذا خرج من الخلاء ، ابن خزيمة ج۱ ص ۴۸ رقم الحديث ۹۰ ،مسنداحمد ج ۶ ص ۲۲۴، مستدرک حاكم كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۵۸ باب مايقول اذاخرج من الغائط،صحيح ابن حبان كتاب الطهارة ج ۳ ص ۲۹۹ برقم ۱۴۴۱ .

روایت کړي دي مګر نسائي يې روايت نه دي کړي او ابن خزيمه او ابن حبان او حاکم او ابو حاتم صحيح ګڼړلي دي.

{۷٦} وعن ابي قتادة رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لا يمسكن احدكم ذكره بيمينه وهو يبول ولا يتمسح من الخلاء بيمينه ولا يتنفس في الاناء رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: او د ابي قتاده رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي ستاسي يو کس دي هم د بولو کولو په وخت کې خپل مخصوص اندام په ښي لاس نه نيسي او نه دي په ښي لاس استنجاء کوي او نه دي د اوبو څکلو په وخت کې په لوښي کې سا وباسي د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

{۷۷} وعن ابي هريرة رضي الله عنه ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قال: اتقوا اللعانين قالوا وما اللعانان يارسول الله قال الذي يتخلى في طريق الناس او في ظلهم رواه مسلم.(۲)

**ترجمه**: د حضرت ابو هريره رضي الله عنه بيان دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د دوه وو لعنت ويونکو شيانو نه ځان وساتئ يعني د داسې دوه وو شيانو نه چې د ډير لعنت سبب کيږي صحابه کرامو عرض وکړ چې اي د الله تعالى رسوله دوه د ډير لعنت والا شيان څه شې دي هغه صلى الله عليه وسلم وفرمايل هغه سړي چې د خلکو د تګ راتګ په لاره کې او د خلکو د سورو په ځاي کې غټي او يا وړي بولې کوي. د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

## په دې دوو حديثونو کې ديو څو آدابو بيان:

۱- په ښي لاس سره مخصوص اندام لره نه نيول. ۲- ښي لاس سره استنجاء نه کول. ۳- دخلکو د تګ راتګ لاره کې او دخلکو يو سوري ته دراجمع کيدو ځاي کې استنجاء او بولې نه کول.

{۷۸} وعن انس بن مالک رضي الله عنه قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يدخل الخلاء فاحمل انا وغلام اداوة من ماء وعنزة يستنجي بالماء رواه الشيخان.(۳)

**ترجمه**: د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي ده ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم

---

(۱) بخاري کتاب الوضوء ج۱ صـ ۲۷ باب لا يمسک ذکره بيمينه اذا بال، مسلم کتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۳۹ باب الاستطابة.
(۲) مسلم کتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۳۲.
(۳) بخاري کتاب الوضوء ج۱ صـ ۲۷ باب حمل العنزة ....الخ، مسلم کتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۳۲ باب الاستطابة.

قضاء حاجت ته تشریف وړي ؤ نو ما او يو هلک د اوبو يوه لوټه او يوه وړه نيزه وروړه هغه په اوبو باندې استنجاء وکړه . د دې حديث روايت شيخينو کړي دي .

**د کلماتو تحقيق** : د "غلام" نه دحضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ورور حضرت طلحه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مراد دی .

**د کلماتو تشريح** : "**خلا يخلوا**" دباب نصر په معنی دخان له کيدل دي "**شرقوا أو غربوا**" دا حکم د اهل مدينې والالپاره دی دکومو چې قبله جنوب په طرف ده ، داهل مشرق لپاره حکم دادي "شملوا أو جنبوا" ځکه چې اصل مقصود تعظيم دبيت الله دی نه ديو مخصوص جهت

**أو نستنجي برجيع أو عظم** : ددې ممانعت په ظاهر کې دوه وجهې دي :

۱ - دبعضې رواياتو مطابق هډوکي دجناتو او خوشئ ددوي دخناورو خوراک دی او ديو روايت مطابق دجناتو هم غذا ده الله تعالى دواړه خپل اصلي حالت ته اړوي .

۲ - خوشئ پخپله نجس دی او يو شي لره لري کونکې هم نه دی نو څنګه به نجاست زائله کړي ، او هډوکي دهموار او مښين کيدو دوجې نه نجاست ختمونکې نه بلکې نور به يې هم زيات کړي او انسان زخمي کولې هم شي .

**د "غفرانک" تحقيق** : سوال دا کيږي چې په ظاهره په بيت الخلاء کې دننه هيڅ ګناه نه ښکاري نو بيا استغفار دڅه لپاره کولې شي؟

**جواب** : **۱** - په بيت الخلاء کې ظاهري نجاست ته په کتلو سره باطني نجاست په خيال کې راځي کومه چې ګناه ده نو دې لپاره استغفار کيږي .

۲ - دومره وخت کې دژبې ذکر دوجې نه انسان محرومه وي نو په دې خلاف اولى کار باندې استغفار لوستلې کيږي .

۳ - د **غفرانک** معنی ده **شکرانک** يعنې دفراغت په نعمت باندې شکريه ادا کړې شوه عرب خلک دطواف په وخت "**غفرانک لا کفرانک** په معنی د **شکرانک** وائي .

## دوه اهمې مسئلې

**اولنې مسئله** : په بيت الخلاء کې داستقبال او داستدبار حکم : په دې باره کې څلور اقوال دي :

۱ - داهل ظواهرو په نزد ښار وي يا صحراء تولو ځايونو کې استقبال او استدبار دواړه جائز دي .

۲ - امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد ښار وي يا صحراء استقبال جائز دی او استدبار مطلقا ناجائز دی .

۳ - امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد ښار (آبادي) کې استقبال او استدبار دواړه جائز او په کولاو فضا کې دواړه ناجائز .

۴ - جمهور بشمول احناف په نزد ښار وي يا صحراء هر ځاي استقبال او استدبار دواړه ناجائز دي .

**داهل ظواهرو دليل**: پنځم باب حديث دکوم مطابق حضرت جابر رضي الله عنه فرمايل حضور صلى الله عليه وسلم مونږ داستقبال قبلې نه منع فرمايلې وو ليکن دوفات نه يو کال مخکې ما حضور صلى الله عليه وسلم لره دقضاى حاجت په وخت کې چې قبلې طرفته يې مخ وو اوليدو

**دامام احمد** رحمه الله **دليل**: حضرت ابن عمر رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم لره دقضاى حاجت په وخت کې چې قبلې ته يې مخ وو اوليدو

**دامام مالک او دامام شافعي** رحمه الله **دليل**: دحضرت ابن عمر رضي الله عنه دواړه حديثونه . په اولنې کې مدينه منوره کې دحضور صلى الله عليه وسلم واقعه مذکوره ده او دويم حديث پخپله دحضرت ابن عمر رضي الله عنه عمل دى چې په صحرا کې يې اوښ قبلې طرفته کينواو ددې په اړخ کې يې بولې اوکړې او وې فرمايل چې ممانعت په کولا و فضا کې دى .

**دجمهور دلايل**: ۱- دحضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه مشهور حديث کوم کې چې به هغه فرمايل چې مونږ شام ته لاړو ، هلته بيت الخلا قبلې طرفته جوړې شوې وې ، مونږ دهغه قبلې طرف نه يو اړخ ته کيناستو او مکمل اهتمام نه کيدو باندې مو دالله تعالى نه بخښنه هم اوغوخته (ترمذي شريف) دا واقعه دښار ده .

۲- دباب هغه متعدد احاديث کوم کې چې مطلقا " لاتستقبلوا القبلة ولا تستدبروها ببول ولا بغائط " ويلې شوي . په هغې کې دښار او دصحرا هيڅ فرق نه دى کړې شوې .

**جوابات** :

۱... داهل ظواهرو مستدل حديث دجابر رضي الله عنه داکثرو محدثينو په نزد ددوو ضعيف راوي محمد بن اسحاق او ثوبان بن صالح په وجه ضعيف دى ، نو دضعيف حديث سره دصحيح احاديث تقابل څنګه کيداې شي؟ همدارنګې په دې کې هغه احتمالات هم کيدې شي ، کوم چې به په وړاندې حديث ابن عمر رضي الله عنه کې بيانيږي.

۲.. دامام احمد رحمه الله ددليل جواب دادې چې دا يو جزئي واقعه ده چې په دې کې ډير احتمالات موجود دي ، مثلا (الف) حضرت ابن عمر رضي الله عنهما په ښه طريقې سره نه وې کتلې بلکې اتفاقي نظر به يې پرې غورځيدلې وي ځکه چې په داسې اوقاتو کې يو چاته په غور سره کتل دا ښه نشي ګڼړل کيدې خاص کر حضور صلى الله عليه وسلم ته کتل او بالکل کتونکې واقعې مکمل جائزه اخيستل مشکل دي .(ب) عين ممکنه ده چې استقبال قبله دحضور صلى الله عليه وسلم خصوصيت وې ديو بل چادپاره جائز نه وې : ځکه چې دحضور صلى الله عليه وسلم فضله پاکه وه او زمکې به راخکله يعنې تيروله به يې او

حال دا چې ممانعت د فضله ناپاک کېدو په بناء باندې دی .(ج) نهي د کراهت تنزیهي په بناء باندې محمول دی او دحضور صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ عمل بیان جواز لپاره وو.

۳... امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ دحضور اکرم صَلَّی اللّٰهُ عَلَیْهِ وَسَلَّمَ داستقبال قبله والا عمل نه استدلال کړی وو دکوم جواب چې اوس تیر شو . او دابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عمل لره یې هم پیش کړی وو . نو ددې جواب دادی :

(الف) ددې روایت په سند کې حسن بن ذکوان موجود دی کوم چې ډیر ضعیف راوي دی.

(ب) دمرفوع حدیث په مقابله کې موقوف روایتونه نه پیش کیږي ممکنه ده داد ابن عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپل اجتهاد وي همدارنګه دې کې چې دجواز لپاره کوم علت بیان کړی شوی دی ، په کولاو فضا کې هم موندلی کیږي ځکه چې هر ځای غرونه او غټ غټ بوټي رکاوټ موجود وي ، حال دا چې تاسو په کولاو فضا کې دجواز قائله نه یې.

## د جمهورو دمسلک وجوه ترجیح:

۱- دجمهورو دلائل خصوصا حدیث دابي ایوب رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اصح ما في الباب او کلي دي حال دا چې دفریق مخالف دلائل جزئي واقعاتو باندې مبني دي.

۲- دجمهور دلایل قولي احادیث او مدمقابل دلائل فعلي احادیث دي ، تعارض په وخت قولي احادیث لره ترجیح حاصلیږي.

۳- جمهور دلایل حرمت باندې دلالت کوي او دفریق مخالف دلایل اباحت باندې دلالت کوي ، ترجیح حرمت لره حاصلیږي.

۴- داستقبال او داستدبار دممانعت اصل وجه دکعبة الله بې حرمتي کېدل دي ، کوم چې په بنار او صحرا کولاو فضا هر ځای کې موجود وي لهذا دواړو کې فرق کول خلاف اصل شو.

دهمدې وجوه ترجیح په بناء باندې قاضي ابوبکرد ابن العربي رَحِمَهُ اللّٰهُ ، ابن القیم رَحِمَهُ اللّٰهُ حنبلي او ابن حزم دظاهري کېدو باوجود په دې مسئله کې دجمهور قول اختیار کړی دی.

**دویمه مسئله** : که بیت الخلاء ته دداخلیدو نه وړاندې دعا لوستل هیر شي نو دننه داخلیدو نه پس یې لوستلی شي او که نه ؟اقوال په لاندې دول دي :

۱- اما مالک رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد دشرمګاه ښکاره کولو نه مخکې اول په ژبې سره ویل جائز دي.

۲- دجمهور علماء او دائمه ثلاثه په نزد ژبې سره ویل ممنوع دي البته په زړه کې نیت کولی شي.

**دامام مالک** رَحِمَهُ اللّٰهُ **دلیل**: حدیث دانس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ظاهري الفاظ " اذا دخل الخلاء " یعنې لفظ دخول دی.

**دجمهورو جواب** : دلفظ دخول معنی اراده د دخول ده نه دننه داخلیدل ځکه چې :

۱- دبخاري شریف دیو روایت الفاظ دادي "اذا اراد أن یدخل".

۲- فعل ویل او دفعل کولو اراده مراد اخیستل دعربو په کلام کې مستعمل دی : قال الله (اذا قمتم الی الصلوة) ای أردتم القیام للصلاة.

## ﴿بَابُ مَا جَاء فِي البَولِ قَائِمًا﴾

## باب دې په بیان د هغه حدیثونو کې چې په ولاړه د بولو کولو په باره کې راغلي دي :

**{۷۹} عن عائشة رضي الله عنها قالت من حدثكم أن رسول الله صلى الله عليه وسلم بال قائما فلا تصدقوه ما كان يبول إلا جالسا رواه الخمسة الا ابا داود و اسناده حسن** (۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دی دي ویلي دي چې که څوک تاسي ته حدیث بیان کړي چې نبي علیه السلام په ولاړه باندي بولي کړي دي د هغه تصدیق مه کوئ نبي علیه السلام بولي نه دي کړي مگر په ناسته یې کړي .ددي حدیث روایت خمسه ؤ کړي دي مگر ابوداؤد نه دي کړي . او اسناد یې حسن دي.

**{۸۰} وعن حذيفة رضي الله عنه قال أتى النبي صلى الله عليه وسلم سباطة قوم فبال قائما ثم دعا بماء فجئته بماء فتوضأ رواه الجماعة** .(۲)

**ترجمه** : د حضرت حذیفه رضي الله عنه نه روایت دی ده ویلي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم د یو قوم ډیران ته راغي په ولاړه یې بولي وکړي بیا یې اوبه وغوښتې ما ورته اوبه راوړي نو اودس یې وکړ. د دي حدیث روایت جماعت کړي دی.

**{۸۱} وعن عمر رضي الله عنه قال ما بلت قائما منذ أسلمت رواه البزار وقال الهيثمي رجاله ثقات** .(۳)

**ترجمه** :د حضرت عمر رضي الله عنه نه روایت دی ده ویلي دي د کوم وخت نه چې مې اسلام راوړي په ولاړه مې بولي نه دي کړي د دي حدیث روایت البزار کړي او هیثمي ویلي دي چې ددي راویان ثقه دي.

---

(۱) ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صــ ۹ باب النهي عن البول قائمًا ، نسائي كتاب الطهارة ج۱ صــ ۱۱ باب البول في البيت جالسًا، ابن ماجة ابواب الطهارة صــ ۲۵ باب في البول قاعدا ، مسند احمد ج۶ صــ ۱۹۲.

(۲) بخاري كتاب الوضوء ج۱ صــ ۳۵ باب البول قائمًا وقاعدًا.

(۳) كشف الاستار عن زوائد البزار ج۱ صــ ۱۳۰ رقم الحديث ۲۴۴ ، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ صــ ۲۰۶ باب البول قائمًا.

## په دواړو حدیثونو کې دفع دتعارض :

دباب حدیث عائشه رضي الله عنها کې مطلقا په ولاړه دوړو بولو دکولو نفي ده حالانکه دحدیث حذیفه کې په ولاړه دبولو کولو ثبوت دی ؟تطبیق به یي څه داسي وي چې حضرت عائشه رضي الله عنها دخپل علم مطابق دکور عام معمول بیانوي او عادتا په ولاړه دبولو کولو نفي کوي، او حضرت حذیفه رضي الله عنه دیو سفر جزئي واقعه بیانوي.

## مسئلة الباب : په ولاړه دوړو بولو کولو حکم !

۱- حنابله او د مالکیه په نزد په یو قید سره بول قائما بغیر دڅه کراهت نه جائز دی هغه دا چې دمتیاز و څاڅکو درالوتلو او دکشف عورت ویره نه وي که ویره وي نو ددوي په نزد بول قائما جائز نه دي .بعضي حضراتو دامام احمد رحمه الله مذهب مطلقا جواز لیکلی دی هغه صحیح نه دی .

۲- حنفیه رحمه الله او شوافع رحمه الله او دجمهورو په نزد بول قائما مطلقا مکروه دي الا بعذر.

**دحنابلو او دمالکیو دلیل** : حدیث دحذیفه رضي الله عنه دی .

## دجمهور جواب:

۱. دبول قائما جواز اول وو اوس منسوخ شوي دی .۲.نهي په کراهت تنزیهي او دحضور صلی الله علیه وسلم عمل بیان جواز باندې محمول دی .۳.دحضور صلی الله علیه وسلم عمل عذر باندې محمول دی مثلا(الف) دزنګون درد کولو دوجې نه په دغه ځاي کې کیناستل مشکل وو .(ب) ځاي دکیناستو قابل نه وو . (ج) دمتیازو څاڅکي درالوتو ویره وه .(الدر المنضود باختصار :۱/۱۱۹)

# ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي البَوْلِ المُنْقَطِعِ﴾

## باب دې په بیان دهغه اوبو کې چې جمع کړې شوي وي

{۸۲} عَن بَكرِ بنِ مَاعِزٍ قَالَ سَمِعتُ عَبدَ اللهِ بنَ يَزِيدَ رضي الله عنه يُحَدِّثُ عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ لَا يُنقَعُ بَولٌ فِي طَستٍ فِي البَيتِ فَإِنَّ المَلَائِكَةَ لَا تَدخُلُ بَيتًا فِيهِ بَولٌ مُنتَقَعٌ وَلَا تَبُولَنَّ فِي مُغتَسَلِكَ

رواه الطبراني في الاوسط وَقَالَ الهيثمي اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : د بکر بن ماعز نه روایت دی ده ویلي دي چې ما د عبدالله بن یزید نه اوریدلي چې د نبي علیه السلام نه یې حدیث بیانولو چې نبي علیه السلام فرمائلي دي د کور په لوخي کې دي بولي جمع نه کړي شي

---

(۱) مجمع الزوائد کتاب الطهارة ج۱ صـ ۲۰۴ باب ما نهي عن التخلي فيه نقلا عن الطبراني .

بي شکه چې هغه کور ته ملائکې نه ننوځي کوم کور کې چې جمع کړي شوي بولي وي او نه په خپله غسلخانه کې هم بولي مه کوه ، د دي حديث روايت په اوسط طبراني کې کړي دي او هيثمي ويلي دي اسناد يې حسن دي

{۸۳} وعن أُمَيمَة بِنتِ رُقَيقَة عَن أُمِّها قَالَت كَانَ لِلنَّبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم قَدَحٌ مِن عِيدَانٍ (ا) تَحتَ سَرِيرِهِ كَانَ يَبُولُ فِيهِ بِاللَّيلِ رواه ابوداود والنسائي وابن حبان والحاكم واسناده ليس بالقوي .(۱)

**ترجمه** : د أميمه بنت رُقيقه نه روايت دي د خپلي مور نه روايت کړي دي ويلي دي چې د نبي عليه السلام د پاره د لرګي نه جوړ شوي لوخي ؤ او د کټ لاندي به ورته ايښي ؤ چې هغه صلى الله عليه وسلم به پکې د شپې بولي کولي ، د دي حديث روايت ابوداود ، نسائي ، ابن حبان او حاکم کړي دي او اسناد يې قوي نه دي

**ترجمة الباب نه غرض** : د مصنف غرض د دې باب نه بول في الاناء لره ثابتول دي ممکنه ده چې چاته به دا شبه وي چې په لوخي کې بولې کول صحيح نه دي ، ليکن د ضرورت او د عذر احکام جدا وي . لهذا ضرورةً شرعا دي لره جائز او ګرځولې شو.

**په دوو حديثونو کې دفع دتعارض** :په اولني حديث کې هغه لوخي چې بولي په کې کړې شوي وي د نه ايخودلو حکم دي حال دا چې په دويم حديث کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم عمل د دې په اباحت او جواز باندې دلالت کوي نو د دې تعارض لري کولو يو څو توجيهات کړې شوي دي :

۱. تر دير وخت پورې نجاست او ګندګي په کور کې د ساتلو ممانعت دې که شپې بولي او کړي او سحر دي لره او غورزوي نو دا په ممانعت کې داخل نه دي .

۲. د خاص عذر په وخت د دې اجازت دي په عامو حالاتو کې ممنوع دي .

۳. د انبياء کرام عليهم السلام فضلات پاک وي لهذا ممکنه ده چې دا د حضور صلى الله عليه وسلم خصوصيت وي

## ﴿باب موجبات الغسل﴾

## د غسل د واجبوونکو شيانو باب :

{۸۴} عن علي رضي الله عنه قَالَ كُنتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَسَأَلتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم فَقَالَ فِي المَذِيِّ الوُضُوءُ وَفِي المَنِيِّ الغُسلُ رواه احمد وابن ماجه والترمذي وصححه .(۲)

---

(۱) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ ص ۵ باب في الرجل يبول ليلاً ، نسائي كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۴ باب البول في الاناء .

(۲) ترمذي ابواب الطهارت ج۱ ص۳۱ باب ماجاء في المني والمذي، ابن ماجة ابواب الطهارة ص۳۹ باب الوضوء من المذي، مسند احمد ج۱ ص ۸۷

**ترجمه** : د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې ده ويلي دي چې زه يو سړې وم چې ډيره مذي به راته تلله نو ما د نبي عَلَيْهِ السَّلَام نه پوښتنه وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائيل چې په مذي کې اودس او په مني کې غسل دي د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ . ابن ماجه او ترمذي کړي دي او ترمذي صحيح ګڼړلي دي

{۸۵}عن ابي سعيد الخدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انّه قَالَ اِنَّمَا المَاء مِنَ المَاء رواه مسلم.(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابوسيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايلي دي چې اوبه د اوبه نه دي يعني د مني نه غسل دي مقصد دا دي چې د مني په خروج سره غسل واجب دي د دي حديث روايت مسلم کړي دي

{۸۶} و عن عُتبَانَ بنِ مَالِكِ الانصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال قُلتُ يا نبي الله اِنِّي كُنتُ مَعَ اَهلِي فَلَمَّا سَمِعتُ صَوتَكَ اَقلَعتُ فَاغتَسَلتُ فَقَالَ رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المَاء مِنَ المَاء رواه احمد و قال الهيثمي اسناده حسن.(۲)

**ترجمه** : د حضرت عتبان بن مالک الانصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې ده ويلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته عرض وکړو چې اي دالله رسوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ زه د خپل اهل سره وم خو کله مې چې ستاسې اواز واوريد نو جدا شوم ترې او غسل مې وکړ نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې اوبه د اوبو نه دي ، يعني د مني د وجهې نه غسل واجب دي .) د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ کړي دي او هيثمي ويلي دي چې اسناد يې حسن دي.

{۸۷} و عن ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا جَلَسَ بَينَ شُعَبِهَا الاَربَعِ ثُمَّ جَهَدَهَا فَقَد وَجَبَ الغُسلُ رواه الشيخان و زاد مسلم و احمد وَاِن لَم يُنزِلُ .(۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام فرمايلي دي چې کله يو سړي کيني د څلورو څانګو ترمينځ بيا خپل عمل په پوره کوشش سره سرته ورسوي يعني جماع وکړي نو غسل واجب شو د دي حديث روايت شيخينو کړي دي او مسلم رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ د وان لم ينزل لفظ زيات

---

(۱) مسلم كتاب الحيض ج۱ صــ ۱۵۵ باب بيان ان الجماع .....الخ .

(۲) مسند احمد ج ۲صــ ۳۴۲ ، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ صــ ۲۶۴ باب في قوله الماء من الماء .

(۳)بخاري كتاب الغسل ج۱ صــ ۴۳ باب اذا التقى الختانان ....الخ ، مسلم كتاب الحيض ج۱صــ ۱۵۶ باب بيان ان الجماع ....الخ ، مسند احمد ج۲صــ ۳۴۷ .

کړي دي

شعب اربع نه مراد دواړه خپې او دواړه لاسونه یا دواړه خپې دواړه ورنونه دي .

{٨٨} و عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدَ بَيْنَ شُعَبِهَا الْأَرْبَعِ ثُمَّ مَسَّ الْخِتَانُ الْخِتَانَ فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ رواه احمد و مسلم والترمذي و صححه .(١)

**ترجمه** : او د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روایت دي وبلي یې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي کله چې سړي د ښځې د څلورو څانګونو ترمنځ کښېني بیا شرمګاه د شرمګاه سره ملاو کړي نو غسل واجب شو د دي حدیث روایت احمد رحمه الله .مسلم رحمه الله او ترمذي کړي دي او ترمذي صحیح ګڼړلي دي

{٨٩} و عن عبدِ الرَّحمٰنِ بنِ عَائِذٍ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ مَعَاذَ بنَ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَمَّا يوجِبُ الغُسْلَ مِنَ الْجِمَاعِ وَ عَنِ الصَّلَاةِ فِي الثَّوبِ الوَاحِدِ وَ عَن مَا يحِلُّ مِنَ الحَائِضِ فَقَالَ مَعَاذٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سَأَلتُ رَسولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ذٰلِكَ فَقَالَ إِذَا جَاوَزَ الخِتَانُ الخِتَانَ فَقَدْ وَجَبَ الغُسْلُ وَ أَمَّا الصَّلَاةُ فِي الثَّوبِ الوَاحِدِ فَتَوَشَّحْ بِه وَ أَمَّا مَا يحِلُّ مِنَ الحَائِضِ فَإِنَّه يحِلُّ مِنْها مَا فَوقَ الإِزَارِ وَاسْتِعْفَافُه عَنْ ذٰلِكَ أَفْضَلُ رواه الطبراني في الكبير و قال الهيثمي اسناده هذا حسن .(٢)

**ترجمه** : د عبدالرحمن بن عائذ نه روایت دي ده ویلي چې یو سړي د معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړه چې په جماع کې د څه شي نه غسل واجبیږي او په یوه جامه کې یې د مانځه په باره کې پوښتنه او د حائضې ښځې نه څومره نفع اخیستل حلال دي نو حضرت معاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما په دي باره کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه کړیده نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمایل چې کله شرمګاه خای د شرمګاه د خای نه تجاوز وکړي نو غسل واجبیږي او هر چې په یوه کپړه کې مونځ دي هغه په اوږو واچوه او خوره یې کړه او د حیض والا ښځې نه څه شي حلال دي بې شکه د دي نه مافوق الازار فائده اخیستل جائز دي او ځان ساتل تري افضل دي . د دي حدیث روایت په کبیر کې طبراني کړي دي او هیثمي ویلي دي چې اسناد د دي حدیث حسن دي .

{٩٠} و عن أُبَيِّ بنِ كَعبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ الفُتْيَا الَّتِي كَانُوا يقُولُونَ الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةٌ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ بِهَا فِي أَوَّلِ الْإِسْلَامِ ثُمَّ أَمَرَنَا بِالْاِغْتِسَالِ . رواه احمد و آخرون و صححه

---

(١) مسلم كتاب الحيض ج١ صـ ١٥۶ باب بيان الجماع ...الخ ، ترمذي ابواب الطهارات ج١ صـ ٣٠ باب ماجاء اذا التقى الختانان الخ ، مسند احمد ج ۶ صـ ۴٧ و ج ۶ صـ ١١٢.

(٢) المعجم الكبير ج ٢٠ صـ ١٠٠ رقم ١٩٤، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج١ صـ ٢۶٧ باب في قوله الماء من الماء .

الترمذي .(۱)

**ترجمه** : د حضرت أبي بن كعب رضي الله عنه نه روايت دي بې شكه هغه فتوى كاني چې خلكو ويل چې الماء من الماء رخصت و رسول الله صلى الله عليه وسلم د اسلام په شروع كې دي ته رخصت وركړي ؤ بيا يې موږ نه د غسل كولوحكم وكړو د دي حديث روايت احمد رحمه الله او آخرونو كړي دي او ترمذي صحيح ګرځلي دي

## د ښځو احتلام او د غسل حكمونه :

{۹۱} وعن أمِّ سلمة رضي الله عنها قالَتْ جاءَتْ أمُّ سُلَيمٍ امْرَأة أبي طلحة رضي الله عنها إلى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فقالت يا رَسُولَ الله إنَّ الله لا يسْتَحْيي مِنَ الحَقِّ هل عَلَى المَرْأة مِنْ غُسْلٍ إذَا هِيَ احْتَلَمَتْ فَقَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم نَعَمْ إذا رَأتِ المَاء رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** :دحضرت ام سلمى رضي الله عنها نه روايت دي دي ويلي دي چې د ابو طلحه ښځه ام سُليم رضي الله عنها رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغله نو وي ويل چې اي دالله رسوله بې شكه چې الله د حق نه حيا نه كوي كله چې د ښځي احتلام وشي آيا په دي غسل شته نو نبي عليه السلام وفرمايل چې هو كله چې اوبه ( مني ) وګوري د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

{۹۲} وعن خولة بِنْتِ حَكِيمٍ رضي الله عنها أنَّها سَألَتِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم عَنِ المَرْأة تَرَي فِي مَنَامِها مَا يرى الرَّجُلُ فَقَالَ لَيسَ عَلَيها غُسْلٌ . حَتَّى تُنْزِلَ كَمَا أنَّ الرَّجُلَ لَيسَ عَلَيها غُسْلٌ حَتَّى يُنْزِلَ رواه احمد وابن ماجه والنسائي وابن ابي شيبة و اسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : د خوله بنت حكيم رضي الله عنها نه روايت دي دي د يوي ښځي په باره كې پوښتنه وكړه چې ښځه په خوب كې هغه څه وګوري كوم څه چې سړيويني نو نبي عليه السلام وفرمايل چې څو پوري يې انزال نه وي شوي غسل پري نشته لكه څنګه چې په سړي غسل نشته ترڅو پوري چې يې انزال نه وي شوي . د دي حديث روايت احمد رحمه الله ابن ماجه. نسائي او ابن ابي شيبه كړي دي او اسناد يې صحيح دي

---

(۱) ترمذي ابواب الطهارات ج۱ ص ۳۱ باب ماجاء ان الماء من الماء ، مسند احمد ج ۵ ص ۱۱۵.

(۲) بخاري كتاب الغسل ج۱ص ۷۲ باب اذا احتلمت المرأة ، مسلم كتاب الحيض ج۱ ص ۱۴۶ باب وجوب الغسل على المرأة .....الخ .

(۳) مسند احمد ج ۶ ص ۴۰۹ ،ابن ماجة ابواب الطهارة ص ۴۵ باب في المرأة ترى في منامها...الخ ، نسائي كتاب الطهارة ج۱ ص ۴۲ باب غسل المرأة ترى في منامها...الخ مصنف ابن ابي شيبة كتاب الطهارات ج۱ ص ۸۰ باب في المرأة ترى في منامها.

{٩٣} وعن عائشة رضي الله عنها أن فاطمة بنت أبي حبيش كانت تستحاض فسألت النبي صلى الله عليه وسلم فقال: ذلك عرق وليست بالحيضة فإذا أقبلت الحيضة فدعي الصلاة وإذا أدبرت فاغتسلي و صلي رواه البخاري (١)

**ترجمه** : او د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې په تحقيق فاطمه بنت ابي حبيش د استحاض په بيمارۍ اخته وه هغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه نو نبي عليه السلام وفرمايل چې دا يو رګ دي او حيض نه دي کله چې حيض راشي نو مونځ پريږده او کله چې حيض تير شي نو غسل وکړه او مونځ وکړه د دي حديث روايت بخاري کړي دي

## څلور فقهي مسائل

**اولنۍ مسئله** : د احتلام د موجب غسل کيدو لپاره وتل د مني ضروري دي که سړى وي يا ښځه.

**دويمه مسئله** : انقطاع حيض باندې د ښځې ذمه غسل فرض دی دا دواړه مسئلې متفق عليه دي.

**دريمه مسئله** : په جماع کې دخروج مني (انزال) نه غسل فرض دی دا متفقه حکم دی ليکن اکسال (ادخال حشفه بغير د انزال) نه غسل فرض دي يا نه؟ په دې مسئله کې دوه قولونه دي:

١- دداود ظاهري په نزد اکسال سره غسل لازم نه دی. ٢- جمهور علماء سلفا وخلفا غسل لره لازم ګرځوي.

**دداود ظاهري دليل**: حديث دابوسعيد خدري رضي الله عنه "الماء من الماء" يعنې دغسل وجوب دخروج مني نه دي.

**دجمهور دليل** : مشهور حديث "اذا جاوز الختان الختان فقد وجب الغسل" او دباب حديث نمبر ٨٨ ، ٨٩.

### دواقعې بيان او د داؤد ظاهري جواب :

په صحابه کرامو کې د انصارو يو جماعت داکسال نه دعدم وجوب دغسل قائل وو ، دهغو په نظر کې "الماء من الماء" والا حديث وو ، او دمهاجرينو يو جماعت په نظر کې "اذا التقى الختانان .. الخ" او "اذا جاوز الختان الختان ..... الخ وو څکه هغوي دوجوب غسل قائل وو يوه ورځ دحضرت عمر رضي الله عنه په مجلس کې بحث شروع وو او دې دوداړو جماعتونو په دې باندې اختلاف

---

(١) البخاري كتاب الوضوء ج١ صـ ٣٦ باب غسل الدم .

کولو . کوم باندې چې حضرت عمر رضي الله عنه د اختلاف ختميدلو دپاره په دې مسئله باندې امهات المومنين بالخصوص حضرت عائشه رضي الله عنها ته يو کس اوليږلو او دهغې نه يې دمسئلې تحقيق وغوخت حضرت عائشي رضي الله عنها وفرمايل " قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَعَدَ بَيْنَ شِعَبِهَا الأَرْبَعِ ثُمَّ مَسَّ الْخِتَانُ الْخِتَانَ فَقَدْ وَجَبَ الْغُسْلُ " چنانچې حضرت عمر رضي الله عنه ددې حديث لاندې اکسال سره دوجوب غسل فيصله صادره کړه دحضرت عمر رضي الله عنه دفيصلې نه پس اکسال سره دوجوب غسل باندې اجماع شوي وه بغير دداود ظاهري او دده داختلاف هيڅ پرواه نشته .

باقي دجمهور دطرف نه "الماء من الماء" ته ډېر شميره جوابات ورکړل شوي دي ، مثلا :

١..... دا حديث اوس منسوخ دی دوجې دحديث دابي بن کعب: " الْمَاءُ مِنَ الْمَاءِ رُخْصَةٌ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ بِهَا فِي أَوَّلِ الإِسْلَامِ ثُمَّ أَمَرَنَا بِالإِغْتِسَالِ " .

٢.... ابن عباس رضي الله عنه په وينا دا حکم صرف داحتلام لپاره دی او اوس هم باقي دی .

٣... مباشرت في مادون الفرج باندې محمول دی کوم کې چې بالاتفاق انزال شرط دی .

**څلورمه مسئله**: په حالت دحيض کې دښځې نه داستمتاع حد څه دی ؟

ددې درې صورتونه دي ، دکوم حکم چې په لاندې ډول دی :

١. مباشرت فاحشه يعنې جماع ، دا بالاتفاق حرام دي .

٢. دنوم نه بره او دګونډو نه لاندې بالاتفاق جائز دي .

٣. دنوم او ګونډو په مينځ کې مختلف فيه ده امام احمد رحمه الله او محمد رحمه الله په نزد جائز دي او دائمه ثلاثه و ابويوسف رحمه الله په نزد ناجائز .

**امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ دليل**: حديث " اصنعوا کل شئ الا النکاح " .

**دجمهورو دليل**: حديث معاذ رضي الله عنه " يحل منها مافوق الازار " او دامام احمد رحمه الله او دامام محمد رحمه الله ددليل جواب دادې چې په حديث کې دجماع نه مراد دواعي دجماع ده لهذا جماع او دواعي دواړه حرام شو .

# ﴿ باب صِفَة الْغُسْلِ ﴾

## باب دې په بيان د غسل د صفت په باره کې :

{۹۴} عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا اغْتَسَلَ مِنَ الْجَنَابَةِ يَبْدَأُ فَيَغْسِلُ يَدَيْهِ ثُمَّ يُفْرِغُ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ فَيَغْسِلُ فَرْجَهُ ثُمَّ يَتَوَضَّأُ وُضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ ثُمَّ يَأْخُذُ الْمَاءَ فَيُدْخِلُ أَصَابِعَهُ فِي أُصُولِ الشَّعْرِ حَتَّى إِذَا رَأَى أَنْ قَدِ اسْتَبْرَأَ حَفَنَ عَلَى رَأْسِهِ ثَلَاثَ حَفَنَاتٍ ثُمَّ أَفَاضَ عَلَى سَائِرِ جَسَدِهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجْلَيْهِ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دې ويلې دي چې کله به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د جنابت نه غسل کاوه نو د لاسونو د وينځلو نه به يې شروع کوله بيا به يې د خپل ښي لاس نه په چپ لاس اوبه اړولې استنجاء به يې کوله بيا به يې د لمانځه د اوداسه په شان اودس کاوه بيا به يې اوبه راواخيستې نو ګوتې مبارکې به يې د ويختو په بيخونو کې ننويستې تردې پورې چې اوبه يې ليده او پوه به شو چې د ويښتو بيخونه لامده شو په سر مبارک به يې درې لپې اوبه واړه ولې بيا به يې په ټول مبارک بدن اوبه اوبيولې بيا به يې مبارکې خپې ووينځلې . دا حديث شيخينو روايت کړي دي .

{۹۵} وعن ميمونة رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ وَضَعْتُ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ غُسْلًا فَسَتَرْتُهُ بِثَوْبٍ وَصَبَّ عَلَى يَدَيْهِ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ صَبَّ بِيَمِينِهِ عَلَى شِمَالِهِ فَغَسَلَ فَرْجَهُ فَضَرَبَ بِيَدِهِ الْأَرْضَ فَمَسَحَهَا ثُمَّ غَسَلَهَا فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ وَغَسَلَ وَجْهَهُ وَذِرَاعَيْهِ ثُمَّ صَبَّ عَلَى رَأْسِهِ وَأَفَاضَ عَلَى جَسَدِهِ ثُمَّ تَنَحَّى فَغَسَلَ قَدَمَيْهِ فَنَاوَلْتُهُ ثَوْبًا فَلَمْ يَأْخُذْهُ فَانْطَلَقَ وَهُوَ يَنْفُضُ يَدَيْهِ رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** : د حضرت ميمونه رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دې دې ويلې دي چې ما نبي عَلَيهِ السَّلَام ته د غسل د پاره اوبه کېښودې او په يوه کپړه او جامه مې ورته پرده وکړه او په دواړو لاسونه يې اوبه واړه ولې نو وې وينځل بيا يې د ښي لاس نه چپ لاس باندې اوبه واړه ولې نو استنجايې وکړه نو بيا يې ځمکه په لاس ووهله او په ځمکه پورې يې ومږه بيا يې لاس ووينځه نو مضمضه يې وکړه يعنې خولې ته يې اوبه ور جولې او پوزو ته يې اوبه واچولې او مبارک مخ او لاسونه يې ووينځل بيا يې په مبارک سر اوبه واړولې او په ټول مبارک بدن يې اوبيولې بيا يو طرفته شو او مبارک قدمونه يې ووينځل نو ماورته کپړه او څه جامه ورکړه نو

(۱) البخاري كتاب الغسل ج۱صـــ ۳۹ باب الوضوء قبل الغسل،مسلم كتاب الحيض ج۱صـــ ۱۴۷ باب صفة غسل الجنابة .

(۲) البخاري كتاب الغسل ج ۱صـــ ۴۱ باب نفض اليد ين من غسل الجنابة ، مسلم كتاب الحيض ج۱صـــ ۱۴۷ باب صفة غسل الجنابة .

وايي نخـتله نو روان شو په داسي حال کې چې د مبارکو لاسونو نه يې اوبه څاڅيدلې د دې حديث روايت شيخينو کړيدې

{۹۶} و عن أمِّ سَلَمَة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قُلْتُ يَارَسُولَ الله إِنِّي امْرَأَةٌ أَشُدُّ ضَفْرَ رَأْسِي أَفَأَنْقُضُهُ لِغُسْلِ الْجَنَابَةِ فَقَالَ لَا إِنَّمَا يَكْفِيكِ أَن تَحْثِي عَلَى رَأْسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ ثُمَّ تُفِيضِينَ عَلَيْكِ الْمَاءَ فَتَطْهُرِينَ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دې دې ويلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ووئيل چې اې د الله رسوله زه يو داسي ښځه يم چې د خپل سر ويښته مضبوطې سره کوڅۍ کوم آيا زه هغه وسپړم د جنابت د غسل لپاره نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمايل چې نه بې شکه کافي او بس ده تا لره چې واړوې او توې کړې په خپل سر باندې درې لپې اوبه او بيا وبيوې په خپل ځان باندې اوبه نو پاکه به شې د دې حديث روايت مسلم کړي دې

{۹۷} و عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهَا وَكَانَتْ حَائِضًا انْقُضِي شَعْرَكِ وَاغْتَسِلِي رواه ابن ماجه و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دې چې ديته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په داسي حال کې چې دا حائضه وه خپل ويښته وسپړه او غسل وکړه . د دې حديث روايت ابن ماجه کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۹۸} و عن عُبَيْدِ بن عُمَيْرٍ قَالَ بَلَغَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ عَبْدَ الله بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَأْمُرُ النِّسَاءَ إِذَا اغْتَسَلْنَ أَنْ يَنْقُضْنَ رُؤُسَهُنَّ فَقَالَتْ يَا عَجَبًا لِابْنِ عُمَر هٰذَا يَأْمُرُ النِّسَاءَ اذَا اغْتَسَلْنَ أَنْ يَنْقُضْنَ رُؤُسَهُنَّ أَفَلَا يَأْمُرُهُنَّ أَنْ يَحْلِقْنَ رُؤُسَهُنَّ لَقَدْ كُنْتُ أَغْتَسِلُ أَنَا وَرَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ إِنَاءٍ وَاحِدٍ وَمَا أَزِيدُ عَلَى أَنْ أُفْرِغَ عَلَى رَأْسِي ثَلَاثَ إِفْرَاغَاتٍ رواه مسلم .(۳)

**ترجمه** : د حضرت عُبيد بن عمير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې ده ويلي چې حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه خبر ورسيد چې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ښځو ته امر کوي چې خپل سرونه د غسل په وخت کې وسپړي نو هغې وفرمايل چې آيا ښځو ته په دې امر نه کوي چې ښځې دې سرونه وخريي بې شکه ما او رسول الله

---

(۱) مسلم كتاب الحيض ج۱ صـــ ۱۴۹ باب حكم ضفائر المغتسلة .

(۲) ابن ماجة ابواب الطهارة ج۱ صـــ ۴۷ باب في الحائض كيف تغتسل .

(۳) مسلم كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۵۰ باب حكم ضفائر المغتسلة .

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د يوه لوښي نه غسل کولو حال دا چې ما په سر باندي د دريو لپوو اړولو نه زياتوالي نه دي کړي د دي حديث روايت مسلم کړي دي

{۹۹} وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَتَوَضَّأُ بَعْدَ الْغُسْلِ رواه الخمسة و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا نه روايت دي دي وېلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د غسل نه روسته اودس نه دي کړي د دي حديث روايت الخمسه ؤ کړي دي او اسناد يې صحيح دي

{۱۰۰} وعن أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَطُوفُ عَلَى نِسَائِهِ بِغُسْلٍ وَاحِدٍ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : د حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام به په خپلو بيبيانو باندي په يوه غسل سره طواف او چکر لګاوه يعني د دي چکر او طواف په اخر کې به يې يو غسل کاوه

{۱۰۱} وَعَنْ أَبِي رَافِعٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ مَوْلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَافَ عَلَى نِسَائِهِ فِي لَيْلَةٍ فَاغْتَسَلَ عِنْدَ كُلِّ امْرَأَةٍ مِنْهُنَّ غُسْلًا فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ لَوِ اغْتَسَلْتَ غُسْلًا وَاحِدًا فَقَالَ هٰذَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ رواه احمد و آخرون و اسناده حسن .(۳)

**ترجمه** : د ابي رافع رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ چې د رسول اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ازاد کړي شوي غلام وو وېلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په يوه شپه کې په مطهرو ازواجو باندي ګردش او دوره کوله د بيبيانو د هري يوي بي بي سره به يې غسل کاوه نو ما ورته ووېل چې اي دالله رسوله که يو غسل دي کړي وي نو وي فرمايل چې دا اطهر او اطيب دي. د دي حديث روايت ابن احمد او اخرون کړي دي او اسناد يې حسن دي.

## د غسل سره متعلق اته مسائل

**اولني مسئله** : دغسل فرائض څه دي؟ په دې سلسله کې دري اقواله دي :

۱... دحنفيه په نزد دغسل فرائض دري دي ؛ (۱) کلي کول .(۲) پوزه کې اوبه اچول .(۳) پوره بدن باندې اوبه بيول.

۲... دامام شافعي او داحمد رَحِمَهُمَا اللّٰهُ په نزد ددريو فرائضو نه علاوه نيت کول هم فرض دي.

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ صــ ۳۳ باب الوضوء بعد الغسل ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱صــ ۳۰ باب في الوضوء بعد الغسل ، نسائي کتاب الغسل والتيمم ج۱ صــ ۷۳ باب ترک الوضوء بعد الغسل ، ابن ماجة ابواب الطهارة صــ ۴۳ باب في الوضوء بعد الغسل ، مسند احمد ج ۶ صــ ۶۸ .

(۲) مسلم کتاب الغسل ج۱ صــ ۱۴۴ باب جواز نوم الجنب .

(۳) مسند احمد ج ۶ صــ ۳۹۱ .

۳.. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد دمذکوره څلورو فرائضو نه علاوه دلک (مږل) هم فرض دي.

**دویمه مسئله** : دغسل په شروع کې داودس حکم :

دجمهورو په نزد دا اودس سنت او دداود ظاهري په نزد واجب دی.

**دریمه مسئله** : دغسل په شروع کې په اودس کې خپې کله وینځل پکار دي ؟

**دفع تعارض** : په دې سلسله کې په باب کې دوه حدیثونه وارد دي یو حدیث دعائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کوم کې چې " **وضوئه للصلاة** " دلفظ نه معلومیږي چې خپې هم دې سره سره وینځل پکار دي او دویم حدیث دمیمونه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کوم کې چې "**ثم تنحى فغسل قدميه** " دجملې نه معلومیږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وروسته بیا خپې اوینځلې ، اوس دتعارض ددفع کولو په سلسله کې دفقهاء اقوال او دلیلونه په لاندې دول دي.

(۱) امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد داودس په وخت کې خپې وینځل پکار دي دا حضرات حدیث دعائشي رضي الله عنها "**ثم یتوضأ وضوئه للصلاة**" لره ترجیح ورکوي.

(۲) داحنافو په نزد ددواړو حدیثونو مفهوم باندې بطور تطبیق عمل افضل دی هغه داسي که په دې ځاي باندې اوبه جمع کیږي نو پس دفراغت نه په یو اوچت ځاي باندې دې اودریږي او خپې دې اوینځي ورنه په وخت داودس کې دووینځي.

**څلورمه مسئله** : دغسل نه مخکې په اودس کې دسر دمسح حکم :

داکثر روایاتو پیش نظر ائمه اربعه او جمهور دسر دمسح قائل دي لیکن که چا په وخت داودس مسح اونکړه نو په غسل کې پوره بدن باندې اوبه بیول کافي دي.

**پنځمه مسئله** : داودس نه پس دتولیه(دست پاک) حکم او دفع دتعارض:

دباب حدیث میمونة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا" **فناولته ثوبا فلم یأخذه** " نه معلومیږي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دتولیه په میلاویدو باندې هم دهغې استعمال اونکړو بلکې خپل مبارک لاسونه یې او څنډل او روان شو او حدیث دعائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کانت لرسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ **خرقة ینشف بها بعد الوضوء**.

او حدیث دمعاذ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " **کان لرسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نشافة ینشف بها غسالة وجهه** "مطابق د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پس دغسل او داودس نه د اعضاء وچه ولو لپاره یوه تولیه مخصوص وه ، د جمهورو په نزد تطبیق دادي چې دتولیه استعمال جائز او مباح دي (**کما في رحمة الأمة ص:۱٦**)

او په حدیث میمونه کې تولیه نه اخیستل بیان جواز باندې محمول دي یا د یخ والي دحاصلولو په غرض یې داسي وکړ.

**شپږمه مسئله** : په غسل کې دښځې مضفور (ترلې شوي ويختانو) حکم په دې سلسله کې اقوال په لاندې ډول دي :
(۱) امام احمد رحمه الله په نزد حيض او نفاس کې په غسل ددې کولاوول ضروري دي او په غسل جنابت کې ضروري نه دي .
(۲) دائمه ثلاثه په نزد فقط دويختانو ويخونو ته اوبه رسول او په خه طريقې سره لامده کول کافي دي .

**دامام احمد** رحمه الله **دليل** : حديث دعائشه رضي الله عنها (نمبر ۹۷) "**انقضي شعرک واغتسلي**" .

**دائمه ثلاثو دليل** :

حديث دام سلمه رضي الله عنها "**اِنَّمَا يَكْفِيكِ اَن تَحْثِي عَلَى رَاسِكِ ثَلَاثَ حَثَيَاتٍ**" او حديث دعائشه رضي الله عنها (نمبر ۹۸)
"**وَمَا اَزِيدُ عَلَى اَنْ اُفْرِغَ عَلَى رَاْسِي ثَلَاثَ اِفْرَاغَاتٍ**" کوم کې چې هغوي دابن عمر رضي الله عنه باندې په دې مسئله کې نکير هم کړې دی .

**دفع دتعارض** : دفريقينو دحديث په مينځ کې دتطبيق صورت دادې چې دامام محمد رحمه الله مستدل حديث عائشه رضي الله عنها او استحباب باندې او نورو حديثونو نره بيان جواز باندې محمول کړې شي چونکه ښځې ته د کمځۍ شوي سر په کولاوولو کې مشقت وي نو ځکه دهغوي په حق کې تخفيف اوکړې شو .

**اومه مسئله** : دغسل نه پس اودس بالاتفاق مستحب دې واجب نه دې .

**اتمه مسئله** : مابين الجماعين دغسل حکم

**دفع دتعارض** : يو ځل دجماع نه پس که دويم ځل قصد وي نو هغې لپاره غسل کول ضروري نه دي لکه څنګه چې دحضرت انس رضي الله عنه (نمبر ۱۰۰) کې مذکور دي ، هو مستحب دي لکه څرنګه چې دابورافع رضي الله عنه په حديث کې مذکور دي .

## ﴿بَابُ حُكْمِ الْجُنُبِ﴾

## باب دې په بيان دحکم د جنبي کې ،

(۱۰۲) عَن عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَت كَانَ النَّبِي صلى الله عليه وسلم اِذَا اَرَادَ اَن يَنَامَ وَهوَ جُنُبٌ غَسَلَ فَرجَه وَ

تَوَضَّأَ وُضُوءهُ لِلصَّلَاةِ رواه الجماعة .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دې دي ويلي دي چې کله به نبي عَلَيْهِ السَّلَام د جنابت په حالت کې د خوب اراده وفرمايله نو استنجاء به يې وکړه او د مانځه د اودس په شان به يې اودس وکړ. د دې حديث روايت جماعت کړي دي .

{۱۰۳} وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ يَارَسُولَ اللهِ أَيَرْقُدُ أَحَدُنَا وَهُوَ جُنُبٌ قَالَ نَعَمْ إِذَا تَوَضَّأَ رواه الجماعة .(۲)

**ترجمه** : د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې آيا زمونږ کوم کس د جنابت په حالت کې خوب کولې شي نبي عَلَيْهِ السَّلَام اوفرمايل چې هو کله چې اودس وکړي . د دې حديث روايت جماعت کړي دي .

{۱۰۴} وَعَنْ عَمَّارِ بنِ يَاسِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَخَّصَ لِلْجُنُبِ إِذَا أَرَادَ أَن يَأْكُلَ أَوْ يَشْرَبَ أَوْ يَنَامَ أَن يَتَوَضَّأَ وَضُوءَهُ لِلصَّلَاةِ رواه احمد والترمذي وصححه .(۳)

**ترجمه** : د حضرت عمار بن ياسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام هغه جنب ته چې د خوراک څښاک او خوب اراده وکړي رخصت ورکړې چې د مانځه د اودس په شان اودس وکړي ، د دې حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ او ترمذي کړي دي او صحيح يې ګڼرلي دي .

{۱۰۵} وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَت كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَرَادَ أَن يَنَامَ وَهُوَ جُنُبٌ تَوَضَّأَ وَإِذَا أَرَادَ أَن يَأْكُلَ أَوْ يَشْرَبَ قَالَت غَسَلَ يَدَيهِ ثُمَّ يَأْكُلُ أَوْ يَشْرَبُ رواه النسائي واسناده صحيح .(۴)

**ترجمه** : د ام المؤمنين حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دې دي ويلي دي کله به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د جنابت په حالت کې د اوده کيدو اراده وفرمايله نو اودس به يې وکړ او کله به يې چې

---

(۱) بخاري كتاب الغسل ج۱ صـــ ۴۳ باب الجنب يتوضاء .....الخ ، مسلم كتاب الحيض ج۱ صـــ ۱۴۴ باب جواز نوم الجنب ، ابــوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۲۹ باب الجنب يأكل ، ترمذي ابواب الطهارة ج۱ صـــ ۳۳.

(۲) بخاري كتاب الغسل ج۱ صـــ ۴۳ باب الجنب يتوضاء .....الخ ، مسلم كتاب الحيض ج۱صـــ ۱۴۴ باب جواز نوم الجنب ، ابــوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۲۹ باب الجنب يأكل ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـــ ۳۲ باب في الوضوء للجنب اذا اراد ان ينام ، نســائي كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۵۰ باب وضوء الجنب اذا اراد ان ينام ، ابن ماجة ابواب الطهارات صـــ ۷۴ باب من قال لا ينام الجنــب حتى يتوضاء .....الخ ، مسند احمد ج۱ صـــ ۱۷ .

(۳) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۲صـــ ۲۹ باب من قال الجنب يتوضاء ، مسند احمد ج ۴ صـــ ۳۲۰ .

(۴) نسائي كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۰۵ باب اقتصار الجنب على غسل يديه .....الخ .

د خوراک څښاک اراده وفرمایله نو ام المؤمنین فرمایلي دي چې مبارک لاسونه به یې ووینځل او بیا به یې خوراک څښاک کاوه. د دي حدیث روایت نسائي کړي او اسناد یې صحیح دي.

{۱۰۶} وَعَنها قَالَت أَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَن يَطعَمَ وَهُوَ جُنُبٌ غَسَلَ يَدَيهِ ثُمَّ يَطعَمُ رواه ابن خزيمة واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه**: د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روایت دی دي ویلي دي کله به چې نبي علیه السلام د جنابت په حالت کې د خوراک اراده وفرمایله نو لاسونه به یې ووینځل بیا به یې خوراک کاوه. د دي حدیث روایت ابن خزیمه کړي او اسناد یې صحیح دي.

{۱۰۷} وَعَن عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَدخُلُ المَلَائِكَةُ بَيتًا فِيهِ صُورَةٌ وَلَا كَلبٌ وَلَا جُنُبٌ رواه ابوداود والنسائي واسناده حسن.(۲)

**ترجمه**: د حضرت علي رضي الله عنه نه روایت دی ده ویلي دي چې هغه کورته ملائکې نه داخلیږي په کوم کورکې چې تصویرونه او سپي او جنب سړي وي. د دي حدیث روایت ابوداوٗد او نسائي کړي او اسناد یې حسن دي.

{۱۰۸} وَعَنهُ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُقرِئُنَا القُرآنَ مَالَم يَكُن جُنُبًا. رواه الخمسة وحسنه الترمذي وصححه ابن حبان وآخرون.(۳)

**ترجمه**: د حضرت علي رضي الله عنه نه روایت دي ده ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم مونږ ته د قرآن کریم تعلیم راکاوه ترڅو به چې جنب نه ؤ.

د دي حدیث روایت الخمسه ؤ کړي او ترمذي حسن ګڼرلي او ابن حبان صحیح ګڼرلي دي او نورو هم.

{۱۰۹} وَعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَا أُحِلُّ المَسجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا

---

(۱) صحیح ابن خزیمة ج۱ص ۱۰۹ رقم الحدیث ۲۱۸.
(۲) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ ص ۳۰ باب في الجنب یؤخر الغسل، نسائي کتاب الطهارة ج۱ص ۵۱ باب في الجنب اذا لم یتوضأ.
(۳) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ ص ۳۰ باب في الجنب یقرأ القرآن، ترمذي ابواب الطهارة ج۱ ص ۳۸ باب ماجاء في الرجل یقرأ القرآن ...الخ، نسائي کتاب الطهارة ج۱ ص ۵۲ باب حجب الجنب من قرأة القرآن، ابن ماجة ابواب الطهارة ص ۴۴ باب ماجاء في قراءة القرآن علی غیر طهارة، مسند احمد ج۱ص ۸۳، ابن حبان ج ۳ ص ۳۱ برقم ۷۹۸.

لِجُنُبٍ رواه ابوداود و آخرون و صححه ابن خزيمة .(١)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دې هغې ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي زه مسجد ته داخليدل د حائضي د پاره حلال نه گڼرم او نه د جنب كس دپاره د دې حديث روايت ابوداؤد او آخرونو كړيدي او ابن خزيمه صحيح ګڼرلي دي.

{١١٠} وَعَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَقِيَنِي رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا جُنُبٌ فَاَخَذَ بِيَدِي فَمَشَيْتُ مَعَهٗ حَتّٰى قَعَدَ فَانْسَلَلْتُ فَاَتَيْتُ الرَّحْلَ فَاغْتَسَلْتُ ثُمَّ جِئْتُ وَهُوَ قَاعِدٌ فَقَالَ اَيْنَ كُنْتَ يَا اَبَا هُرَيْرَةَ فَقُلْتُ لَهٗ فَقَالَ سُبْحَانَ اللهِ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا يَنْجُسُ رواه الشيخان .(٢)

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې هغه ويلي دي چې زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مخامخ شوم په داسي حال كې چې زه جنب وم نو زه يې د لاس نه ونيوم نو زه ورسره روان شوم تردي چې هغه كيناست نو زه خلاص او ازاد شوم نو راغلم بارته پس غسل مي وكړ بيا ورغلم او هغه ناست ؤ نو وي فرمايل چې اي ابا هريره چرته وي نو ما هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته حال بيان كړ نو وي ويل سبحان الله بي شكه مؤمن نه پليتيږي د دې حديث روايت شيخينو كړې دى.

## د جنابت متعلق مسائل

**اولنۍ مسئله**: په غسل جنابت كې بلاوجه تاخير مناسب نه دي ، او جنبي حكما ناپاک دی نه حقيقةً دې سره ناسته پاسته ،خوراک څښاک صحيح دي كما في حديث علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (نمبر ١٠٧) او حديث ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (نمبر ١١٠).

**دويمه مسئله** : د جنبي لپاره داوده كيدو نه مخكې غسل بالاتفاق ضروري نه دي ، داودس په باره كې اختلاف دې :

(١) داؤد ظاهري او دابن حبيب مالكي رَحِمَهُ اللهُ په نزد اودس واجب دې .(٢) جمهور علماء او دائمه اربعه رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد مستحب دي ، واجب نه دی.

**دفريق اول دليل** :١.... حديث بخاري رَحِمَهُ اللهُ : "تَوَضَّأْ وَاغْسِلْ ذَكَرَكَ ثُمَّ نَمْ".

---

(١) ابوداؤد كتاب الطهارة ج١ صـــ ٣٠ باب في الجنب يدخل المسجد ، صحيح ابن خزيمة جماع ابواب فضائل المسجد ج٢صــ ٢٨٤ باب الزجر عن جلوس الجنب والحائض ...الخ برقم ١٣٢٧.

(٢) بخاري كتاب الغسل ج١صــ٤٢ باب الجنب يخرج ويمشي ...الخ ، مسلم كتاب الحيض ج١صــ ١٦٢ باب الدليل على ان المسلم لا ينجس .

۲..... دباب حديث نمبر ۲: "**نعم اذا توضأ**" يعني که اودس اوکړي نو اوده کيدل صحيح دي.

**دجمهور دليل**: حديث دابوداود "**كان النبي صلى الله عليه وسلم يجنب ثم ينام ولايمس ماء**".

**دفريق اول جواب**:

۱..... دبخاري په حديث کې صيغه دامر په استحباب باندې محمول دې ترڅو په احاديثو کې تطبيق اوشي.

۲..... دويم حديث صحيح ابن خزيمه کې "**نعم اذا توضأ ان شاء**" دې، ان شاء قيد سره اختيار ملاو شو.

**دريمه مسئله**: دجنبي لپاره خوراک څښاک نه مخکې اودس کول بالاتفاق مستحب دي، حضور صلى الله عليه وسلم کله دمونځ په شان مکمل او کله داودس لغوي يعني کله دوو لاسونو په وينځلو باندې اکتفا کوله.

**څلورمه مسئله**: دجنبي لپاره دقرأت قرآن څه حکم دې؟ په دې باره کې دائمه اختلاف په لاندې دول دې:

(۱) دداود ظاهري رحمه الله په نزد مطلقا قرأت کولي شي، که پوره آيت وي يا نا مکمل.

(۲) جمهور على الاطلاق اجازت نه ورکوي بلکې دهغوي په نزد تفصيل دې:الف: دامام مالک رحمه الله په نزد فقط يو يا دوه آيتونو لوستلو اجازت دې.ب: دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دپوره آيت نه کم قرأتا او بطور دعا چې څومره آيتونه لوستلې شي لولي دې.ج: دامام شافعي رحمه الله او داحمد رحمه الله په نزد مطلقا قرأت نه شي کولې.

دداود ظاهري دليل: (**كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يذكر الله عزوجل على كل احيانه**) يعني حضور صلى الله عليه وسلم هروخت به دالله په ذکر کې مشغول وو، لهذا دجنابت په وخت کې به يې هم دا مشغولتيا وه.

**دجمهورو دليل**، حديث دعلي رضي الله عنه "**كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يقرئنا القرآن مَالم يكن جُنُبًا**".

**داود ظاهري رحمه الله ته جواب**: (۱) قرأت قرآن ددې عام حکم نه مستثنى دې لحديث علي رضي الله عنه.

(۲) "**كل أحيانه**" نه، دذکر مناسب وخت مراد دې.

**پنځمه مسئله** : جنبي او حيض او نفاس والا دښځي جمات ته داخليدل .
(۱) داهل ظواهر په نزد مطلقا ، دامام شافعي رحمه الله په نزد بشرط مرور او دامام احمد رحمه الله بشرط وضو دجنبي او دحائضه او دنفساء په جمات کې داخليدل صحيح دي.
(۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله او دامام مالک رحمه الله په نزد مطلقا ددغي خلکو په جمات کې داخليدل ممنوع دي .

**داهل ظواهرو دليل** : روايت دابن المنذر رحمه الله " كان أصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم يمشون في المسجد وهم جنب " .

دامام شافعي رحمه الله دليل ، دقرآني آيت " (لا تقربوا الصلوة وانتم سكارىٰ حتى تعلموا ما تقولون ولا جنبا الا عابري سبيل حتى تغتسلوا) صلوة نه مراد موضع صلوة يعني جومات او دعابر سبيل نه مراد مرور يعني تيريدل دي .

دامام ابوحنيفه رحمه الله او دامام مالک رحمه الله دليل، حديث دعائشه رضي الله عنها " لا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا لِجُنُبٍ ".

اهل ظواهرو ته جواب : دصحابو عمل ابتدائي دور باندې محمول دې وروسته بيا دجنبي دخول په جومات باندې ممنوع اوګرځيد .

**امام شافعي رحمه الله ته جواب** : په آيت کې "صلوة" نه معنى حقيقي يعني مونځ مراد دې جومات يعني دمجاز مراد کيدو په صورت کې به لفظ "موضع" محذوف منل کيدل وي کوم چې خلاف اصل دى او "عابري سبيل" نه مرادمسافرخلک دي چې په حالت دسفرکې اوبه نه ميلاويدو په صورت کې دتيمم کولو په صورت کې مونځ کولې شي.

## ﴿بَابُ الحَيضِ﴾

## باب دې په بيان دحيض کې

{۱۱۱} عَن مُعَاذَة قَالَت سَالتُ عَائِشَة رضي الله عنها فَقُلتُ مَا بَالُ الحَائِضِ تَقضِي الصَّومَ وَلَا تَقضِي الصَّلاة فَقَالَت أَحَرُورِيةٌ أَنتِ قُلتُ لَستُ بِحَرُورِيةٍ وَلَكِني أَسألُ قَالَت يُصِيبُنَا ذَلِكَ فَنُؤمَرُ بِقَضَاءِ الصَّومِ وَلَا

**نُؤمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ رواه الجماعة** .(۱)

**ترجمه :** معاذ وبلي دي چې ما د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه پوښتنه وکړه چې څه وجه ده چې حائضه ښځه د روژي قضايي راوړي او د مانځه قضايي نه راوړي نو هغي وفرمايل چې آيا نه حروريه يې ما وويل چې زه حروريه نه يم ليکن زه پوښتنه کوم هغي وفرمايل دا مونږ ته پيښيږي نو د روژي په قضايي مامور يو او د مانځه په قضايي مامور نه يو د دي حديث روايت جماعت کړي دي

**{۱۱۲} وَعَن أَبِي سَعِيدٍ الخُدرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي حَدِيثٍ لَه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَيسَ إِذَا حَاضَت لَم تُصَلِّ وَلَم تَصُمْ رواه الشيخان** .(۲)

**ترجمه :** حضرت ابي سعيدخدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يوحديث کې وبلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې آياداسې نه ده چې کله ښځه حائضه شي نه مونځ کوي اونه روژه نيسي ددي حديث روايت شيخينو کړي دي.

**{۱۱۳} وَعَن عَلقَمَةَ عَن أُمِّهِ مَولَاةِ عَائِشَةَ أُمِّ المُؤمِنِينَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَت كَانَ النِّسَاءُ يَبعَثنَ إِلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا بِالدِّرَجَةِ فِيهَا الكُرسُفُ فِيهِ الصُّفرَةُ مِن دَمِ الحَيضِ يَسأَلنَهَا عَنِ الصَّلَاةِ فَتَقُولُ لَهُنَّ لَا تَعجَلنَ حَتَّى تَرَينَ القَصَّةَ البَيضَاءَ تُرِيدُ بِذٰلِكَ الطُّهرَ مِنَ الحَيضَةِ رواه مالک و عبد الرزاق باسناد صحيح والبخاري تعليقاً** .(۳)

**ترجمه :** د حضرت علقمه نه روايت دي هغه د خپلي مور نه چې د حضرت عائشي ام المؤمنين رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ازاده کړي شوي وينځه وه هغي وبلي دي چې ښځو به حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه وړي وړي تيلۍ ورليږلي چې په هغي کې به کرسف ؤ ( يعني مالوچ ) او په کرسف کې به د حيض د وينې زيړوالي ؤ د هغي نه به يې د مانځه په باره کې پوښتنه کوله نو هغي به هغه ښځو ته ويل چې تلوار او تعجيل مه کوئ

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ ص ۳۵ باب في الحائض لا تقضي الصلوة ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ص ۳۴ باب ماجاء في الحائض انها لا تقضي الصلوة ، بخاري کتاب الحيض ج۱ ص ۴۶ باب لاتقضي الحائض الصلوة ، نسائي کتاب الصوم ج۱ ص ۳۱۹ باب وضع الصيام عن الحائض ، مسلم کتاب الحيض ج۱ ص ۱۵۳ باب وجوب قضاء الصوم على الحائض ...الخ، ابن ماجة ابواب الطهارة ص ۴۶ باب الحائض لا تقضي الصلوة ، مسند احمد ج ۶ ص ۲۳۱.

(۲) بخاري کتاب الغسل ج۱ ص ۴۴ باب ترک الحائض الصوم ، مسلم کتاب الايمان ج۱ص ۶۰ باب بيان نقصان الايمان .

(۳) بخاري کتاب الحيض ج۱ص ۴۶ باب اقبال الحيض وادباره ، مؤطا امام مالک کتاب الطهارة ص ۴۳ باب طهر الحائض ، مصنف عبدالرزاق کتاب الحيض ج۱ ص ۳۰۲ باب کيف الطهر برقم ۱۱۵۹.

تر هغې پورې چې وګورئ د چونې په شان سپينوالې د ام المؤمنين د هغې نه طهر او پاکوالي مراد ؤ د دې حديث روايت مالک او عبدالرزاق په صحيح اسناد سره کړې دې او بخاري معلق روايت کړې دې

## دکلماتو تشريح :

لغوي او اصطلاحي معنى يې " باب نجاسة دم الحيض " تر لاندې تيره شوې دې .

**حرورية**: حروراء طرفته نسبت دې کوم چې کوفې ته نزدې يو کلې دی د حضرت علي رضي الله عنه خلاف هلته يو اجماع شوې وه ، نو ځکه خوارج دغه کلي ته منسوب کوي " او حروري " ويلې کيږي .

## مسئلة الباب :

(۱) داهلسنت په دې خبره باندې اتفاق دې چې دحيض په زمانه کې دمونځونو قضا واجب نه ده په خلاف دروژې چې د دې قضا واجبه ده ، دخوارجو په دې کې اختلاف دې هغوي دمونځونو قضا لره واجب ګرځوي جمهور دباب داحاديثو نه استدلال کوي ليکن خوارجو به دقرآن او سنت نصوصو کې دخپل عقل دمعيار مطابق بې ځايه وچې تلاش کولې .

(۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دحيض په مدت کې دخالص سپين رنګ نه علاوه چې کوم رنګ وينه هم راشي هغه حيض دې حديث دعائشه رضي الله عنها " حتى ترين القصة البيضاء " ددې مؤيد دې ائمه ثلاثه على الاختلاف يو څو رنګونو لره دحيض وينه ګرځوي او څه ددېنه خارج ګرځوي .

# ﴿بَابُ الِاستِحَاضَةِ﴾

## باب دې په بيان د استحاضې کې ،

{۱۱۳} عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت جَاءَت فَاطِمَةُ بِنتُ أَبِي حُبَيشٍ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَت يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي امرَأَةٌ أُستَحَاضُ فَلَا أَطهُرُ أَفَأَدَعُ الصَّلَاةَ فَقَالَ لَا إِنَّمَا ذَلِكِ عِرقٌ وَلَيسَت بِالحَيضَةِ فَإِذَا أَقبَلَتِ الحَيضَةُ فَدَعِي الصَّلَاةَ وَإِذَا أَدبَرَت فَاغسِلِي عَنكِ الدَّمَ وَصَلِّي رواه الشيخان و في رواية للبخاري وَلَكِن دَعِي الصَّلَاةَ قَدرَ الأَيَّامِ الَّتِي كُنتِ تَحِيضِينَ فِيهَا ثُمَّ اغتَسِلِي وَصَلِّي .(۱)

**ترجمه**: د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي چې فاطمه بنت ابي جيش نبي عليه السلام ته راغله نو وې ويل چې اې دالله تعالى رسوله زه يوه مستحاضه ښځه يم خو پاکيګم نه آيا زه مونځ پريږدم نو نبي عليه السلام وفرمايل چې نه بې شکه دا يو رګ دې حيض نه دې کله چې حيض راشي نو

---

(۱) البخاري کتاب الغسل ج۱ صـ ۴۴ باب الاستحاضة ، مسلم کتاب الحيض ج۱صـ ۱۵۱ باب المستحاضة

مونخ پريږده او کله چې حيض واپس شي نو د خان نه وينه ووينځه او مونځ وکړه . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي او د بخاري په يو روايت کې دي چې د هغه ورځو په اندازه مونځ پريږده په کومو کې چې نه حائضه شوي يې بيا غسل وکړه او مونځ وکړه

{١١٥} وَ عَنها قَالَت إِنَّ فَاطِمَةَ بِنتَ أَبِي حُبَيشٍ أَتَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَت يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُستَحَاضُ الشَّهرَ وَالشَّهرَينِ فَقَالَ لَيسَ هٰذَا بِحَيضٍ وَ لٰكِنَّه عِرقٌ فَإِذَا أَقبَلَ الحَيضُ فَدَعِي الصَّلَاةَ عَدَدَ أَيَّامِكِ هٰذِهِ الَّتِي كُنتِ تَحِيضِينَ فَإِذَا أَدبَرَت فَاغتَسِلِي وَ تَوَضَّئِي لِكُلِّ صَلَاةٍ . رواه ابن حبان اسناده صحيح .(١)

**ترجمه** : د ام المؤمنين حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي چې فاطمه بنت ابي حبيش رضي الله عنها نبي عليه السلام ته راغله نو ورته وې ويل اې د الله تعالى رسوله زه يوه او دوه مياشتې مستحاضه کيږم نو نبي عليه السلام وفرمايل چې دا حيض نه دي ليکن هغه يو رګ دي کله چې حيض راشي نو مونځ پريږده خپل د حيض د ورځو د شماره په اندازه او کله چې واپس شي حيض نو غسل وکړه او اودس وکړه د هر مانځه د پاره . د دي حديث روايت ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي

{١١٦} وَ عَنها قَالَت سُئِلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَنِ المُستَحَاضَةِ فَقَالَ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقرَائِهَا ثُمَّ تَغتَسِلُ غُسلًا وَاحِدًا ثُمَّ تَتَوَضَّأُ عِندَ كُلِّ صَلَاةٍ رواه ابن حبان و اسناده صحيح .(٢)

**ترجمه** : او د ام المؤمنين حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دې هغې ويلي دي چې د مستحاضي په باره کې د نبي عليه السلام نه پوښتنه وکړي شوه نو نبي عليه السلام ورته وفرمايل چې د خپل حيض په ورځو کې دي مونځ پريږدي بيا دي يو غسل وکړي بيا دي د هر مانځه د وخت د پاره اودس وکړي . د دي حديث روايت ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

## دکلماتو تشريح :

"**الاستحاضة**" دحيض نه دباب استفعال مصدر دي او په باب استفعال کې دراتللو نه پس په دې کې دمبالغې معنى پيدا شوه يعني دحيض دمدت نه زياته وينه راتلل.

"**جاءت فاطمة بنت أبي حبيش**" په احاديثو دځلورو ښځو ذکر داستحاضې په باب کې په کثرت سره راغلي دي : (١) فاطمه بنت أبي حبيش رضي الله عنها (٢) زينب بنت جحش رضي الله عنها (٣) حمنه بنت جحش

---

(١) صحيح ابن حبان ج ٣ صـ ٢٢٥ برقم ١٣٥١ .

(٢) صحيح ابن حبان ج ٣ صـ ٢٢٦ برقم ١٣٥٢ .

رَضِيَ اللهُ عَنْهَا (۴) ام حبیبه بنت جحش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا دې سره دیوولسو ښځو ته په دور نبوي کې داستحاضې شکایت وو

"**استحاضه**" استحاضه دمصدر نه دمجهول صیغې په وزن باندې راځي

**داستحاضې سبب څه شې دی:** (۱) دباب په اولني حديث کې ددم استحاضې سبب "عرق" يعني خارج رحم رګ لره ګرځولې شوې دی.

(۲) په يو بل حديث کې استحاضې لره " **ركضة من الشيطان** " يعني ددې سبب دشيطان ګندګي ګرځولې شوي دې مقصد دادې چې داستحاضې په ذريعې دشيطاني وسوسو دروازه کولاويږي ، او ښځې لپاره دخپل مونځ او دطهارت مسائل پيژندل او په دې باندې عمل کول مشکل ګرځي

**مسئلة الباب** : ائمه اربعه رَحِمَهُ اللهُ په دې باندې خو اتفاق دې چې مستحاضه او شرعا معذور کس په ذمه باندې دمونځ او دروژې ادا کول شته دې

ليکن دمونځ په وخت کې دننه په يو اودس باندې چې څومره فرائض او نوافل کولې شي يا نه هر مونځ لپاره خانله اودس کول لازمي دې يا نه ؟ په دې باره کې دائمو اقوال په لاندې دول دې:

(۱) دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد دم استحاضه ، دم غير معتاده کيدو دوجې نه قياسا ناقض وضو نه دې ليکن امر تعبدي دوجې نه استحاضې سره اودس ماتيږي ، اوس مستحاضه او داسې نور معذور هر مونځ لپاره خانله به اودس کوي که فرض وي يا نفل .

(۲) دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد هر فرض مونځ لپاره دې اودس اوکړي او څومره چې غواړي نوافل ادا کړي.

(۳) امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد دهر مونځ وخت لپاره دې اودس اوکړي او په وخت کې دننه په دې سره چې څومره فرض يا نفل غواړي اودې کړي.

**د امام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **او امام شافعي** رَحِمَهُ اللهُ **دليل:** (۱) حديث دفاطمه بنت أبي حبيش رضي الله تعالى عنها "**توضئ لكل صلاة**".

(۲) حديث دعائشې رضي الله عنها "**لتوضأ عند كل صلاة**" دصلوة نه مراد فرض مونځ دی امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ نفل لره دفرض تابع ګرځوي **أي لكل صلاة مع توابعها**.

دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ دليل : حديث "المستحاضة تتوضأ لوقت كل صلاة".

**امام مالک او امام شافعي ته جواب :** (۱) د فاطمة بنت أبي حبيش رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په يو روايت کې " **توضأي لوقت كل صلاة** " دوخت صراحت سره راغلې دې.(۲) دعربو په کلام کې دلام دوخت په معنى کې

استعمال په كثرت سره وي مثلا "آتيک لصلاة الظهر" أي لوقت صلاة الظهر" دالله تعالى ارشاد دی (أقم الصلاة لدلوک الشمس) أي لوقت دلوک الشمس (۳) دعائشي رضي الله عنها په حديث كي "عند" د وخت او دهر موسخ د دواړو خبرو احتمال لري

# ﴿أَبوَابُ الوُضُوء﴾

## داودس بابونه :

# ﴿بَابُ السِّوَاكِ﴾

## باب دي په بيان د مسواک کي :

**{۱۱۷} عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَولَا أَن أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرتُهم بِالسِّوَاكِ عِندَ كُلِّ صَلَاة رواه الجماعة و في رواية لاحمد لأَمَرتُهم بِالسِّوَاكِ مَعَ كُلِّ وُضُوء وَ لِلبُخَارِي تَعلِيقًا لَأَمَرتُهم بِالسِّوَاكِ عِندَ كُلِّ وُضُوء .**[1]

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي كه چرته زما له خوا نه په خپل امت باندې د تكليف ايخودلو ويره نه وې نو ما به دوي ته د هر مانځه په وخت كې په مسواک كولو امر كړي وي ، د دې حديث روايت الجماعة كړي دي او د احمد رحمه الله په يو روايت كې داسې الفاظ نقل دي چې خامخا به ما دوي ته د هر اودس سره په مسواک امر كړي وي او د بخاري لپاره تعليقا داسې الفاظ نقل دي چې خامخا به مې دوي ته د اودس سره په مسواک امر كړي وي.

**{۱۱۸} و عنه أنّه قَالَ لَولَا أَن يشُقَّ عَلَى أُمَّتِهِ لَأَمَرَهم بِالسِّوَاكِ مَعَ كُلِّ وُضُوء رواه مالک و اسناده صحيح .**[2]

**ترجمه** : حضرت ابي هريره رضي الله عنه ويلي دي كه چرته د هغه صلى الله عليه وسلم په امت باندې د مشقت خوف نه وي نو د هر اودس سره به يې امت ته د مسواک امر كړي وي . د دې حديث روايت مالک كړي دي

---

(۱) بخاري كتاب الجمعة ج ۱ص ۱۲۲ باب السواک يوم الجمعة ، مسلم كتاب الطهارة ج۱ص ۱۲۸ باب السواک ، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ ص ۷ باب السواک ، ترمذي ابواب الطهارات ج ۱ص ۱۲ باب ماجاء في السواک ، نسائي كتاب الطهارة ج۱ص ۶ باب الرخصة في السواک بالعشي للصائم ، ابن ماجة ابواب الطهارة ج۱ص ۲۵ باب السواک ، مسند احمد ج۲ص ۲۴۵ . بخاري كتاب الصوم ج۱ص ۲۵۹ باب السواک الرطب واليابس .

(۲) مؤطا امام مالک كتاب الطهارة ص ۵۱ باب ماجاء في السواک .

او اسناد یې صحیح دي

{۱۱۹} وَعَن عَائِشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلسِّوَاکُ مِطهرَة لِلفَمِ مرضَاة لِلرَّبِّ رواه احمد والنسائي باسناد صحيح والبخاري تعليقا .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روایت دې چې نبي عليه السلام فرمایلي دي چې مسواک د خولې د صفايي او د الله تعالى د خوشحالۍ او د رضا سبب او آله ده احمد او نسائي یې په صحیح اسناد سره روایت کړي دي او بخاري یې معلق روایت کړي دي

{۱۲۰} وَ عَنها اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَولَا اَن اَشُقَّ عَلَى اُمَّتِي لَاَمَرتُهم بِالسِّوَاکِ مَعَ الوُضُوء عِندَ كُلِّ صَلَاة رواه ابن حبان في صحيحه و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي که چرته ماته په امت باندې د مشقت خوف نه وې نو د هر مانځه د او دس سره به مې ورته په مسواک امر کړي وې. د دې حدیث روایت ابن حبان په خپل صحیح کې کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

{۱۲۱} وَ عَن عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَولَا اَن اَشُقَّ عَلَى اُمَّتِي لَاَمَرتُهم بِالسِّوَاکِ مَعَ كُلِّ وُضُوء رواه الطبراني في الاوسط و قال الهيثمي اسناده حسن .(۳)

**ترجمه** : د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دې هغه ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي که چرته ماته په امت باندې د مشقت او تکلیف خوف نه وې خامخا به مې د هر او دس سره هغو ته په مسواک امر کړي وې. د دې حدیث روایت په اوسط کې طبراني کړي دي او هیثمي ویلي دي چې اسناد یې حسن دي.

{۱۲۲} وَ عَنِ المِقدَامِ بنِ شُرَيحٍ عَن اَبِيه قَالَ قُلتُ لِعَائِشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا بِاَيِّ شَيء كَانَ يَبدَأُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا دَخَلَ بَيتَه قَالَت بِالسِّوَاکِ رواه الجماعة الا البخاري و الترمذي .(۴)

---

(۱) بخاري كتاب الصوم ج۱ صـــ ۲۵۹ باب السواک الرطب واليابس ...الخ ، مسند احمد ج ۶ صـــ ۴۷ نسائي كتاب الطهارة ج۱صـــ ۵ باب الترغيب في السواک .

(۲) صحيح ابن حبان ج ۳ صـــ ۱۲۸ برقم ۱۰۶۴.

(۳) مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱صـــ ۲۲۱ باب في السواک نقلا عن الطبراني في الاوسط .

(۴) مسلم كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۲۸ باب السواک ، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۸ باب السواک نسائي كتاب الطهارة ج۱صـــ ۶ باب السواک في كل حين ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـــ ۲۵ باب السواک ، مسند احمد ج ۶ صـــ ۴۱ .

**ترجمه** : د حضرت مقداد بن شریح نه روایت دې چې خما پلار ویلي دي چې ما حضرت عائشي رضي الله عنها نه وویل چې کله به نبي علیه السلام کورته تشریف راوړ به څه شي به یې شروع کوله هغې وویل چې په مسواک سره د دي حدیث روایت جماعت کړي دي مگر بخاري او ترمذي نه دي کړي

{۱۳۲} وَعَن حُذَيفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ مِنَ اللَّيلِ يَشُوصُ (۱) فَاهُ بِالسِّوَاكِ رواه الجماعة الا الترمذي .(۱)

**ترجمه** : حضرت حذیفه رضي الله عنه ویلي دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم د شپې پاڅیده نو به مسواک سره به یې مبارکه خوله صفا کوله د دي حدیث روایت جماعت کړي دي مگر ترمذي نه دي کړي

{۱۳۳} وَعَن عَامِرِ بنِ رَبِيعَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ رَأَيتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَا لَا أُحصِي يَتَسَوَّكُ وَهُوَ صَائِمٌ رواه احمد و ابوداود والترمذي و حسنه و في اسناده مقال و رواه البخاري تعليقًا .(۲)

**ترجمه** : حضرت عامر بن ربیعه رضي الله عنه ویلي دي چې ما رسول الله صلی الله علیه وسلم د روژې په حالت کې په مسواک وهلو دومره کرته لیدلي دي چې زه یې شمارلي نه شم د دي حدیث روایت احمد ، ابوداود او ترمذي کړي دي او ترمذي حسن گڼرلي دي او په اسناد کې یې مقال او خبري دي او بخاري دا حدیث معلق روایت کړي دي

قَالَ النِّيمَوِي أَكثَرُ أَحَادِيثِ البَابِ تَدُلُّ عَلَى اِستِحبَابِ السِّوَاكِ لِلصَّائِمِ بَعدَ الزَّوَالِ وَلَم يَثبُتُ فِي كَرَاهِيَتِهِ فِيهِ.

**ترجمه** :نیموي رحمه الله ویلي دي چې د دي باب اکثر احادیث د زوال نه روسته د روژه دارو د پاره د مسواک وهلو په استحباب دلالت کوي او د مسواک په کراهت کې د هیڅ شي ثبوت نشته

## د سواک یا مسواک تشریح او حکم :

"السواک" :بمعنی آله سواک یا مصدر بمعنی مسواک کول.

په مسواک کې دوه جدا خبرې مسنون دي : (۱) په یو داسي شي سره خوله صفا کول چې هغه قابل

(۱) بخاري کتاب الوضوء ج۱ صـــ ۳۸ باب السواک ، ابوداؤد کتاب الطهارة ج ۱صـــ ۸ باب السواک لمن قام بالليل ، نسائي کتاب الطهارة ج۱صـــ ۵ باب السواک اذا قام من الليل ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـــ ۲۵ باب السواک ، مسند احمد ج۵ ص. ۳۸۲ ، مسلم کتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۲۸ باب السواک .

(۲) مسند احمد ج ۳ صـــ ۴۴۵ ، ابوداؤد کتاب الصيام ج ۱صـــ ۳۲۲ باب للصائم ، ترمذي ابواب الصوم ج۱صـــ ۱۵۴ باب ماجاء في السواک للصائم ، بخاري کتاب الصوم ج۱صـــ ۲۵۹ باب السواک الرطب واليابس .

دصفائي وي .(۲) يو مخصوص لرګي استعمالول مثلا کيکر وغيره.
**د مسواک حکم** : دائمه اربعو په نزد بالاتفاق مسواک کول مسنون دي . البته دمسواک په سنت صلاة يا سنت وضو کيدو کې مشهور اختلاف دی :
(۱) دامام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ په نزد سنت صلاة دی .(۲) دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ‌اللهُ په نزد سنت وضو دی .
**دامام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ دليل** : حديث دابو هريره رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ "لَأَمَرْتُهم بِالسِّوَاكِ عِندَ كُلِّ صَلَاةٍ".
**دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ‌اللهُ دليل** : دباب هغه احاديث کوم کې چې "مع كل وضوء" وارد دي .
**امام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ ته جواب** : " عند كل صلاة" نه بالکل دمونځ متصل مسواک کول نه لازميږي حال دا چې " مع كل وضوء " کې اودس سره سره مسواک کول دا په فهم کې راځي اوس دتطبيق صورت دادې چې " عند كل صلاة" معنی " مع الوضوء عند كل صلاة " واخيستلې شي لکه څنګه چې دحضرت ابو هريره رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ په بل روايت کې ددې تصريح هم راغلې ده .
د احنافو په نزد اګر چې داودس په وخت کې دمسواک کولو زيات تاکيد دې ليکن چې کله دوربونه د وينې راوتلو ويره نه وي نو دمونځ دتياري کولو په وخت مسواک کول هم مسنون دي دغه شان کورته دداخليدو نه پس ، يا يو مجلس دراتللو په وخت او چې کله دتلاوت کولو اراده وي نو هم مسواک کول مسنون دي .
**دويمه مسئله** : دروژې په حالت کې دمسواک کولو حکم :
(۱) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ‌اللهُ، مالک او احمد رَحِمَهُ‌اللهُ په نزد روژه دار سحر يا ماښام چې کله کله هم اوغواړي مسواک کولې شي .
(۲) دامام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ په نزد روژه دار لپاره دزوال نه پس مسواک کول مکروه دي ، ليکن دمتاخرين شافعيه دمطلق جواز قايله دي.(رحمة الامة:ص ۹۸).
**دامام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ دليل** : "لخلوف فم الصائم أحب الى الله من ريح المسک " او خلوف يعنې روژه دار دخولې نه بدبو کومه چې دزوال نه پس تري خيژي، مسواک کولو سره به زائله شي .
**دائمه ثلاثو دليل** : حديث دعامر بن ربيعه رَضِيَ‌اللهُ‌عَنهُ رأيت رسول الله صَلَّى‌اللهُ‌عَلَيهِ‌وَسَلَّمَ مالا أحصي يتسوک وهو صائم ".
**امام شافعي رَحِمَهُ‌اللهُ ته جواب** : دخلوف نه مراد دمعدې بدبوئي ده کومه چې دخيټې دخالي کيدو دوجې نه پيدا کيږي او مسواک سره دخولې بدبو زائله کيږي نه دمعدې بدبوئي.

# ﴿بَابُ التَّسمِيَة عِندَ الوُضُوءِ﴾

## د اودس په وخت کې د بسم الله باب:

{۱۲۵} عَن أَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يا أَبَا هرَيرَةَ إِذَا تَوَضَّأتَ فَقُل بِسمِ اللهِ وَالحَمدُ لِلّٰهِ فَإِنَّ حَفَظَتَكَ لَا تَبرَحُ تَكتُبُ لَكَ الحَسَنَاتِ حَتّٰى تَحدُثَ مِن ذٰلِكَ الوُضُوءِ رواه الطبراني في الصغير و قال الهيثمي اسناده حسن.(۱)

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي اې ابوهريره كله چې اودس كوې نو بسم الله والحمد لله وايه بې شكه ستا حفاظت كوونكي فرښتې ستا دې اودس نه د بې اودسه كيدو پورې ستا دپاره نيكئ ليكي. د دې حديث روايت الطبراني په صغير كې كړي او هيثمي ويلي دي چې اسناد يې حسن دي.

**مسئلة الباب**: د اودس په شروع كې د بسم الله ويلو حكم

(۱) امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد واجب او د داود ظاهري رَحِمَهُ اللهُ په نزد فرض دي.

(۲) د ائمه ثلاثو په نزد سنت يا مستحب دی واجب نه دي.

د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د داود ظاهري رَحِمَهُ اللهُ دليل: حديث "لاوضوء لمن لم يذكر اسم الله عليه".

**د ائمه ثلاثو دليل**: حديث "ومن توضأ ولم يذكر الله اسم الله كان طهوراً لا عضاء وضوئه" يعنې څوک چې بسم الله ويلو نه بغير اودس اوكړي نو دهغه صرف دهغه اعضاؤ نه چې اوينځلې شو ګناهونه غورځيږي په حديث كې بغير د بسم الله نه د اودس هم اعتبار كړې شوې دی، البته د دې فضيلت كم خودلې شوې دی.

**امام احمد او داود ظاهري ته جواب**: "لاوضوء" كې لا نفي دكمال لپاره ده نه نفي دحقيقت لپاره، لكه په يو حديث كې چې دي "لاصلاة لجار المسجد الا في المسجد".

---

(۱) مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ص ۲۲۰ باب التسمية عند الوضوء، المعجم الصغير للطبراني ج۱ص ۷۳ قال حدثنا احمد بن مسعود الزبري ...الخ

# ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي صِفَةِ الوُضُوءِ﴾

## د هغه حديثونو باب چې د اودس په صفت کې راغلي دي :

{۱۳٦} عَن حُمرَانَ مَولَى عُثمَانَ اَنَّه رَأى عُثمَانَ بنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ دَعَا بِإِنَاءٍ فَأفرَغَ عَلَى كَفَّيهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ فَغَسَلَهُمَا ثُمَّ أدخَلَ يَمِينَه فِي الإِنَاءِ فَمَضمَضَ وَاستَنثَرَ ثُمَّ غَسَلَ وَجهه ثَلَاثًا وَيَدَيهِ إِلَى المِرفَقَينِ ثَلَاثَ مِرَارٍ ثُمَّ مَسَحَ بِرَأسِهِ ثُمَّ غَسَلَ رِجلَيهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ إِلَى الكَعبَينِ ثُمَّ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَن تَوَضَّأ نَحوَ وُضُوئِي هٰذَا ثُمَّ صَلَّى رَكعَتَينِ لَا يُحَدِّثُ فِيهِمَا نَفسَه غُفِرَلَه مَاتَقَدَّمَ مِن ذَنبِهٖ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ د ازاد کړي شوي مريي حمران نه روايت دي چې ما حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنهُ ليدلي دي چې يو لوښي يې راوغوښت نو هغه يې په دواړه لاسونو دري خلي واړو نودواړه يې ووينځل بيا يې ښي لاس په لوښي کې ننويست نوخوله اوپوزه يې ووينځله بيا يې مبارک مخ دري خلي ووينځه اودواړه لاسونه يې ترڅنګلوپوري دري خلي ووينځل بيا يې په سرمبارک مسحه وکړه بيا يې دواړه ښپې مبارکې تر ښنګرو پوري دري خلي ووينځلي بيا يې وويل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمائل چا چې ځما د دغه اودس په شان اودس وکړ بيا يې دوه رکعته داسي مونځ وکړ چې په دواړو رکعتونو کې يې په زړه کې خبري ونه کړي او په خشوع او خضوع سره يې ادا کړ ده ته به د ده مخکيني ګ‌ناهونه وبخلي شي د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

فقه الحديث :داحنافو په نزد د اودس مسنونه طريقه هم هغه ده کومه چې په دې حديث کې بيان شوې ده .

# بَابٌ فِي الجَمعِ بَينَ المَضمَضَةِ وَالِاستِنشَاقِ

## دا باب دی د مضمضې او استنشاق ترمينځ په جمع کولو کې :

{۱۳۷} عَن عَبدِ اللهِ بنِ زَيدِ بنِ عَاصِمٍ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ كَانَت لَه صُحبَة قَالَ قِيلَ لَه تَوَضَّأ لَنَا وُضُوءَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا بِإِنَاءٍ فَأكفَأ مِنه عَلَى يَدَيهِ فَغَسَلَهُمَا ثَلَاثًا ثُمَّ أدخَلَ يَدَه فَاستَخرَجَهَا فَمَضمَضَ وَاستَنشَقَ مِن كَفٍّ وَاحِدَةٍ فَفَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثًا ثُمَّ أدخَلَ يَدَه فَاستَخرَجَهَا فَغَسَلَ

---

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج۱ص ۲۷ باب الوضوء ثلاثا ، مسلم كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۲۰ باب صفة الوضوء وكماله.

وَجهه ثَلاثاً ثُمَّ اَدخَلَ يَدَه فَاستَخرَجَها فَغَسَلَ يَدَيه إِلَى المِرفَقَينِ مَرَّتَينِ مَرَّتَينِ ثُمَّ اَدخَلَ يَدَه فَاستَخرَجَها فَمَسَحَ رَاسَه فَاَقبَلَ بِيَدَيه وَ اَدبَرَ ثُمَّ غَسَلَ رِجلَيه إِلَى الكَعبَينِ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا كَانَ وُضُوءِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د عبدالله بن زيد بن عاصم الانصاري رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه چې هغه صحابي ؤ روايت دي چې ده ته ووېلي شو چې مونږ ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د اودس په شان اودس وکړه نو د اوبو لوښې يې راوغوښته نو هغه يې په دواړو لاسونو راواړؤ نو دواړه لاسونه يې درې ځلې ووينځل نو بيا يې لاس ورننويست نو راوئ ويسته او د يو لاس د اوبو نه يې مضمضه او استنشاق وکړو او دغه کار يې درې ځلې وکړو بيا يې لاس ورننويست نو راوئ ويست نو خپل مخ يې پرې درې ځله ووينځه بيا يې لاس ورننويست نو راوئ ويست نو په سر باندې يې په دواړو لاسونو وراندې روسته مسح وکړه بيا يې دواړه خپې تر بنګرو او ګيټيو پورې ووينځلې بيايې ووېل چې دغسې ؤ اودس د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د دې حديث روايت شيخينو کړې دې .

{۱۳۸} وَ عَن اِبنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ مَرَّةً مَرَّةً وَ جَمَعَ بَينَ المَضمَضَةِ وَالاِستِنشَاقِ رواه الدارمي وابن حبان والحاکم و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي چې نبي عَلَيهِ السَّلَام يو ځلي اودس وکړو او خوله او پوزه يې د اوبو په اچولو کې سره يو ځاي کړل د دې حديث روايت دارمي ابن حبان او حاکم کړې دې او اسناد يې حسن دي

**مسئلة الباب** : خوله او پوزه کې د اوبو اچولو مسنونه طريقه :

د مضمضي او د استنشاق پنځه طريقې دي کومې چې ټوله په ټوله جائز دي :

(۱) الوصل بثلاث غرفات : يعني په يو لپه کې اوبه راخيستل او دهغې په بعضې حصې سره مضمضه او بعضې سره استنشاق کول . بيا دغه شان دويم او دريم ځل دې او کړې شي .

(۲) الوصل بغرفة واحدة :يعني په يو لپه اوبو راخيستلو سره اول مضمضه او بيا همدې اوبو سره استنشاق ، دغه شان پاتې شوې اوبو سره دويم او دريم ځل دې اوکړې شي ، ګويا چې د وصل دوه

---

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج۱ص۳۱ باب من مضمض واستنشق ...الخ ، مسلم كتاب الطهارة ج۱ص۱۲۳ باب آخر في صفة الوضوء .

(۲) سنن دارمي كتاب الصلوة ص۹۲ باب الوضوء مرّة مرة ، ابن حبان ج ۳ ص۱۵۰ رقم الحديث ۱۰۷۳ مستدرک حاکم کتاب الطهارة ج۱ص۱۵۰ باب الوضوء مرتين ...الخ .

طريقې شوي : بثلاث غرفات او بغرفة واحدة. بيا دفصل درې صورتونه دي :

(۱) الفصل بغرفة واحدة : چې ددې مطلب دادې چې په يو لپه کې اوبه راخيستل او اول درې ځله مسلسل مضمضه کول او بيا باقي اوبو سره درې ځله مسلسل استنشاق کول.

(۲) الفصل بغرفتين، يعنې يو لپې اوبو سره دې اول درې ځله دې مضمضه اوکړې شي ، بيا دويم لپې اوبو سره دې درې ځله استنشاق اوکړې شي.

(۳) الفصل بست غرفات : يعنې درې لپې اوبه درې پسې مضمضې لپاره ، اوبيا درې لپې اوبه درې پېره استنشاق لپاره.

په دې پنځه صورتونو کې افضل صورت کوم يو دی په دې باره کې دوه اقوال دي :
(۱) دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد اولنې صورت يعنې الوصل بثلاث غرفات افضل دی.
(۲) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد پنځم صورت يعنې الوصل بست غرفات افضل دی.

**دامام شافعي** رَحِمَهُ اللهُ **دليل** : ۱..... حديث دعبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ **فَمَضْمَضَ وَاسْتَنْشَقَ مِن كَفٍّ وَاحِدَةٍ**

۲..... حديث دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ "**جَمَعَ بَيْنَ الْمَضْمَضَةِ وَالإِسْتِنْشَاقِ**".

**دامام ابوحنيفه** رَحِمَهُ اللهُ **دليل** : راروان باب "**الفصل بين المضمضة والاستنشاق**" او د "**باب مايستفاد منه الفصل**" څلور حديثونه ،بالخصوص حديث عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ "**أَفْرَدَا الْمَضْمَضَةَ مِنَ الإِسْتِنْشَاقِ**" کوم چې دفصل واضح دليل دی.

۲ قياس يعنې چې کله خوله او پوزه دوه خانله اندامونه دي نو نور اندامونو په شان ددې لپاره هم خانله اوبه راخيستل پکار دي.

**امام شافعي** رَحِمَهُ اللهُ **ته جواب** : سرسري جواب خو دادې چې زمونږ دليلونه په خپلې مدعی باندې واضح او غير محتمل دي ، حال دا چې ستاسو دليلونه محتمل دي ، مثلا په اولنې حديث کې د "**من كف واحدة**" نه مراد دا هم کيدې شي چې په يو لپه اوبو راخيستلو نه مضمضه هم کول او بيا په پوزه کې اوبه هم اچول دويم حديث کې تول اندامونه داودس لره يو يو پيره دوينځلو ذکر دی کوم چې يقينا جواز دی نه افضل ، ځکه چې "**جمع بين المضمضة والاستنشاق**" هم دبيان جواز لپاره کيدې شي.

# بَابٌ فِي الفَصلِ بَينَ المَضمَضَة وَالاِستِنشَاقِ

## دمضمضې او استنشاق ترمينځ د جدائي باب :

{۱۲۹} عَن اَبِي وَائلٍ شَقِيقِ بنِ سَلمَة قَالَ شَهِدتُ عَلِي بنَ اَبِي طَالِبٍ وَ عُثمَانَ بنَ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا تَوَضَّأَ ثَلَاثًا ثَلَاثًا وَ اَفرَدَا المَضمَضَة مِنَ الاِستِنشَاقِ ثُمَّ قَالَا هٰكَذَا رَاَينَا رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ رواه ابن السكن في صحاحه.(۱)

**ترجمه** : ابي وائل شقيق بن سلمه ويلي دي چې زه د حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا سره حاضر وم چې دوي دواړو اودس وکړو دري دري ځلي او مضمضه يې د استنشاق نه بيله ار جدا کړه بيا دواړو ويلي دي چې دغسي مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ليدلي دي چې اودس يې کړي . د دي حديث روايت په خپلو صحاحو کې ابن سکن کړي .

# بَابُ مَا يستَفَادُ مِنه الفَصلُ

## باب دې په بيان دهغه حديثو کې چې د هغي نه دفصل فائده کيدي شي :

{۱۳۰} عَن اَبِي حَية قَالَ رَأَيتُ عَلِيا رَضِيَ اللهُ عَنهُ تَوَضَّأَ فَغَسَلَ كَفَّيه حَتّٰى اَنقَاهُمَا ثُمَّ مَضمَضَ ثَلَاثًا وَاستَنشَقَ ثَلَاثًا وَغَسَلَ وَجهه ثَلَاثًا وَ ذِرَاعَيه ثَلَاثًا وَ مَسَحَ بِرَأسِهٖ مَرَّةً ثُمَّ غَسَلَ قَدَمَيه اِلَى الكَعبَينِ ثُمَّ قَامَ فَاَخَذَ فَضلَ طُهورِهٖ فَشَرِبَه وَهُوَ قَائمٌ ثُمَّ قَالَ اَحبَبتُ اَن اُرِيكُم كَيفَ كَانَ طُهورُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رواه الترمذي و صححه.(۲)

**ترجمه** : ابو حيه ويلي دي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ليدلې دی چې اودس يې کاؤ نو دواړه لاسونه يې تر هغي پوري ووينځل چې ښه يې پاک کړل بيا يې دري ځلي مضمضه او دري ځلي استنشاق وکړ او دري ځلي يې مخ او دري ځلي يې لاسونه ( ليچي ) ووينځل او يو ځل يې په سر باندي مسح وکړه بيا يې تدمونه تر ښنګرو پوري ووينځل بيا پاڅيده او د اودس نه پاتي اوبه يې راواخيستلي او هغه يې د ولاړي په حالت کې وڅکلي . بيا يې وويل چې زه خوښوم دا خبره چې

(۱) التلخيص الحبير ج۱ صـ ۷۹ .

(۲) ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـ ۱۷ باب في وضوء النبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كيف كان .

تاسو ته د رسول الله ﷺ اودس وخائم چې هغه څنګه اودس کولو. د دې حديث روايت ترمذي کړې دې او صحيح يې ګڼړلې دې.

{۱۳۱} وَعَنِ ابنِ اَبِي مُلَيكَةَ قَالَ رَاَيتُ عُثمَانَ بنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ سُئِلَ عَنِ الوُضُوءِ فَدَعَا بِمَاءٍ فَاُتِيَ بِمِيضَأَةٍ فَاَصغَاهَا عَلَى يَدِهِ اليُمنٰى ثُمَّ اَدخَلَهَا فِي المَاءِ فَتَمَضمَضَ ثَلَاثًا وَاستَنثَرَ ثَلَاثًا وَغَسَلَ وَجهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ يَدَهُ اليُمنٰى ثَلَاثًا وَغَسَلَ يَدَهُ اليُسرٰى ثَلَاثًا ثُمَّ اَدخَلَ يَدَهُ فَاَخَذَ مَاءً فَمَسَحَ بِرَاسِهِ وَاُذُنَيهِ فَغَسَلَ بُطُونَهُمَا وَظُهُورَهُمَا مَرَّةً وَاحِدَةً ثُمَّ غَسَلَ رِجلَيهِ ثُمَّ قَالَ اَينَ السَّائِلُونَ عَنِ الوُضُوءِ هٰكَذَا رَاَيتُ رَسُولَ اللّٰهِ ﷺ يَتَوَضَّأُ رواه ابو داود و اسناده صحيح. [1]

**ترجمه**: ابي مليکه ويلي دي چې ما حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه وليد د چې د اودس په باره کې تري پوښتنه وکړې شوه هغه اوبه راوغوښتې نو يوه لوټه ورته راوړې شوه نو هغه يې په ښي لاس راواړونه بيا يې په اوبو کې لاس ننويست نو درې ځلي يې مضمضه وکړه او درې ځلي يې استنشار يعنې استنشاق وکړ او درې ځله يې مخ ووينځه بيا يې درې ځلي ښي لاس ووينځه او درې ځله يې چپ لاس ووينځه نو بيا يې لاس ننويست اوبه يې راواخستې نو په سر او دواړو غوږونو يې مسح وکړه او د دواړو غوږونو دننه او بهر حصه يې يو ځل ووينځله بيا يې دواړه خپې ووينځلې بيا يې ويل د اودس په باره کې پوښتني والا چرته دې دغه شان ليدلي دی ما رسول الله ﷺ چې اودس يې کاوه. د دې حديث روايت ابوداؤد کړې او اسناد يې صحيح دې.

{۱۳۲} وَعَن رَاشِدِ بنِ نَجِيحٍ اَبِي مُحَمَّدِ الحَمَّانِي قَالَ رَاَيتُ اَنَسَ بنَ مَالِكٍ بِالزَّاوِيَةِ فَقُلتُ لَهُ اَخبِرنِي عَن وُضُوءِ رَسُولِ اللّٰهِ ﷺ كَيفَ كَانَ فَاِنَّهُ بَلَغَنِي اَنَّكَ كُنتَ تُوَضِّئُهُ قَالَ نَعَم فَدَعَا بِوُضُوءٍ فَاُتِيَ بِطَستٍ وَقَدَحٍ بَينَ يَدَيهِ فَاَكفَأَ عَلَى يَدَيهِ مِنَ المَاءِ وَاَنعَمَ غَسلَ يَدَيهِ ثُمَّ تَمَضمَضَ ثَلَاثًا وَاستَنشَقَ ثَلَاثًا وَغَسَلَ وَجهَهُ ثَلَاثًا ثُمَّ اَخرَجَ يَدَهُ اليُمنٰى فَغَسَلَهَا ثَلَاثًا ثُمَّ غَسَلَ اليُسرٰى ثَلَاثًا ثُمَّ مَسَحَ بِرَاْسِهِ مَرَّةً وَاحِدَةً غَيرَ اَنَّهُ اَمَرَّهُمَا عَلَى اُذُنَيهِ فَمَسَحَ عَلَيهِمَا رواه الطبراني في الاسط و قال الهيثمي اسناده حسن. [2]

---

(۱) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۵ باب صفة وضوء النبي ﷺ.

(۲) المعجم الاوسط ج ۳ صـ ۲۲۸ برقم ۲۹۲۶، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ صـ ۲۳۱ باب ماجاء في الوضوء نقلا عن الطبراني في الاوسط

**ترجمه** : راشد بن نجيح ابي محمد الحماني ويلي دي چې ما په زاويه کې انس بن مالک رضي الله عنه وليد نو ورته ؤمي ويل چې ماته د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د اودس خبر راکړه چې څنګه اودس يې کاوه بې شکه زه خبر شوي يم چې تا د رسول الله صلی الله علیه وسلم د اودس په شان اودس کاؤ هغه وويل چې هو نو د اودس اوبه يې راوغوښتې نو يو طشت او پياله ورته راوړې شول نو ده په خپله مخه کې کېښودل نو په لاسونو يې اوبه راواړولې او لاسونه يې ښه ووينځل بيا يې مضمضه درې ځلې وکړه او استنشاق يې درې ځله وکړ بيا يې درې ځله مخ ووينځه بيا يې ښئ لاس راوويست هغه يې درې ځلې ووينځه بيا يې چپ لاس درې ځلې ووينځه بيا يې يو ځل په سر باندې مسح وکړه البته هغه دواړو لاسونه په دواړو غوږونو رابنکل او په دواړو يې مسح وکړه . د دې حديث روايت طبراني په اوسط کې کړې او هيثمي ويلي دي چې اسناد يې حسن دي .

# بَابُ تَخْلِيلِ اللِّحيةِ

## باب دې په خلالولو د ږيرې کې :

{۱۳۲} عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا تَوَضَّأَ خَلَّلَ لِحيتَه بِالمَاء رواه احمد واسناده حسن .[1]

**ترجمه** : د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم اودس کاوه نو په اوبو سره به يې خپله مبارکه ږيره خلالوله . د دې حديث روايت احمد کړې دي او اسناد يې حسن دي .

**تشريح : د لحي معنی:** د انسان د مخ د کاسې او ځيرې هغه هډوکې چې په هغې د ږيرې ويښته راشنه کيږي هغې ته لحيه او د دې دواړو خواو ته لحيين ويلې کيږي کوم چې د شخوند په وخت کې حرکت کوي او خوزيږي د لحي اطلاق د ږيرې په ويښتو باندې دا د قبيلې د تسمي د حال نه دې په اسم د محل بندې يعني اطلاق د لحي په ويښتو د ږيرې باندې اطلاق مجازي دي او حقيقي اطلاق نه دي .

**مسئلة الباب** : په دې باب کې په اودس کې د ږيرې سره متعلق دوه حکمونه بيان شوي دي .

### اولنۍ مسئله : په اودس کې د ږيرې وظيفه ! غسل يا مسح؟

ږيرې دوه قسمونه دي : خفيفه او کثه . خفيفه هغه ده کوم کې چې د مخ پوستکې په نظر راشي ، په

(۱) مسند احمد ج ۶ صـ ۲۳۴.

دي کې دږيرې ويختان لوانده کول نه کافي کيږي ، بلکې دمخ پوستکي ته هم اوبه رسول ضروري دي . کله: يعني دګنې ګيرې په باره کې زمونږ په نزد اته قولونه موندلې کيږي دصحيح قول مطابق "غَسْلُ جميعَ اللحية فرض" يعنې دمخ په ځاي ګيره وينځل فرض دي. ليکن ددې نه هغه ګيره مراد ده کومه چې دمخ پـه حدودو کې وي . مسترسل يعنې دزنې لاندې چې کوم ويختان رازوړند دي دهغې وينځل ضروري دي نه مسح .

**دويمه مسئله: په اودس کې دګيرې دخلال حکم:**

(۱) داهل ظواهرو په نزد واجب دې .(۲) دجمهورو په نزد سنت يا مستحب دې .

**داهل ظواهرو دليل**: حديث ابوداود "هكذا أمرني ربي" او امر لپاره دوجوب يا فرضيت دی .

**دجمهور دليل**: قرآن کريم کې داودس دفرائضو په ضمن کې دګيرې دخلال ذکر نشته دی . دغه شان دصفت وضو په مشهور رواياتو کې هم دتخليل حکم نشته ، لهذا دحديث الباب نه به استحباب يا سنتيت ثابت شي .

**اهل ظواهروته جواب**: امر په هرځای کې دوجوب لپاره نه وي،لکه آيت "واذا حللتم فاصطادوا" کې اصطادوا يعنې صيغه د امر لپاره دوجوب نه ده .

**خلال دګيرې طريقه**: د ږيرې د خلال د پاره دوه جائزې طريقې ښودل شوې دي (۱) چې د ږيرې په بره طرف کې ګوتې واچول شي او د بره طرف نه لاندې طرف خلال وکړې شي .

(۲) دويم دا چې په ښې لاس يو لپه اوبه راواخيستل شي او زنې ته يې لاندې طرف نه نزدې کړي او د ږيرې په لاندې طرف کې ګوتې داخلې کړې شي او بره طرف خلال کړې شي . (وكيفيته ان يدخل اصابعه فيها ويخلل من الجانب الاسفل الى فوق) وهو المنقول عن شمس الائمة الكردري .(۱)

## بَابُ تَخْلِيلِ الْاَصَابِعِ

### باب دی په بيان د خلالولو د ګوتو کې :

{۱۳۲} عَن عَاصِمِ بن لَقِيطِ بْنِ صَبِرَةَ عَن اَبِيه قَالَ قُلتُ يَارَسُولَ اللهِ اَخبِرنِي عَنِ الوُضُوءِ قَالَ اَسبِغِ الوُضُوءَ وَخَلِّلِ الاَصَابِعَ وَبَالِغْ فِي الاِستِنشَاقِ اِلَّا اَن تَكُونَ صَائِمًا . رواه الاربعة و صححه الترمذي و

---

(۱) فتاوى عالمگيريه ج۲ سنن الوضوء .

ابن خزيمة والبغوي وابن القطان .[۱]

**ترجمه** : د عاصم بن لقيط بن صبره نه روايت دي چې خما پلار ويلي دي چې ما عرض وکړ چې اى دالله رسوله ماته د اودس په باره کې څه خبره وکړه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې پوره او مکمل اودس کوه او د ګوتو خلال کوه او په استنشاق کې مبالغه کوه مګر که ته روژه دار وي نو مبالغه مه کوه . د دي حديث روايت څلورو محدثينو کړي او ترمذي ، ابن خزيمه ، بغوي او ابن قطان دا صحيح ګنړلي دي .

{۱۳۵} وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا تَوَضَّأْتَ فَخَلِّلْ أَصَابِعَ يَدَيْكَ وَرِجْلَيْكَ رواه احمد وابن ماجه والترمذي وحسنه .[۲]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې کله ته اودس وکړي نو د لاسونو او د خپو ګوتي خلال کړه . د دي حديث روايت احمد ، ابن ماجه او ترمذي کړي دي او ترمذي دا حسن ګنړلي دي .

## مسئلة الباب: په اودس کې دګوتو دخلال حکم :

(۱) دبعضي اهل ظواهرو په نزد دګوتو خلال واجب دی .(۲) دائمه اربعو په نزد دګوتو خلال مسنون يا مستحب دی

**داهل ظواهرو دليل:** حديث الباب "خلل الاصابع" صيغه دامر دوجوب لپاره ده .

**دجمهور دليل:** آيت وضو او په مشهور حديثو کې دتخليل اضابع ذکر نشته دی .

**اهل ظواهرو ته جواب** : امر په هر ځاي کې دوجوب لپاره نه وي آيت (واذا حللتم فاصطادوا) تير شو

**قوله "أسبغ الوضوء"** داسباغ في الوضو دري درجې دي .

۱.فرض : دفرضو مقدار هر اندام لره وينځل او دسر مسح کول .۲. سنت : اعضاء مغسوله لره دري دري ځله وينځل .۳. استحباب : هر اندام لره دوينځلو نه پس په دي اوبه بهول .

---

(۱) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ صـ ۱۹ باب في الاستنثار، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـ ۱۴ باب في تخليل الاصابع سنن كتاب الطهارة ج۱ صـ ۳۰ باب الامر بتخليل اللحية ، ابن ماجة ابواب الطهارة صـ ۳۵ باب تخليل الاصابع صحيح ابن خزيمة كتاب الطهارة ج۱ صـ ۷۸ رقم الحديث ۱۵۰.

(۲) ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـ۱۶ باب في تخليل الاصابع،ابن ماجة،ابواب الطهارة صـ۳۵ب تخليل الاصابع،مسنداحمد ج۱صـ ۲۸۷

# بَابٌ فِيْ مَسْحِ الْأُذُنَيْنِ

## باب دي په مسح د غوږونو کې :

(۱۳۶) عَن اِبنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ فَغَرَفَ غُرفَةً فَغَسَلَ وَجهه ثُمَّ غَرَفَ غُرفَةً فَغَسَلَ يَدَه اليمنٰى ثُمَّ غَرَفَ غُرفَةً فَغَسَلَ يَدَه اليسرٰى ثُمَّ غَرَفَ غُرفَةً فَمَسَحَ بِرَأسِهٖ وَ اُذُنَيه دَاخِلَهُمَا بِالسَّبَابَتَينِ وَ خَالَفَ بِإبهامَيه إلى ظَاهِرِ اُذُنَيه فَمَسَحَ ظَاهِرَهُمَا وَبَاطِنَهُمَا ثُمَّ غَرَفَ غُرفَةً فَغَسَلَ رِجلَه اليمنٰى ثُمَّ غَرَفَ غُرفَةً فَغَسَلَ رِجلَه اليسرٰى رواه ابن حبان و آخرون و صححه ابن خزيمة و ابن مندة .(۱)

ترجمه د حضرت عباس رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم اودس اوکړو نو يو لپه اوبه يې راواخيستې او خپل مبارک مخ يې پرېو وينځلو بيا يې يو لپه اوبه راواخيستې او خپل ښې لاس يې پرې اووينځلو بيا يې يو لپه اوبه راواخيستې او خپل چپ لاس يې پرې اووينځلو بيا يې يو لپه اوبه راواخيستې او دخپل سر او دغوږونو مسح يې اوکړه ددواړو غوږونو دننه حصه دشهادت په ګوتې سره او په بهرنې حصه باندې يې ګوته راخکله . او بيا يې يو لپه اوبه راواخيستې او خپله ښې خپه يې ووينځله بيا يې يو لپه اوبه راواخيستې او ګسه يې ووينځله .(ابن حبان او نورو دې لره روايت کړې دی او ابن خزيمه او ابن منده دې لره صحيح ګرځولې دی ).

## دوه اختلافي مسئلې :

**اولنې مسئله** : په اودس کې دغوږونو وظيفه ! مسح يا غَسل؟

(۱) دداود ظاهري رحمه الله او دامام زهري رحمه الله په نزد دغوږونو وظيفه غَسل(وينځل) دي .

(۲) دائمه اربعو رحمه الله په نزد دغوږونو وظيفه مسح ده .

**دفريق اول دليل** : دقرآن آيت ( فاغسلوا وجوهكم) کې په لحاظ دلغوي معنى غوږ هم په مخ کې داخل دی لهذا ددې وينځل لازم دي

**دائمه اربعو رحمه الله دليل** : حديث (إنما الأذنان من الرأس) لهذا دسر په شان به دغوږونو مسح هم وي

---

(۱) صحيح ابن حبان كتاب الطهارة ج۳ صـ ۱۵۴ رقم الحديث ۱۰۸۳ ، صحيح ابن خزيمة كتاب الطهارة ج۱صـ۷۷ برقم ۱۴۸، تلخيص الحبير ج۱ صـ ۹۰ باب سنن الوضوء .

**دفریق اول جواب** : دحدیث په مقابله کې لغوي معنی باندې دشرعي احکاماتو مدار نه وي

**دویمه مسئله** : دغوږونو دمسح لپاره دنوي اوبو راخیستلو حکم

۱. دامام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ په نزد دغوږونو دمسح لپاره نوي اوبه ضروري دي دسر نه پاتې شوې اوبه کافي نه دي

۲. دامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللَّهُ ، مالک واحمد رَحِمَهُمُ اللَّهُ په نزد غوږ دسر تابع دی لهذا جدا اوبه ضروري نه دي

**دامام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ دلیل** : حدیث دابوداود " **وأخذ ماءً جديدا لصماخيه**" **أي الأذنين**.

**دائمه ثلاثو رَحِمَهُمُ اللَّهُ دلیل** :حدیث " **الأذنان من الرأس**" رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې غوږونه سر سره دي یعنې دسر تابع دي ، او په یو حدیث کې " **واذا مسح رأسه خرجت الخطايا من أذنيه**" په دې کې دمسح نسبت سر طرفته اوکړې شو او دګناهونو دغوږزیدو نسبه یې غوږونه اوکرځول.

**امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ ته جواب** : د تطبیق صورت دادې چې " **وأخذ ماء جديدا**" والا حدیث لره دګوتې داوچیدو په صورت باندې محمول کړې شي.

# بَابُ التَّيَمُّنِ فِي الوُضُوءِ

## په اودس کې په ښي طرف د شروع کولو باب :

**{۱۳۷} عَن أَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَءوا بِمَيَامِنِكُم**

**رواه الاربعة و صححه ابن خزيمة** .(۱)

**ترجمه**: د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ نه روایت دي هغه ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې کله تاسو اودس کوئ نو په خپل ښي طرف شروع کوئ. د دي حدیث روایت څلورو محدثینو کړي او ابن خزیمه صحیح ګڼي دي.

---

(۱) ابوداود كتاب اللباس ج ۲ صـ ۲۱۵ باب في الانتعال ، نسائي كتاب صـ باب ابن ماجة ابواب الطهارة صـ ۳۳ باب التيمن في الوضوء ، ابن خزيمة كتاب الطهارة ج۱ صـ ۹۱ رقم الحديث ۱۷۸.

## بَابُ مَا يَقُولُ بَعدَ الفَرَاغِ مِنَ الوُضُوءِ

### باب دې په بيان د هغه شئ کې چې ويلې شي روسته د فارغيدو د اودس نه :

{۱۳۸} عَن عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَا مِنكُم مِن اَحَدٍ يَتَوَضَّأُ فَيبلغُ اَو فَيسبِغُ الوُضُوء ثُمَّ يَقُولُ : اَشهدُ اَن لَّا اِله اِلَّا الله وَحدَه لَا شَرِيکَ لَه وَ اَشهدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبدُه وَرَسُولُه اِلَّا فُتِحَت لَه اَبوَابُ الجَنَّة الثَّمَانِية يدخُلُ مِن اَيها شَائَ رواه مسلم والترمذي وَزَادَ اَللّٰهمَّ اجعَلنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجعَلنِي مِنَ المُتَطهرِينَ .[1]

**ترجمه** : د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دې هغه ويلي دي چې رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې په تاسو کې يو سړي او يوکس اودس وکړي نو ښه طريقې سره اودس وکړي بيا دا دعا ووايي (اَشهدُ اَن لَّا اِله اِلَّا الله وَحدَه لَا شَرِيکَ لَه وَ اَشهدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبدُه وَرَسُولُه ) يعني زه گواهي ورکوم چې الله يو ذات دي او د الله نه په غير بل هيڅ معبود نشته يک يو ذات دي هيڅوک ورسره شريک نشته او زه گواهي ورکوم چې په تحقيق محمد صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د الله بنده او رسول دي . نو د ده د پاره به د جنت اته واړه دروازې پرانستې شي په دې کې يې چې د کومې دروازې نه خوښه وي داخل به شي . د دې حديث روايت مسلم او ترمذي کړي دي او دا الفاظ يې زيات کړي دي چې ( اللهم اجعلني من التوابين واجعلني من المتطهرين ) يعني اې الله ما د ډير توبه ويستونکو کسانو او د ښه پاکيزو خلکو نه وګرزوي .

**مسئلة الباب**: په يو روايت کې د شهادتين نه پس د " اَللّٰهمَّ اجعَلنِي مِنَ التَّوَّابِينَ وَاجعَلنِي مِنَ المُتَطهرِينَ " زياتوالې هم راغلې دی . لهذا مکمله دعا لوستل پکار دي .

## بَابُ المَسحِ عَلَى الخُفَّينِ

### په موزو باندې د مسحې باب :

{۱۳۹} عَنِ المُغِيرَة بنِ شُعبَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ کُنتُ مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَاَهوَيتُ لِاُنزِعَ

---

(۱) مسلم کتاب الطهارة ج۱ صـ۱۲۲ باب الذکر المستحب عقب الوضوء ، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـ۱۸ باب ما يقال بعد الوضوء

خُفَّيه فَقَالَ دَعهمَا فَإِنِّي اَدخَلتُهُمَا طَاهِرَتَينِ عَلَيهِمَا رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت مغيره ابن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم سره په يو سفر کې وم ما اراده وکړه چې د نبي عَلَيهِ السَّلَام د مبارکو خپو نه موزي اوباسم نو هغه ونرمايل چې دا پريږده چې ما په تحقيق سره دا د طهارت په حالت کې په خپو کړي دي . نو په هغې يې مسح وکړه . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

{۷۰} وَعَن شُرَيحِ بنِ هَانِئٍ قَالَ اَتَيتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَسأَلُهَا عَنِ المَسحِ عَلَى الخُفَّينِ فَقَالَت : عَلَيکَ بِابنِ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَاسئَله فَإِنَّه کَانَ يُسَافِرُ مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم فَسَأَلنَاه فَقَالَ جَعَلَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ وَلَيَالِيهِنَّ لِلمُسَافِرِ وَيَومًا وَلَيلَةً لِلمُقِيمِ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : شريح بن هانئ ويلي دي چې حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته ورغلم چې د موزو د مسح په باره کې تري پوښتنه وکړم نو هغي راته وويل چې د ابي طالب زوي ته ورشه رَضِيَ اللهُ عَنهُ د هغه نه پوښتنه وکړه ځکه چې هغه به د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم سره سفر کاوه نو موږ د هغه نه پوښتنه وکړه هغه وفرمايل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم د مسافر د پاره دري ورځې او شپې مقرري کړيدي او د مقيم د پاره يې يوه ورځ او شپه مقرره کړي ده . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

{۷۱} وَعَن اَبِي بَکرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم جَعَلَ لِلمُقِيمِ يَومًا وَلَيلَةً وَلِلمُسَافِرِ ثَلَاثَةَ اَيَّامٍ وَلَيَالِيهِنَّ فِي المَسحِ عَلَى الخُفَّينِ رواه ابن الجارود و آخرون و صححه الشافعي والخطابي وابن خزيمة .(۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي بکره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې په تحقيق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّم په موزو باندي به مسح کې د مقيم د پاره يوه ورځ او يو شپه او د مسافر د پاره دري ورځې او دري شپې متعين کړي دي د دي حديث روايت ابن جارود او نورو محدثينو کړي دي او دا حديث امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ، خطابي او ابن خزيمه صحيح ګرځلي دي .

---

(۱) بخاري کتاب الوضوء ج۱ ص ۳۳ باب اذا ادخل رجليه مسلم کتاب الطهارة ج۱ ص ۱۳۴ باب المسح على الخفين .

(۲) مسلم کتاب الطهارة ج ۱ ص ۱۳۵ باب التوقيت في المسح على الخفين .

(۳) المنتقى لابن جارود ص ۳۹ رقم الحديث ۸۷ ، تلخيص الحبير ج۱ ص ۱۵۷ باب المسح على الخفين .

{۱۴۲} وَ عَن صَفوَانَ بنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَأمُرُنَا اِذَا كُنَّا سَفرًا اَن لَا نُنزِعَ خِفَافَنَا ثَلَاثَةَ اَيَامٍ وَ لَيَالِيهِنَّ اِلَّا مِن جَنَابَةٍ لٰكِن مِن غَائِطٍ وَ بَولٍ وَنَومٍ رواه احمد والنسائي والترمذي وآخرون و صححه الترمذي والخطابي وابن خزيمة و حسنه البخاري.[1]

**ترجمه** : حضرت صفوان ابن عسال رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مونږ ته امر فرمائلي دي چې کله مونږ په سفر کې وُ چې تر دريؤ ورځو او شپو پورې موزې مه وباسئ په غير د جنابت نه ليکن د غټو او وړو بولو او د خوب د وجهې نه موزې مه وباسئ، دا حديث احمد رَحِمَهُ اللهُ. نسائي رَحِمَهُ اللهُ. ترمذي او نورو محدثينو روايت کړي دې. ترمذي خطابي او ابن خزيمه صحيح ګڼړلي دي او بخاري حسن ګڼړلي دي.

{۱۴۳} وَ عَن عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لَوكَانَ الدِّينُ بِالرَّأيِ لَكَانَ اَسفَلَ الخُفِّ اَولٰى بِالمَسحِ مِن اَعلَاهُ وَقَد رَاَيتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَمسَحُ عَلٰى ظَاهِرِ خُفَّيهِ. رواه ابوداود و اسناده حسن.[2]

**ترجمه** : حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي که چرته دين په رايه وي نو د موزې لاندې طرف مسح به بهتره وه د موزې د بر: طرف نه او په تحقيق ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ليدلي دي چې د موزو په ښکاره او بره طرف يې مسح کوله. د دې حديث روايت ابوداؤد کړي دې او اسناد يې حسن دي.

{۱۴۴} وَ عَن عَوفِ بنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اَمَرَنَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي غَزوَةِ تَبُوكَ بِالمَسحِ عَلَى الخُفَّينِ قَالَ ثَلَاثٌ لِلمُسَافِرِ وَ يَومٌ وَ لَيلَةٌ لِلمُقِيمِ رواه احمد والطبراني في الاوسط و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح.[3]

**ترجمه** : حضرت عوف بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د تبوک په غزا کې په موزو باندې د مسح امر وکړ هغه وفرمايل چې د مسافر د پاره درې او د مقيم يوه ورځ او

---

(۱) مسند احمد ج۴ صـــ ۲۳۹، ۲۴۰، ترمذي ابواب الطهارات ج۱ صـــ ۲۷ باب المسح على الخفين للمسافر والمقيم، نسائي كتاب الطهارة ج۱ ص ۳۲ باب التوقيت في المسح على الخفين للمسافر، صحيح ابن خزيمة كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۹۹ رقم الحديث ۱۹۲، تلخيص الحبير ج۱ صـــ ۱۵۷ باب المسح على الخفين.

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۲۲ باب كيف المسح.

(۳) مسند احمد ج۶ صـــ ۲۷، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۲۵۹ باب التوقيت في المسح على الخفين نقلًا عن الطبراني الاوسط، كشف الاستار عن زوائد البزار كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۵۷ رقم الحديث ۳۰۹.

1 يو شيه . دا حديث احمد او طبراني په اوسط کې بيان کړې دی هيثمي وايي دي چې رجال يې د صحيح احاديثو رجال دي .

## په موزو باندې دمسح تفصيلي بحث

په موزو باندې دمسح دوه شرطونه دی: (۱) چې په سهولت او اسانسا سره پکې مو مسل بوډی ملې شی (۲) اوبه هم بيدا نکړې شي

**فقهي توجيه**: حفين دتخفيف نه دی . دکوم دوجې نه چې دجبو وظيفه دوسخلو غسل نه مسح ته داسانسا به توکه منتقل شوه

## دمسح على الخفين مشروعيت او ثبوت :

علماؤ ليکلي دي چې مسح على الخفين ددې امت دخصوصياتو نه دې . لکه څنګه چې د نبي کريم ﷺ ارشاد دی "صلوا في خفافكم فان اليهود لايصلون في خفافهم ".

شيعه روافض او دخوارجو نه علاوه پوره امت په دې خبره باندې اتفاق دی چې مسح على الخفين مطلق جائز دی که سفر وي يا حضر . ديو ضرورت دوجې وي يا بلا ضرورت . سړي او ښځي ټولو لپاره همدا حکم دی .

**دشيعه روافضو دليل** : حضرت على رضي الله عنه دمسح على الخفين قائل نه وو

دخوارجو دليل: په کتاب الله کې د غَسلِ رجلين حکم راغلې دی . مسح على الخفين ددې مخالف حکم دی .

## داهل سنت والجماعت دلائل :

۱.... داودس آيت (**وامسحوا برؤسكم وأرجلكم** ) يعني دارجلكم جر والا قرأت دکوم مطابق چې دخپو مسح کول پکار وو . دا حکم دموزو اغوستو په وخت کې دی .

۲.... احاديث متواتره کوم چې دمسح على الخفين دجواز په ثبوت باندې دلالت کوي . قولي او فعلي :

(الف) حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، عمر فاروق رضي الله عنه، عبدالله بن عمر رضي الله عنه، ابن عباس رضي الله عنه.ابن مسعود رضي الله عنه، ابن عمرو رضي الله عنه، عائشه رضي الله عنها، ابوهريره رضي الله عنه، او نور صحابه کرام رضي الله عنهم روايت کوي چې "**إنه عليه السلام مسح على الخفين**".

(ب) دحضور ﷺ ارشاد دی "**يمسح المقيم يوما وليلة والمسافر ثلاثة ايام ولياليها**".

۳.... ټول صحابه کرام رضي الله عنهم دمسح على الخفين په جواز باندې قائل پاتې شوي دي ، حسن بصري رحمه الله وايي چې زه دبدر اويا صحابو سره ملاو شوم . هغه ټول دمسح على الخفين

دجواز قائله وو ، امام احمد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي "ليس في قلبي شئ من المسح على الخفين فيه اربعون حديثا عن صحابة النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ موقوفا ومرفوعا" يعني فرمايي چې زما په زړه کې دمسح على الخفين متعلق هيڅ شبه نشته ، ځکه چې ددې په باره کې دڅلويښت صحابو نه مرفوع او موقوف روايتونه دي .امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ فرمايي ، ما قلت بالمسح على الخفين حتى جاء ني مثل ضوء النهار ، زه دمسح على الخفين قائل په هغه وخت کې اوګرځيدم چې کله ماته درڼا ورځې په شان ددې دلائل واضح شو او امام مسح على الخفين داهل سنت والجماعت يوه پيژندنه اوګرځوله .

ابن عبدالبر رَحِمَهُ اللهُ فرمايي " وهو ( أي المسح على الخفين) مذهب سائر أهل بدر والحديبية وغيرهم من المهاجرين والانصار وسائر الصحابة والتابعين وفقهاء المسلمين"

**شيعه ته جواب** : بعضي صحابو ته تر هغه وخته پورې تردد وو ترڅو پورې چې ددوي په علم کې دا نه وو راغلي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نزول مائده يعنې آيت داودس ( کوم کې چې دمشهور قرأت مطابق د غسل رجلين حکم دی ) نه پس هم مسح على الخفين څه شي دی ، چې کله دوي ته ددې علم اوشو نو بيا تردد هم ختم شو ، چنانچې دباب حديث نمبر ۱۴۰ " جَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَلَيَالِيَهُنَّ لِلْمُسَافِرِ وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ" او حديث نمبر ۴۳ "لَوْكَانَ الدِّينُ بِالرَّأْيِ لَكَانَ أَسْفَلُ الْخُفِّ أَوْلَى بِالْمَسْحِ مِنْ أَعْلَاهُ وَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلَى ظَاهِرِ خُفَّيْهِ" دواړه دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ منقول دي .

**خوارجو ته جواب** : (۱) ددې متعلق روايتونه حد دتواتر ته رسيدلي دي دکوم په ذريعې سره چې د کتاب الله ديو حکم دتقيد يا ددې په حکم کې اضافه ممکنه ده .(۲) دا ويل چې مسح على الخفين د اودس دآيت خلاف دی دا غلطه ده ځکه چې داودس په آيت کې د "أرجلكم" دوه قرتونه مشهور دي ، يو بالنصب دکوم نه چې غسل ثابت دی او دا حالت په غير خف باندې محمول دی ، دويم بالجر دکوم نه چې دمسح ثبوت دی او دا حالت په خف باندې محمول دی همداسې دقرآن په آيت باندې مکمل طور باندې عمل کول دي .

## د مسح على الخفين دمدت په باره کې اقوال :

(۱) دامام ابوحنيفه ، شافعي ، او احمد رحمهم الله په نزد دمقيم لپاره يو ورځ او يو شپه او مسافر لپاره درې ورځې او درې شپې دمسح مدت دی .(۲) دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد چې ترڅو پورې

موزې او نه باسي يا ورته جنابت لاحق نه شي نو مسح دې پرې کوي مقيم وي او که مسافر . ګويا چې دا دعدم توقيت قائل دی او جمهور دتوقيت قائل دي .

**دامام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **دليل** : د ابو داود دوه روايتونه ۱. د خزيمه بن ثابت رضي الله عنه حديث **"ولو استزدناه لزادنا"** يعني که مونږ دحضور صلى الله عليه وسلم نه ددريو ورځو نه زيات اجازت اخيستل غوختلې نو مونږ ته به يې ددريو ورځو نه دزياتې مسح کولو اجازت هم راکړې وې.

۲.... حديث دابي بن أبي عماره رضي الله عنه: دوي دحضور صلى الله عليه وسلم نه ديوې ورځې دمسح اجازت وغوختلو حضور صلى الله عليه وسلم ورله اجازت ورکړو ، ددوو ورځو يې ترې اوغوختلو نو ورېې کړو ، مخکې بيا ابی فرمايي **" حتى بلغ سبعاً"** يعني حضور صلى الله عليه وسلم مونږ ته داوه(۷) ورځو پورې دمسح کولو اجازت راکړو . په يو روايت کې دي چې حضور صلى الله عليه وسلم په آخر کې دا هم اوفرمايل **"ماشئت"** کوم وخت پورې چې غواړې مسح کولې شي.

**د جمهورو دلائل** : د باب ۱۴۰ نمبر حديث د حضرت علي رضي الله عنه حديث دي (۲) د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم **يمسح على ظاهر خفيه** . (۳) د ابي بکره رضي الله عنه روايت چې د باب ۱۴۱ نمبر حديث دي په دي کې د مسح په توقيت باندې تصريح شويده ( **جعل رسول الله صلى الله عليه وسلم للمقيم يومًا وليلة وللمسافر ثلاثة ايام ولياليهن في المسح على الخفين** . (المنتقى لابن جارود صـ۲۹ . موارد الظمآن صـ۷۲ .

حضرت صفوان بن عسال رضي الله عنه ۱۴۲ نمبر حديث روايت کړي دي ويلي يې دي چې **(كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يامرنا اذا كنا سفراً الخ)** .

**امام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **ته جواب :**

۱... په اولني حديث کې دننه د **(لو استزناه لزادنا )** الفاظو زيادت صحيح نه دي لکه چې علامه زيلعي رحمه الله او علامه ابن دقيق العيد د دي ضعف بيان کړي دي .( معارف السنن ج۱ صـ۳۳۵).

او بعض حضراتو ويلي دي چې دا ابتدايي واقعه ده او دې نه پس وقت او موده مقرر شوه او بعض حضراتو دا جواب کړي دي چې دا د حضرت خزيمه رحمه الله خپل ګمان دي او شرعًا حجت او دليل نه دي . او د دي ټولونه بهتر جواب د ترمذي په شرح کې علامه ابن سيد الناس کړي دي **لوثبت لم**

تقسيما حجة لان الزيادة على التوقيت مظنونة بأنهم لوسئلوا زادهم وهذا صريح في انهم لم يسئلوا ولا زيدوا فكيف تثبت زيادة بخبر دل على عدم وقوعها كما في شرح المنتقى للشوكاني . يعني معنى دا چې كه چرته دا حديث ثابت هم شي نو په دي سره حجت او دليل نه شي قائم كيدي ځكه چې په يو وقت باندي دغه زيادت شكمن او مظنون دي په دي شان سره كه دوي زياتوالي غوښتي وي هغې به دوي ته زياتوالي كړي وي او دا صريح دي په دي كې چې دوي زياتوالي نه دي غوښتي او نه دوي ته زياتوالي شوي دي نو په داسي خبره څنګه زيادت ثابت شي چې په عدم وقوع باندي دلالت كوي

(۲)**دليل** : د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ دويم استدلال په ابوداؤد كې د حضرت ابي بن عماره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي . **انه قال يارسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ المسح على الخفين ؟ قال نعم قال يومًا ؟ قال ويومين ؟ قال ثلثة ؟ قال نعم وما شئت** . او په يو روايت كې داسي دي عن ابي بن عمارة ( **قال فيه حتى بلغ سبعًا قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نعم ما بدالک** ) دغه روايت په عدم توقيت باندي صريح او ښكاره دي . ليكن د دي جواب دا دي چې دا د سند په اعتبار سره ضعيف دي لكه چې امام ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ فرمائلي دي **وقد اختلف في اسناده وليس هو بالقوي** او امام بيهقي په كتاب المعرفه كې فرمائلي: **اسناده مجهول** او امام دارقطني په خپل سنن كې ليكلي دي چې دغه اسناد ثابت نه دي او بخاري ويلي چې صحيح نه دي او امام نووي رَحِمَهُ اللهُ په شرح المهذب كې نقل كړي چې ايمهٔ ددي په ضعف باندي اتفاق كړي دي او جوزجاني په موضوعاتو كې شمار كړي دي .او په دي كې عبدالرحمن بن رزين . محمد بن يزيد او ايوب بن قطن ټول مجهول دي . (معارف السنن ج۱صــ۳۳۵).

**دمسح على الخفين كيفيت** : په موزو باندي مسح دپاسه طرف يا لاندي يا په دواړو طرفونو ؟(۱) امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد اعلى او اسفل دواړو طرف، اعلى باندي واجب او اسفل باندي مستحب ده .(۲) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف پاسني حصه باندي ، په اسفل باندي نه واجب ده او نه مستحب .

**دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دليل**: دمغيره بن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث په سند دوليد بن مسلم "**فمسح أعلى الخف وأسفله**".

**دامام ابوحنيفه او احمد رحمهم الله دليل**: حديث دعلي رضي الله عنه "**لَوْكَانَ الدِّيْنُ بِالرَّاْيِ لَكَانَ اَسْفَلَ الْخُفِّ اَوْلٰى بِالْمَسْحِ مِنْ اَعْلَاهُ وَقَدْ رَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ عَلٰى ظَاهِر**

خُفَّيه" همدارنګه د مغيره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ احاديث( کوم چې د وليد بن مسلم په واسطه سره نه دي) د کوم چې الفاظ دادي : "فمسح على الخفين ظاهرهما".

**فريق اول ته جواب** : د وليد بن مسلم روايت لره اکثرو محدثينو ضعيف او معلول ګرځولي دي ، ددويم روايت په رڼا کې دا هم ممکنه ده چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصلا اعلى الخف باندې مسح کړې وي ليکن اسفل نه د منع کولو د پاره يې دلاس نه اونيولو ، دې لره مسح سره تعبير اوکړې شو .

# اَبْوَابُ نَوَاقِضِ الوُضُوء

## د اودس د ماتوونکو شيانو بابونه :

# بَاب الوضوء مِنَ الخَارِجِ مِنْ اَحَدِ السَّبِيلَيْنِ

## د يو د دوو لارو نه د خارجيدو په وجه د اودس باب :

**{٢٥} عن ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال : قال رسولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُقْبَلُ صَلَاةُ مَنْ أَحْدَثَ حَتَّى يَتَوَضَّأَ قَالَ رَجُلٌ مِنْ حَضَرَمُوتَ مَا الحَدَثُ يا اَبَا هرَيرَة قَالَ فُسَاء اَو ضُرَاطٌ رواه الشيخان .**[1]

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي : د هغه چا مونځ نشي قبليدې چې بې اودسه شي تر څو پورې چې اودس وکړي د حضرموت يو سړي وويل اې ابي هريره بې اودسه کيدل څه شې دي ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې پسکۍ او يا تيز. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې .

**{٢٦} وَ عَنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ فِي بَطْنِهِ شَيْء فَأَشْكَلَ عَلَيهِ اَخَرَجَ مِنه شَيْء اَمْ لَا فَلَا يَخْرُجَنَّ مِنَ المَسجِدِ حَتَّى يَسْمَعَ صَوتًا اَو يَجِدَ رِيحًا رواه مسلم .**[2]

**ترجمه** : او د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي کله چې ستاسې په خېټه کې يو څه پيدا شي يعنې ګړبړيکې راشي او هغه په اشتباه کې شي چې ايا څه شې خارج شوي دي او که نه نو د مسجد نه دې نه وځي څو پورې يې چې اواز وانه وري او يا يې بوي معلوم نکړي . د دې حديث روايت مسلم کړې دې .

---

(١) بخاري كتاب الوضوء ج١ صـــ ٢٥ باب في الوضوء ، مسلم كتاب الطهارة ج١ صـــ ١١٨ باب وجوب الطهارة للصلوة .

(٢) مسلم كتاب الحيض ج١ صـــ ١٥٨ باب الدليل على ان من تيقن ....الخ

{۱۲۷} وعن صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَرْفُوعًا فِي حَدِيثِ الْمَسْحِ لٰكِنْ مِنْ غَائِطٍ وَّ بَوْلٍ وَنَوْمٍ رواه احمد وآخرونَ باسناد صحيح.[1]

**ترجمه**: د حضرت صفوان بن عسال رضي الله عنه نه د مسح په باره کې مرفوع روایت دې چې ....لیکن د ډکو او تشو بولو او د خوب په وجه اودس ماتیږي. د دې حدیث روایت احمد او نورو محدثینو کړي او اسناد یې صحیح دي.

{۱۲۸} و عن علي رضي الله عنه قَالَ كُنْتُ رَجُلًا مَذَّاءً فَكُنْتُ أَسْتَحْيِي أَنْ أَسْأَلَ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم لِمَكَانِ ابْنَتِهِ فَأَمَرْتُ الْمِقْدَادَ بْنَ الْأَسْوَدِ فَسَأَلَهُ فَقَالَ يَغْسِلُ ذَكَرَهُ وَيَتَوَضَّأُ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: حضرت علي رضي الله عنه ویلي دي چې زه یو داسې سړی وم چې ډیره مذي به رانه تله ماته حیا راتله چې د نبي علیه السلام نه پوښتنه وکړم ځکه چې د نبي علیه السلام لور ځما په نکاح کې وه نو مقداد ابن اسود ته مې په دې باره کې امر وکړ هغه ترې پوښتنه وکړه نو نبي علیه السلام ورته وفرمائل چې استنجا دې وکړي او اودس دې وکړي.

{۱۲۹} وَعَنْ عَائِشِ بْنِ أَنَسٍ رضي الله عنه يَقُولُ سَمِعْتُ عَلِيَّ بْنَ أَبِي طَالِبٍ عَلَى مِنْبَرِ الْكُوفَةِ يَقُولُ كُنْتُ أَجِدُ مِنَ الْمَذْيِ شِدَّةً فَأَرَدْتُ أَنْ أَسْأَلَ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم وَكَانَتْ ابْنَتُهُ عِنْدِي فَاسْتَحْيَيْتُ أَنْ أَسْأَلَ فَأَمَرْتُ عَمَّارًا فَسَأَلَهُ فَقَالَ إِنَّمَا يَكْفِي مِنْهُ الْوُضُوءُ رواه الحميدي في مسنده و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: حضرت عائش بن انس رضي الله عنه وایي چې ما د کوفې په ممبر باندې د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه نه اوریدلي دي چې ویل یې چې زه د مذي په وجه په ډیره سختۍ کې وم ما غوښتل چې بذات خود رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړم او د هغه صلى الله عليه وسلم لور زما په نکاح کې وه نو زه شرمیدم چې پوښتنه ترې وکړم نو عمار رضي الله عنه ته مې حکم وکړ نو هغه ترې پوښتنه وکړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې د دې نه اودس کافي دي. د دې حدیث روایت حمیدي په خپل مسند کې کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

---

(۱) مسند احمد ج۴ ص ۲۳۹، ۲۴۰.

(۲) بخاري كتاب الغسل ج۱ صــ ۴۱ باب غسل المذي، مسلم كتاب الطهارة ج۱ صــ ۱۴۳ باب المذي.

(۳) مسند حميدي ج۱ صــ ۲۲ برقم ۳۹ وسنن نسائي كتاب الطهارة ج۱ صــ ۳۶ باب ما ينقض الوضوء ومالاينقض من المذي.

{۱۵۰} و عن عائشة رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سُئِلَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْمُسْتَحَاضَةِ فَقَالَ تَدَعُ الصَّلَاةَ أَيَّامَ أَقْرَائِهَا ثُمَّ تَغْتَسِلُ غُسْلًا وَاحِدًا ثُمَّ تَتَوَضَّأُ عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ رواه ابن حبان و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې د مستحاضې په باره کې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پوښتنه وکړي شوه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمايل چې د حيض په ورځو کې دي مونځ پرېږدي بيا دي يو غسل وکړي بيا دي د هر مانځه د وخت د پاره اودس کوي . د دې حديث روايت ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

**مسئلة الباب** : په دې باب کې درې نواقض داودس بيان شوي دي .

**اولنی ماتونکې داودس : خارج من السبيلين.**

امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ ، شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په دې خبره باندې اتفاق دی چې خارج من السبيلين ناقض داودس دی که معتاد وي يا غير معتاد وي . دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد خارج من السبيلين که معتاد وي نو ماتونکې دې اودس لره ورنه نه دې ، مثلا مذي او دم استحاضه داجمهورو په نزد دنصوصو دمطلق کيدو دوجې نه ناقض داودس دی او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ددېنه اودس لره امر تعبدي ګرځوي .

**دويم ماتونکې داودس**: خروج مذي ، بالاتفاق اودس لره ماتونکې دی تفصيل يې په "باب ما جاء في المذي" کې تير شوي دی .

**دريم ماتونکې اودس لره**: دم استحاضه ، ددې بيان هم مفصلا "باب الاستحاضه" کې تير شوي دی.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي النَّوْمِ

## باب دې په بيان د هغه څه کې چې د خوب په باره کې راغلي دي :

وَقَدْ تَقَدَّمَ حَدِيثُ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ فِيهِ .

په دې باره کې د صفوان بن عسال حديث مخکې تير شوي دي .

---

(۱) صحيح ابن حبان كتاب الطهارة ج۳ص۲۶۶ رقم الحديث ۱۳۵۲.

{١٥١} وعن أنس بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَهدِهِ يَنتَظِرُونَ العِشَاء حَتَّى تَخفِقَ رُؤُسُهُم ثُمَّ يُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّؤُونَ رواه ابوداود و الترمذي باسناد صحيح و اصله في مسلم .(١)

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ ویلي دي چې د نبي عَلَيهِ السَّلَام اصحابو به د ده په زمانه کې د ماسختن د مانځه انتظار کاوه تر دې پورې چې سرونه به یې د پرکالئ په وجه ښکته نیولي ؤ بیا به یې مونځ وکړ او اودس به یې نه کاوه . د دې حدیث روایت ابوداؤد او ترمذي کړي دي په صحیح سند سره . او د دې اصل په مسلم کې دي.

{ ١٥٢} وَعَنْ أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لَيسَ عَلَى المُحتَبِي النَّائِمِ وَلَا عَلَى القَائِمِ النَّائِمِ وَلَا عَلَى السَّاجِدِ النَّائِمِ وُضُوء حَتَّى يَضْطَجِعَ فَإِذَا اضْطَجَعَ تَوَضَّأَ رواه البيهقي في المعرفة و قَالَ الحَافِظ فِي التَّلخِيصِ (ا/١٢٠) إِسْنَادُهُ جَيِّدٌ (٢)

**ترجمه** : حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ویلي دي چې نشته په محتبي ( شا کړو پې باندي) چې اوده وي او نه په ولاړ اوده او نه په سجده لرونکي او ده باندي اودس تر هغې پورې چې اړخ ولګوي نو کله یې چې اړخ ولګاوه اودس به کوي . د دې حدیث روایت بیهقي په اوسط کې کړي دي او حافظ په تلخیص کې ویلي دي چې اسناد یې جید دي .

**مسئلة الباب** : خوب لره د ناقض وضو کیدو متعلق دري مشهور اقواله دادي :

(١) اسحاق بن راهویه رَحِمَهُ اللهُ او حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ په نزد مطلقا ناقض وضو دی .

(٢) حضرت ابوموسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنهُ، سعید بن المسیب رَحِمَهُ اللهُ او امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد مطلقا ناقض نه دی .

(٣) ائمه اربعه رَحِمَهُمُ اللهُ استرخاء دمفاصلو (چې جوړونه یې سست شي) سره خوب لره ناقض داودس ګرځوي .

بیا د ائمه اربعه رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد استرخاء مفاصل لپاره د معیار په تعین کې لاندي تفصیل دی .

---

(١) ابوداؤد كتاب الطهارة ج١ صـ ٢٦ باب في الوضوء من النوم ، ترمذي ابواب الطهارة ج١ صـ ٢٢ باب الوضوء من النوم، مسلم كتاب الحيض ج١ صـ ١٦٣ باب الدليل على ان نوم الجالس...الخ

(٢) معرفة السنن والآثار كتاب الطهارة ج١ صـ ٣٦٩ رقم الحديث ٩٢١، تلخيص الحبير ج١ صـ ١٢٠

(۱) دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد مونځ کې دننه يا دمونځ نه بهر ولاړه او ناسته رکوع او سجدې په حالت کې کوم چې دسنت مطابق وي، اوده کيدل ناقض داودس نه دی. په باقي حالاتو کې لکه ډډه لګول په ډډه سملاستل او په يو شي ډډه لګول اوده کيدل وغيره ناقض داودس دي.
(۲) دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد په ناسته په داسې حالت کې اوده کيدل چې کوناټي يې په زمکه باندې لګيدلې وي اودس لره ماتونکې نه دی، او نور په ټولو حالاتو کې ناقض داودس دی.
۳.... دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد داصح قول مطابق حالت قيام او قعود کې دنوم کثير او ددې دوو حالتونو نه علاوه نوم مطلقا ناقض دی.
۴.... دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد نوم کثير مطلقا ناقض دی او قليل مطلقا ناقض نه دی.

**دفريق اول دليل**: حديث دصفوان بن عسال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " لكن من غائط وبول ونوم " په دې کې نوم لره يې مطلقا ناقض ګرځولې دی.

**دفريق دوم دليل**: حديث دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " كَانَ أَصْحَابُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى عَهْدِهِ يَنْتَظِرُونَ الْعِشَاءَ حَتَّى تَخْفِقَ رُؤُسُهُمْ ثُمَّ يُصَلُّونَ وَلَا يَتَوَضَّؤُونَ " په دې کې دصحابه کرامو دمطلقا نوم نه داودس نه کولو ذکر دی.

**ددريم فريق دليل**: حديث دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " ان الوضوء لا يجب الا على من مضطجعا فانه اذا اضطجع استرخت مفاصله " په دې کې داسترخاء مفاصل اعتبار کړې شوې دی. يا داحنافو پخپلې تشريح باندې دليل حديث دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " لَيْسَ عَلَى الْمُحْتَبِي النَّائِمِ وَلَا عَلَى الْقَائِمِ النَّائِمِ وَلَا عَلَى السَّاجِدِ النَّائِمِ وُضُوءٌ حَتَّى يَضْطَجِعَ فَإِذَا اضْطَجَعَ تَوَضَّأَ " دی.

**فريق اول ته جواب** : حديث صفوان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ کې دقليل او کثير فرق نه دې کړې شوې ليکن دنورو احاديثو نه دې لره استرخاء مفاصل والا خوب سره به مقيد کولې شي.

**دويم فريق ته جواب** : په مسند بزار کې حديث دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ داسې مروي دې چې کومو صحابو ته خه دوب خوب ورغلې وو هغوي ته حکم ورکړې شو لهذا ددې حديث نه دمطلق نوم غير ناقض کيدو باندې استدلال صحيح نه دی.

## بَابُ الْوُضُوءِ مِنَ الدَّمِ

### دويني دوجې نه د اودس کولو باب:

(۱۵۲) عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَصَابَهُ قَيْءٌ أَوْ رُعَافٌ أَوْ قَلْسٌ أَوْ

مَذِيٌ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ وَهُوَ فِي ذٰلِكَ مَا لَا يَتَكَلَّمُ رواه ابن ماجه و في اسناده مقال و تقدم حديث عائشة رضي الله عنها في باب الاستحاضة.[1]

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائيلي دي څوک چې قي وکړي او يا يې د پوزو نه وينه لاړه شي او يا اولټي وکړي او يا تري مذي خارج شي نو سلام دي وګرزوي او اودس دي اوکړي او بيا دي په خپل دغه مونځ باندي بنا وکړي ولي چې څو پوري يې خبري نه وي کړي هغه په مانځه کې دي د دي حديث روايت ابن ماجه کړي او د دي په اسناد کې خبري شته او د حضرت عائشي رضي الله عنها حديث د استحاض په باب کې تير شوي دي.

{۱۵۴} و عن ابن عُمَرَ رضي الله عنه كَانَ إِذَا رَعُفَ رَجَعَ فَتَوَضَّأَ وَلَمْ يَتَكَلَّمْ ثُمَّ رَجَعَ وَبَنَى عَلَى مَا قَدْ صَلَّى رواه البيهقي و آخرون و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي كله به چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه د پوزو نه وينه وبهيده واپس به لاړ نو اودس به يې وکړ او خبري به يې نه وي کړي نو بيا به راواپس شو او بناء به يې په هغه مونځ باندي وکړه کوم يې چې کړي وُ يعني د سر نه به يې مونځ نه ګرځاوه، د دي حديث روايت بيهقي او نورو کړي او اسناد يې صحيح دي.

{۱۵۵} و عنه قَالَ إِذَا رَعُفَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ أَوْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ أَوْ وَجَدَ مَذْيًا فَإِنَّهُ يَنْصَرِفُ وَيَتَوَضَّأُ ثُمَّ يَرْجِعُ فَيُتِمُّ مَا بَقِيَ عَلَى مَا مَضَى مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ رواه عبد الرزاق في مصنفه و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي كله به چې په مانځه کې د يو سړي پوزه ويني شوه او يا به ورته قي پيښه شو او يا به يې مذي ومونده نو هغه به د مانځه نه وګرځيد او اودس به يې وکړ بيا به واپس راغي او پاتي مونځ به يې په تير شوي مونځ باندي پوره کړ تر څو پوري به يې چې خبري نه وي کړي. د دي حديث روايت عبد الرزاق په خپل مصنف کې کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## د جسم نه د وينې وتلو حکم

(۱) د امام مالک او د امام شافعي رحمهم الله په نزد ناقض د اودس نه دی.

---

(۱) ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۸۷ باب ماجاء في البناء على الصلوة

(۲) سنن الكبرى كتاب الصلوة ص ۲۵۹ باب بنى من سبقه الحدث ... الخ.

(۳) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۲ ص ۳۳۹ باب الرجل يحدث ثم يرجع قبل أن يتكلم.

(۲) دامام ابوحنیفه او دامام احمد رَحِمَهُمَااللهُ په نزد چې دخپل ځاي نه اوبهیږي تجاوز کونکې وینه او دس لره ماتونکې ده.

## امام مالک او دامام شافعي رحمهم الله دلیل؛

۱... دغزوه ذات الرقاع واقعه ده چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دمعمول مطابق دوو صحابه کرامو لره دشپې په وخت دپیرې لپاره مقرر وفرمایل دهغوي نه یو پخپل نمبر کې په مونځ کې مشغوله شو، په دې کې یو مشرک چې داول نه ورته چرته پټ وو، په ده باندې یې دتیر ګوزارونه شروع کړل، لیکن هغه صحابي په مونځ کې مشغول وو مونځ قطع کول یې نه غوښتل. دمونځ نه چې کله فارغ شو او خپل ملګري یې چې راویخ کړل نو دده په بدن باندې یې چې وینه وکتله نو ویریدل او وې ویل سبحان الله! تا زه په شروع کې ولې نه راویخولم، چې کله ده اولنې تیر په تا اویشتو؟ نو هغه صحابي ورته جواب ورکړو ما یو سورت شروع کړې وو دهغه سورت پوره کولو نه بغیر ما لمونځ ختمول نه غوښتل. پس که وینه ناقض وضو وایي نو هغه به سمدستي مونځ ماتولو.

۲... مسعر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایي کومه شپه باندې چې په حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې حمله وکړې شوه نو ما وکتل چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونځ کولو او دهغه دبدن نه وینې بهیدلې.

## دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ دلائل :

۱... د باب دري واړه حدیثونه، دهغې نه داولني حدیث په سند کې څه ناڅه کلام ضرور دی خو بیا هم داخرینې حدیثونو سند قوي او صحیح دی، دابن عمر صحابي قول غیر مدرک بالقیاس دې کوم چې دحدیث مرفوع په درجه کې دی.

۲... د دم استحاضه والا حدیثونه هم داحنافو مؤید دي ځکه چې هلته علت داستحاضې نه بلکه وینې ویستل یې ګرځولې دی "فانها دم عرق".

## امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ته جواب:

۱.دغزوه ذات الرقاع والا حدیث نه استدلال صحیح نه دې ځکه چې (الف) دا حدیث صحیح نه دې. (ب) دیو صحابي دې کوم چې ممکن دې چې دهغه اجتهاد وي .(ج) صحابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مناجات په حالت کې وو ځکه دخروج دم پته ورته نه لګیده .(د) که وینه ناقض وضو نه ده نو ناپاک خو ضرور ده نو بیا ددې صحابي ددې دومره وینې وتلو باوجود چې څنګه مونځ اوکړو او دهغه مونځ څنګه صحیح شو؟ فما هو جوابکم فهو جوابنا.

۲... دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسلسل وینه بهیدله نو هغه دمعذور په حکم کې وو.

# بَابُ الوُضُوءِ مِنَ الْقَيْءِ

## کرځون او د قئ د وجې نه د اودس کولو باب :

{۱۵۶} عَنْ مَعْدَانِ بْنِ اَبِي طَلْحَةَ عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَاءَ فَتَوَضَّأَ فَلَقِيْتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ صَدَقَ اَنَا صَبَبْتُ لَهُ وُضُوءَهُ رواه الثلاثة و اسناده صحيح وَقَدْ تَقَدَّمَ اَحَادِيْثُ الْبَابِ فِي الْبَابِ السَّابِقِ .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابو درداء رضي الله عنه نه روايت دي چې بيشکه رسول الله صلى الله عليه وسلم قئ وکړنو اودس يې وکړنو زه د دمشق په مسجد کې د ثوبان رضي الله عنه سره مخامخ شوم نو دا حديث او خبره مې ورته ياده کړه نو وي ويل چې رښتيا يې ويلي دي ما ورته د اودس اوبه اچولي . دا حديث درې وُ محدثينو روايت کړي او اسناد يې صحيح دي . د باب احاديث په مخکې باب کې هم تير شوي دي.

**مسئلة الباب :**

### د قئ حکم

(۱) د امام مالک او د امام شافعي رحمه الله په نزد قي مطلقا ناقض د اودس دی .

(۲) د امام ابو حنيفه او احمد رحمهم الله په نزد په ډکه خوله قي ناقض د اودس دی .

**د امام ابو حنيفه رحمه الله او د احمد رحمه الله دليل** : د باب حديث ابو الدرداء او د ثوبان رضي الله عنهما، همدارنګې د تير شوي باب حديثونه هم مؤيد دي حال دا چې مالکيه او شوافعو سره په دې مسئله کې څه صريح حديث نشته.

# بَابُ الوُضُوءِ مِنَ الضَّحْكِ

## د خندا د وجې نه د اودس کولو باب :

{۱۵۷} عَنْ اَبِي مُوْسٰي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بَيْنَمَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ اِذْ دَخَلَ رَجُلٌ فَتَرَدّٰي فِي حُفْرَةٍ كَانَتْ فِي الْمَسْجِدِ وَكَانَ فِي بَصَرِهِ ضَرَرٌ فَضَحِكَ كَثِيْرٌ مِنَ الْقَوْمِ وَهُمْ فِي الصَّلٰوةِ فَاَمَرَ رَسُوْلُ

---

(۱) ترمذي ابواب الطهارات ج۱ ص ۲۵ باب الوضوء من القيء والرعاف ، ابوداؤد کتاب الصيام ج۱ ص ۳۲۴ باب الصائم يستقي عامدا.

الله ﷺ مَنْ ضَحِکَ أَنْ يعيدَ الوُضُوء وَ يعيدَ الصَّلَاة رواه الطبراني في الكبير وَ رِجَالُه ثِقَاتٌ والارسالُ صحيح في الباب .[۱]

**ترجمه** : حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله ﷺ خلکو ته مونځ کاوه چې يو سړي راغې او په جومات کې يو کنده وه په هغې کې وروغورځيده او د ده په سترګو کې نقصان وُ په مانځه کې ډيرو خلکو وخندل نو رسول الله ﷺ امر وکړ چې چا خندلي وي اودس دي راوګرزوي او مونځ دي هم راوګرزوي . د دي حديث روايت طبراني په کبير کې کړيدي او رجال يې ثقه دي او په دې باب کې ارسال صحيح دي .

{۱۵۸} وعن أبي العَالية الرِّيَاحي أَنَّ أَعْمٰی تَرَدّٰی فِي بِئْرٍ وَالنَّبِي ﷺ يصَلِّي بِأَصْحَابِه فَضَحِکَ بَعْضُ مَنْ کَانَ يصَلِّي مَعَ النَّبِي ﷺ فَأَمَرَ النَّبِي ﷺ مَنْ کَانَ ضَحِکَ مِنْهُمْ أَنْ يعِيدَ الوُضُوء وَ يعِيدَ الصَّلَاة رواه عبد الرزاق في مصنّفه و اسناده مُرْسَلٌ قَوِي .[۲]

**ترجمه** : ابو العاليه رياحي ويلي دي چې بيشکه يو روند سړي په کوهي کې ولويد او نبي عليه السلام صحابه وُ ته مونځ کاوُ نو بعضي هغه کسانو وخندل کومو کسانو چې د نبي عليه السلام سره مونځ کاوه نو نبي عليه السلام هغه چاته چې خندلي يې وُ امر وکړ چې اودس دي هم بيا وکړي او مونځ دي هم راوګرزوي . د دي حديث روايت عبد الرزاق په خپل مصنف کې کړي او اسناد يې مرسل قوي دي .

**مسئلة الباب : په قهقهې سره د خندا حکم :**

په دې کې خو د ټولو اتفاق دې چې داسې خندا کول چې قهقهه وي نو مونځ لره ماتوي ، ليکن آيا ناقض د اودس لره هم دي يا نه ؟ په دې کې اختلاف دې .

(۱) د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد مطلقا ناقض د مونځ نه دی .(۲) د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد د عاقل بالغ کس د رکوع او د سجدې والا مونځ کې په قهقهې سره خندا ناقض د مونځ ده .

**د ائمه ثلاثه رحمهم الله دليل:**

۱... په دې باره کې د نبي کريم ﷺ نه کوم صريح او صحيح حديث هم منقول نه دې .

۲.... قياس : يعنې چې کله قهقهه خارج صلاة ناقض نه ده نو داخل صلوة هم ناقض نه ده پکار .

---

(۱) مجمع الزوائد کتاب الطهارة ج ۱ ص ۲۴۶ باب الوضوء من الضحک نقلا عن الطبراني في الکبير .
(۲) مصنف عبد الرزاق کتاب الصلوة ج۲ ص ۳۷۶ باب الضحک والتبسم في الصلوة .

**دامام ابوحنیفه** رحمه الله **دلیل**: دباب حدیث مرسل دکوم مطابق چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د صحابو نه دخندیدونکو ته اعاده دصلاة حکم ورکړې وو.

**ائمه ثلاثه ته جواب**: (۱) دجمهورو په نزد حدیث مرسل چې کله صحیح سند سره مروي وي مقبول دی .(۲) دقیاس په مقابله کې حدیث ته ترجیح حاصله ده . ورنه ضحک او قهقهه دمفسد صلاة کیدو څه دلیل دی حال دا چې هغه هم خلاف قیاس دی.

# بَابُ الْوُضُوءِ بِمَسِّ الذَّكَرِ
## د ذکر د مسه کولو دوجې نه د اودس کولو باب:

{۱۵۹} عَنْ بُسْرَةَ رضي الله عنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ رواه مالكٌ في المُوَطَّأ وآخرونَ وصحّحه احمد والترمذي والدار قطني والبيهقي وفي البابِ أحاديثُ أُخَرُ.[1]

**ترجمه**: حضرت بُسرة رضي الله عنها ویلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي کله چې یو ستاسي څپل مخصوص اندام مس کړي نو اودس دې وکړي د دې حدیث روایت په مؤطا امام مالک کې دی او نورو محدثینو کړی دی او احمد، ترمذي، الدار قطني او بیهقي صحیح ګڼرلي دي او په باب کې نور احادیث هم شته.

{۱۶۰} وعن طَلْقِ بْنِ عَلِيٍّ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَجُلٌ مَسَسْتُ ذَكَرِي أَوْ قَالَ رَجُلٌ يَمَسُّ ذَكَرَهُ فِي الصَّلَاةِ أَ عَلَيْهِ وُضُوءٌ فَقَالَ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم لَا إِنَّمَا هُوَ بِضْعَةٌ مِنْكَ أَخْرَجَهُ (۵۹) الخَمْسَةُ وَصَحَّحَهُ ابْنُ حِبَّانَ والطبراني وابنُ حَزْمٍ وَقَالَ ابْنُ الْمَدِينِيِّ هُوَ أَحْسَنُ مِنْ حَدِيثِ بُسْرَةَ رضي الله عنها.[2]

**ترجمه**: حضرت طلق بن علي رضي الله عنه ویلي چې یو سړي وویل چې ما څپل ذکر مسح کړي لو یا یو سړي وویل چې څپل ذکر یې مسح کړي و په مونځ کې ایا په ده باندې اودس شته؟ نو نبي علیه السلام وفرمایل چې نه بلکه دا ستاد جسم یوه حصه ده دا حدیث پنځو محدثینو خارج کړي او ابن حبان، طبراني اوابن حزم صحیح ګڼرلي دي اوابن مدیني ویلي چې دا حدیث دبسره رضي الله عنها حدیث نه احسن دي.

---

(۱) مؤطاامام مالک کتاب الطهارة ص۳۰ باب الوضوء من مس الفرج،ترمذي ابواب الطهارت ج۱ص۲۵باب الوضوء من مس الذکر،مسنداحمد ج۶ ص۴۰۶،دارقطني کتاب الطهارة ج۱ص۱۴۷باب ماروي في لمس القبل والدبر والذکر... سنن الکبری کتاب الطهارة ج۱ص۱۲۸باب الوضوء من مس الذکر

(۲) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ص۲۴باب الرخصة في ذالک،ترمذي ابواب الطهارت ج۱ص۲۵ باب ترک الوضوء من مس الذکر، نسائي کتاب الطهارة ج۱ص۳۸باب ترک الوضوء من ذالک،ابن ماجة ابواب الطهارة ص۳۷باب الرخصة في ذالک ورقم الحديث ۸۲۲۹ ، ۸۲۳۳،۸۲۳۲،۸۲۳۲، صحیح ابن حبان کتاب الطهارة ج۳ ص۱۲۹ المحلی ابن حزم کتاب الطهارة ج۱ ص۱۹۲ باب مس الرجل ذکر نفسه عامدا ... الخ.

{۱۶۱} وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ لَا يَرَى فِي مَسِّ الذَّكَرِ وُضُوءًا رواه الطحاوي و إِسْنَادُهُ صَحِيحٌ.[۱]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ذکر په مسح کولو سره اودس ضروري نه ګڼړي د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۱۶۲} وَ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَا أُبَالِي أَنْفِي مَسَسْتُ أَوْ أُذُنِي أَوْ ذَكَرِي رواه الطحاوي وَفِي إِسْنَادِهِ لِينٌ.[۲]

**ترجمه** : حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي هيڅ پروا نه کوم زه چې خپله پوزه مې مسه کړي او يا غوږ اويا خپل ذکري مسه کړي يعنې د دي ټولوشيانو په مسه کولو اودس نه ماتيږي دا حديث طحاوي رَحِمَهُ اللهُ نقل کړي دي او د دي په اسناد کې نرمي او ضعيف دي.

{۱۶۳} وَ عَنْ أَرْقَمِ بْنِ شُرَحْبِيلَ قَالَ قُلْتُ لِعَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِنِّي أَحُكُّ جَسَدِي وَ أَنَا فِي الصَّلَاةِ فَأَمَسُّ ذَكَرِي فَقَالَ إِنَّمَا هُوَ بِضْعَةٌ مِنْكَ رواه محمدُ بْنُ الحَسَنِ فِي المُوَطَّأ و اسناده حسن.[۳]

**ترجمه** : ارقم بن شرحبيل ويلي دي چې ما عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل چې زه خپل بدن د مانځه په حالت کې ګروم نو خپل ذکر مسه کړم نو هغه وويل چې بې شکه دا ستا د بدن يوه حصه ده.

{۱۶۴} وَ عَنِ البَرَاءِ بْنِ قَيْسٍ قَالَ : قَالَ حُذَيْفَةُ بْنُ اليَمَانِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي مَسِّ الذَّكَرِ مِثْلُ أَنْفِكَ رواه محمد في الموطأ و اسناده حسن.[۴]

**ترجمه** : البراء بن قيس ويلي دي چې حذ يفه بن يمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ذکرد مس په باره کې ويلي دي چې ستاپوزي په شان دي. د دي حديث روايت محمد رَحِمَهُ اللهُ په موطا کې کړي دی او اسناد يې صحيح دی.

{۱۶۵} و عَنْ قَيْسِ بْنِ أَبِي حَازِمٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَيَحِلُّ لِي أَنْ أَمَسَّ ذَكَرِي وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ إِنْ عَلِمْتَ أَنَّ مِنْكَ بَضْعَةً نَجِسَةً فَاقْطَعْهَا رواه احمد في الموطأ و اسناده حسن.(۵)

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج۱ ص ۵۹ باب الوضوء بمس الفرج.
(۲) طحاوي كتاب الطهارة ج۱ ص ۵۹ باب الوضوء بمس الفرج.
(۳) مؤطا امام محمد ص ۵۵ باب الوضوء من مس الذكر.
(۴) مؤطا امام محمد ص ۵۵ باب الوضوء من مس الذكر.
(۵) مؤطا امام محمد ص ۵۸ باب الوضوء من مس الذكر.

**ترجمه** : قيس بن ابي حازم ويلي دي چې سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته يو سړي راغې وې ويل ايا ماته د مانځه په حالت، کې حلال دي چې خپل مخصوص اندام مس کړم نو هغه وويل که چرته ته پوهيږې چې ستا د بدن يوه ټوټه او ټوکړه پليته ده نو غوڅه يې کړه . د دې حديث روايت محمد په موطا کې کړي او اسناد يې حسن دي .

{۲۶۶} و عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّه سُئِلَ عَنْ مَسِّ الذَّكَرِ فَقَالَ إِنَّمَا هُوَ بَضْعَةٌ مِنْكَ رواه احمد و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** :د حضرت ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د ذکر د مس کولو په باره کې پوښتنه وکړې شوه نو هغه وويل چې بې شکه دا ستا د بدن يوه ټوکړه او ټوټه ده . د دې حديث روايت محمد کړي او اسناد يې حسن دي .

{۲۶۷}وَ عَنِ الحَسَنِ عَن خَمسَة مِن أَصحَابِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنهُمْ عَلِي بن أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَعَبدِ الله بنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ حُذَيفَة بنُ اليمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ عِمرَانُ بنُ حُصَينٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَرَجُلٌ آخَرُ أَنَّهم كَانُوا لَا يَرَونَ فِي مَسِّ الذَّكَرِ وُضُوءا رواه الطحاوي ورجاله ثقات .[2]

**ترجمه** : د حضرت حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دې چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د پنځو صحابه کرامو چې يو حضرت علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حذيفه بن يمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او بل يو سړي د دوي ؤ چې نه يې گانړه اودس د مس د ذکر نه . د دې حديث روايت طحاوي کړي او رجال يې ثقه دي .

**مسئلة الباب** : دذکر دمس کولو نه داودس حکم

(۱) دائمه ثلاثه په نزد مس ذکر (يو څو شرائطو باندې) ناقض داودس دی .(۲) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد مطلقا ناقض داودس دې .

**دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ دليل**: حديث دبسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا مرفوعا "إِذَا مَسَّ أَحَدُكُمْ ذَكَرَهُ فَلْيَتَوَضَّأْ".

**دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ دليل**:

۱... حديث دطلق بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوعا "إنما هو بضعة منك".

۲. جليل القدر صحابه کرام رضي الله عنهم مس ذکر لره په شان دپوزې او دنورو اعضاؤ په شان يې

---

(۱) موطا امام محمد صــ ۵۸ باب الوضوء من مس الذکر .

(۲) طحاوي کتاب الطهارة ج۱ صــ ۵۹ باب الوضوء بمس الفرج .

++ګڼلې دې او غیر ناقض یې ګرځولې.
۲... قیاس: ذکر دنورو اندامونو په شان یو اندام دې لهذا دنورو اعضاو په شان دخروج نجاست نه بغیر دې سره هم اودس نه ،ي ماتیدل پکار.

## ائمه ثلاثو رَحِمَهُمُ اللهُ ته جواب او په دوو حدیثونو کې تطبیق:

۱... حدیث دبسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ضعیف دی.
۲... حدیث دبسره رضي الله عنها په مقابله کې حدیث دطلق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته ترجیح حاصله ده، ځکه چې دې مسئلې تعلق دسړو سره دې او حضرت بسره رضي الله عنها ښځه ده، همدارنګې دحدیث طلق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په سند کې هیڅ اضطراب هم نشته په خلاف دحدیث دبسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، دصحابه کرامو رضي الله عنهم یو لوي جماعت هم دنه ناقض کیدو قائله وو.
۳... دتطبیق یو څو صورتونه ممکن دي چې: حدیث بسره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کې (الف) دنقض وضو حکم استحبابي وي .(ب) دوضو نه معنی لغوي یعنې دواړه لاسونه وینځل مراد وي .(ج) مس ذکر دمباشرت فاحشه نه کنایه وي.

# بَابُ الوُضُوءِ مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ

## په اور باندې د پوخ شوي شي نه د اودس کولو باب:

{۲۸} عَن أَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي دي چې فرمائل یې: اودس کوئ په اور باندې د پوخ شوي څیز نه. د دې حدیث روایت مسلم کړي دي.

{۲۹} وَعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَت قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ رواه مسلم[2]

**ترجمه**: حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې په اور باندې د پوخ شوي شي نه اودس کوئ. د دې حدیث روایت مسلم کړي دي.

---

(۱) مسلم کتاب الحیض ج۱ صـ ۱۵۷ باب الوضوء مما مست النار.
(۲) مسلم کتاب الحیض ج۱ صـ ۱۵۷ باب الوضوء مما مست النار.

{۱۷۰} وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَ كَتِفَ شَاةٍ ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ رواه الشيخان.[۱]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ګډ او د پسه د لاس غوښه وخوړه بيا يې مونځ وکړ او اودس يې ونه کړو د دي حديث روايت مسلم او بخاري کړي دي.

{۱۷۱} وَعَنْ مَيْمُوْنَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكَلَ عِنْدَهَا كَتِفًا ثُمَّ صَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ رواه الشيخان.[۲]

**ترجمه** : حضرت ميموني رضي الله عنها ويلي دي چې نبي عليه السلام د دي سره د ګډ او پسه د لاس غوښه وخوړه بيا يې مونځ وکړ او اودس يې ونه کړ د دي حديث روايت مسلم او بخاري کړي دي.

{۱۷۲} وَعَنْ عَمْرِو بْنِ أُمَيَّةَ الضَّمْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْتَزُّ مِنْ كَتِفِ شَاةٍ فَأَكَلَ مِنْهَا فَدُعِيَ إِلَى الصَّلَاةِ فَقَامَ وَطَرَحَ السِّكِّيْنَ وَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ اخرجه الشيخان.[۳]

**ترجمه** : حضرت عمرو بن ضُمري رضي الله عنه ويلي دي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليد چې د ګډ د لاس نه يې غوښه کټ او راپري کړه او هغه يې وخوړه نو مانځه ته وبللي شو نو پاڅيده او چاړه يې کيښوده او مونځ يې وکړ او اودس يې ونه کړ. دا حديث شيخينو خارج کړي دي.

{۱۷۳} وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ جَلَسَ عَلَى الْبَابِ الثَّانِيْ مِنْ مَسْجِدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَدَعَا بِكَتِفٍ فَتَعَرَّقَهَا ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى وَلَمْ يَتَوَضَّأْ ثُمَّ قَالَ جَلَسْتُ مَجْلِسَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَكَلْتُ مَا أَكَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَنَعْتُ مَا صَنَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه احمد وابو يعلى والبزار وقال الهيثمي رجال احمد ثقات.[۴]

**ترجمه** : د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه روايت دي چې بې شکه هغه د نبي عليه السلام د مسجد په دويم دروازه کې ناست ؤ نو د ګډ يو لاس يې راوغوښت نو د هغې غوښه يې وخوړه بيا ودريده او

(۱) بخاري كتاب الوضوء ج۱ ص ۳۴ باب من لم يتوضأ من لحم الشاة.
(۲) بخاري كتاب الوضوء ج۱ ص ۳۴ باب من مضمض من السويق ولم يتوضأ، مسلم كتاب الحيض ج۱ ص ۱۵۷ باب الوضوء مما مست النار.
(۳) بخاري كتاب الوضوء ج۱ ص ۳۴ باب من لم يتوضأ من لحم الشاة، مسلم كتاب الحيض ج۱ ص ۱۵۷ باب الوضوء مما مست النار.
(۴) مسند احمد ج۱ ص ۶۲، كشف الاستار عن زوائد البزار، كتاب الطهارة ج۱ ص ۱۵۲ باب ترك الوضوء مما مست النار رقم الحديث ۲۹۵، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ ص ۲۵۱ باب ترك الوضوء مما مست النار.

مونځ یې وکړ او اودس یې ونه کړ. بیا یې وویل چې زه د رسول الله ﷺ په ځای کیناستم بیا ما هغه څه وخواره چې رسول الله ﷺ خوړلي وُ او هغه څه مي وکړ چې نبي علیه السلام کړي وُ . د دې حدیث روایت احمد رحمه الله ، ابو یعلی او بزار کړي او هیثمي ویلي دي چې د احمد رحمه الله رجال ثقه دي .

{۱۸۶} وَ عَن عَبدِ اللهِ بنِ مَسعُودٍ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يَاكُلُ اللَّحمَ ثُمَّ يَقُومُ اِلَى الصَّلَاةِ وَلَا يَمَسُّ مَاءً . رواه احمد و ابو يعلى و قال الهيثمي رجاله موثقون .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روایت دی چې بې شکه نبي علیه السلام وُ چې غوښه به یې وخوړه بیا به مانځه ته پاڅیده او اوبو ته یې لاس کړي هم نه دي . د دې حدیث روایت احمد رحمه الله او ابو یعلی کړي دي او هیثمي ویلي دي چې رجال یې موثق دي .

{۱۸۷} وَ عَن عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَت كَانَ رَسُولُ اللهِ ﷺ يَمُرُّ بِالقِدرِ فَيَاخُذُ العَرقَ فَيُصِيبُ مِنهُ ثُمَّ يُصَلِّي وَ لَم يَتَوَضَّأ وَلَم يَمَسَّ مَاءً رواه احمد و ابو يعلى والبزار و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح.(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ویلي دي چې وه رسول الله ﷺ چې د یوې کټوئ سره تیریده نو د هغې نه یې غوښه راواخسته او وي خوره بیا یې مونځ وکړ او اودس یې ونه کړ او نه یې اوبو ته لاس وروړو . د دې حدیث روایت احمد رحمه الله ، ابو یعلی رحمه الله او بزار رحمه الله کړي دي او هیثمي ویلي دي چې رجال د دې حدیث رجال د صحیح دي .

## په اور باندې د پوخ کړي شوي شي نه د اودس حکم

په دې مسئله کې په ابتداء کې د صحابه کرامو رضي الله عنهم او د تابعینو اختلاف وو :

(۱) بعضې صحابه مثلاً حضرت ابوهریره ، زید بن ثابت او عبدالله بن عمر رضي الله عنهم او بعضې تابعین مثلاً عمر بن عبدالعزیز ، ابن شهاب زهري او حسن بصري رحمه الله وغیره د مما مست النار نه د اودس قائل وو .

باقي

(۱) مسند احمد ج۱ صـ ۴۰ ، مسند ابويعلى ج ۹ رقم الحديث ۵۲۷۴، مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱صـ ۲۵۱ باب ترک الوضوء مما مست النار ولفظ ابي يعلى فما يمس قطرة ماء.

(۲) مسند احمد ج۶صـ۱۶۱ ،مسند ابي يعلى ج۷صـ ۴۲۷ رقم الحديث ۴۴۴۹ ، كشف الاستار عن زوائد البزار كتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۵۲ باب ترک الوضوء مما مست النار رقم الحديث ۲۹۸ مجمع الزوائد كتاب الطهارة ج۱ صـ ۲۵۳ باب ترک الوضوء مما مست النار .

(۲) بعضي صحابه کرام مثلا خلفاء راشدين ، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او غيره د دېند داودس کولو قائل نه وو .

**دفريق اول دليل** : حديث "تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ" .

**ددوهم فريق دليل** : هغه ټول حديثونه کوم کې چې د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اور کې د پوخ شوي شي د خوړلو نه پس بغير د تجديد داودس کولو د مونځ ذکر دې.

**جواب او تطبيق** : د صحابه او د تابعينو نه وروسته د مامست النار نه د اودس نه ماتيدو باندې اتفاق وشو .

اوس "تَوَضَّئُوا مِمَّا مَسَّتِ النَّارُ" کې لاندې يو څو تاويلونه کيداې شي:

۱... هغه حديث منسوخ شو ، دليل : حديث د جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " **قال كان اخر الامرين من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ترک الوضوء مما مست النار** " (ابوداود شريف).

۲... د وضو نه مراد وضو لغوي ده يعني لاسونه تر کلايانو پورې وينځل.

**دليل** : حديث د عکراش رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اور باندې پوخ کړې شوي شې او خوړو بيا خپل دواړه لاسونه مبارک يې اوينځل او بيا يې پخپل مبارک مخ باندې راخکله او وي فرمايل" هكذا الوضوء مما غيرت النار" .(ترمذي شريف). ۳... داودس حکم استحبابي دى.

# بَابُ الْوُضُوءِ مِنْ مَسِّ الْمَرْأَةِ

## باب د اودس دي د ښځي د مس کولو نه :

{۱۷۶} عَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ وَطَارِقِ بْنِ شِهَابٍ أَنَّ عَبْدَ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى (أَوْلَامَسْتُمُ النِّسَاء) قَالَ مَعْنَاهُ مَا دُونَ الْجِمَاعِ رواه البيهقي فِي الْمَعْرِفَةِ وَقَالَ هٰذَا إِسْنَادٌ مَوْصُولٌ صَحِيحٌ .(۱)

**ترجمه** : د ابي عبيده او طارق بن شهاب نه روايت دي چې عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د الله تعالى د دي قول په متعلق ويلي دي چې د ( اولا مستم النساء ) معنى مادون د جماع ته ويلي شي . د دي حديث روايت په معرفت کې بيهقي کړي دي او ويلي يې دي چې دا اسناد موصول صحيح دي .

---

(۱) معرفة السنن والأثار كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۳۷۳ رقم الحديث ۹۵۵ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الطهارة ج۱ صـــ۱۲۴ بـــاب الوضوء من الملامسة .

{۱۶۷} وَ عَن عَبدِ اللهِ بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه كَانَ يَقُولُ قُبلَةُ الرَّجُلِ اِمرَاَتَه اَوْ جَسُّهَا بِيَدِهٖ مِنَ المُلَامَسَةِ فَمَن قَبَّلَ اِمرَاَتَه اَو جَسَّهَا بِيَدِهٖ فَعَلَيهِ الوُضُوءُ رواه مالك في الموطأ واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به ويل چې د سړي د پاره د خپلې ښځې ښکلول او د هغې سره خپل لاس لګول د ملامست څخه دي نو څوک چې د خپلې ښځې نه بوسه واخلي او مچ يې کړي او يا د هغې سره خپل لاس ولګوي نو په هغه باندې اودس واجب دی . د دې حديث روايت مالک رَحِمَهُ اللهُ په موطا کې کړی دی او اسناد يې صحيح دي .

{۱۶۸} وَ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت كُنتُ اَنَامُ بَينَ يَدَي رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَ رِجلَايَ فِي قِبلَتِهٖ فَاِذَا سَجَدَ غَمَزَنِي فَقَبَضتُ رِجلَيَّ فَاِذَا قَامَ بَسَطتُهُمَا وَالبُيُوتُ يَومَئِذٍ لَيسَ فِيهَا مَصَابِيحُ. رواه الشيخان(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا ويلي دي چې زه به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مخې ته اوده کيدم او زما دواړه خپې به ده ته مخامخ وې نو کله به چې نبي عَلَيهِ السَّلَام سجده کوله زه به يې وټومبلم نو ما به خپلې دواړه خپې راغونډې کړې او کله به چې پاڅيده نو دواړه خپې به مې خورې کړې په دغه وخت په کوټو کې ډيوې نه وې . د دې حديث روايت شيخينو کړی دی .

{۱۶۹} وَ عَن اَبِي هُرَيرَةَ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت فَقَدتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيلَةٍ مِنَ الفِرَاشِ فَالتَمَستُه فَوَقَعَت يَدِي عَلَى بَطنِ قَدَمَيهِ وَهُوَ فِي المَسجِدِ وَهُمَا مَنصُوبَتَانِ وَهُوَ يَقُولُ اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَعُوذُ بِرِضَاكَ مِن سَخَطِكَ وَ بِمُعَافَاتِكَ مِن عُقُوبَتِكَ وَ اَعُوذُ بِكَ مِنكَ لَا اُحصِي ثَنَاءً عَلَيكَ اَنتَ كَمَا اَثنَيتَ عَلَى نَفسِكَ رواه مسلم .[3]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت کړی هغې ويلي دي چې يو شپه مې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د خپلې بسترې او فرش نه ورک کړو نو هغه مې ولټولو نو ما خپل لاس د هغه د قدمونو په باطن طرف باندې ورو غورځولو په داسې حال کې چې هغه په مسجد کې ؤ او دواړه قدمونه يې ولاړ ؤ او ده ويل اې الله زه پناه نيسم ستا په رضې د غضب ستا نه او ستا په

(۱) موطا امام مالک كتاب الطهارة صــ ۳۱ باب الوضوء من قبلة الرجل امرأته .

(۲) بخاري كتاب الصلوة ج۱ صــ ۷۳ باب التطوع خلف المرأة ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ صــ ۱۹۸ باب سترة المصلي...الخ .

(۳) مسلم كتاب الصلوة ج۱ صــ ۱۹۲ باب ما يقول في الركوع والسجود .

عفوې د عذاب ستا نه او پناه نيسم په تا سره د ستانه زه ستا ثنا داسې نه شم کولې لکه چې ته خپله ثنا په خپل ځان باندې فرمايې . د دې حديث روايت مسلم کړې دې .

{۱۸۰} وَعَنِ الْقَاسِمِ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ اَنْ كَانَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيُصَلِّي وَاِنِّي لَمُعْتَرِضَةٌ بَيْنَ يَدَيْهِ اِعْتِرَاضَ الْجَنَازَةِ حَتّٰى اِذَا اَرَادَ اَنْ يُوتِرَ مَسَّنِي بِرِجْلِهِ . رَوَاهُ النسائي وَاِسْنَادُهُ صَحِيْحٌ .[1]

**ترجمه**: قاسم د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت کړې هغې ويلې دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ کاوه او زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخکې د جنازې په شان پرته وم تر دې پورې چې کله نبي عليه السلام اراده د وترو وکړه نو خپلې مبارکې خپې به يې ماسره لګولې . د دې حديث روايت نسائي کړې او اسناد يې صحيح دې .

{۱۸۱} وَعَنْ عَطَاءٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُقَبِّلُ بَعْضَ نِسَائِهِ ثُمَّ يُصَلِّي وَلَا يَتَوَضَّأُ رواه البزار و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : يعنې حضرت عائشې رضي الله عنها ويلې دې چې وو رسول الله صلى الله عليه وسلم چې د بعض ازواجو تقبيل به يې وکړو بيا به يې مونځ وکړ او اودس به يې نه کاوه .(بزار دې لره رويت کړې دې او ددې سند صحيح دی ).

## د ښځې ښکلولو نه اودس حکم

(۱) ائمه ثلاثه رحمهم الله په يو څو شرائطو سره مس امراة لره ناقض د اودس ګرځوي .

(۲) د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد مطلقا ناقض د اودس نه دې مګر دا چې مباشرت فاحشه نه وي .

**دائمه ثلاثو دليل**: د قرآن آيت (اَوْلٰمَسْتُمُ النِّسَاءَ ) دلته لمس باليد يعنې لاسونو سره ښکلول مراد دي د کوم نه چې د اودس ماتيدو او دا بو نه ملاويدو په صورت کې د تيمم حکم دې ، په دې باندې دوه دليلونه دي ، اول : حمزه رحمه الله او د کسائي رحمه الله قرأت (اَوْلَمَسْتُمُ النِّسَاءَ ) او دويم : دحضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه او دابن عمر رضي الله عنه لامستم تشريح لمس باليد سره کول او ددېنه د اودس کولو حکم ورکول .

---

(۱) نسائي كتاب الطهارة ج۱ صــ ۳۸ باب ترک الوضوء من مس الرجل امرأته ....الخ

(۲) نصب الراية ج۱ صــ ۷۴ .

**دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل**: دباب نور احادیث بالخصوص حدیث دعائشه رضي الله عنها مرفوعا "كَانَ يُقَبِّلُ بَعضَ نِسَائِهٖ ثُمَّ يُصَلِّي وَلَا يَتَوَضَّأُ".

**ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب:**

۱... داودس په آیت کې (أولامستم) دجماع نه کنایه ده ، ځکه چې اصل مقصود حدث اصغر او حدث اکبر نه دتیمم جواز بیانول دي خو (جاء احد منکم من الغائط) نه دحدیث اصغر بیان اوشو ، اوس (اولامستم) نه حدث اکبر یعنې جماع مراد اخیستل قرین قیاس دی ورنه تکرار به لازم راشي کوم چې خلاف اصل دي ، همدارنګه (لامستم) ملامسه بروزن مفاعله دې ، کوم چې دجانبین نه دفعل تقاضا کوي او دا مشارکت جماع یا مباشرت فاحشه کې کیدې شي.

۲... داحادیث صریحه صحیحه په مقابله کې اثر دصحابي نه استدلال صحیح نه دې ، ممکنه ده دا ددوي خپل اجتهاد وي ، همدارنګه ابن عباس رضي الله عنه آیت طلاق (من قبل أن تمسوهن) کې دمس نه جماع مراد اخیستې وي ، حال دا چې ددې لغوي معنی ده لاسونه سره مس کول.

۳... پوره داحادیثو په ذخیره کې حضور صلی الله علیه وسلم نه چا هم په یو موقع باندې دمس امرأة نه اودس نه دې ثابت کړې.

# بَابُ التَّيَمُّمِ

## باب دي په بیان دتیمم کې :

{۱۸۲} عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت خَرَجنَا مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي بَعضِ أَسفَارِهٖ حَتّٰى إِذَا كُنَّا بِالبَيدَاءِ أَو بِذَاتِ الجَيشِ إِنقَطَعَ عِقدٌ لِي فَأَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلَى اِلتِمَاسِهٖ وَ أَقَامَ النَّاسُ مَعَه وَ لَيسُوا عَلٰى مَاءٍ فَأَتَى النَّاسُ إِلٰى أَبِي بَكرِ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَقَالُوا أَلَا تَرٰى مَا صَنَعَت عَائِشَةُ رَضِيَ اللهُ عَنهَا أَقَامَت بِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ وَلَيسُوا عَلٰى مَاءٍ وَلَيسَ مَعَهُم مَاءٌ فَجَاءَ أَبُوبَكرٍ وَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَاضِعٌ رَأسَه عَلٰى فَخِذِي قَد نَامَ فَقَالَ حَبَستِ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسَ وَلَيسُوا عَلٰى مَاءٍ وَلَيسَ مَعَهُم مَاءٌ فَقَالَت عَائِشَةُ فَعَاتَبَنِي أَبُوبَكرٍ وَ قَالَ مَاشَاءَ اللهُ أَن يَقُولَ وَ جَعَلَ يَطعُنُنِي بِيَدِهٖ فِي خَاصِرَتِي فَلَا يَمنَعُنِي مِنَ التَّحَرُّكِ إِلَّا مَكَانُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلٰى فَخِذِي فَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حِينَ أَصبَحَ عَلٰى غَيرِ مَاءٍ فَأَنزَلَ الله عَزَّ وَجَلَّ آيَةَ التَّيَمُّمِ

فَتَيَمَّمُوا فَقَالَ أُسَيدُ بنُ الحُضَيرُ مَاهِيَ بِأَوَّلِ بَرَكَتِكُم يا آلَ أَبِي بَكرٍ قَالَتْ فَبَعَثْنَا البَعِيرَ الَّذِي كُنتُ عَلَيه فَأَصَبنَا العِقدَ تَحتَهُ رواه الشيخان [1].

**ترجمه**: دتیمم باب ام المؤمنین حضرت عائشي رضي الله عنها ویلي دي چې مونږ د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په یو سفر کې وتلي ؤ تر دي پوري چې په بیدا او یا په ذات الجیش کې ؤ چې خما هار ؤشکیده نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغي په طلب او لټولوکې شروع وکړه او خلک هم د ده - سره د هغي په لټه کې شو او هغو د اوبو سره هم نه ؤ او خلک ابوبکر صدیق رضي الله عنه راغله نو وي ویل ایا ته نه ګوري چې حضرت عائشي رضي الله عنها څه وکړه چې خلک او رسول الله صلی الله علیه وسلم یې ودرولي دي ولي چې نه دوي د اوبو سره دي او نه د دوي سره اوبه شته ابوبکر صدیق رضي الله عنه راغي په داسې حال کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خما په ورون او پتون باندي مبارک سر اینبي ؤ او ده ؤ نو وي ویل چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلک دي بند کړي نه دوي د اوبو سره دي او نه د دوي سره اوبه شته نو حضرت عائشي رضي الله عنها ویلي دي چې زه ابوبکر صدیق رضي الله عنه ؤورلم او ملامته یې کړم او هغه څه یې وویل چې د ده د وینا په برخه کې دالله څه رضا وه او په خپل لاس یې زه په تشو او ارخونو کې تومبلم د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وجه چې زما په ورون باندي یې مبارک سر اینبي ؤ خوځیدي نه شوم نو رسول الله صلی الله علیه وسلم هم په غیر اوبو سهار راپاځیده نوالله د تیمم ایت نازل کړ نو خلکو تیمم وواهه . نو أسید بن الحُضیر رضي الله عنه وویل اي د ابوبکر اولاده دا ستاسي اول برکت نه دي حضرت عائشي رضي الله عنها وویل هغه اوبن چې زه وریاندي سوره وم مونږ اوچت کړ نو هار مو د هغي لاندي وموند . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي .

{۱۸۳} وَعَن عِمرَانَ بنِ حُصَينٍ رضي الله عنه قَالَ كُنَّا فِي سَفَرٍ مَعَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم فَصَلَّى بِالنَّاسِ فَلَمَّا انفَتَلَ مِن صَلَاتِهِ إِذَا هُوَ بِرَجُلٍ مُعتَزِلٍ لَم يُصَلِّ مَعَ القَومِ فَقَالَ مَا مَنَعَكَ يا فُلَانُ أَن تُصَلِّيَ مَعَ القَومِ قَالَ أَصَابَتنِي جَنَابَةٌ وَلَا مَاءَ قَالَ عَلَيكَ بِالصَّعِيدِ فَإِنَّهُ يَكفِيكَ رواه الشيخان [2].

**ترجمه** : حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه ویلي دي چې مونږ د نبي علیه السلام په یو سفر کې ؤ نو نبي علیه السلام خلکو ته مونځ وکړ کله چې د مانځه نه راوګرځیده نو وي لیده چې یو سړي یو اړخ ناست دي د قوم سره یې مونځ نه دي کړي نو نبي علیه السلام وفرمائل چې د قوم سره د مانځه نه څه شي منع کړي یې هغه وویل چې جنابت راته رسیدلي او اوبه نشته نبي علیه السلام وفرمائل تا د پاره خاوره ده او

---

(۱) بخاري کتاب التیمم ج۱ صـ ۱۴۸ ، مسلم کتاب الحیض ج۱ صـ ۱۶۰ باب التیمم .

(۲) بخاري کتاب التیمم ج۱ صـ ۳۹ باب الصعید الطیب وضوء المسلم ....الخ ، مسلم کتاب المساجد ج۱ صـ ۲۴۰ باب قضاء الصلوة الفائتة ....الخ .

هغه ستا د پاره کافي ده . د دي حديث روايت بخاري او مسلم کړي دي يعني شيخينو .

{١٨٤} وَعَن حُذَيفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فُضِّلنَا عَلَى النَّاسِ بِثَلَاثٍ جُعِلَت صُفُوفُنَا كَصُفُوفِ المَلَائِكَةِ وَجُعِلَتِ الاَرضُ كُلُّهَا مَسجِدًا وَجُعِلَت تُربَتُهَا طَهُورًا اِذَا لَم نَجِدِ المَاءَ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې مونږ ته په نورو امتونو باندي په دريو شيانو فضيلت راکړي شوي دي زمونږ صفونه د ملائکو د صفونو په شان ګرځولي شوي دي ټوله ځمکه زمونږ د پاره مسجد ګرځولي شويده يعني مونږ په هر ځاي کې مونځ ادا کولي شو او د نورو امتونو د پاره عبادتخاني خاص کړي شوي وي ولي زمونږ د پاره د اوبو د نه موندلو په وخت کې د ځمکي خاوره پاکوونکي ګرځولي شويده . دا حديث مسلم روايت کړي دي .

{١٨٥} وَعَن عَمرِو بنِ العَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اِحتَلَمتُ لَيلَةً بَارِدَةً فِي غَزوَةِ ذَاتِ السَّلَاسِلِ فَاَشفَقتُ اَن اَغتَسِلَ فَاَهلِكَ فَتَيَمَّمتُ ثُمَّ صَلَّيتُ بِاَصحَابِي الصُّبحَ فَذَكَرُوا ذٰلِکَ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا عَمرُو صَلَّيتَ بِاَصحَابِکَ وَاَنتَ جُنُبٌ فَاَخبَرتُه بِالَّذِي مَنَعَنِي مِنَ الاِغتِسَالِ وَقُلتُ اِنِّي سَمِعتُ الله يَقُولُ (وَلَا تَقتُلُوا اَنفُسَكُم اِنَّ اللهَ كَانَ بِكُم رَحِيمًا) فَضَحِکَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَلَم يَقُل شَيئًا رواه ابوداود و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : حضرت عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايلي دي چې يوه يخه شپه کې راته د ذات السلاسل په غزوه کې احتلام وشو نو زه ووېريدم چې که غسل وکړم هلاک به شم نو تيمم مي وکړ او صحابه و ته مي د سهار مونځ وکړو نو دوي دا خبره رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته وریاده کړه نو وي فرمائل چې اي عمرو اصحابو ته دي په داسي حال کې مونځ کړي چې ته جنب وي نو ما په هغه څه خبر کړه چې زه يې د غسل نه منع کړي وم او ما ووېل چې ما دالله نه اوريدلي دي چې فرمائلي يې دي ( او مه وژنئ خپل ځانونه ) بيشکه الله جل جلاله دي په تاسو رحم والا ، نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وخندل او هيڅ يې ونه ويل . د دي حديث روايت ابوداود کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(١) مسلم كتاب المساجد ج: ١ صـــ ١٩٩.

(٢) ابوداؤد كتاب الطهارة ج١ صـــ ٤٨ باب اذا خاف الجنب البردا يتيمم .

{۱۸۶} وَعَن عَمَّارٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كُنتُ فِي القَومِ حِينَ نَزَلَتِ الرُّخصَة فِي المَسحِ بِالتُّرَابِ إِذَا لَم نَجِدِ المَاء فَأَمَرَنَا فَضَرَبنَا وَاحِدَة لِلوَجه ثُمَّ ضَربَة أُخرَى لِليَدَينِ إِلَى المِرفَقَينِ رواه البزار و قَالَ الحَافِظ فِي الدِّرَايَة بِإِسنَادٍ حَسَنٍ .(۱)

**ترجمه** : حضرت عمار رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي چې د اوبو نه موجوديت په صورت کې کله چې په خاورو د تيمم رخصت نازل شو زه هم په قوم کې موجود وم نو حکم يې راته وکړ نو مونږ يو ځلي لاسونه په زمکه د مخ د پاره ووهل بيا مو دويم ځلي تر څنګلو پورې د دواړو لاسونو د پاره . دا حديث بزار روايت کړي او حافظ په درايه کې ويلي دي چې اسناد يې صحيح دي .

{۱۸۷} وَعَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ التَّيَمُّمُ ضَربَة لِلوَجه وَضَربَة لِلذِّرَاعَينِ إِلَى المِرفَقَينِ رواه الدارقطني والحاكم و صححه .(۲)

**ترجمه**: حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې تيمم د مخ د پاره په څمکه باندې يو ځل د لاسونو وهل دي او بل ځل په څمکه باندې د لاسونو وهل دي د لاسونو د پاره تر څنګلو پورې . دا حديث دار قطني او حاکم روايت کړي دي او صحيح يې ګڼرلي دي .

{۱۸۸} وَعَنه قَالَ جَاء رَجُلٌ فَقَالَ أَصَابَتنِي جَنَابَة وَإِنِّي تَمَعَّكتُ فِي التُّرَابِ فَقَالَ اِضرِب هٰكَذَا وَضَرَبَ بِيَدَيه الأَرضَ فَمَسَحَ وَجهه ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدَيه فَمَسَحَ إِلَى المِرفَقَينِ . رواه الحاكم والدارقطني و الطحاوي واسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : اود حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ روايت دي ده ويلي دي چې يو سړي راغي نو وې ويل چې ماته جنابت رسېدلې او ما په خاورو کې خان ليت پيت او ککړ پکړ کړنو هغه ورته وويل دغسې ووهه او يو ځلې يې په ځمکه دواړه لاسونه ووهل مخ يې پرې مسح کړ بيا يې دواړه لاسونه په ځمکه ووهل او په دې دواړو يې تر څنګلو پورې لاسونه مسح کړل . د دې حديث روايت حاکم دارقطني او طحاوي کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(۱) الدراية كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۶۸ باب التيمّم .

(۲) دارقطني كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۸۱ باب التيمم، مستدرک حاكم كتاب الطهارة ج۱صـــ ۱۸۰ باب احكام التيمم.

(۳) دار قطني كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۸۲ باب التيمم ، مستدرک حاكم كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۸۰ باب احكام التيمم، طحاوي كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۸۱ باب صفة التيمم كيف هي .

{۱۸۹} وَعَن نَافِعٍ قَالَ سَأَلتُ ابنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ التَّيَمُّمِ فَضَرَبَ بِيَدَيهِ إِلَى الأَرضِ وَمَسَحَ بِهِمَا يَدَيهِ وَوَجهه وَضَرَبَ ضَربَةً أُخرٰي فَمَسَحَ بِهِمَا ذِرَاعَيه رواه الطحاوي واسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: نافع وېلي دي چې ما د حضرت بن عمر رضي الله عنه د تيمم په باره کې پوښتنه وکړه نو دواړه لاسونه يې په خمکه ووهل په دي يې لاسونه او مخ مسحه کړ او په بل ضرب يې خمکه ووهله نو په هغي دواړه څنګلي مسح کړي. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۱۹۰} وَعَنه أَقبَلَ هُوَ وَعَبدُ اللهِ بنُ عُمَرَ مِنَ الجُرُفِ حَتّٰى إِذَا كَانَ بِالمِربَدِ نَزَلَ عَبدُ اللهِ فَتَيَمَّمَ صَعِيدًا طَيِّبًا فَمَسَحَ بِوَجهِهِ وَيَدَيهِ إِلَى المِرفَقَينِ رواه مالک في الموطأ واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: نافع وايي چې زه او عبدالله بن عمر د جرف د مقام نه واپس راتلو تردي پورې چې کله هغه د مربد په مقام ؤ نو په هغه پاکه خمکه يې تيمم وکړو خپل مخ او لاسونه يې تر څنګلو پورې مسح کړل. ددې حديث روايت مالک په موطا کې کړي دي. او اسناد يې صحيح دي.

{۱۹۱} وَعَن سَالِمٍ عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا أَنَّه كَانَ إِذَا تَيَمَّمَ ضَرَبَ بِيَدَيهِ ضَربَةً فَمَسَحَ بِهِمَا وَجهه ثُمَّ ضَرَبَ بِيَدَيهِ ضَربَةً أُخرٰي ثُمَّ مَسَحَ بِهِمَا يَدَيهِ إِلَى المِرفَقَينِ وَلَا يَنفُضُ يَدَيهِ مِنَ التُّرَابِ رواه الدارقطني واسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: د سالم نه روايت دي چې کله به حضرت ابن عمر رضي الله عنه تيمم کاؤ نو دواړه لاسونه به يې په خمکه ووهل نو په هغي به يې مخ مسح کړو بيا به يې بل ځل دواړه لاسونه په خمکه ووهل بيا به يې په هغي دواړه لاسونه ترڅنګلو پورې مسح کړل او لاسونه به يې د خاورو نه نه څنډل. د دي حديث روايت دار قطني کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## د حضور صلى الله عليه وسلم د امت خصوصيت:

تيمم د هغه امت د خصوصياتو نه دي کوم چې د حضور صلى الله عليه وسلم په واسطې سره هغوي ته ملاو شوي دی. چې خاورې لره چې په حقيقت کې ملوث ده پاکونکي يې او ګرځوله د الله تعالی دير لوي احسان دي.

---

(۱) طحاوي كتاب الطهارة ج۱ صـ ۸۱ باب صفة التيمم كيف هي.

(۲) مؤطا امام مالک كتاب الطهارة ص ۴۱ باب العمل في التيمم.

(۳) دار قطني كتاب الطهارة ج۱ صـ ۱۸۲ باب التيمم.

**دمشروعيت سبب**: غزوه بني مصطلق کې دحضرت عائشه رضي الله عنها دغاړي هار ورکيدل او دخلکو داوبه نه ملاويدو دوجې نه په مشقت کې پريوتل کوم باندې چې الله تعالى دتيمم آيت نازل اوفرمايلو.

## څلور فقهي مسائل

**اولنې مسئله**: تيمم دزمکې دکوم شي نه اوکړې شي؟

(۱) امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ، احمد رَحِمَهُ اللهُ، وابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف په خالصه خاوره تيمم سره تيمم کيږي.

(۲) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ ومالک رَحِمَهُ اللهُ په نزدچې دزمکې دجنس نه وي په هريو شي سره تيمم کيږي.

**دفريق اول دليل**: دحذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث "وَ جُعِلَتْ تُرْبَتُهَا طُهُوْرًا اِذَا لَمْ نَجِدِ الْمَاءَ"، دتربت نه مراد خالصه خاوره ده.

دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دمالک رَحِمَهُ اللهُ دليل:

۱... دتيمم آيت "فتيمموا صعيدًا طيبًا الاية" ځکه چې صعيد مطلق خاوره او دزمکې بهرنې حصې ته وايي.

۲... دحذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دکوم چې مشهور الفاظ دادي "جُعلت الي الارض مسجداً وطهوراً" په دې کې ټولې زمکې لره طهوريعنې قابل د تيمم ګرځولې شوې دی.

**فريق اول ته جواب**:

۱... دحذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث په مشهور روايت کې ،، په ځاي مطلق ارض يعنې دزمکې ذکر راغلې دی.

۲... په حديث کې صرف ديو شي ذکر راغلې دی او په نورو ملايلو سره ورسره په حکم کې نور شئينه هم شامل شو نهذا هيڅ منافات نشته.

**دويمه مسئله**: تيمم طهارة مطلقه يا طهارة ضروريه؟

(۱) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد تيمم طهارة مطلقه (کامله) دې ځکه چې زمونږ په نزد تيمم دمونځ وخت دداخليدو نه مخکې کولې شي يا چې ترڅو پورې څه داودس ماتونکې شي يا اوبو باندې قادروالې متحقق نشي نو تيمم به باقي وي او په يو تيمم سره چې څومره مونځونه که فرض وي يا نفل کولې شي.

(۲) دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد تیمم طهارة ضروریه دي ځکه چې د دخول وخت نه وړاندې تیمم صحیح نه دی او د وخت وتلو سره سم به تیمم ماتیږي.

بیا دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد په وخت کې دننه فرض او نفل ټول ادا کولې شي او دامام مالک او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد هر فرض لپاره جدا جدا تیمم ضروري دي، البته نوافل د دې دواړو په نزد فرضو تابع دي، دشوافعو رَحِمَهُ اللهُ په نزد نوافل قبلیه وبعدیه دواړه او دمالکیه رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف بعدیه.(الدر المنضود)

**دریمه مسئله**: دتیمم ضربونه څو دي؟

(۱) دمام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد تیمم فقط یو ضرب دی دمخ او تر کلائي پورې دواړو لاسونو لپاره.

(۲) دمام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ، مالک او شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دوه ضربونه دي: یو مخ لپاره او بل د څنګلو لپاره، البته دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد تر کلایانو پورې فرض او څنګلو پورې مستحب دي.

**دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل**: حدیث دعمار بن یاسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ " **انما یکفیک أن تضرب بیدیک الارض. ثم تمسح بهما وجهک وکفیک**".او په یو روایت کې داسې دي " **أَمَرَهُ بالتیمم ضربة للوجه والکفین**".

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دلائل**:

۱... دباب دیر حدیثونه کوم کې چې صراحة دضربتینو ذکر راغلې دی بالخصوص دجابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث: "**التیمم ضربة للوجه وضربة للذراعین الی المرفقین**".

۲... **قیاس**: تیمم داودس نائب او خلیفه دي، په اودس کې دمخ او دلاسونو لپاره جدا اوبه راخیستلې شي نو په نائب کې هم دوه ضربونه پکار دي.

**دامام احمد رحمه الله ددلیل جواب**: حدیث دعمار رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مضطرب دې دده په یو روایت کې د دوو ضربونو ذکر راغلې دی " **ضربنا واحدة للوجه ثم ضربة اخرىٰ للیدین الی المرفقین**".

**څلورمه مسئله**: دباب حدیث نمبر ۱۹۱ مطابق ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ضرباتو کې دلاسونو نه دخاورې دڅندولو قائله نه دې لیکن جمهور علماء دا وینا ده چې په ضرباتو کې دې دلاسونو نه خاوره اوڅنډل شي تر څو دمثلې بشکل اونه ګرځي.

# كِتَابُ الصَّلَاة

## د مانځه د بيانو لو باب :

**اولنۍ بحث** : دصلاة لغوي معنى ده دعا او اصطلاحي معنى يې ده په مخصوص وختونو کې مخصوص ارکان ادا کول .

**دويم بحث : دمونځ مشروعيت کله وشو ؟**

په دې باندې خو دټولو اتفاق دې چې دپنځه وخته مونځ ابتداء ليلة الاسراء يعنې دمعراج په شپه اوشوه ، البته دشب معراج کال او دمياشتې دتاريخ په تعين کې ډير سخت اختلاف دی ، داکثرو وينا ده چې دهجرت نه دري کاله مخکې اوشو .

**دريم بحث : کوم يو مونځ چا اول ادا کړو ؟**

په ورځ کې پنځه مونځونه خو بلاشبه دمحمد ﷺ دخصوصياتو نه دي ، پاتې دماسخوتن مونځ نه علاوه نور مونځونه خو په نورو امتونو کې هم مشروع وو .

دطحاوي شريف ديو روايت مطابق دحضرت آدم عليه السلام توبه چې کله دصبح صادق په وخت کې قبوله شوه نو هغه بيا دوه رکعته اولوستل په دې باندې دسحر مونځ مشروع شو ، او دحضرت اسماعيل عليه السلام فديه دماسپخين په وخت کې راغلې وه ، کوم باندې چې هغه څلور رکعته په طور دشکراني ادا کړل دهغه وخت نه دماسپخين مونځ مشروع شو ، او حضرت عزير عليه السلام له داوږد خوب نه دمازيګر په وخت کې رابيدار کړې شو په هغې باندې هغه څلور رکعته ادا کړل په دې باندې دمازيګر مونځ مشروع شو ، او دحضرت داود عليه السلام لغزش دماښام په وخت کې معاف شو نو هغه دڅلور رکعته لوستلو په نيت سره اودريدو ليکن دسخت غم او ستړيا دوجې نه دريم رکعت يي اونه لوستلې شو او په دريم رکعت کيناست دهغه وخت نه دماښام دري رکعته مشروع شو ، او دماسخوتن مونځ له ټولو نه اول ځمونږ خوږ نبي حضور ﷺ او دده امت ولوستلو.

**څلورم بحث : دمونځ فرضيت او اهميت:**

دمونځ فرضيت دکتاب ،سنت او اجماع نه ثابت دي . **قال تعالى:" وما امروا إلا ليعبدوا الله مخلصين له الدين حنفاء ويقيموا الصلوة..... الاية "** دغه شان په حديث شريف کې دي **"بني الاسلام على خمس شهادة أن لااله الاالله وان محمدا رسول الله واقام الصلوة وايتاء الزكوة ... "** الحديث (متفق عليه) ددېنه علاوه بې شميره آيتونه او حديثونه دي کوم کس چې دمونځ دفرضيت

نه منکر وي نو دده په کفر باندې د علماؤ اتفاق دې او کوم چې د فرضيت د قائل کيدو سره سره صرف عملا دې لره پريدي نو جمهور علماء کوم کې چې امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ هم دي مسلک يې دادې چې هغه کس فاسق دې او دهغه سزا وژل(قتل) دي خو حدا نه کفرا ، دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ يو روايت دې چې هغه دې دارتداد په بناء باندې به قتل کولې شي ، او دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد دده سزا تعزير او حبس دائم دې تردې پورې چې توبه ګار شي او توبه اوباسي.(الدر المنضود :٢/٤٠٢)

# بَابُ الْمَوَاقِيتِ

## د مانځه د وختونو د بيانولو باب:

{١٩٢} عَن أَبِي مُوسىٰ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَن رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَنَّه أَتَاه سَائِلٌ يسئله عَن مَوَاقِيتِ الصَّلَاة فَلَم يرُدَّ عَلَيه شَيئًا قَالَ فَأَمَرَ بِلَالًا فَأَقَامَ الفَجرَ حِينَ انشَقَّ الفَجرُ وَالنَّاسُ لَا يكَادُ يعرِفُ بَعضُهم بَعضًا ثُمَّ أَمَرَ فَأَقَامَ بِالظُّهرِ حِينَ زَالَتِ الشَّمسُ وَالقَائِلُ يقُولُ قَد انتَصَفَ النَّهارُ وَهوَ أَعلَمُ مِنهم ثُمَّ أَمَرَه فَأَقَامَ بِالعَصرِ وَالشَّمسُ مُرتَفِعَة ثُمَّ أَمَرَه فَأَقَامَ المَغرِبَ حِينَ وَقَعَتِ الشَّمسُ ثُمَّ أَمَرَه فَأَقَامَ العِشَاء حِينَ غَابَ الشَّفَقُ ثُمَّ أَخَّرَ الفَجرَ مِنَ الغَدِ حَتَّى انصَرَفَ مِنها وَالقَائِلُ يقُولُ قَد طَلَعَتِ الشَّمسُ أَو كَادَت ثُمَّ أَخَّرَ الظُّهرَ حَتَّى كَانَ قَرِيبًا مِن وَقتِ العَصرِ بِالأَمسِ ثُمَّ أَخَّرَ العَصرَ حَتَّى انصَرَفَ مِنها وَالقَائِلُ يقُولُ قَد احمَرَّتِ الشَّمسُ ثُمَّ أَخَّرَ المَغرِبَ حَتَّى كَانَ عِندَ سُقُوطِ الشَّفَقِ ثُمَّ أَخَّرَ العِشَاء حَتَّى كَانَ ثُلُثُ اللَّيلِ الأَوَّلِ ثُمَّ أَصبَحَ فَدَعَا السَّائِلَ فَقَالَ اَلوَقتُ بَينَ هٰذَينِ رواه مسلم .(١)

**ترجمه** : د ابوموسىٰ رَضِيَ اللهُ عَنهُ روايت دې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته يو پوښتنه کوونکې سړې راغې د مانځه د وختونو پوښتنه يې ورنه وکړه نبي عَلَيهِ السَّلَام هيڅ جواب ورنه کړ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته يې امر وکړو نو په داسې وخت کې يې د ګبا د مانځه اقامت وکړو چې محض سبا ختلې ؤ او قريبه نه وه چې بعضې خلکو د تيرې په وجه بعضو لره پيژندلې وې بيا يې حضرت بلال ته د اقامت امر وکړو نو هغه د ماسپښين د مانځه د پاره په داسې وخت کې اقامت وکړو چې نمر اوښتې او زوال شوې ؤ او ويونکې به ويل چې ورځ نيمه شوه حال دا چې هغه د دوي نه ښه پوه ؤ بيا يې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ امر وکړ نو په

---

(١) مسلم كتاب الصلوة ج١ ص ٢٢٣ باب اوقات الصلوة الخمس .

داسې وخت کې يې د مازيګر تکبير وکړو چې نمر اوچت ؤ بيا يې حضرت بلال رضي الله عنه امر وکړو نو هغه په داسې وخت کې د ماښام تکبير وکړو چې نمر پريوتې ؤ بيا يې ورته امر وکړو نو د ماسختن د مانځه د پاره يې په داسې وخت کې تکبير وکړو چې شفق پريوتې او ډوب شوي ؤ . بيا يې دويمه ورځ د سحر مونځ روسته کړ تر دې پورې چې کله د مانځه نه فارغ شو نو ويونکې به ويل چې په تحقيق نمر ختلې او يا نزدې دې چې اوخيژي بيا يې د ماسپښين مونځ روسته کړ تر دې پورې چې د پرونۍ ورځې د مازيګر وخت نه بالکل نزدې ؤ بيا يې د مازيګر روسته کړ تر دې پورې چې کله خلک د مانځه نه فارغ شو نو ويونکي به ويل چې نور سور شو بيا يې د ماښام مونځ روسته کړ تر دې پورې چې د شفق د پريوتو وخت بالکل نزدې ؤ بيا يې د ماسختن مونځ روسته کړ تر دې پورې چې د شپې د اولې حصې دريمه برخه تيره شوې وه بيا يې سحر پوښتنه کوونکې راوغوښت نو وې فرمائل چې د دې دواړو وختونو تر منځ د مانځه وخت دې . د دې حديث روايت مسلم کړې .

{۱۹۳} وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَالَ وَقْتُ الظُّهْرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ وَكَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُوْلِهِ مَا لَمْ تَحْضُرِ الْعَصْرُ وَ وَقْتُ الْعَصْرِ مَا لَمْ تَصْفَرَّ الشَّمْسُ وَ وَقْتُ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ مَا لَمْ يَغِبِ الشَّفَقُ وَوَقْتُ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى نِصْفِ اللَّيْلِ الْوَسَطِ وَ وَقْتُ صَلَاةِ الصُّبْحِ مِنْ طُلُوْعِ الْفَجْرِ مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ فَإِذَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ فَأَمْسِكْ عَنِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهَا تَطْلُعُ بَيْنَ قَرْنَيِ الشَّيْطَانِ رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه روايت دې چې رسول صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي د ماسپښين د مانځه وخت هغه دې کله چې د نمر زوال وشي او د سړي سورې د ده د اوږد والي هومره شي تر څو پورې چې مازيګر نه وي داخل شوي او د مازيګر د مانځه وخت تر هغې پورې دې تر څو پورې چې نمر نه وي زيړ شوي او د ماښام د مانځه وخت تر هغې پورې دې تر څو پورې چې شفق نه وي غائب او ډوب شوي او د ماسختن د مانځه وخت د منځنۍ حصې د نيمې شپې پورې دې او د سحر د مانځه وخت د سبا د ختو نه دې تر څو پورې چې نمر نه وي ختلې نو کله چې نمر وخيژي نو د مونځ نه بند شه پس بې شکه نمر چې دې د شيطان د دوه ؤ ښکرونو ترمنځ راخيژي . د دې حديث روايت مسلم کړې دې .

---

(۱) مسلم کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۲۳ باب اوقات الصلوة الخمس .

{١٩٢} وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمَّنِي جِبرِيلُ عِندَ البَيتِ مَرَّتَينِ فَصَلَّى الظُّهرَ فِي الأُولىٰ مِنهُمَا حِينَ كَانَ الفَيءُ مِثلَ الشِّرَاكِ ثُمَّ صَلَّى العَصرَ حِينَ كَانَ كُلُّ شَيءٍ مِثلَ ظِلِّهِ ثُمَّ صَلَّى المَغرِبَ حِينَ وَجَبَتِ الشَّمسُ وَ اَفطَرَ الصَّائِمُ ثُمَّ صَلَّى العِشَاءَ حِينَ غَابَ الشَّفَقُ ثُمَّ صَلَّى الفَجرَ حِينَ بَرَقَ الفَجرُ وَحرُمَ الطَّعَامُ عَلَى الصَّائِمِ وَ صَلَّى المَرَّةَ الثَّانِيَةَ الظُّهرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيءٍ مِثلَه لِوَقتِ العَصرِ بِالاَمسِ، ثُمَّ صَلَّى العَصرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيءٍ مِثلَيه ثُمَّ صَلَّى المَغرِبَ لِوَقتِه الاَوَّلِ ثُمَّ صَلَّى العِشَاءَ الآخِرَةَ حِينَ ذَهَبَ ثُلُثُ اللَّيلِ ثُمَّ صَلَّى الصُّبحَ حِينَ اِسفَرَّتِ الاَرضُ ثُمَّ اِلتَفَتَ اِلَى جِبرِيلُ فَقَالَ يَا مُحَمَّدُ هٰذَا وَقتُ الاَنبِيَاءِ مِن قَبلِكَ وَالوَقتُ فِيمَا بَينَ هٰذَينِ الوَقتَينِ رواه الترمذي وابوداود و احمد وابن خزيمة والدارقطني والحاكم و اسناده حسن قال النيموي المراد بالوقت وقت الفضل جمعا بين الاحاديث.[1]

**ترجمه** : او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روایت دې چې بې شکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې ماته جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام دبیت الله سره دوه ځلې امامت کړيدي په اول ځل کې یې د دې نه د ماسپخین مونځ وکړ په هغه وخت کې چې ؤ فئ او اصلي سوري په مثل د شراک او د څپلئ د وندني ماسوا د سوري د زوال نه بیا یې د مازیګر مونځ په هغه وخت کې وکړ چې ؤ هر یو شي په مثل د سوري خپل په غیر د اصلي سوري نه بیا یې د ماښام مونځ په داسي وخت کې وکړ چې نمر پریوتي ؤ او روژه دار روژه ماتوله بیا یې د ماسختن مونځ په داسي وخت کې وکړ چې شفق دوب شوي او غائب شوي ؤ بیا یې د سحر مونځ په داسي وخت کې وکړ چې سحر روښانه شو او په روژه دار خوراک کول حرام شو او په دویم ځل یې د ماسپخین مونځ په هغه وخت کې وکړ چې سوري د هر شي خپل مثل ته ورسید په غیر د اصلي سوري نه د پرونئ ورځې د مازیګر په وخت بیا یې د مازیګر مونځ په هغه وخت کې وکړ چې د هر شي سوره د هغه دوه چنده شو. بیا یې د ماښام مونځ د اول ځل په وخت کې وکړ بیا یې دآخر ماسختن مونځ په هغه وخت کې وکړ چې د شپې دریمه حصه تیره شوي وه بیا یې د سحر مونځ په هغه وخت وکړ کله چې زمکه رڼا او روښانه شوه بیا ماته جبرئیل وکتل نو

(1) ترمذي ابواب الصلوة ج١ صـ ١٣٩ باب ماجاء في مواقيت الصلوة ...الخ. ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ صـ ٥۴ باب المواقيت.مسنداحمد ج١ صـ ٣٣٣. صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج١صـ ١۴٨ باب ذكر الدليل على ان فرض الصلوة ... الخ. دار قطني كتاب الصلوة ج١ صـ ٢٥٨ باب امامة جبرئيل، مستدرك حاكم كتاب الصلوة ج١ صـ ١٩٣ اوقات الصلوات الخمس.

وي ويل چې اي محمد ﷺ دا د انبياؤ مخکنيو وخت دي او وخت د دي دوارو وختونو ترمنځ دي. د دي حديث روايت ترمذي ابوداؤد، احمد، ابن خزيمه، الدار قطني او حاکم کړي دي او اسناد يې حسن دي. او نيموي رحمه الله ويلي دي چې د دي د پاره چې د احاديثو ترمنځ تطبيق راشي مراد د وقت نه افضل وخت دي.

{۱۹۵} وَعَن جَابِرِ بنِ عَبدِ الله رضي الله عنه قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ رَسُولَ الله ﷺ عَن وَقتِ الصَّلَاة فَلَمَّا دَلَكَتِ الشَّمسُ اَذَّنَ بِلَالٌ لِلظُّهرِ فَاَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ الصَّلَاة وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلعَصرِ حِينَ ظَنَنَّا اَنَّ ظِلَّ الرَّجُلِ اَطوَلَ مِنه فَاَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ الصَّلَاة وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلمَغرِبِ حِينَ غَابَتِ الشَّمسُ فَاَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ الصَّلَاة وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلعِشَاء حِينَ ذَهَبَ بَيَاضُ النَّهارِ وَهوَ الشَّفَقُ ثُمَّ اَمَرَه فَاَقَامَ الصَّلَاة فَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلفَجرِ حِينَ طَلَعَ الفَجرُ فَاَمَرَه فَاَقَامَ الصَّلٰوة فَصَلّٰی ثُمَّ اُذِّنَ بِلَالٌ اَلغَدَ لِلظُّهرِ حِينَ دَلَكَتِ الشَّمسُ فَاَخَّرَها رَسُولُ الله ﷺ حَتّٰی صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيء مِثلَه فَاَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلعَصرِ فَاَخَّرَها رَسُولُ الله ﷺ حَتّٰی صَارَ ظِلُّ كُلِّ شَيء مِثلَيه فَاَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلمَغرِبِ حِينَ غَرَبَتِ الشَّمسُ فَاَخَّرَها رَسُولُ الله ﷺ حَتّٰی كَادَ يَغِيبُ بَيَاضُ النَّهارِ وَهوَ الشَّفَقُ فِيمَا يُرٰی ثُمَّ اَمَرَه رَسُولُ الله ﷺ فَاَقَامَ الصَّلَاة وَصَلّٰی ثُمَّ اَذَّنَ لِلعِشَاء حِينَ غَابَ الشَّفَقُ فَقُمنَا ثُمَّ قُمنَا مِرَارًا ثُمَّ خَرَجَ اِلَينَا رَسُولُ الله ﷺ فَقَالَ مَا اَحَدٌ مِنَ النَّاسِ يَنتَظِرُ هٰذِه الصَّلَاة غَيرُكُم فَاِنَّكُم فِي صَلَاة مَّا اَنتَظَرتُمُوها وَلَولَا اَن اَشُقَّ عَلٰی اُمَّتِي لَاَمَرتُ بِتَاخِيرِ هٰذِه الصَّلَاة اِلٰی نِصفِ اللَّيلِ اَو اَقرَبَ مِن نِصفِ اللَّيلِ ثُمَّ اَذَّنَ لِلفَجرِ فَاَخَّرَها حَتّٰی كَادَتِ الشَّمسُ اَن تَطلُعَ فَاَمَرَه فَاَقَامَ الصَّلَاة فَصَلّٰی ثُمَّ قَالَ اَلوَقتُ بَينَ هٰذَينِ رواه الطبراني في الاوسط وقال الهيثمي اسناده حسن.[1]

قال النيموي هذا الحديث يدل على ان الشفق هو البياض كما ذهب اليه ابو حنيفة رحمه الله.

**ترجمه**: د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه روايت دي هغه ويلي دي چې يو سړي د رسول الله

(۱) مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۳۰۴ باب بيان الوقت نقلًا عن الطبراني في الاوسط.

ﷺ نه د مازدیګر د وخت په باره کې پوښتنه وکړه نو کله چې د نمر زوال وشو حضرت بلال رضي الله عنه ماسپخین د پاره اذان وکړ نو رسول الله ﷺ ورته امر وکړ نو د مانځه اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې د مازیګر د پاره اذان وکړ په هغه وخت کې چې مونږ ګمان کاوه چې د سړي سوري د سړي د قد نه اوږد دي نو رسول الله ﷺ هغه ته امر وکړ نو د مانځه اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ، بیا یې د ماښام د پاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې نمر پرېوتي وُ نو رسول الله ﷺ هغه ته امر وکړ نو د مانځه اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې د ماسختن د پاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې د ورځې سپینوالي تلي وُ چې هغه شفق دي بیا یې هغه ته امر وکړ نو د مانځه د پاره یې اقامت وکړ پس مونځ یې وکړ بیا یې د سحر د پاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې سحر وخاته نو هغه ته یې امر وکړ نو اقامت وکړ پس مونځ یې وکړ سبا ته بیا بلال د ماسپخین د پاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې نمر اوښتي وُ او زوال شوي وُ نو رسول الله ﷺ د دي وخت مونځ تر هغې پوري روسته کړ چې د هر شي سوري خپل مثل ته ورسیده نو هغه ته رسول الله ﷺ امر وکړ نو اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې د مازیګر د پاره اذان وکړ نو رسول الله ﷺ د مازیګر مونځ تر هغې پوري روسته کړ چې د هر شي سوري دوه چند شو نو رسول الله ﷺ هغه ته امر وکړ نو اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې د ماښام د یاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې نمر پرېوت نو هغه رسول الله ﷺ تر هغه وخته پوري روسته کړ چې نزدي وُ چې د ورځې سپینوالي چې هغه شفق دي غائب او ډوب شوي وي بیا رسول الله ﷺ هغه ته امر وکړ نو اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې د ماسختن د پاره په هغه وخت کې اذان وکړ چې شفق غائب او ډوب شو نو مونږ پاڅیدو بیا مونږ څو څو ځله پاڅیدو بیا مونږ ته رسول الله ﷺ راووت نو وي فرمائل د خلکو نه هیڅ یو داسي کس نشته چې د دغه مانځه انتظار کوي په غیر ستاسي نه بې شکه تاسي په مانځه کې یې تر څو پوري چې تاسي د مانځه انتظار کوئ، که چرته ما په خپل امت باندي ګرانه او سخته نه ګڼلي نو ما به د نیمي شپې پوري او یا نیمي شپې ته نزدي برخي پوري د دي مونځ په تاخیر باندي امر کړي وي بیا یې د سحر د مانځه د پاره اذان وکړ نو دا مونځ یې تر هغه وخته پوري روسته کړي چې نزدي وُ چې نمر ختلي وي نو هغه ته یې امر وکړ پس د مانځه اقامت یې وکړ او مونځ یې وکړ بیا یې وویل چې د مانځه وخت د دي دواړو تر منځ دي. د دي حدیث روایت په اوسط کې طبراني کړي دي او هیثمي ویلي دي چې اسناد یې حسن دي.

او نیموي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث په دي خبره باندي دلالت کوي چې شفق همدغه بیاض او سپینوالي دي لکه چې امام ابو حنیفه رحمه الله دي خبري ته ذهاب کړي دي.

## د کلماتو تحقیق:

**قوله**: "امّني جبريل": د امامت جبریل واقعه دليلة الاسراء په سحر د ماسپخین په وخت کې راغله او نزول د جبريل د زوال نه پس اوشو . د فرضیت صلاة نه پس له ټولو نه مخکې همدغه مونځ ادا کړې شو نو ځکه دېته "الصلاة الاولى" ویلې کیږي.

**د ترجمة الباب مقصد**: د مصنف غرض د دې باب د قائمولو نه غالبا اجمالا د هر مونځ پوره وخت بیانول وي ځکه د وخت مستحب دبیان لپاره مستقل بابونه قایموو، مونږ به ان شاء الله د دغه بابونو لاندې تصیلي بحث کوو او د شفق بیان هم وړاندې راروان دې.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي الظُّهرِ

### باب دې په بیان د هغه حدیثونو کې چې د ماسپښین په مانځه کې راغلي دي:

{۱۹۶} عَن اَبِي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَنَّه قَالَ اِذَا اشتَدَّ الحَرُّ فَاَبرِدُوا بِالصَّلَاة فَاِنَّ شِدَّة الحَرِّ مِن فَيحِ جَهنَّمَ رواه الجماعة .[1]

**ترجمه**: د حضرت ابي هريره رضي الله عنه روایت دي چې نبي علیه السلام فرمائلي چې کله ګرمي سخته او زیاته شي نو یخ کړئ مانځه لره په تحقیق سره د ګرمئ سختي د جهنم د جوش په وجه ده . دغه حدیث د محدثینو جماعت نقل کړي دي .

{۱۹۷} وَ عَن اَبِي ذَرٍّ الغِفَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كُنَّا مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي سَفَرٍ فَاَرَادَ المُؤَذِّنُ اَن يُؤَذِّنَ لِلظُّهرِ فَقَالَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَبرِدْ ثُمَّ اَرَادَ اَن يُؤَذِّنَ فَقَالَ لَه اَبرِدْ حَتّٰى رَاَينَا فَيءَ التُّلُولِ فَقَالَ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِنَّ شِدَّة الحَرِّ مِن فَيحِ جَهنَّمَ فَاِذَا اشتَدَّ الحَرُّ فَاَبرِدُوا بِالصَّلَاة رواه الشيخان .[2]

---

(۱) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ صــ ۷۶ باب الابراد بالظهر .الخ ،مسلم كتاب المساجد ج۱ صــ ۲۴۴ باب استحباب الابراد بالظهر.الخ .ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صــ ۵۸ باب وقت صلوة الظهر ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صــ ۴۰ باب ماجاء في تاخير الظهر ..الخ ، نسائي كتاب المواقيت ج۱ صــ ۸۷ باب الابراد بالظهر .الخ . ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ صــ ۴۹ باب الابراد بالظهر .الخ.مسند احمد ج۲ صــ ۲۵۶.

(۲) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ صــ ۷۷ باب الابراد بالظهر في السفر . مسلم كتاب المساجد ج۱ صــ ۲۲۴ باب استحباب الابراد بالظهر .....الخ .

**ترجمه** : د حضرت ابي ذر غفاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي دي چې مونږ د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ سره په يوه سفر کې وُ نو مؤذن غوښتل چې د ماسپخين اذان وکړي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمائل چې يخوالي وکړه بيا يې غوښتل چې اذان وکړي نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ورته وفرمائل چې يخوالي وکړه ان تردې پورې چې مونږ د ورو ډيره کې وُ سوري وليد نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائل چې په تحقيق سره د ګرمۍ سختوالي د جهنم د جوش په وجه دي نو کله چې ګرمي سخته شي نو يخه ويې مانځه لره د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

{۱۹۸} وَ عَن ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَن رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا أَجَلُكُم فِي أَجَلِ مَن خَلَا مِنَ الأُمَمِ مَا بَينَ صَلَاةِ العَصرِ إِلَى مَغرِبِ الشَّمسِ وَإِنَّمَا مَثَلُكُم وَمَثَلُ اليهودِ وَالنَّصَارٰى كَرَجُلٍ إِستَعمَلَ عُمَّالًا فَقَالَ مَن يَعمَلُ لِي إِلَى نِصفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ اليهودُ إِلَى نِصفِ النَّهَارِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَن يَعمَلُ لِي مِن نِصفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ العَصرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ فَعَمِلَتِ النَّصَارٰى مِن نِصفِ النَّهَارِ إِلَى صَلَاةِ العَصرِ عَلَى قِيرَاطٍ قِيرَاطٍ ثُمَّ قَالَ مَن يَعمَلُ لِي مِن صَلَاةِ العَصرِ إِلَى مَغرِبِ الشَّمسِ عَلَى قِيرَاطَينِ قِيرَاطَينِ إِلَّا فَأَنتُمُ الَّذِينَ يَعمَلُونَ مِن صَلَاةِ العَصرِ إِلَى مَغرِبِ الشَّمسِ أَلَا لَكُمُ الأَجرُ مَرَّتَينِ فَغَضِبَ اليهودُ وَالنَّصَارٰى فَقَالُوا نَحنُ أَكثَرُ عَمَلًا وَأَقَلُّ عَطَاءً قَالَ اللهُ تَعَالَى فَهَل ظَلَمتُكُم مِن حَقِّكُم قَالُوا لَا قَالَ اللهُ تَعَالَى فَإِنَّهُ فَضلِي أُعطِيهِ مَن شِئتُ رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : د حضرت بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې بې شکه خبره همدا ده چې ستاسي د ژوند نيټه په نسبت سره دتيرو شو امتونو وخت ته دومره ده لکه د مازيګر نه تر نمر پريوتو پورې او بې شکه خبره همدا ده چې ستاسي مثال د يهودو او نصارىٰ ؤ د مثال په نسبت د هغه شخص او سړي په شان دي چې د مزدورۍ د پاره يو مزدور نيسي نو وايي چې څوک به ماته په يو يو قيراط باندي د غرمې پورې مزدوري وکړي نو يهودو په يو يو قيراط باندي تر غرمې پورې مزدوري وکړه بيا هغه سړي وويل چې څوک ماته په يو يو قيراط باندي د غرمې نه تر مازيګره پورې مزدوري وکړي. نو نصارىٰ ؤ د غرمې نه تر مازيګر پورې په يو يو قيراط باندي مزدوري وکړه. بيا هغه سړي وويل چې څوک به ماته د مازيګر نه تر ماښام پورې په دوه دوه قيراطه مزدوري وکړي نو تاسې هغه خلک ياستئ چې د مازيګر نه تر ماښام پورې مو مزدوري کړي ده خبردار شئ ستاسي د پاره دوه چنده اجر او مزدوري

(۱) بخاري کتاب الانبياء ج ۱ ص ۴۹۱ باب ما ذکر عن بني اسرائيل.

دہ نو یهود او نصاری په غصه شو نو وي ویل چې زمونږ کار ډیر دي او مزدوري مو لږه ده نو الله تعالی وفرمائل چې ایا ستاسي د حق نه مي څه کم کړي دي هغو وویل چې نه الله تعالی وفرمائل چې دا څما فضل دي چاته مي چې خوښه شي ورکوم یې . د دي حدیث روایت بخاري کړي دي .

{۱۹۹} وَعَن عَبدِ اللهِ بنِ رَافِعٍ مَولى أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا زَوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَنَّه سَأَلَ أَبَا هُرَيرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ عَن وَقتِ الصَّلَاةِ فَقَالَ أَبُو هُرَيرَةَ أَنَا أُخبِرُكَ صَلِّ الظُّهرَ إِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثلَكَ وَالعَصرَ إِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثلَيكَ وَالمَغرِبَ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمسُ وَالعِشَاءَ مَا بَينَكَ وَمَا بَينَ ثُلُثِ اللَّيلِ وَ صَلِّ الصُّبحَ بِغَبَشٍ يعني بِغَلَسٍ رَوَاه مَالِكٌ فِي المُوَطَّأ وَاسنَادُه صَحِيحٌ قَالَ النيموي اِستَدَلَّ الحَنَفِية بِهٰذِه الاَحَادِيثِ عَلى اَنَّ وَقتَ الظُّهرِ لَا ينقَضِي بَعد المِثل بَل يبقِى بَعدَه وَ وَقتُه اَزيدُ مِن وَقتِ العَصرِ وَ فِي الاِستِدلاِلِ بِها اَبحَاثٌ وَاِنِّي لَم اَجِد حَدِيثًا صَرِيحًا صَحِيحًا اَو ضَعِيفًا يدُلُّ عَلى اَنَّ وَقتَ الظُّهرِ اِلى اَن يصِيرَ الظِّلُّ مِثلَيه وَعَن الاِمَامِ اَبِي حَنِيفَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ فِيه قَولَانِ .[1]

**ترجمه** : د عبدالله بن رافع نه چې د نبي عليه السلام د بي بي حضرت ام سلمي رضي الله عنها ازاد شوي غلام نه روایت دي چې ده د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه د مانځه د وخت په باره کې پوښتنه وکړه نو حضرت ابو هریره رضي الله عنه وویل چې زه تاته خبر درکوم چې د ماسپخین مونځ کوه کله چې ستا سوري ستا په مثل شي او د مازیګر مونځ کوه کله چې ستا سوري ستا دوچند شي او د ماښام مونځ کوه کله چې نمر پریوزي او د ماسختن مونځ کوه د شپې د دریمي حصي په منځ کې او د سحر مونځ په تیاره کې کوه . د دي حدیث روایت امام مالک رحمه الله په موطا کې کړي دي او اسناد یې صحیح دي امام نیموي رحمه الله ویلي دي چې احنافو په دغه احادیثو باندي استدلال کړي دي چې د ماسپخین وخت د یو مثل او یو چند یې نه روسته نه تیریږي بلکه د یو چندئ او یو مثل نه روسته باقي پاتي کیږي او د ماسپخین وخت د مازیګر د وخت نه ډیر زیات دي او په دي احادیثو باندي په استدلال نیولو کې ډیر بحثونه دي نو مانه کوم داسي صریح صحیح حدیث مندلي او نه مي کوم ضعیف حدیث موندلي دي چې په دي خبره چې دلالت وکړي چې د ماسپخین وخت تر هغي پوري دي چې سوري دوه چنده وګرځي او د امام ابوحنیفه رحمه الله نه په دي کې دوه قوله راغلي دي .

(۱) مؤطا امام مالک کتاب وقوت الصلوة صـ ۵.

# د ماسپخين دجواز وخت

دماسپخين دوخت ابتداء په اجماع دفقهاو سره دزوال نه پس کيږي او په اخر وخت کې اختلاف دې.
(١) دجمهور علماء او دصاحبينو په نزد دهر يو شي سوري اصلي (بغير دفيء الزوال) ديو مثل کيدو پوري دماسپخين وخت وي دغه يو روايت دامام صاحب نه هم دې.
(٢) دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ مشهور قول او ظاهر الروايه هم دادې چې دماسپخين وخت مثلين پوري وي.
**يادونه**: امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ او بعضي علماو په نزد ديو مثل نه پس دڅلورو رکعتو په اندازه وخت مشترک دې په دې کې ماسپخين او مازيګر دواړه اداءٌ لوستلې کيږي.

## دجمهور علماو دلايل:

١... دابن عباس رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ حديث او داسې نور: "وَ صَلَّى الْمَرَّةَ الثَّانِيَةَ الظُّهرَ حِينَ كَانَ ظِلُّ كُلِّ شَيءٍ مِثلَه"، په دويمه ورځ په يو مثل باندې دماسپخين مونځ کول ددې داخريني وخت کيدو دليل دې.
٢... دموطأ امام مالک رَحِمَهُ ٱللَّهُ روايت "كتب عمر رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ الى عماله أن صلوا الظهر الى أن يكون ظل أحدكم مثله".

## دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ ٱللَّهُ دلائل:

١... حديث دابوهريره رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ: "إِذَا اشْتَدَّ الحَرُّ فَأَبرِدُوا بِالصَّلَاةِ"، ځکه چې دحجاز په شان په ملک کې په ګرميانو کې په يو مثل کې "ابراد" يعنې يخوالې نه وي.
٢... دباب دويم حديث مطابق حضور صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دګرمۍ په موسم کې په داسې يخ والي کې يې دماسپخين مونځ اد! کړو چې ددېرو سوري به دخپل سوري نه بهر ته ووتل او ظاهره خبره ده چې دوسيع اجسامو سوري په يو مثل کې دننه بهر ته نشي وتلې بلکې په دوو مثلينو کې دننه به بهر ته اوزي خاص کر دعربو په ښار کې چې دزمکې په وسط باندې دواقع کيدو دوجې نه سوري ناوخته غځيږي.
٣... دباب دريم حديث دکوم مطابق چې حضور صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دامت محمديه ژوند لره دمازيګر نه تر ماښامه وخت په شان اوګرځولو او ديهودو او دنصارى دژوند نه يې نهايت کم اوښودلو کوم باندې چې يهوديان صرف ددې وجې نه معترض شو چې زمونږ دعمل وخت ددوي دعمل وخت نه په څو چنده زيات دې ليکن بيا هم ددوي اجرت زمونږ نه دوچند دې ؟ اوس دمازيګر نه تر ماښام وخت ديهوديانو (صبح صادق نه تر زوال) نه خو په ګرمئ او يخنئ په هر موسم کې کم دې ليکن دنصارى

دوخت (ماسپخين نه تر مازيګر) نه به پوره کال کې په هغه صورت کې کم وي چې کله دظهر انتها په مثل ثاني باندې اومنلې شي ورنه دکال څو ورځو کې به دزوال نه تر مثل اول رخت به هغومره وي څومره چې مثل اول نه تر غروب آفتاب پوري وي او دنصارى به په مونږ باندې اعتراض عقلا په يو شانه هم صحيح نه وي دوخت دبرابريدو دوچې نه او مثال به هم غلط ثابت وي .

۴.دابو هريره رضي الله عنه حديث موقوفا "صَلِّ الظُّهرَ إذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَكَ وَالعَصرَ إِذَا كَانَ ظِلُّكَ مِثْلَيكَ " .

قوله :"قَال النيموي : ولم اجد حديثا صريحا.... الخ احناف هم ددې خبرې اعتراف کوي چې دامام صاحب رحمه الله دمشهور قول يعنې دمثلينو څه صريح مرفوع حديث نشته البته داسي حديث مرفوعه ضرور ملاويږي دکوم مطابق چې دا منل لازميږي چې دمثل اول نه پس هم دماسپخين وخت دې دارنګه دا هم چې دمثل اول والا حديثونود ابتداء دي او دمثلين والا حديثونه دبعدوالا دي لهذا په هغې باندې به عمل متعين وي او په حديث جبريل کې نسخ کيږي مثلا په هغې کې دعصر انتهائي وخت مثلين لره ګرزولې شوې دې حالانکه بالاتفاق دعصروخت تر غروب آفتابه پورې دې .

## دماسپخين مستحب وخت

په ژمي کې بالاتفاق تعجيل يعنې زر لوستل بهتر او غوره دي او په اوړي کې دمستحب وخت په باره کې اختلاف دې :

**اولنې قول** : دامام شافعي رحمه الله په نزد په عام حالاتو کې په ماسپخين کې تعجيل اولى دى ، البته يو څو شرايطو سره ګرمې په موسم کې تاخير مستحب دې ، هغه شرطونه دادي : (۱) سخته ګرمي وي چې دخلکو وتل مشکل وي .(۲) جومات دخلکو نه ډير لري وي .(۳) دجمې مونځ وي منفرد لپاره تاخير بهتر نه دې .په دې شرطونو کې که يو شرط هم اونه موندل شو نو بيا به همغه تعجيل افضل او بهتر وي .

**دويم قول** : جمهور په شمول داحنافو سره په ګرمۍ کې دتاخير في الظهر قائل دي .

**دامام شافعي رحمه الله دليل** :

۱.حديث : " الصلاة أول وقتها رضوان الله " .(ترمذي شريف)

۲.حديث عائشه رضي الله عنها: "ما رأيت أحدا أشد تعجيلا للظهر من رسول الله صلى الله عليه وسلم " (ترمذي).

**دجمهور دليل**: :باب په "ابراد" بيان باندې مشتمل صريح وصحيح احاديث " إِذَا اِشْتَدَّ الحَرُّ فَأَبرِدُوا بِالصَّلَاةِ فَإِنَّ شِدَّةَ الحَرِّ مِن فَيحِ جَهَنَّمَ " .

## امام شافعي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ته جواب :

۱... په اولنۍ حديث کې "أول وقتها" نه مراد اول وخت مستحب دی تطبيقا بين الاحاديث .
۲... د عائشې رضي الله عنها په حديث کې د زيات وروسته والي نفي مقصود ده د مطلق تاخير نه ورنه تعارض به لازم راشي.

۳... د مطلق تعجيل د ظهر والا حديثونه منسوخ شو كما في حديث مغيرة بن شعبة رضي الله عنها" كان آخر الأمرين من رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الابراد بالظهر ".(درس مشكوة :۲/ ۱۸، بحواله التلخيص الحبير)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الْعَصْرِ

## د هغه حديثونو باب چې د مازيگر د مانځه په باره کې راغلي دي :

{۲۰۰} عَن عَلِي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا كَانَ يومُ الاَحزَابِ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَلأَ الله قُبُورَهم وَ بُيوتَهم نَارًا كَمَا حَبَسُونَا وَ شَغَلُونَا عَنِ الصَّلَاةِ الوُسطَى حَتَّى غَابَتِ الشَّمسُ رواه الشيخان و لمسلم في رواية شغلونا عن الصلاة الوسطى صلاة العصر .[1]

**ترجمه** : د حضرت علي رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې کله د احزاب ورځ شوه رسول الله صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې الله تعالى دي د دوي قبرونه او کورونه د اور نه ډک کړي لکه چې دوي مونږ د اوسطي او د منځني مونځ نه بند او مشغوله کړو تر دې پورې چې نمر پريوت . د دې حديث روايت شيخينو کړي دي . او په يو روايت کې د مسلم د پاره چې : شغلونا عن الصلوٰة الوسطىٰ صلوٰة العصر . يعنې چې دوي مونږ د منځني مونځ نه چې د مازيگر مونځ دي مشغوله کړو .

{۲۰۱} وَعَن شَقِيقِ بنِ عُقبَةَ عَنِ البَرَّاءِ بنِ عَازِبٍ رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ قَالَ نُزِلَت هٰذِهِ الآيَة ( حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰاةِ وَالصَّلَاةِ العَصرِ ) فَقَرَأْنَاهَا مَاشَاءَ الله ثُمَّ نَسَخَها الله فَنُزِلَت ( حَافِظُوا عَلَى الصَّلَوٰاةِ وَالصَّلَاةِ الوُسطَى ) فَقَالَ رَجُلٌ كَانَ جَالِسًا عِندَ شَقِيقٍ لَه هي إِذًا صَلَاةُ العصرِ فَقَالَ البَرَّاء قَد أَخبَرتُك كيفَ نُزِلَت وَ كيفَ

---

(۱) بخاري كتاب المغازي ج۲ ص ۵۹۰ باب غزوة الخندق وهي الاحزاب ، مسلم كتاب المساجد ج۱ ص ۲۲۷ باب الدليل لمن قال الصلوة الوسطى ...الخ .

نَسَخَها الله والله اعلم رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : د شقيق بن عقبه نه روايت دي چې براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نازل كړي شو دا ايت ( حَافِظُوا على الصَّلَوَاتِ وَصَلوٰة العَصْرِ ) نو مونږ دغه ايت لوستلي دي تر هغې چې دالله تعالى اراده وه بيا هغه الله تعالى منسوخ كړ نو نازل كړي شو ( حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوَاتِ وَالصَّلوٰة الْوُسْطٰى ) نو يو سړي چې د شقيق سره ناست ؤ هغه ته وويل چې صلوٰة الوسطٰى اوس د مازيگر مونځ دي نو حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل په تحقيق ماخو ته خبر كړي چې هغه څنگه نازل شوي دي او څنگه الله تعالى هغه نسخ كړي دي . اوالله ښه عالم ذات دي . د دي حديث روايت مسلم كړي دي . د أيت كريمه ترجمه :د ټولو مونځونو حفاظت كوئ خاص كر د منځني مونځ ،دويم روايت اول روايت : خاص كر د مازيگر مونځ .

{٢٠٢} وَعَنِ ابنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاة الْوُسطٰى صَلَاة العَصرِ رواه الترمذي وصححه .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې منځني مونځ د مازيگر مونځ دي د دي حديث روايت ترمذي كړي او صحيح يې گڼلي دي .

{٢٠٣} وَ عَن أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ تِلكَ صَلَاة المُنَافِقِ يجلِسُ يرقُبُ الشَّمسَ حَتّٰى إِذَا كَانَت بَينَ قَرنَي الشَّيطَانِ قَامَ فَنَقَرَها أَربَعًا لَا يذكُرُ الله فِيها إِلَّا قَلِيلًا رواه مسلم .[3]

**ترجمه** : او حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمائل يې : دا د منافق مونځ دي چې كيني او د نمر انتظار كوي تر دي پورې چې كله نمر د شيطان د دوه ؤ ښكرونو تر منځ راشي ودريږي او څلور ټونگي ووهي دا نه يادوي الله لره مگر ډير لږ . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

---

(١) مسلم كتاب المساجد ج١ صـ ٢٢٧ باب الدليل لمن قال الصلوة الوسطى ... الخ .
(٢) ترمذي ابواب الصلوة ج١ صـ ٤٥ باب ماجاء في الصلوة الوسطى انها العصر.
(٣) مسلم كتاب المساجد ج١ صـ ٢٢٥ باب استحباب التكبير بالعصر .

{۲۰۲} وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعْجِيلًا لِلظُّهْرِ مِنْكُمْ وَأَنْتُمْ أَشَدُّ تَعْجِيلًا لِلْعَصْرِ مِنْهُ رواه احمد والترمذي واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : حضرت ام سلمي رضي الله عنها ويلي دي چې نبي عليه السلام د ماسپخين مونځ ستاسي نه زيات په جلتۍ سره کاؤ او تاسو د مازيگر مونځ د هغه صلى الله عليه وسلم نه زيات په جلتۍ سره کوئ. د دي حديث روايت احمد او ترمذي کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

**د کلماتو تحقيق** :

**قوله: "تلك صلاة المنافق"**: ددېنه مراد داصفرار شمس پورې مونځ لره مؤخر کول دي .

**اولنۍ بحث**: صلاة وسطى (دکوم فضيلت چې وارد شوې دې) کوم يو مونځ دې ؟

(۱) دامام شافعي رحمه الله يو قول دادې چې دسحر مونځ دې .

(۲) دامام مالک رحمه الله يو قول داهم دې چې دماسپخين مونځ دې .

(۳) دامام ابوحنيفه رحمه الله مشهور قول دادې چې دمازيگر مونځ دې وهو قول احمد رحمه الله ورواية عن مالک رحمه الله والشافعي رحمه الله داکثر صحابو او دتابعينو همدغه مذهب دې او دباب په اولني حديثونو کې دهمددې ثبوت دې .

**دويم بحث : دمازيگر دجواز وخت**

دمازيگر په ابتدائي وخت کې همغه اختلاف دې کوم چې دماسپخين په انتهائي وخت کې دې يعنې جمهور علماء او صاحبين رحمه الله په نزد ددې ابتداء د مثل اول نه کيږي او دامام صاحب رحمه الله په نزد دمثل ثاني نه پس ، ددې مسئلې دلائل تير شوي دي او انتهائي وخت بالاتفاق غروب آفتاب دې .

**دريم بحث : دمازيگر مستحب وخت** :

(۱) دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد په عصر کې تعجيل اولى دې.

(۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد داصفرار شمس کيدو نه مخکې پورې تاخير مستحب دې .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دليل** :

۱... حديث : "الصلاة أول وقتها رضوان الله ". (ترمذي شريف)

۲... حديث عائشه رضي الله عنها : "كان يصلي العصر والشمس في حجرتها لم يظهر الفيئ من دامام

---

(۱) مسند احمد ج۶ صـ ۲۸۹ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـ ۴۲ باب ماجاء في تاخير صلوة العصر .

حجرتها "يعني دلمر رڼا دحضرت عائشي رضي الله عنها دحجرې په فرش باندې وو او په ديوال باندې نه وو ختلې په هغه وخت کې ئې دمازيګر مونځ اولوستو نو معلومه شوه چې لمر ډير اوچت وو ، ددېنه تعجيل ثابت شو .

## دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دليل :

۱... حديث دام سلمه رضي الله عنها : "كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَشَدَّ تَعجِيلًا لِلظُّهرِ مِنكُم وَ أَنتُم أَشَدُّ تَعجِيلًا لِلعَصرِ مِنه".

۲... "**حافظوا على العصرين : صلاة قبل طلوع الشمس وصلاة قبل غروبها**" "**قبل**" نه مراد په عرف کې قبليت قريبه ( يعني څه وخت مخکې ) مراد وي .

## ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ ته جواب :

۱... "اول وقت" نه مراد اول وخت مستحب دې کامل وخت ، پخپله امام مالک او احمد رَحِمَهُمَا اللهُ په ظهر کې ددې حديث باوجود تاخير في الصيف لره افضل ګرځوي .

۲... دحضرت عائشي رضي الله عنها دحجرې ديوال وړوکې وو نو ځکه دغروب آفتاب نه لږ مخکې به دلمر رڼا وه ، ددې دليل دادې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بعضې وخت به په حجرې کې دننه پاتې وو او امامت به يې کولو او صحابه کرام به دبهر نه اقتدا کوله او دا هله کيږي چې کله ديوال وړوکې وي . تر څو مقتدي دامام حالت لره او ويني ، لهذا په دې ظهرِ تعجيل باندې استدلال صحيح نه دې .

# بَابُ مَا جَاءَ فِي صَلَاةِ المَغرِبِ

## د هغه حديثونو باب چې د ماښام د مانځه په باره کې راغلي دي :

{۲۰۵} **عَن سَلَمَةَ بنِ الاَكوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي المَغرِبَ إِذَا غَرَبَتِ الشَّمسُ وَتَوَارَتْ بِالحِجَابِ رواه الجماعة الا النسائي .**[1]

**ترجمه** : د حضرت سلمه بن اکوع رَضِيَ اللهُ عَنهُ روايت دي چې بې شکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ماښام مونځ هغه وخت کې کاوه چې کله به نمر پريواته او په پرده کې به پټ شو . د دې حديث

---

(۱) بخاري باب مواقيت الصلوة ج۱ صـــ ۷۹ باب وقت المغرب ، مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۲۸ باب بيان ان اول وقت المغرب ... الخ . ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۶۰ باب وقت المغرب ابن ماجة كتاب الصلوة صـــ ۵۰ باب وقت صلوة المغرب ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـــ ۴۲ باب ماجاء في وقت المغرب . مسند احمد ج۴ صـــ ۵۱ .

روایت الجماعة کړي دي په غیر د نسائي نه .

{۲۰۲} وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَزَالُ اُمَّتِيْ بِخَيْرٍ اَوْ عَلَى الْفِطْرَةِ مَا لَمْ يُؤَخِّرُوا الْمَغْرِبَ حَتّٰى تَشْتَبِكَ النُّجُوْمُ رواه احمد و ابو داود واسناده حسن .[1]

**ترجمه** : حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه ویلي دي چې نبي علیه السلام فرمایلي دي چې ځما امت همیشه په خیر باندي دي او یا یې فرمایلي دي چې په فطرت باندي دي ځو پوري چې د ستورو تر ګنړ والي پوري د ماښام مونځ نه روستي کوي . د دي حدیث روایت احمد او ابو داؤد کړي دي او اسناد یې صحیح دي .

## دماښام دوخت دري مسئلې

**اولنۍ مسئله** : دماښام ابتدائي او انتهائي وخت !

دمغرب وخت ابتداء خو بالاتفاق دغروب نه کیږي ، البته په انتهاء کې یي اختلاف دي .

(۱) دامام مالک رحمه الله په نزد دغروب آفتاب نه پس دپنځو رکعتو لوستلو په مقدار دمغرب وخت دې ، همدغه یو روایت دامام شافعي رحمه الله نه دې .

(۲) دامام ابوحنیفه رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد ترشفق ډوبیدو پورې مغرب دې وهو روایة عن الامام الشافعي رحمه الله .

**دامام مالک** رحمه الله **دلیل** : جبرائیل علیه السلام په دواړه ورځ دماښام مونځ په یو وخت کې ادا کړو ، نو که په وخت کې ګنجائش وې نو هغه به ضرور په اول او اخیر وخت کې فرق کولې .

**دامام ابوحنیفه** رحمه الله **او داحمد** رحمه الله **دلیل**: د باب المواقیت ډیر احادیث بالخصوص حدیث دابو موسی رضي الله عنه "ثُمَّ اَخَّرَ الْمَغْرِبَ حَتّٰى كَانَ عِنْدَ سُقُوْطِ الشَّفَقِ" او دعبدالله بن عمرو رضي الله عنه حدیث "ووقت صلاة المغرب مالم یغب الشفق".

**امام مالک** رحمه الله **ته جواب** : دجبریل علیه السلام حدیث منسوخ دې یا په دې کې دماښام مستحب وخت مراد دې .

**دویمه مسئله** : په ماښام کې بالاتفاق تعجیل اولی دی .

**دریمه مسئله** : دشفق نه څه مراد دي ؟

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج ۱ صـ ۶۰ باب وقت المغرب ، مسند احمد ج۴ صـ ۱۴۷.

(۱) دامام مالک رحمه الله او دامام شافعي رحمه الله او دصاحبينو په نزد هغه سوروالي کوم چې دغروب نه لږ ساعت پس ظاهريږي.
(۲) دامام ابوحنيفه او احمد رحمه الله په نزد هغه سپينوالي کوم چې دسوروالي نه پس ښکاره شي او دهغي نه پس تياره راشي داحنافو مفتی به قول همدغه دي .(رحمة الامة : ص: ۲۹)

## دامام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله او دصاحبينو دليل :

۱... دابن عمر رضي الله عنه قول : " الشفق هو الحمرة " دصحابه کرامو نه ابن عباس رضي الله عنه، شداد بن اوس رضي الله عنه، عباده بن صامت رضي الله عنه، او دتابعينو نه دمکحول رضي الله عنه او دطاوس رضي الله عنهم دغه قول دي .
۲... امام داهل لغت خليل بن أحمد رحمه الله دشفق نه تفسير په سوروالي سره کړې دي .

## دامام ابوحنيفه او داحمد رحمه الله دليل :

۱... دجابر رضي الله عنه حديث (باب المواقيت) : " ثُمَّ اَذَّنَ لِلعِشَاء حِينَ ذَهَبَ بَيَاضُ النَّهارِ وَ هوَ الشَّفَقُ " په دې کې صراحةً بياض النهار يعني دورځې رڼائي ته "شفق" ويلې شوې دي .
۲... دجليل القدر صحابه کرام رضي الله عنهم دشفق نه مراد بياض اخلي مثلا حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، عائشه رضي الله عنها ،معاذ بن جبل رضي الله عنه، ابي بن کعب رضي الله عنه. او عبدالله بن زبير رضي الله عنه، او په ورستنيو فقهاو کې عمر بن عبدالعزيز رحمه الله ، زفر رحمه الله ، ابو ثور رحمه الله وغيره ددې قائله وو . دامام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله هم يو قول ددې موافق دي .
۳... دلغتو امامانو کې مبرد ،ثعلب، فراء او ابوعمرو دشفق تفسير په سپينوالي سره کړي دي .
بهرحال دواړه اقوال دلائلو باندې مبني دي او دامام صاحب رحمه الله نه هم دوه قوله مروي دي .

# بَابُ مَا جَاء فِي صَلَاة العِشَاء

## باب دي په بيان د هغه احاديثو کې چې د ماسختن د مانځه په باره کې راغلي دي :

{۲۰۷} عَن أَبِي هرَيرَة رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم لَو لَا أَن أَشُقَّ عَلَى أُمَّتِي لَأَمَرتُهم أَن يؤَخِّرُوا العِشَاء إِلَى ثُلُثِ اللَّيلِ أَو نِصفِهِ رواه احمد وابن ماجه والترمذي و صححه .[1]

---

(۱) مسند احمد ج۲ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـــ ۴۲ باب ماجاء في تاخير العشاء الآخرة . ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ ص ۵۰ باب وقت العشاء .

**ترجمه**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت دي هغه وېلي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې که چرته ماته په امت باندي د تکليف ويره نه وي نو ما به دوي ته د شپې د دريمي حصي او يا د نيمي شپې پوري د مانځه د روسته کېدو حکم ورکړي ؤ . د دي حديث روايت احمد رحمه الله ، ابن ماجه رحمه الله او ترمذي کړي دي او ده صحيح ګڼرلي دي

{۲۰۸} وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رضي الله عنه قَالَ انْتَظَرْنَا رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم لَيْلَةً لِصَلَاةِ الْعِشَاءِ حَتَّى ذَهَبَ نَحْوٌ مِنْ شَطْرِ اللَّيْلِ قَالَ فَجَاءَ فَصَلَّى بِنَا ثُمَّ قَالَ خُذُوا مَقَاعِدَكُمْ فَإِنَّ النَّاسَ قَدْ أَخَذُوا مَضَاجِعَهُمْ وَإِنَّكُمْ لَمْ تَزَالُوا فِي صَلَاةٍ مُنْذُ انْتَظَرْتُمُوهَا وَلَوْلَا ضَعْفُ الضَّعِيفِ وَسُقْمُ السَّقِيمِ وَحَاجَةُ ذِي الْحَاجَةِ لَأَخَّرْتُ هٰذِهِ الصَّلَاةَ إِلَى شَطْرِ اللَّيْلِ رواه الخمسة الا الترمذي وابن خزيمة و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابي سعيد رضي الله عنه روايت دي هغه وېلي دي چې مونږ د ماسختن د مانځه په غرض يوه شپه د رسول الله صلى الله عليه وسلم انتظار کولو تر دي پوري چې د شپې نږدي نيمايي برخه تيره شوه ابوسعيد رضي الله عنه وېلي دي نو هغه صلى الله عليه وسلم راغي مونږ ته يې مونځ وکړ بيا يې وفرمائل چې په خپل خپل ځاي باندي کېنئ بې شکه خلک په خپلو بسترو پراته دي او تاسي د مانځه د انتظار د وخت نه به مانځه کې هستئ که چري د ضعيف ضعف او د بيمار بيماري او د حاجتمند حاجت نه وي نو ما به دغه مونځ د نيمي شپې پوري روسته کړي وي . د دي حديث روايت د ابن ماجه او ترمذي نه به غير پنځو محدثينو روايت کړي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۰۹} وَعَنْ نَافِعِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ كَتَبَ عُمَرُ رضي الله عنه إِلَى أَبِي مُوسٰى رضي الله عنه وَصَلِّ أَيَّ اللَّيْلِ شِئْتَ وَلَا تُغْفِلْهَا رواه الطحاوي و رجاله ثقات.[2]

**ترجمه**: حضرت نافع بن جبير وېلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت ابوموسي رضي الله عنه ته خط وليږه او د شپې په هره برخه کې چې غواړي د ماسختن مونځ وکړه او د دي نه غفلت مه کوه . د دي حديث روايت طحاوي رحمه الله کړي او رجال يې ثقه دي .

---

(۱) نسائي كتاب المواقيت ج۱ صــ ۱۹۳ باب ما يستحب من تاخير العشاء . ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ صــ ۵۰ باب وقت صلوة العشاء ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صــ ۶۱ باب وقت صلوة العشاء الأخرة . مسند احمد ج۳ صــ ۵ ، ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۱ صــ ۱۷۷ باب استحباب تاخير صلوة العشاء رقم الحديث ۳۴۵.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صــ ۱۱۰ باب مواقيت الصلوة .

{۲۱۰} وَعَنْ عُبَيْدَةَ بنِ جُرَيْجٍ اَنَّه قَالَ لِاَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَا إِفرَاطُ صَلَاةِ العِشَاء قَالَ طُلُوعُ الفَجرِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح قَالَ النَّيمَوِي دَلَّ الحَدِيثَانِ عَلَى اَنَّ وَقتَ العِشَاء يَبقَى بَعدَ مُضِيِّ نِصفِ اللَّيلِ اِلَى طُلُوعِ الفَجرِ وَلَا يخرُجُ بِخُرُوجِه فَبِالجَمعِ بَينَ الاَحَادِيثِ كُلِّهَا يَثبُتُ اَنَّ وَقتَ العِشَاءِ مِن حِينِ دُخُولِه اِلَى نِصفِ اللَّيلِ اَفضَلُ وَبَعضُه اَولَى مِن بَعضٍ وَاَمَّا بَعدَ نِصفِ اللَّيلِ فَلَا يخلُو مِنَ الكَرَاهَة[1]

**ترجمه** : د حضرت عبيده بن جريج نه روايت دې ده حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې د ماسختن په مانخه کې څه نقصان او کوتاهي ده هغه ووېل سحر راختل . د دې حديث روايت طحاوي رَحِمَهُ اللهُ کړې او اسناد يې صحيح دې. نيموي رَحِمَهُ اللهُ وېلي دي چې دا دواړه حديثونه په دې خبره باندې دلالت کوي چې د ماسختن وخت د نصف الليل د تيريدو نه روسته تر سحره پورې باقي دې او د نصف الليل په تيريدو او وتلو سره د ماسختن وخت نه تيريږي او نه وځي. په ټولو احاديثو کې پدې شان سره جمع او تطبيق کيږي چې د ماسختن د وخت د داخليدو نه روسته تر نيمې شپې پورې افضل دې او په دې کې هم بعض حصه د بعض حصې نه اولی او بهتره ده. خو ولې د نيمې شپې نه روسته د کراهت نه خالي نه دې.

## دماسخوتن اولنی او آخرنی وخت

دماسخوتن ابتداء بالاتفاق دغروب شفق نه کيږي او په انتهاء کې يې اختلاف دې .(۱) دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دماسخوتن وخت انتهاء نصف الليل يعني نيمه شپه ده .(۲) دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او داحمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد دصبح صادق تر طلوع پورې دماسخوتن وخت دې.

**دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دليل:** دعبدالله بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث باب المواقيت: " ووقت العشاء الى نصف الليل الاوسط".

**دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او داحمد رَحِمَهُ اللهُ دليل:**

دحنفيه ومن معهم دليل کې هيڅ يو حديث نشي وړاندې کيدلې ،ددې پر ځاى داحنافو قول په دې مسئله کې مجموعه رواياتو باندې مبني دي ، ځکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه ثلث ليل او دنصف ليل نه پس هم مونځ لوستل ثابت دي ، چنانچې :

۱... دعائشې رضي الله عنها په حديث کې دي : " (اعتم النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذات ليلة حتى ذهب عامة الليل وحتى نام اهل المسجد ثم خرج فصلى) يعنې معنى دا چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام توره تياره کړې

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۱۰ باب مواقيت الصلوة .

ره پوره شپه تر دي چې د شپې عام وخت تېر شوي وه او تر دي چې خلق په مسجد کې اوده شوه وو بيا نبي عَلَيْهِ السَّلَام راووته نو مونځ يې وکړه او وي فرمايل چې بې شکه همدغه د دي مونځ وخت دي که چرته مې په امت باندي د تکليف احساس نه کولي.

۲... د باب د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث چې خپلو عاملانو ته يې دا وليکل " وصلّ العشاء أي الليل شئت " حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د سنت مستمره تر لاندي په دې پوهيدلو چې پوره شپه د ماسخوتن وخت دې.

۳... په باب کې مذکوره قول دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: " طلوع الفجر " يعنې د ماسخوتن اخرينې وخت طلوع فجر دې. اوس احنافو په ټولو احاديثو کې د تطبيق کولو نه وروسته دا رائې اختيار کړه چې تر ثلث ليل پورې د ماسخوتن وخت مستحب دې، تر نيمې شپې پورې وخت د جواز دې او د دېنه پس تر د طلوع صبح صادق پورې مکروه تنزيهي وخت دې.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّغْلِيسِ

## باب دي په هغه احاديثو کې چې په تياره کې د مونځ کولو په باره کې راغلي دي:

{۲۱۱} عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كُنَّ نِسَاءُ الْمُؤْمِنَاتِ يَشْهَدْنَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةَ الْفَجْرِ مُتَلَفِّعَاتٍ بِمُرُوطِهِنَّ ثُمَّ يَنْقَلِبْنَ إِلَى بُيُوتِهِنَّ حِينَ يَقْضِينَ الصَّلَاةَ لَايَعْرِفُهُنَّ أَحَدٌ مِنَ الْغَلَسِ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې مؤمني ښځي به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د سحر مانځه ته حاضريدي به داسي حال کې چې په خپلو پړونو او څپتو کې به پټي وې بيا به د مانځه د ادا کولو نه روسته خپلو کورونو ته واپس تلي او چا به د تيري د وجهي نه نه پيژندي. د دي حديث روايت بخاري او مسلم کړي دي.

{۲۱۲} وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الظُّهْرَ بِالْهَاجِرَةِ وَالْعَصْرَ وَالشَّمْسُ حَيَّةٌ وَالْمَغْرِبَ إِذَا وَجَبَتْ وَالْعِشَاءَ إِذَا كَثُرَ النَّاسُ عَجَّلَ وَإِذَا قَلُّوا أَخَّرَ وَالصُّبْحَ بِغَلَسٍ رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه**: حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام د ماسپخين مونځ په اول وخت او د مازيګر مونځ چې نمر به ښه روښانه وُ او د ماښام مونځ کله به چې نمر پريوت او د ماسختن کله به

(۱) بخاري کتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۲ باب وقت الفجر، مسلم کتاب المساجد ج۱ص۲۳۰ باب استحباب التکبير بالصبح ...الخ.
(۲) بخاري کتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۰ باب وقت العشاء اذا اجتمع الناس... مسلم کتاب المساجد ج۱ص۲۳۰ باب استحباب التکبير بالصبح

چې خلک ډيرۇ جلتي به يې کوله او کله به چې خلک لږ ۇ تاخير به يې کاوه او د سحر مونځ به يې په تياره کې کاوه . د دې حديث روايت بخاري او مسلم کړي دي .

{۲۱۳} وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الأَنصارِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ نَزَلَ جِبرِيلُ فَأَخبَرَنِي بِوَقتِ الصَّلَاةِ فَصَلَّيتُ مَعَه ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَه ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَه ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَه ثُمَّ صَلَّيتُ مَعَه يحسِبُ بِأَصَابِعِه خَمسَ صَلَوَاتٍ فَرَأَيتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهرَ حِينَ تَزُولُ الشَّمسُ وَرُبَّمَا أَخَّرَها حِينَ يشتَدُّ الحَرُّ وَرَأَيتُه يصَلِّي العَصرَ وَالشَّمسُ مُرتَفِعَة بيضَاء قَبلَ أَن تَدخُلَها الصُّفرَة فَينصَرِفُ الرَّجُلُ مِنَ الصَّلَاةِ فَيأتِي ذَا الحُلَيفَة قَبلَ غُرُوبِ الشَّمسِ وَيصَلِّي المَغرِبَ حِينَ تَسقُطُ الشَّمسُ وَيصَلِّي العِشَاء حِينَ يسوَدُّ الأُفُقُ وَرُبَّمَا أَخَّرَها حَتَّى يجتَمِعَ النَّاسُ وَصَلَّى الصُّبحَ مَرَّة بِغَلَسٍ ثُمَّ صَلَّى مَرَّة أُخرَى فَأَسفَرَ بِها ثُمَّ كَانَت صَلَاتُه بَعدَ ذٰلِكَ التَّغلِيسَ حَتَّى مَاتَ لَم يعُد إِلى أَن يسفِرَ رواه ابوداود وابن حبان وفي اسناده مقال والزيادة غير محفوظة .[1]

**ترجمه** : د ابي مسعود انصاري رضي الله عنه روايت دې ويلي يې دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائيل يې جبرئيل عليه السلام نازل شو نو زه يې د مانځه په وخت خبر کړم نو ما د ده سره مونځ وکړ بيا مې د ده سره مونځ وکړ بيا مې د ده سره مونځ وکړ بيا مې د ده سره مونځ وکړ بيا مې د ده سره مونځ وکړ په ګوتو سره يې پنځه مونځونه حساب کړل نو ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليد چې کله زوال وشو د ماسپخين مونځ يې وکړ او کله به يې د سختي ګرمۍ په وخت کې دغه مونځ روسته کاوه او ماځغه وليد چې د مازيګر مونځ يې په داسې حال کې وکړ چې نمر اوچت روښانه ؤ مخکې د دينه چې نمر زيړ شي نو يو سړي به د مانځه نه راوګرځيده نو ذوالحليفې ته به د نمر پريوتو نه مخکې لاړ او کله چې نمر پريوت د ماښام مونځ يې وکړ . او د ماسختن مونځ يې وکړ کله چې د اسمان غاړې توري شوې او کله به يې تر هغې پورې مؤخر او روسته کړ چې خلک به راجمع شو او د سحر مونځ يې يو ځلې په تياره کې وکړ او بل ځل يې په اسفار او رڼا کې وکړ بيا د ده مونځ د دې نه روسته په تغليس کې ؤ تر څو چې وفات شو اسفار ته نه دې واپس شوي. روايت يې ابوداؤد او ابن حبان کړي او په اسناد کې يې مقال دي او زياده غير محفوظ دي .

**دسحر مستحب وخت** : بالاتفاق دسحر دجواز وخت دصبح صادق نه واخله تر دطلوع افتاب

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۵۷ باب المواقيت ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۴صـــ ۲۵ رقم الحديث ۱۴۹۲.

پوره وي . البته د فجر د وخت مستحب په باره کې اختلاف دی :
(۱) ائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد په فجر کې تغليس يعنې په تياره کې لوستل افضل دي .
(۲) د امام ابوحنيفه رحمه الله او دده ملګري او دسفيان ثوري رحمه الله په نزد اسفار يعنې په رڼا کې لوستل افضل دي داحنافو نه امام محمد بن حسن رحمه الله فرمايي چې په غلس کې دې شروع کړي او په اسفار کې دې ختم کړي . امام طحاوي رحمه الله همدا قول غوره کړی دی .

**دائمه ثلاثه** رحمهم الله **دليل** : ددې باب درې واړه حديثونه دائمه ثلاثه دليل دی :

۱. حديث د عائشې رضي الله عنها : **ثُمَّ يَنقَلِبنَ اِلٰى بُيُوتِهِن حِينَ يَقضِينَ الصَّلَاةَ لَا يُعرِفُهُنَّ اَحَدٌ مِنَ الغَلَسِ.**

۲... د جابر رضي الله عنه حديث : " والصبح بغلس ".

۳... دابو مسعود رضي الله عنه حديث : " **وَ صَلَّى الصُّبحَ مَرَّةً بِغَلَسٍ ثُمَّ صَلّٰى مَرَّةً اُخرٰى فَاَسفَرَ بِهَا ثُمَّ كَانَت صَلَاتُه بَعدَ ذٰلِكَ التَّغلِيسَ حَتّٰى مَاتَ لَم يَعُد اِلٰى اَن يُسفِرَ** " .

(داحنافو دلائل او دائمه ثلاثه رحمهم الله دلائلو جواب د راروان باب لاندې وګورئ .

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الاَسفَارِ

## باب دی په هغه احاديثو کې چې په رڼا کې د مونځ کولو په باره کې راغلي دي:

**(۲۱۴) عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ مَا رَأَيتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى صَلَاةً لِغَيرِ مِيقَاتِهَا اِلَّا صَلَاتَينِ جَمَعَ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ وَ صَلَّى الفَجرَ قَبلَ مِيقَاتِهَا رواه الشيخان وَلِمُسلِمٍ قَبلَ وَقتِهَا بِغَلَسٍ.**[1]

**ترجمه** : د عبدالله رضي الله عنه نه روايت دی چې ما نبي عليه السلام د دوه ؤ مونځونو نه سوی کله هم بې وخته په مانځه نه دی ليدلی هغه صلی الله عليه وسلم دوه مونځونه مابنام او ماسختن سره جمع کړي او د سحر مونځ يې د وخت نه مخکې کړي . دا حديث شيخينو نقل کړی او د مسلم په روايت کې دا الفاظ دي: د سحر مونځ يې د وخت نه مخکې په تياره کې کړي.

**(۲۱۵) وَ عَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ يَزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ خَرَجتُ مَعَ عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ اِلٰى مَكَّةَ ثُمَّ قَدِمنَا جَمعًا فَصَلَّى الصَّلَاتَينِ كُلَّ صَلَاةٍ وَحدَهَا بِاَذَانٍ وَ اِقَامَةٍ وَالعِشَاءِ بَينَهُمَا ثُمَّ صَلَّى الفَجرَ حِينَ طَلَعَ الفَجرُ وَقَائِلٌ يَقُولُ طَلَعَ الفَجرُ وَ قَائِلٌ لَم يَطلُعِ الفَجرُ ثُمَّ قَالَ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ**

---

(۱) بخاري كتاب الحج صـــ ۲۲۸ باب متى يصلي الفجر بجمع مسلم كتاب الحج ج۱ صـــ ۴۱۷ باب استحباب زيادة التغليس ... الخ .

هاتَيْنِ الصَّلَاتَيْنِ حُوِّلَتَا عَنْ وَقْتِهِمَا فِي هٰذَا الْمَكَانِ الْمَغْرِبُ وَالْعِشَاء فَلَا يَقْدَمُ النَّاسُ جَمْعًا حَتّٰى يُعْتِمُوْا وَ صَلَاةَ الْفَجْرِ هٰذِهِ السَّاعَةَ رواه البخاري و في رواية له فَلَمَّا طَلَعَ الْفَجْرُ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُصَلِّي هٰذِهِ السَّاعَةَ إِلَّا هٰذِهِ الصَّلَاةَ فِي هٰذَا الْمَكَانِ مِنْ هٰذَا الْيَوْمِ قَالَ عَبْدُ اللهِ هُمَا صَلَاتَانِ تُحَوَّلَانِ عَنْ وَقْتِهِمَا صَلَاةُ الْمَغْرِبِ بَعْدَ مَا يَأْتِي النَّاسُ الْمُزْدَلِفَةَ وَالْفَجْرِ حِيْنَ يَبْزُغُ الْفَجْرُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُهُ.[1]

**ترجمه**: عبدالرحمن بن يزيد ويلي دي چې زه د عبدالله رضي الله عنه سره مكې طرف ته ووتم نو بيا مونږ مزدلفي ته لاړو نو دوي دوه مونځونه وكړ هر يو د بيل بيل اذان او اقامت سره او د دواړو مونځونو تر منځ يې د شپې ډوډۍ وخوړه بيا چې كله سبا وخاته د سحر مونځ يې وكړ يو ويونكي به ويل چې سحر ختلي او بل ويرنكي به وويل چې سحر نه دي ختلي بيا يې وويل چې نبي عليه السلام فرمائلي چې دغه دوه مونځونه د خپل وخت نه اړولي شوي دي په دي ځاي كې مابنام او ماسختن نو مزدلفي ته تر هغه پوري خلک نه راځي څو پوري چې تياره شوي نه وي او د سحر مونځ يې په دغه وخت كې وكړ د دي حديث روايت بخاري كړي دي . او د بخاري په يو روايت كې دي : نو كله چې سبا وخوت ابن عمر رضي الله عنه وويل چې نبي عليه السلام په دغه وخت كې هيڅ مونځ نه ؤ كړي مګر دغه مونځ په دغه ځاي كې په دغه ورځ باندي عبدالله بن عمر رضي الله عنه وويل دغه دوه مونځونه د خپل وخت نه اړولي شوي دي مابنام بعد د هغي نه چې خلک مزدلفي ته راشي او سحر چې كله سبا وخيژي حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه وويل چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ما ليدلي چې داسي يې كول.

{۲۱۶} وَ عَنْ رَافِعِ بْنِ خَدِيْجٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَسْفِرُوْا لِصَلَاةِ الْفَجْرِ فَإِنَّ ذٰلِكَ أَعْظَمُ لِلْأَجْرِ أَوْ قَالَ لِأُجُوْرِكُمْ رواه الحميدي و اصحاب السنن واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : حضرت رافع بن خديج رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي : د سحر مونځ په رڼا كې وكړئ بې شكه دا د ثواب د پاره ډير بهتر دي او يا يې داسي فرمائلي دي چې د ستاسو د ثواب د پاره ډير بهتر دي. دا حديث الحميدي او اصحاب السنن روايت كړي دي او اسنادي

---

(۱) بخاري كتاب الحج ج۱ص۲۲۸ باب متى يصلي الفجر بجمع ورواية اخرى بخاري كتاب الحج ج۱ص۲۲۷ باب من اذن واقام لكل واحدة منهما

(۱) مسند حميدي ج۱ص۱۹۹ برقم ۴۰۹ . ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۶۱ باب وقت الصبح ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۴۰ باب ماجاء في الاسفار بالفجر . دارمي كتاب الصلوة ص۱۴۳ باب الاسفار بالفجر . ابن ماجة ابواب مواقيت الصلوة ص۴۹ باب وقت صلوة الفجر . نسائي كتاب المواقيت ج۱ص۹۴ باب الاسفار . نصب الراية ج۱ص۲۳۸.

صحیح دي.

{۲۱۷} وَ عَن مَحمُودِ بنِ لَبِيدٍ عَن رِجَالٍ مِن قَومِه الاَنصَارِ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا اَسفَرتُم بِالفَجرِ فَاِنَّه اَعظَمُ لِلاَجرِ رواه النسائي و قال الحافظ الزيلعي بسند صحيح.[1]

**ترجمه**: د محمود بن لبید نه روایت دي هغه د انصارو د قوم درجالونه روایت کړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي تر څو پورې چې تاسي د سحر مونځ په رڼا کې کوئ نو د دې ثواب د تیارې په نسبت ډیر لوی دی دا حدیث نسائي روایت کړی او حافظ زیلعي رحمه الله ویلي دي چې دا حدیث په صحیح سند سره راغلي دی

{۲۱۸} وَ عَن هُرَيرِ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ رَافِعِ بنِ خَدِيجٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَمِعتُ جَدِّي رَافِعَ بنَ خَدِيجٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يَقُولُ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لِبِلَالٍ نَوِّر بِصَلَاةِ الصُّبحِ حَتّٰى يُبصِرَ القَومُ مَوَاقِعَ نَبلِهِم مِنَ الاِسفَارِ رواه ابن ابي حاتم وابن عدي والطيالسي و اسحاق و ابن ابي شيبة والطبراني و اسناده حسن.[2]

**ترجمه**: هریر بن عبدالرحمن بن رافع بن خدیج رضي الله عنه ویلي دي چې ما د خپل د نیکه رافع بن خدیج رضي الله عنه نه اوریدلي دي چې ویل یې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم بلال رضي الله عنه ته وفرمائل چې د سحر په مانځه کې رڼائي کوه تر دې پورې چې خلک د رڼا په وجه د خپلو غشو د ولیدو ځایونه ووینې. د دې حدیث روایت ابن ابي حاتم، ابن عدي، طیالیسي، اسحاق، ابن ابي شیبة او طبراني کړي دي او اسناد یې حسن دي

{۲۱۹} وَ عَن بَيَانَ قَالَ قُلتُ لِاَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ حَدِّثنِي بِوَقتِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ قَالَ كَانَ يُصَلِّي الظُّهرَ عِندَ دُلُوكِ الشَّمسِ وَ يُصَلِّي العَصرَ بَينَ صَلَاتَيكُمُ الاُولٰى وَ العَصرِ وَ كَانَ يُصَلِّي المَغرِبَ عِندَ غُرُوبِ الشَّمسِ وَ يُصَلِّي العِشَاءَ عِندَ غُرُوبِ الشَّفَقِ وَ يُصَلِّي الغَدَاةَ عِندَ طُلُوعِ الفَجرِ حِينَ يَفتَحُ البَصَرُ كُلُّ مَا بَينَ ذٰلِكَ وَقتٌ اَو قَالَ صَلَاةٌ رواه ابو يعلى و قال الهيثمي اسناده حسن.[3]

---

(۱) نسائي كتاب المواقيت ج۱ صـ ۱۹۴ باب الاسفار

(۲) مسند ابي داؤد طيالسي صـ ۱۲۹ رقم الحديث ۹۶۱، للمعجم الكبير للطبراني صـ ۲۷۸ رقم الحديث ۴۴۱۴ كتاب العلل، احاديث في الصلوة ج۱ صـ ۱۴۳ رقم ۴۰۰.

(۳) مسند ابي يعلى ج ۷ صـ ۷۴ رقم الحديث ۱۲۴۹. (۲۰۰۴) مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۳۰۴ باب بيان الوقت.

**ترجمه** :بیان ویلي دي چې ما حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویل چې ماته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مانخه وخت وښایه حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل د ماسپخین مونځ به یې د نمر د کږېدو په وخت کې کاوه او د مازیګر مونځ به یې ستاسي د اولني مونځ او د مازیګر په منځني وخت کې کاوه او د ماښام مونځ به یې د نمر د پریوتو په وخت کې کاوه او د ماسختن مونځ به یې د شفق د پریوتو او غائبېدو په وخت کې کاوه او د سحر مونځ به یې د سحر په هغه وخت کې کاوه چې سترګې به ښه کلاؤ شوي یعني هر شي به صفا په نظر راته د دي تولووختونو تر منځ د مانخه وخت دي او پاتې فرمانلي دي چې مونځ دي د دي حدیث روایت ابو یعلی کړي دي او هیثمي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې اسناد یې حسن دي

{۲۲۰} وَ عَن جُبَيرِ بنِ نُفَيرٍ قَالَ صَلَّى بِنَا مُعَاوِيَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ الصُّبحَ بِغَلَسٍ فَقَالَ اَبُو الدَّردَاء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَسفِرُوا بِهٰذِهِ الصَّلَاةِ فَإِنَّهُ اَفقَهُ لَكُم اِنَّمَا تُرِيدُونَ اَن تَخلُوا بِحَوَائِجِكُم رواه الطحاوي واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : حضرت جبیر بن نفیر ویلي چې مونږ ته حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په تیاره کې د سحر مونځ وکړو نو ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې دغه مونځ په رڼرا کې کوئ بې شکه دا ستاسي د پاره د ډیر فکر او سوچ خبره ده بې شکه تاسي غواړئ چې خپلو ضروریاتو ته د رفارغ شئ د دي حدیث روایت طحاوي کړي او اسناد یې حسن دي.

{۲۲۱} وَ عَن عَلِيِّ بنِ رَبِيعَة قَالَ سَمِعتُ عَلِياً رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ لِمُؤَذِّنِهِ أَسفِرْ أَسفِرْ رواه عبد الرزاق و ابو بکر بن ابي شيبة والطحاوي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : علي بن ربیعه ویلي دي چې ما د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اوریدلي چې خپل مؤذن ته یې ویل چې د سحر مونځ روښانه که روښانه که. د دي حدیث روایت عبدالرزاق، ابوبکر بن ابي شیبة او طحاوي کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

{۲۲۲} وَ عَن عبدِ الرَّحمٰنِ بن يزِيدَ قَالَ كُنَّا نُصَلِّي مَعَ ابنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَكَانَ يُسفِرُ بِصَلَاةِ الصُّبحِ رواه الطحاوي و عبد الرزاق و ابو بکر بن ابي شيبة و اسناده صحيح.[3]

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۲۶ باب وقت الفجر.

(۲) مصنف عبدالرزاق کتاب الصلوة ج۱صـ ۵۶۹ باب وقت الصبح، مصنف ابن ابي شيبة کتاب الصلوات ج۱صـ ۳۲۱ باب من کان ینورها... الخ. طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۲۳ باب وقت الفجر.

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۲۵ باب وقت الفجر، مصنف عبدالرزاق کتاب الصلوة ج۱صـ ۵۶۸ باب وقت الصبح، مصنف ابن ابي شيبة کتاب الصلوات ج۱صـ ۳۲۱ باب من کان ینورها ویسفر ...الخ.

**ترجمه**: عبدالرحمن بن يزيد ويلي دي چې مونږ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه سره د سحر مونځ کاوه نو هغه د سحر مونځ روښانه کړ د دي حديث روايت عبدالرزاق طحاوي او ابوبکر بن ابي شيبة کړي او اسناد يې صحيح دي

## دامام ابوحنيفه رحمه الله په دلائلو باندې يوه کتنه:

په دې باب کې نهه حديثونه دي کوم چې اسفار بالفجر په مسئله کې دامام ابوحنيفه رحمه الله دليلونه دي، دري اهم دليلونه دادي:

۱... حديث درافع رضي الله عنه مرفوعا: "**اسفروا بالفجر فان ذلک اعظم للاجر اعظم**".

۲... حديث دانس رضي الله عنه مرفوعا: "**ويصلي الغداة عند طلوع الفجر حين يفتح البصر**".

۳... حديث دابن مسعود رضي الله عنه موقوفا او مرفوعا، او حديث دابوبکر رضي الله عنه او دعمر رضي الله عنه او دابوالدرداء رضي الله عنه موقوفا وغير ذلک.

## دائمه ثلاثه رحمهم الله ددلائلو جواب

۱... دعائشي رضي الله عنها دحديث جواب: دحضرت عائشي رضي الله عنها حديث "لايعرفهن أحد" باندې ختم دي او منشا يې داده چې چونکه ښځو به انتهائي پرده کړې شوې وې هغوي به چا نه پيژندلې، نو اوس راوي دا فهم کړي چې دنه پيژندلو وجه په تياره کې مونځ کول وو ځکه يې دغلس اضافه اوکړه ددې دليل دابن ماجه روايت دې کوم کې چې راوي داسي ويلي دي: "**تعني من الغلس**" يعنې دحضرت عائشي رضي الله عنها مراد دتياري دوجې نه دې غرض دا چې دا جمله مدرج من الراوي ده دې سره دصحيح او دصريح احاديثو تقابل او مقابله صحيح نه ده.

کچرته دا هم ثابت کړې شي چې "**من الغلس**" دحضرت عائشي رضي الله عنها خپل قول دې نو بيا ددې غلس نه دهغې مراد پيژندلو ضرورت دې ترڅو چې داحاديثو په مينځ کې او دصحابه کرامو رضي الله عنهم په بيان کې تضاد پاتې نشي، اصل کې په هغه زمانه کې دمسجد نبوي ديوالونه واړه وو، چت يې لاندې وو، او کړکئ هم پکې نه وې، دجومات مخه هم مشرق طرفته نه وه نو داسفار نه پس به هم هلته تياره وه، دکوم دوجې نه به چې ښځې نه پيژندل کيدلې نه دا چې مونځ به په تياره کې لوستلې کيدو.

۲... دجابر رضي الله عنه حديث "**والصبح بغلس**" جواب دادې چې ديو بل صحابي دحضرت ابوبرزه اسلمي رضي الله عنه بيان ددې په خلاف داسفار دې هغه فرمايي " **وکان ينفتل من صلاة الغداة حين**

يعرف الرجل جليسه " دمسجد نبوي ديوالونه واړه وو او چت لاندې وو نو لهذا په دې کې دننه به ديو بل پيژندنه هغه وخت ممکنه وه چې کله به بهر اسفار شوې وو .همدارنګه په باب ماجاء في الاسفار کې دحضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه يان موجود دې چې حضرر صلى الله عليه وسلم بغير دمزدلفي نه په يو ځاي کې هم دفجر مونځ په غلس کې نه دې لوستلې اوس چونکه په فعلي احاديثو کې دصحابه کرامو اختلاف دې نو دقاعدې مطابق قولي احاديثو ته به رجوع کولې شي او په قولي احاديثو کې صراحة په اسفار کې دفجر مونځ لوستلو حکم راغلي دې همدارنګه ابراهيم نخعي رحمه الله فرمايي "ما اجتمع اصحاب محمد صلى الله عليه وسلم على شئ ما اجتمعوا على التنوير" يعني دصحابه کرامو اجماع چې څنګه دفجر په رڼايي باندې شوي ده بل ځاي چرته داسې اتفاق نه دې شوې ددوي دقول مطابق غلس والا حديث به منسوخ ګڼلې شي.همدارنګه حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه، حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه يشان دجليل القدر صحابه کرام رضي الله عنهم اسفار بالفجر کول هم دنسخ کافي دليل دې. (اللباب في الجمع بين السنة والكتاب :۱/۲۰۶)

۲... حديث دابو مسعود رضي الله عنه: " وصلى الصبح مرة بغلس ثم صلى مرة اخرىٰ فأسفر بها ثم كانت صلواته بعد ذلک التغليس حتى مات لم يعد الى ان يسفره" دوه جوابه دي (الف) ددې حديث دوه حصې دي . يوه حصه "سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول :نزل جبرئيل .... الى قوله خمس صلوات " ده کوم چې دجبريل عليه السلام دامامت ذکر دې او دويمه حصه "فرأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم ....الى قوله لم يعد الى أن يسفر " ده کوم کې چې دمونځ دوختونو تفصيلي ذکر دې. امام ابوداود رحمه الله دې حديث لره دنقل کولو نه پس دې لره معلول ګرزولې دی وجه يې داده چې دحديث دسند مدار امام زهري رحمه الله باندې دې زهري رحمه الله شاګردانو کې اسامه بن زيد ليثي نه علاوه معمر رحمه الله . مالک رحمه الله او سفيان بن عيينه رحمه الله وغيره شاګردان د حديث صرف اولنۍ حصه نقل کوي ، په دې شاګردانو کې داوقاتو والا حصه صرف اسامه نقل کړې ده کوم لره چې امام احمد رحمه الله ضعيف ګرزولې ده لهذا په دې حديث کې ذکر داوقاتو والا حصه (بشمول تغليس) سندا ضعيف ده .(ب) ائمه ثلاثه رحمه الله پخپله دحديث په دويمه حصه باندې عمل نه کوي ځکه چې په دې کې په اوړي کې دماسپخين دمونځ په تاخير سره دکولو ذکر دې حالانکه امام شافعي رحمه الله دتعجيل قائله دې او په دې حصه کې په افق باندې دخه تياري راتلو نه پس دماسخوتن مونځ کولو ذکر دې ګويا چې شفق دسرخي نه وړاندې سپين والې دی حال دا چې امام مالک رحمه الله او شافعي رحمه الله دشفق نه سور والې مراد اخلي .

# اَبوَابُ الاَذَانِ

## د اذان بابونه :

**اولنۍ بحث:** د اذان لغوي معنی ده اعلان او خبرداري ورکول دي او شرعا اذان ویلې کیږي په مخصوص وخت کې په مخصوص الفاظو سره خبرداري ورکول اطلاع ورکول.

**دویم بحث:** حضور ﷺ په مکه مکرمه کې داذان او داقامت نه بغیر مونځ به یې ادا کولو تردې پورې چې کله حضور ﷺ مدینې منورې ته هجرت اوفرمایلو نو اولا حضور ﷺ په (۱) هجري کې د مسجد نبوي بنیاد کیخوست ددې نه پس داذان به سلسله کې مشوره اوشوه ، یا دیو قول مطابق په اوله هجري کې او دبل قول مطابق دویمه (۲) هجري کې اذان مشروع شو . (الدرالمنثور ۲/۸۵)

**دریم بحث:** دامام ابوحنیفه رحمه الله ، مالک او شافعي رحمه الله په نزد دپنځه وخته مونځونو او دجمعې مونځ لپاره اذان سنت مؤکده قریب من الوجوب دې او دامام احمد رحمه الله په نزد دښار والا بندې فرض کفایه دې ، اذان ګویا چې فرض عین نه دې لیکن داسلام دشعائرو نه دې لهذا که یو کلي والا ددې په پریخودلو باندې اتفاق وکړي نو امام به دهغوي سره جنګ کوي . (رحمة الامة ص ۲۷)

# بَابُ فِي بَدْءِ الْاَذَانِ

## د اذان د شروع باب :

{۲۲۲} عَن اِبنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ الْمُسلِمُونَ حِينَ قَدِمُوا الْمَدِينَةَ يجتَمِعُونَ فَيَتَحَيَّنُونَ الصَّلَاةَ لَيسَ يُنَادِي لَهَا فَتَكَلَّمُوا يوما فِي ذٰلِكَ فَقَالَ بَعضُهُمُ اتَّخِذُوا نَاقُوسًا مِثْلَ نَاقُوسِ النَّصَارٰى وَ قَالَ بَعضُهم بُوقًا مِثلَ قَرنِ اليهودِ فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَوَ لَا تَبعَثُونَ رَجُلًا يُنَادِي بِالصَّلَاةِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَا بِلَالُ قُم فَنَادِ بِالصَّلَاةِ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه :** حضرت ابن عمر رضي الله عنه ویلي چې مسلمانان چې کله مدینې منورې ته راغلل نو دوي راجمع شو د مانځه د پاره یې وخت مقرراوه د مانځه د پاره هیڅ اواز نه ؤ نو دوي یوه ورځ په دې باره کې مشوره وکړه نو بعضو وویل چې د نصارې ؤ په شان یو ناقوس جوړ کړئ او بعضو وویل چې د

---

[1] بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۸۵ باب بدء الاذان ، مسلم کتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۴ باب بدء الاذان .

يهودو په شان د ښکر شپیلۍ جوړه کړئ نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې او يو کس سړي نه لیږئ چې د مانځه د پاره اواز وکړي نو نبي عليه السلام بلال ته وفرمایل چې بلاله پاڅه او د مانځه د پاره اواز وکړه . د دې حديث روايت شيخينو کړې دی .

{۲۲۴} وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ ذَكَرُوا النَّارَ وَالنَّاقُوسَ فَذَكَرُوا الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى فَأُمِرَ بِلَالٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنْ يَشْفَعَ الْأَذَانَ وَأَنْ يُوتِرَ الْإِقَامَةَ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې د صحابه کرامو په مشوره کې داور او د ناقوس د يادولو سره د يهودو او د نصاري ؤ ذکر وشو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وفرمائل چې اذان دوه دوه ځله وکړه او اقامت يو يو وکړه . د دې حديث روايت شيخينو کړې دی .

{۲۲۵} وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ زَيْدِ بْنِ عَبْدِ رَبِّهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا أَمَرَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالنَّاقُوسِ يُعْمَلُ لِيُضْرَبَ بِهِ لِلنَّاسِ لِجَمْعِ الصَّلَاةِ طَافَ بِي وَأَنَا نَائِمٌ رَجُلٌ يَحْمِلُ نَاقُوسًا فِي يَدِهِ فَقُلْتُ لَهُ يَا عَبْدَ اللهِ أَتَبِيعُ النَّاقُوسَ فَقَالَ وَمَا تَصْنَعُ بِهِ فَقُلْتُ نَدْعُوا بِهِ إِلَى الصَّلَاةِ قَالَ أَفَلَا أَدُلُّكَ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ ذٰلِكَ فَقُلْتُ لَهُ بَلَى قَالَ تَقُولُ اللهُ أَكْبَرُ اللهُ أَكْبَرُ فَذَكَرَ الْأَذَانَ وَالْإِقَامَةَ قَالَ فَلَمَّا أَصْبَحْتُ أَتَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرْتُهُ بِمَا رَأَيْتُ فَقَالَ إِنَّهَا لَرُؤْيَا حَقٌّ إِنْ شَاءَ اللهُ فَقُمْ مَعَ بِلَالٍ فَجَعَلْتُ أُلْقِيهِ عَلَيْهِ وَيُؤَذِّنُ بِهِ قَالَ فَسَمِعَ ذٰلِكَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ فِي بَيْتِهِ فَخَرَجَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ يَقُولُ وَالَّذِي بَعَثَكَ بِالْحَقِّ يَا رَسُولَ اللهِ لَقَدْ رَأَيْتُ مِثْلَ مَا أُرِيَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلِلّٰهِ الْحَمْدُ رواه ابو داود واحمد واسناده حسن .(۲)

**ترجمه** : او عبد الله بن زيد بن عبد ربه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي کله چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ناقوس د جوړولو حکم وکړ چې مانځه ته د خلکو د راجمع کولو د پاره وغږول شي ماته يو سړي راغي او څه اوده وم د هغه سره ناقوس په لاس کې ؤ ما هغه ته وويل چې اې د الله بنده دا ناقوس ته خرڅوي نو هغه وويل ته پرې څه کوې نو ما ورته وويل چې مونږ پرې مانځه ته خلک رابلو هغه وويل ايا د دې نه بل ښه شي تاته نه ښـئم نو ما هغه ته وويل چې ولې نه راته وښايه عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې نو

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱صـــ ۸۵ باب بدء الاذان ، مسلم کتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۶۴ باب بدء الاذان.
(۲) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـــ ۷۱ باب کیف الاذان ، مسند احمد ج۴ صـــ ۴۳.

هغه وويل چې ته داسې وايه الله اکبرالله اکبر نو هغه پوره د اذان او د پوره اقامت دواړو ذکر وکړو الله تعالى د هر څه نه ډير لوي دي الله د هر څه نه ډير لوي دي . نو عبد الله رضي الله عنه وويل کله چې صبا شو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلم نو چې څه مې ليدلي ؤ رسول الله صلى الله عليه وسلم مې په هغې خبر کړو . نو رسول صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې بې شکه خامخا دا حق خوب نه دي که دالله تعالى اراده وي نو پاڅه د بلال سره ودريږه نو ما به دغه کلمات بلال رضي الله عنه ته ښودل او هغه به اذان کاوه حضرت عبد الله بن زيد رضي الله عنه ويلي دي حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه چې دا اذان واوريده خو ونې هغه په خپل کور کې ؤ نو هغه راووته په داسې حال کې چې څادر يې څان پسې راښکوده ويل يې خدا دي په هغه ذات قسم وي چې ته يې په حقه راليږلي يې اي دالله رسوله بې شکه ماهم د شپې داسې خوب ليدلي دي لکه څنګه اوس يې ګورم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې هر يو صفت الله لره دي . د دي حديث روايت ابوداؤد او احمد کړي دي او اسناد يې حسن دي .

**دکلماتو تحقيق** :ناقوس : دايو خاص قسم لرګي دي يو وړوکي وي اويو غټ ، غټ ته ناقوس او وړوکي ته ويل ويلي کيږي ، يو په بل باندې وهلو نه يو آواز پيدا کيږي .

بوق: دښکر په شان يو شئ وي دکوم په ذريعې سره چې آواز اوچتيږي حضرت شيخ الحديث رحمه الله فرمايي : ديهوديانو په باجو کې يوه باجه ده دهغې صورت داسې وي لکه څنګه چې سندرې ويونکي په ودونو کې يوه اوګده باجه استعمالوي کوم ته چې "نرسنګها" ويلي کيږي .

**د اذان واقعه او قصه** :کله چې مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم جوړ شو نو مانځه ته د خلکو د رابللو فکر پيدا شونو په ابتداء کې به دمونځ لپاره يو وخت مقرر کيدو په هغې باندې به خلک دخپل اندازې سره جمع کيدل بيا چې مسلمانان زيات شونو حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د صحابه کرامو سره مشوره وکړه په دي باره کې بعضو وويل چې د نصارې ؤ د ناقوس په شان ناقوس جوړ کړئ او ناقوس نرې اوږد لرګې ته ويلي شي کوم چې په وړوکي لرګي سره غږيږي او اواز کوي او دي ته ويل ويلي شي او بعضو دا تجويز وړاندې کړ چې د مجوسيانو په شان اور بلول پکار دي چې خلک اور ووينې نو راځي به او بعضو د يهودو په شان د بوق او قرن يعنې د ښکر مشوره ورکړه چې هغې ته په اصطلاح تورم ويلي شي . مګر په دي يو باندې هم اتفاق رانغې ولي که چرته په يو د دغه شيانو کې مختار شوي وي نو د غير مسلمو طائفو سره مشابهت راته نو د دي وجهې نه دا ټول پريخودل شو لکه چې د دي باب د دويم روايت ( فذکروا اليهود والنصارىٰ ) د الفاظو همدغه معنى ده نو حضرت عمر رضي الله عنه وويل ( اولا تبعثون رجلاً ينادي بالصلوٰة ) .د حضرت عمر رضي الله عنه دغه

تجويز په وجه نبي كريم ﷺ حضرت بلال رضي الله عنه مقرر كړو چې هغه په ګوڅو كې وګرځي او د **الصلوٰة جامعة** اعلان وكړي، چې د دي باب د اول روايت **فنادى بالصلوٰة** نه همدغه مراد دي. لكه چې د حضرت نافع بن جبير يو روايت هم دا خبره ثابته كړي ده. چې په هغې كې دغه الفاظو روايت شوي **فصيح باصحابه الصلوٰة جامعة** (۱)

په دي دوران كې حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه خوب وليد په دي خوب كې ورته يو سړي راغي چې په حقيقت كې ملائكه او فرشته وه د هغي سره ناقوس ؤ عبدالله بن زيد رضي الله عنه ورته وويل چې دا ماته راكړه مونږ په دي باندي مانځه ته خلك راجمع كوؤ هغه ورته بيا د اذان طريقه اود اذان كلمات وښودل چې د هغي تفصيل د باب په اخري روايت كې راغلي دي هغه ابوداؤد په كتاب الصلوٰة ج۱ص ۹۱ په باب كيف الاذان كې نقل كړي دي. دغسي خوب حضرت عمر رضي الله عنه هم ليدلي ؤ او د رسول كريم صلى الله عليه وسلم په حضور كې حاضر شو او وي ويل: (**والذي بعثك بالحق يارسول الله لقد رأيت مثل ما اري فقال رسول الله ﷺ فلله الحمد.**

**د يو اعتراض جواب**: **فلما سمع ذلك عمر بن الخطاب**. دحضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه كلماتو او الفاظو نه معلوميږي چې حضرت عمر رضي الله عنه ته د اذان د الفاظو د جواز او مشروعيت علم او پته هغه وخت ولګيده چې كله حضرت بلال رضي الله عنه اذان وكړ ليكن د بعضو نورو روايتونو نه معلوميږي چې كله عبدالله بن زيد رضي الله عنه خوب ليدلي ؤ حضرت عمر رضي الله عنه له ته موجود ؤ (۲) بلكه د ابوداؤد په يو بل روايت كې دغه الفاظو منقول دي چې: **قال وكان عمر بن الخطاب رضي الله عنه قد راه قبل ذلك فكتمه عشرين يومًا قال ثم اخبر النبي ﷺ فقال ما منعك ان تخبرني فقال سبقني عبدالله بن زيد فاستحييت** .(۳)

او د دغي روايتونو اختلاف د وجهي نه په ښكاره شكل كې يو قسم تعارض پيدا كيږي د دي تعارض د لريكولو د پاره د حديث شارحينو ويلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه دا خوب د حضرت

---

(۱) درس ترمذي ج۱ص ۴۵۰-۴۵۱ فتح الباري ج۲ ص ۲.
(۲) ابوداؤد ج۱ص ۷۴.
(۳) ابوداؤد ج۱ص ۷۱.

عبدالله بن زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ خوب نه شل ورځې مخکې لیدلې ؤ خو ولي د ده ن. هیر شوي ؤ خو کله چې عبدالله بن زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ خوب واوروه نو حضرت عمر رَضِیَ اللهُ عَنْهُ ته رایاد شو لیکن د حیا د وجهې نه چپ شو ځکه چې عبدالله بن زید رَضِیَ اللهُ عَنْهُ مخکې شوي ؤ او د متقدم د پاره د فضیلت حق ثابت دي او کیدي شي چې حضرت عمر کورته تلې ؤ د دي نه وروسته چې کله حضرت بلال رَضِیَ اللهُ عَنْهُ اذان رکړ په دي وخت کې د نبي عَلَیْهِ السَّلَام په حضور کې حاضر شو او دا عرض یې وکړ ( والذي بعثک بالحق الخ ) اي د الله تعالی پیغمبره ځما دي په هغه ذات قسم وي چې ته یې په حقه سره رالیږلي یې بې شکه ما هم د غسې خوب لیدلي دي لکه څنګه چې اوس یې کورم. بعض حضراتو ویلي دي چې د اذان خوب حضرت ابوبکر الصدیق رَضِیَ اللهُ عَنْهُم لیدلي ؤ او امام غزالي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې لسو صحابو کرامو ته په خوب کې د اذان د کلماتو تعلیم ورکړي شوي ؤ.[1]

## له ټولو نه اول د اذان کولو سعادت:

د مشروعیت اذان تاج که د عبدالله بن زید رَحِمَهُ اللهُ په سر باندې دې نو له ټولو نه مخکې د اذان ورکولو سعادت د حضرت بلال رَضِیَ اللهُ عَنْهُ په حصه کې راغلې دی ځکه چې د دې نه وراندې په مکه مکرمه کې د اسلام راوړلو په سزا کې په ګرمه شګه باندې د دبرې او د کانړو لاندې کیدو سره سره د "أحد أحد" آواز اوچت کړې دې. (الدر المنضود او نور ملخصا)

# بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّرْجِيعِ:

## باب دي په هغه احادیثو کې چې د ترجیح په باره کې راغلي دي:

{۲۲۶} عَنْ اَبِي مَحْذُورَةَ رَضِیَ اللهُ عَنْهُ قَالَ عَلَّمَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الاَذَانَ فَقَالَ اَللهُ اَكْبَرُ اَللهُ اَكْبَرُ اَللهُ اَكْبَرُ اَللهُ اَكْبَرُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللهِ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللهِ ثُمَّ يَعُودُ فَيَقُولُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَشْهَدُ اَنْ لَّا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللهِ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَّسُولُ اللهِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ اَللهُ اَكْبَرُ اَللهُ اَكْبَرُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ رواه النسائي و ابوداود و ابن ماجه و اسناده صحيح و اخرجه

---

(۱) درس ترمذي ج ۱ ص ۴۵۲ـ۴۵۳.

**مسلم بتثلية التكبير .**(۱)

**ترجمه** : حضرت ابي محذوره رضي الله عنه ويلي دي چې ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم اذان ښودلي دي
نو فرمائل يې الله اكبرالله اكبر ،الله د ټولونه لوي دي الله د ټولونه لوي دي .الله اكبرالله اكبر ،
الله د ټولونه لوي دي الله د ټولونه لوي دي . اشهد ان لا اله الاالله . زه ګواهي ورکوم چې د الله نه په
غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته . اشهد ان لا اله الاالله . زه ګواهي ورکوم چې د الله نه په
غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته . اشهدان محمد الرسول الله . زه ګواه ورکوم چې بې شکه
محمد صلى الله عليه وسلم د الله تعالى رسول دي .اشهدان محمد الرسول الله زه ګواهي ورکوم چې بې شکه
محمد صلى الله عليه وسلم د الله رسول دي.بيا مؤذن راوګرځيده نو وې ويل : اشهد ان لا اله الاالله . زه
ګواهي ورکوم چې د الله نه په غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته .اشهد ان لا اله الاالله . زه
ګواهي ورکوم چې د الله نه په غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته .اشهدان محمد الرسول الله .
زه ګواه ورکوم چې بې شکه محمد د الله رسول دي .اشهدان محمد الرسول الله . زه ګواه ورکوم چې
بې شکه محمد – د الله تعالى رسول دي . حي على الصلوة : راځئ مانځه ته . حي على الصلوة : راځئ
مانځه ته . حي على الفلاح ، راځئ کاميابۍ ته ، حي على الفلاح ، راځئ کاميابۍ ته ،الله اكبرالله
اكبر ،الله تعالى د ټولونه لوي دي الله د ټولونه لوي دي .لا اله الاالله : د الله تعالى نه په غير بل
هيڅوک د عبادت مستحق نشته. دا حديث ابوداؤد، نسائي او ابن ماجه نقل کړي دي او اسناد يې
صحيح دي . او دا حديث مسلم هم خارج کړي دي د تکبير په دوه ځله ويلو سره .

**{۲۲۷} وَعَنه اَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم عَلَّمَه الاَذَانَ تِسعَ عَشرَةَ كَلِمَةً وَالاِقَامَةَ سَبعَ عَشرَةَ كَلِمَةً رواه الترمذي وآخرون واسناده صحيح .**(۲)

**ترجمه** : او د حضرت ابي محذوره رضي الله عنه روايت دي چې ده ته نبي عليه السلام د اذان نولس (۱۹)

---

(۱) نسائي كتاب الاذان ج۱ صـــ ۱۰۳ باب كيف الاذان ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۷۳ باب كيف الاذان ، ابن ماجه كتاب الصلوة صـــ ۵۲ باب الترجيع الاذان ، مسلم كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۶۴ باب الامر بشفع الاذان .

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـــ ۴۸ باب ماجاء في الترجيع في الاذان ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۷۳ باب كيف الاذان.

کلمي او د اقامت اولس (۱۷) کلمي ورزده کړي دي . د دي حديث روايت ترمذي او آخرونو کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

**دکلماتو تشريح**: "الترجيع" اول دوه پيرې شهادتين لره په ټيټ اواز سره ويل بيا دوه ځل په زوره ويل . "التربيع" الله اكبر لره داذان په شروع کې څلور پيره ويل .

**مسئلة الباب** : په راروان باب کي به راشي.

## بَابُ مَا جَاءَ فِي عَدَمِ التَّرجِيعِ

### باب دې په بيان د هغه حديثونو کې چې د ترجيع د نه کولو په حقله راغلي دي :

{۲۲۸} عَن عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ المُؤَذِّنُ اَللهُ اكبر الله اكبر فَقَالَ أَحَدُكُم الله اكبر الله اكبر ثم قال اشهد ان لااله الا الله قال اشهد ان لااله الا الله ثم قال اشهد ان محمدا رسول الله قال اشهد ان محمدا رسول الله ثم قال حي على الصلاة قال لا حول ولا قوة الا بالله ثم قال حي على الفلاح قال لا حول ولا قوة الا بالله ثم قال الله اكبر الله اكبر قال الله اكبر الله اكبر ثم قال لا اله الا الله قال لا اله الا الله مِن قَلبِهِ دَخَلَ الجَنَّةَ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي کله چې مؤذن ووايي الله اكبرالله اكبر نو يو کس ستاسي دي ووايي الله اكبرالله اكبر بيا مؤذن ووايي اشهد ان لا اله الاالله يو کس ستاسي دي ووايي اشهد ان لا اله الاالله . بيا مؤذن ووايي اشهد ان محمداً رسول الله يو کس ستاسي دي ووايي اشهد ان محمداً رسول الله بيا مؤذن ووايي حي على الصلوة يو کس ستاسي دي ووايي لا حول ولا قوة الا بالله بيا مؤذن ووايي حي على الفلاح يو کس ستاسي دي ووايي لا حول ولا قوة الا بالله بيا مؤذن ووايي الله اكبرالله اكبر يو کس ستاسي دي ووايي الله اكبرالله اكبر بيا مؤذن ووايي لا اله الاالله يو کس ستاسي دي ووايي لا اله الاالله داخل به شي جنت ته . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

---

(۱) مسلم ، كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۷ باب استحباب القول مثل قول المؤذن ...الخ .

{۲۲۹} وَ عَن عَبدِ الله بنِ زَيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَد هَمَّ بِالبُوقِ وَ اَمَرَ بِالنَّاقُوسِ فَنُحِتَ فَأُرِيَ عَبدُ الله بنُ زَيدٍ فِي المَنَامِ قَالَ رَأَيتُ رَجُلًا عَلَيه ثَوبَانِ اَخضَرَانِ يحمِلُ نَاقُوسًا فَقُلتُ لَه يا عَبدَ الله تَبِيعُ النَّاقُوسَ قَالَ وَمَا تَصنَعُ بِه قُلتُ اُنَادِي بِه اِلَى الصَّلَاة قَالَ اَفَلَا اَدُلُّكَ عَلى خَيرٍ مِن ذٰلِكَ قُلتُ وَمَا هوَ قَالَ تَقُولُ الله اكبر الله اكبر الله اكبر الله اكبر اشهد ان لااله الا الله اشهد ان لااله الا الله اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله حي على الصلاة حي على الصلاة حي على الفلاح حي على الفلاح الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله قَالَ فَخَرَجَ عَبدُ الله بنُ زَيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ حتّٰى اَتٰى رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَاَخبَرَه بِمَا رَأٰى قَالَ يارَسُولَ الله رَأَيتُ رَجُلاً عَلَيه ثَوبَانِ اَخضَرَانِ يحمِلُ نَاقُوسًا فَقَصَّ عَلَيه الخَبَرَ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِنَّ صَاحِبَكُم قَد رَاٰى رُؤيَا فَاخرُج مَعَ بِلَالٍ اِلَى المَسجِدِ فَاَلقِهَا عَلَيه وَليُنَادِ بِلَالٌ فَاِنَّه اَندٰى صَوتًا مِنكَ قَالَ فَخَرَجتُ مَعَ بِلَالٍ اِلَى المَسجِدِ فَجَعَلتُ اُلقِيهَا عَلَيه وَهوَ يُنَادِي بِهَا قَالَ فَسَمِعَ عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ بِالصَّوتِ فَخَرَجَ فَقَالَ يا رَسُولَ الله لَقَد رَأَيتُ مِثلَ الَّذِي رَاٰى رواه ابن ماجه و ابوداود و احمد و صححه الترمذي وابن خزيمة والبخاري فيما حكاه عنه الترمذي في العلل.[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه وېلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بوق (ښكر) اراده فرمائلې وه او د ناقوس د جوړولو حكم يې وركړې ؤ نو هغه يې جوړ كړ نو عبدالله بن زيد رضي الله عنه په خوب كې وښودل شو عبدالله بن زيد رضي الله عنه وېل چې يو سړي مې وليد چې دوه شنې څادرې يې اغوستې وې ناقوس ورسره ؤ ما ورته ووېل اې دالله بنده ناقوس خرڅې هغه ووېل او په ناقوس څه كوې ما ورته ووېل په دې سره زه مانځه ته اواز كوم هغه سړي ووېل زه تاته د دې نه بهتر شې ونه ښائم ما ووېل هغه څه شې دې هغه ووېل ته دا اووايه: الله اكبرالله اكبرالله اكبرالله اكبر اشهد ان لااله الاالله اشهد ان لا اله الاالله اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله حي على

(۱) ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ص ۵۱ باب بدء الاذان ، ابوداود كتاب الصلوة ج۱ص ۷۱ باب كيف الاذان ، مسند احمد ج۴ ص ۴۳، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۴۸ باب ماجاء في بدء الاذان ، صحيح ابن خزيمة ، جماع ابواب الاذان ج۱ص ۱۹۱ باب ذكر الخبر المفسر الخ .

الصلوة حي على الصلوة حي على الفلاح حي على الفلاح الله اكبرالله اكبر لا اله الاالله . راوي وايي چې عبدالله بن زيد رضي الله عنه كور ته راوواته تر دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ورغي كوم خوب چې ليدلي ؤ په هغې يې رسول الله صلى الله عليه وسلم خبر كړ عبدالله بن زيد رضي الله عنه وويل اې دالله رسوله ما يو سړي چې دوه شنه څادرونه يې اغوستي ؤ ناقوس ورسره ؤ بيا يې ټوله قصه ورته بيان كړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل بې شكه ستاسي ملګري يو خوب ليدلي دي . ته د بلال سره مسجد ته لاړ شه ته بلال ته دغه كلمې ووايه او بلال دې اواز وكړي بې شكه ستا نه د بلال اواز اوچت دي حضرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه وايي چې زه د بلال رضي الله عنه سره مسجد ته لاړم نو مادغه كلمې بلال رضي الله عنه ته ويلې او هغه اواز كاوه عبدالله بن زيد رضي الله عنه وايي چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه دغه اواز واوريده نو د كوره راووته نو وې ويل اې دالله رسوله بې شكه قسم مې دې په الله وي چې دغسې خوب ما هم ليدلي لكه هغه چې ليدلي دي . د دې حديث روايت ابن ماجه رحمه الله، ابو داؤد رحمه الله او احمد رحمه الله كړي دي او ترمذي ، ابن خزيمه او بخاري صحيح ګڼلي دي په هغې كې چې د ده نه ترمذي په كتاب العلل كې حكايت كړي دي .

## مسئلة الباب: د اذان كلماتو تعداد :

(۱) دامام شافعي رحمه الله په نزد نونس(۱۹) كلمات دي او (۲) دامام مالک رحمه الله په نزد اوولس(۱۷) كلمات دي (۳) دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد پنځلس كلمات دي .

**تفصيل**: (۱) امام شافعي رحمه الله دترجيع مع ترجيع قائله دې .(۲) امام مالک رحمه الله دترجيع بلا ترجيع قائله دې .(۳) امام ابو حنيفه رحمه الله او احمد رحمه الله دتربيع بلا ترجيع قائله دې .

**دامام شافعي رحمه الله دليل**: دتير شوي باب حديثونه دكوم مطابق چې حضور صلى الله عليه وسلم ابومحذوره ته نونس (۱۹) كلمات اوښودل يعني دترجيع مع تربيع، بيا ابو محذوره رضي الله عنه هم دې مطابق اذان وركولو .

**دامام مالک رحمه الله دليل**:

۱... دعدم تربيع دليل حديث دانس رضي الله عنه" أمر بلال أن يشفع الأذان " يعني حضرت بلال رضي الله عنه ته دشفع اذان حكم وكړې شو ، دشفع معنى ده هر يو كلمه دوه دوه پيرې ويل.

۲...دترجيع دثبوت دليل حديث دابو محذوره دې كوم چې پاس تير شو .

**دامام ابو حنيفه رحمه الله او د احمد رحمه الله دلائل**:

۱... عبدالله بن زيد رضي الله عنه كوم حديثونه په دې باب كې اصل الاصول حيثيت لري ، په دې حديثونو

کې اذان تربیع بلا ترجیع وارد دي " ذکر الأذان بتربیع التکبیر بغیر ترجیع "
۲... په اسلام کې اولنۍ مؤذن او امیر المؤمنین د سیدنا حضرت بلال رضي الله عنه په اذان کې پنځلس کلمات وو "کان یثني الأذان".
۳... دحضور اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې څلور مؤذنین وو : (۱) ابومحذوره رضي الله عنه په مکه کې (۲) ابن ام مکتوم رضي الله عنه په مدینه منوره کې .(۳)بلال رضي الله عنه په مدینه منوره کې .(۴) سعد القرظي رضي الله عنه په قباء کې . دحضرت ابومحذوره رضي الله عنه نه علاوه باقي ټولو حضراتو به پنځلس کلمات وئیل.
۴... داذان عام احادیث ۱۵ کلماتو باندې مشتمل دي .

**امام شافعي رحمه الله ته جواب** :۱. دفتح مکې په موقع باندې ابومحذوره رضي الله عنه عمر نه کم وو او ملګرو سره به په کوڅو کې ګرځیدو راګرځیدو نو چې کله به یې دبلال رضي الله عنه اذان واوریدو نو بطور طرز به یې داذان کلمات ځان سره په بنګ بنګ ویل یعنې سم به یې نه ویل ، نو حضور صلی الله علیه وسلم دا ځان ته نیزدې راوغوښت او په سر یې ورله دشفقت لاس راخکود او خپل وړاندې یې پرې داذان کلمات اویل .ابومحذوره رضي الله عنه کلمات اویل لیکن چونکه تردې وخته پورې یې ایمان نه وو راوړې ځکه یې شهادتین په مزه او ټیټ آواز سره اویل ، نو حضور صلی الله علیه وسلم دده په زړه کې ایمان لره دراسخ کولو لپاره شهادتین دوه پیرې اویل ، حاصل دا چې شهادتین دوه پیرې وئیل دتعلیم په غرض سره وو نه مستقل حکم وو .
۲. عین ممکن دي چې ترجیع دمحذوره رضي الله عنه خصوصیت وو ددې دوه وجوهات دي (۱) نورو مؤذنینو ترجیع نه کوله .(۲) دفتح مکې په موقع باندې حضور صلی الله علیه وسلم دده په سر لاس راخکلو او هغه په ټول ژوند کې دسر ویښتان کښې نه کړل په وجې دتبرک نو هغه دده خصوصیت وو .

**امام مالک رحمه الله ته جواب** :۱. حضرت بلال رضي الله عنه، ابن ام مکتوم رضي الله عنه او د سعد قرظي رضي الله عنه اذان چونکه څلور ځله په الله اکبر باندې مشتمل وو ، ځکه د " شفع اذان " معنی دشهادتین شفع به وي .
۲. دشفع نه مراد لغوي معنی "ملا وول" او مطلب دادې چې دوه پیرې الله اکبر لره ملا وول او ویل.
بهرحال دلائل دواړه طرفه قائم دي لهذا دمذکوره طریقو نه دیو چا طریقې ته هم غلط نشي ویلې البته ائمو دنور قرائنو په رڼا کې یو خاص طریقې لره غوره ګرځولې ده .

# بَابُ إِفْرَادِ الإِقَامَةِ

## باب دې په بيان دااقامت داالفاظو په يو ځل ويلو کې

{۲۲۰} عَن اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ أُمِرَ بِلاَلٌ اَن يَشْفَعَ الاَذَانَ وَيُوتِرَ الإِقَامَةَ رواه الجماعة و زاد بعضهم الا الاقامة .[1]

**ترجمه** :حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي چې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته حکم وکړې شو چې اذان دوه دوه ځله او اقامت يو يو ځل وکړه . د دې حديث روايت جمله جماعت کړې دې او ځينو دا الفاظ زيات کړې دي ( الا الاقامة ) يعنې معنی دا چې اقامت به دوه دوه ځله نکوي .

{۲۲۱} وَعَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اِنَّمَا كَانَ الاَذَانُ عَلَى عَهدِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَرَّتَينِ مَرَّتَينِ وَالإِقَامَةَ مَرَّةً مَرَّةً غَيرَ اَنَّه يَقُولُ قَد قَامَتِ الصَّلاَةُ قَد قَامَتِ الصَّلاَةُ رواه احمد ، ابوداود والنسائي و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي په تحقيق خبره همداده چې درسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په مبارکه زمانه کې اذان دوه دوه ځلي او اقامت يو يو ځلي وُ چې د قد قامت الصلوة قد قامت الصلوة د ويلو نه په غير . د دې حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ ، ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ او نسائي رَحِمَهُ اللهُ کړې دې او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۲} وَعَن عَبدِ الله بنِ زَيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ طَافَ بِي وَاَنَا نَائِمٌ فَقَالَ تَقُولُ اَللهُ اَكبَر فَذَكَرَ الاَذَانَ بِتَربِيعِ التَّكبِيرِ بِغَيرِ تَرجِيعٍ وَالإِقَامَةَ فُرَادَى اِلَّا قَد قَامَتِ الصَّلاَةُ اخرجه احمد و ابوداود و اسناده حسن .[3]

**ترجمه** :حضرت عبدالله بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي زه وده وم چې يو سړې ماته راغې نو وې ويل

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۸۵ باب الاذان مثنى مثنى ،مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۶۴ باب الامر ان يشفع الاذان ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ ص۴۸ باب ماجاء في افراد الاقامة ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۵ باب في الاقامة ، نسائي كتاب الاذان ج۱ص۱۰۳ باب تثنية الاذان ، ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ص۵۳ باب افراد الاقامة ، مسند احمد ج۳ ص۱۰۳ .

(۲) مسند احمد ج۲ص۸۵ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۶ باب في الاقامة ، نسائي كتاب الاذان ج۱ص۱۰۳ باب تثنية الاذان .

(۳) مسند احمد ج۴ ص۴۳ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۱ باب كيف الاذان .

چې ته داسې وو ایه الله اکبر نو هغه د اذان ذکر وکړ د ترجیع نه په غیر په څلورو تکبیرونو او اقامت یو یو ځل مگر **قد قامت الصلوة** یو ځل . دا حدیث احمد رحمه الله او ابو داؤد رحمه الله روایت کړي او اسناد یې حسن دي .

**داقامت کلمې** : "الاقامة" دفقهاؤ په اصطلاح کې هغه مخصوصو الفاظو نوم دې کوم چې دحاضرينو لپاره ویلې کیږي .

**مسئلة البابين** : داقامت کلمې څو دي ؟

(۱) دامام شافعي رحمه الله او داحمد رحمه الله په نزد یوولس کلمې دي ، په شروع او په آخر په دواړه ځایو کې الله اکبر صرف دوه ځل ، دغه شان لفظ **"قد قامت الصلاة"** هم دوه ځل او باقي کلمات دې یو ځل ویلې شي . (۲) دامام مالک رحمه الله په نزد لس کلمات دي دده په نزد لفظ **"قد قامت الصلاة"** هم یو ځل ویل پکار دي . (۳) دامام ابو حنیفه رحمه الله په نزد اوولس (۱۷) کلمې دي ، پنځلس کلمې د اذان والا او لفظ **"قد قامت الصلاة"** دوه ځل.

**تفصيل** : (۱) دامام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله دافراد داقامت قائله دي ، بغير د **"قد قامت الصلاة"**.

(۲) امام مالک رحمه الله دټولو کلماتو دافراد ویلو قائله دې .

(۳) امام ابو حنیفه رحمه الله داذان پشان اقامت کې هم دتثنیه ویلو قائله دې .

## دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او داحمد رَحِمَهُ اللهُ دليل :

۱... دانس رضي الله عنه حدیث : " **أمر بلال ان يشفع الاذان ويوتر الاقامة إلا الاقامة**" دشفع اذان مطلب داذان کلمات دوه ، دوه ځل ویل دي ، دإلا الإقامة نه قد قامت الصلاة استثناء او کړې شوه .

۲... حدیث دابن عمر رضي الله عنهما: " **الإقامة مرة مرة غير أنه يقول : قد قامت الصلاة قد قامت الصلاة** " حدیث په دعوی باندې په پوره طریقې سره صادق راځي .

۳... حدیث دعبد الله بن زید رضي الله عنه: " **والإقامة فرادى إلا قد قامت الصلاة**".

**دامام مالک** رحمه الله **دليل** : حدیث دانس رضي الله عنه المذکور ، البته دوي **"إلا الإقامة"** لره مدرج من الراوي گرځوي او ناقابل استدلال یې گڼي. ( دامام ابو حنیفه رحمه الله دلائل او دائمه ثلاثه رحمهم الله د دلائلو جواب دړاروان باب په آخر کې دي ).

# بَابٌ فِي تَثْنِيَةِ الإِقَامَةِ

## باب دي په بيان د اقامت په دوه دوه ځله ويلو کې :

{۲۲۳} عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بنِ اَبِي لَيلَى قَالَ حَدَّثَنَا اَصحَابُ مُحَمَّدٍ ﷺ اِنَّ عَبدَ اللهِ بنَ زَيدٍ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ جَاءَ اِلَى النَّبِي ﷺ فَقَالَ يَارَسُولَ اللهِ رَأَيتُ فِي المَنَامِ كَاَنَّ رَجُلًا قَامَ وَعَلَيهِ بُردَانِ اَخضَرَانِ فَقَامَ عَلَى حَائِطٍ فَاَذَّنَ مَثنٰى مَثنٰى وَاَقَامَ مَثنٰى مَثنٰى رواه ابن ابي شيبة و اسناده صحيح[1]

**ترجمه** : عبدالرحمن بن ابي ليلى ويلي دي چې د محمد ﷺ اصحابو حديث بيان کړي دي چې بې شکه عبدالله بن زيد انصاري رضي الله عنه نبي علیه السلام ته راغي نو ورته وي ويل چې اي د الله تعالى رسوله ما په خوب کې يو سړي وليد ګويا کې چې ولاړ دي او په ده باندي دوه شين څادرونه پراته دي نو په ديوال باندي ودريده نو دوه دوه ځله يې اذان وکړ او دوه دوه ځله يې اقامت وکړو . د دي حديث روايت ابن ابي شيبة کړي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۴} وَعَنه قَالَ اَخبَرَنِي اَصحَابُ مُحَمَّدٍ ﷺ اَنَّ عَبدَ اللهِ بنَ زَيدٍ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ رَأَى فِي المَنَامِ الاَذَانَ فَاَتَى النَّبِي ﷺ فَاَخبَرَه فَقَالَ عَلِّمهُ بِلَالًا فَاَذَّنَ مَثنٰى مَثنٰى وَاَقَامَ مَثنٰى مَثنٰى وَقَعَدَ قَعدَةً رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** :عبدالرحمن بن ابي ليلي ويلي دي مونږ ته د محمد اصحابو رضي الله عنهم بيان کړي چې عبدالله بن زيد انصاري رضي الله عنه په خوب کې د اذان واقعه ليدلي ده نو د نبي علیه السلام حضور ته ورغي هغه ته يې وويل نو نبي علیه السلام ورته وفرمائل چې حضرت بلال رضي الله عنه ته يې وهايه نو حضرت بلال رضي الله عنه اذان مثنى مثنى وکړ او اقامت يې هم دوه دوه ځله وکړو او په دي منځ کې لږ وخت کيناست. دا حديث طحاوي رحمه الله نقل کړي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۵} وَعَن اَبِي العُمَيسِ قَالَ سَمِعتُ عَبدَ اللهِ بنَ مُحَمَّدِ بنِ عَبدِ اللهِ بنِ زَيدِ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ يُحَدِّثُ عَن اَبِيهِ عَن جَدِّه اَنَّه اُرِيَ الاَذَانُ مَثنٰى مَثنٰى وَالاِقَامَةَ مَثنٰى مَثنٰى قَالَ فَاَتَيتُ النَّبِي ﷺ فَاَخبَرتُه فَقَالَ عَلِّمهُنَّ بِلَالًا قَالَ فَتَقَدَّمتُ فَاَمَرَنِي اَن اُقِيمَ رواه البيهقي في الخلافيات

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الاذان والاقامة صـ ۲۰۳ باب ماجاء في الاذان والاقامة كيف هو.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج ۱ صـ ۹۳ باب الاقامة

**و قال الحافظ في الدراية (۱/۱۲۵) اسناده صحيح.** (۱)

**ترجمه** : د ابي عُميش نه روايت دي هغه ويلي دي چې ما د عبدالله بن محمد بن عبدالله بن زيد الانصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوريدلي دي او هغه د خپل پلار نه او نيكه نه روايت كړي چې هغه ته اذان دوه دوه خله ښودل شوي او اقامت ورته دوه دوه خله هغه ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلم نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مې د اذان په واقعه خبر كړ نو وي فرمائل چې د اذان كلمې بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وښايه هغه وويل چې زه مخكې لاړم بيا يې ماته وفرمائل چې اقامت وكړه . دا حديث بيهقي په خلافيات كې راوړي او حافظ په درايه كې ويلي دي چې اسناد يې صحيح دي .

**{۲۲۶} وَ عَنِ الشَّعْبِي عَن عَبدِ الله بنِ زَيدِ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعتُ اَذَانَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ اَذَانُه وَاِقَامَتُه مَثْنٰى مَثْنٰى رواه ابو عوانة في صحيحه وهو مرسل قوي .** (۲)

**ترجمه** : عبدالله بن زيد انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذان او اقامت اوريدلي دي نو اذان او اقامت يې دواړه دوه دوه خله ؤ. د دي حديث روايت ابو عوانه په خپل صحيح كې كړي دي او دا حديث مرسل قوي دي .

**{۲۲۷} وَ عَن اَبِي مَحذُورَةَ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَّمَه الاَذَانَ تِسعَ عَشرَةَ كَلِمَةً وَالاِقَامَةَ سَبعَ عَشَرَةَ كَلِمَةً رواه الترمذي والنسائي والدارمي و اسناده صحيح .** (۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته د اذان نولس كلمې او د اقامت اوولس كلمې ورښودي . د دي حديث روايت ترمذي ، نسائي او دارمي كړي دي او اسناد يې صحيح دي .

**{۲۲۸} وَ عَنه قَالَ عَلَّمَنِي رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلاَذَانَ تِسعَ عَشرَةَ كَلِمَةً وَالاِقَامَةَ سَبعَ عَشرَةَ كَلِمَةً الاَذَانُ الله اكبر الله اكبر فَذَكَرَه بِالتَّرجِيعِ مُفَسَّرًا قَالَ وَالاِقَامَةَ سَبعَ عَشَرَةَ كَلِمَةً الله اكبر الله اكبر الله اكبر الله اكبر اشهد ان لا اله الا الله اشهد ان لا اله الا الله اشهد ان محمدا رسول الله**

---

(۱) الدراية باب الاذان ج۱ صــ ۱۱۵ نقلاً عن البيهقي في الخلافيات .

(۲) المسند الصحيح لابي عوانة كتاب الصلوة ج۱صــ۳۳۱ باب للاذن النبي عَلَيْهِ السَّلَام .

(۳) ترمذي ابواب الصلوة ج۱صــ ۴۸ باب ماجاء في الترجيع في الاذان ، نسائي كتاب الاذان ج۱صــ ۱۰۳ ، دارمي كتاب الصلوة ج۱صــ ۱۴۱ باب الترجيع في الاذان .

اشهد ان محمدا رسول الله حي على الصلاة حي على الصلاة حي على الفلاح حي على الفلاح قد قامت الصلاة قد قامت الصلاة الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله رواه ابن ماجه و ابوداود و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : حضرت ابو محذوره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم ماته د اذان ۱۹ كلمې او د اقامت اولس كلمې ښودلي وې اذان الله اكبر الله اكبر الله اكبر الله اكبر د ترجيع سره يې د اذان مفسر ذكر وكړ ويلي يې دي او د اقامت اولس كلمې دى الله اكبر الله اكبر الله اكبر الله اكبر اشهد ان لا اله الا الله اشهد ان لا اله الا الله اشهد ان محمدا رسول الله اشهد ان محمدا رسول الله حي على الصلوة حي على الصلوة حي على الفلاح حي على الفلاح قد قامت الصلوة قد قامت الصلوة الله اكبر الله اكبر لا اله الا الله . د دي حديث روايت ابن ماجه او ابوداوٗد كړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۹} وَ عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ سَمِعْتُ اَبَا مَحْذُورَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُؤَذِّنُ مَثْنٰى مَثْنٰى وَ يُقِيْمُ مَثْنٰى مَثْنٰى رواه الطحاوي و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : عبدالعزيز بن رُفيع ويلي چې ما د ابي محذوره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوريدلي دي چې دوه دوه ځله يې اذان كاوه او دوه دوه ځله يې اقامت كاوه . دا حديث طحاوي روايت كړي دي او اسناد يې حسن دي .

{۲۳۰} وَ عَنِ الْاَسْوَدِ بْنِ يَزِيْدَ اَنَّ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُثَنِّي الْاَذَانَ وَ يُثَنِّي الْاِقَامَةَ وَ كَانَ يَبْدَأُ بِالتَّكْبِيْرِ وَ يَخْتِمُ بِالتَّكْبِيْرِ رواه عبد الرزاق والطحاوي والدارقطني و اسناده صحيح [3]

**ترجمه** : د اسود بن يزيد نه روايت دي چې حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه دوه ځله اذان او دوه دوه ځله اقامت كاوه او په تكبير به يې شروع كوله او په تكبير به يې ختمولو . د دي حديث عبدالرزاق ، طحاوي او دار قطني روايت كړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(۱) ابن ماجة كتاب الصلوة صـــ ۵۲ باب الترجيع في الاذان ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۷۳ باب كيف الاذان .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۹۵ باب الاقامة كيف هي .

(۳) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۱صـــ ۴۶۲ باب بدء الاذان ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۹۴ باب الاقامة ، دارقطني كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۴۲ باب ذكر الاقامة واختلاف الروايات فيها.

{۲۴۱} وَعَن سُوَيدِ بنِ غَفَلَة قَالَ سَمِعتُ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ يُؤَذِّنُ مَثنٰى وَ يُقِيمُ مَثنٰى رواه الطحاوي و اسناده حسن.[1]

**ترجمه**: سويد بن غفله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي دي چې ما د حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ دوه ځله اذان او دوه ځله اقامت اورېدلي دي. د دې حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد يې حسن دي.

{۲۴۲} وَ عَن عَونِ بنِ أَبِي جُحَيفَة عَن أَبِيه أَنَّ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ يُؤَذِّنُ لِلنَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَثنٰى مَثنٰى وَ يُقِيمُ مَثنٰى مَثنٰى رواه الدارقطني والطبراني وفي اسناده لين.[2]

**ترجمه**: عون بن جحيفه د خپل پلار نه روايت کړي دي چې بې شکه حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنهُ نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته دوه دوه ځله اذان کاوه او دوه دوه ځله به يې اقامت کاوه دا حديث دارقطني او طبراني روايت کړي دي او په اسناد کې يې لين دي

{۲۴۳} وَ عَن يَزِيدِ بنِ أَبِي عُبَيدٍ عَن سَلَمَة بنِ الأَكوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّه كَانَ إِذَا لَم يُدرِكِ الصَّلَاةَ مَعَ القَومِ أَذَّنَ وَ أَقَامَ وَ يُثَنِّي الإِقَامَة رواه الدارقطني واسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: يزيد بن ابي عبيد د حضرت سلمه بن الاکوع نه روايت کړي دي چې بې شکه سلمه بن الاکوع رَضِيَ اللهُ عَنهُ چې کله د قوم سره د جمع مونځ ونه نيوُ نو اذان به يې وکړ او اقامت به يې وکړ او اقامت به يې دوه ځله وايه د دې حديث روايت الدار قطني کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۴۴} وَ عَن إِبرَاهِيمَ قَالَ كَانَ ثَوبَانُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يُؤَذِّنُ مَثنٰى وَ يُقِيمُ مَثنٰى رواه الطحاوي وهو مرسل.[4]

**ترجمه**: ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنهُ به دوه ځله اذان کاوه او دوه ځله به يې اقامت کوه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دي او دا مرسل دي.

{۲۴۵} وَ عَن فِطرِ بنِ خَلِيفَة عَن مُجَاهِدٍ ذُكِرَ لَه الإِقَامَة مَرَّة مَرَّة فَقَالَ هٰذَا شَيءٌ استَخَفَّه الأُمَرَاء

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۹۴ باب الاقامة.

(۲) دارقطني كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۲۴۲ باب ذكر الاقامة ...الخ معجم الكبير للطبراني ج۲۲ ص۔۱۰۱ برقم ۲۴۴، مجمع الزوائد ج۱ص۔ ۳۳۰ باب كيف الاذان وقال رجاله ثقات.

(۳) دارقطني كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۲۴۱ باب ذكر الاقامة ...الخ.

(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۹۵ باب الاقامة.

اَلإِقَامَةَ مَرَّتَيْنِ مَرَّتَيْنِ رواه عبد الرزاق و ابوبكر بن ابي شيبة والطحاوي واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : فطر بن خليفه د مجاهد رحمه الله نه روايت كړي دي چې مجاهد رحمه الله ته د يو يو ځل اقامت ذكر وكړي شو نو مجاهد رحمه الله وويل دا يو داسي شئ دي چې امراؤ هغه اسان كړي دي اقامت دوه دوه ځله دي. د دي حديث روايت عبد الرزاق، ابوبكر ابن ابي شيبه او طحاوي كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## دامام ابو حنيفه رحمه الله د قول دليل:

۱... حديث دابو محذوره رضي الله عنه: په اذان كې ترجيع دهغه خصوصيت وو ليكن داقامت كلمې دهغه نه هم بغير د ترجيع او ولس (۱۷) منقول دي.

۲... دعبد الله بن زيد رضي الله عنه حديث "رأيت في المنام ..... فأذن مثنى مثنى وأقام مثنى مثنى".

۳... دبلال رضي الله عنه حديث: "أذن مثنى مثنى وأقام مثنى مثنى".

## ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب:

۱... دافرادِ اقامت حكم منسوخ شوې وو، ځكه چې حضرت بلال رضي الله عنه حضور صلى الله عليه وسلم دوفات نه پس هم "مثنى مثنى" اقامت ويل.

۲... دانس رضي الله عنه په حديث كې "ايتار اقامت" نه او دابن عمر رضي الله عنه په حديث كې د "الاقامة مرة مرة" نه مراد ايتار الصوت دې يعني دواړه كلمې يو ځاي كول او په يو ساه كې ادا كول او دي لره حدرا ويل په خلاف داذان چې په دې كې ترسيل دې يعني په آرام آرام هر يوه كامه جدا جدا په يو ساه كې ويل.

۳... دعبد الله بن زيد رضي الله عنه اقامت والا احاديثو كې دايتار نه علاوه دتثنيه والا روايات مضبوط دي، دترجيع په وخت دهغې مطابق به عمل كيږي. بهرحال اقامت په دواړو طريقو سره ثابت دي ديو طريقې انكار هم صحيح نه دې. البته ددلائلو او دترجيحاتو په رڼا كې داحنافو مسلک راجح ګرځولې شوې دی.

---

[1] مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۱ص ۴۶۳، باب بدء الاذان، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۹۵ باب بدء الاذان.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ

**باب دې په بيان د هغه روايانو کې چې د الصلوة خير من النوم په باره کې راغلي دي**

{۲۲۶} عَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ فِي آذَانِ الْفَجْرِ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حي على الفلاحِ قَالَ اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ رواه ابن خزيمة والدارقطني والبيهقي و قال اسناده صحيح .[1]

**ترجمه**: حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې د سحر په اذان کې د **حي على الصلوٰة** او **حي على الفلاح** نه روسته د مؤذن د **الصلوة خير من النوم** ويل سنت دي . د دې حديث روايت ابن خزيمه رَحِمَهُ اللهُ دارقطني او بيهقي کړي دی او ويلي يې دي چې اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۷} و عن ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ الاَذَانُ الاَوَّلُ بَعدَ حَيَّ على الصَّلَاةِ حَيَّ عَلَى الْفَلَاحِ الصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ مَرَّتَيْنِ اخرجه السراج والطبراني والبيهقي و قال في التلخيص (۱/۲۰۱) و سنده حسن .[2]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې د اول د سحر د اذان د **حي على الصلوة حي على الفلاح** نه روسته دوه ځله **الصلوة خير من النوم** ؤه

{۲۲۸} و عن عثمانَ بْنِ السَّائِبِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اَخْبَرَنِي اَبِي وَ اُمُّ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ اَبِي مَحْذُورَةَ عَنْ اَبِي محذورة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا خَرَجَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ حُنَيْنٍ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ وَ فِيهِ حَيَّ على الفلاحِ حي على الفلاحِ اَلصَّلَاةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ الصلاة خير من النوم رواه النسائي و ابوداود مختصرا و صححه ابن خزيمة .[3]

**ترجمه** : عثمان بن السائب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې ماته خپل پلار او عبد الملک بن ابي محذوره حديث بيان کړي چې ابومحذوره ويلي دي چې کله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د حنين نه راووانه او د راتلونکي حديث ذکر يې وکړ چې په هغې کې **حي على الفلاح حي على الفلاح الصلوٰة خير من النوم**

---

(۱) صحيح ابن خزيمة ج۱ص۲۰۲ رقم الحديث ۳۸۶ ، دارقطني كتاب الصلوة ج۱ص۲۴۳ باب ذكر الاقامة ...الخ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۱ص۴۲۳ باب التثويب في اذان الصبح .

(۲) سنن الكبرى للبيهقي ج۱ص۴۲۳ باب التثويب في اذان الصبح . تلخيص الحبير ج۱ص۲۰۱ نقلاً عن الطبراني والسراج والبيهقي

(۳) نسائي كتاب الصلوة ج۱ص۱۰۳ باب الاذان في السفر . ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۲ باب كيف الاذان . صحيح ابن خزيمة ج۱ص۲۰۱ باب التثويب في اذان الصبح .

الصلوٰة خیر من النوم ۆ د دي حدیث روایت نسائي او ابوداؤد مختصر بیان کړي دي او ابن خزیمه صحیح ګڼلي دي

**مسئلة الباب** : د سحر په اذان کښې "حي علی الفلاح" نه پس دوه ځله "الصلاة خير من النوم" ویل بالاتفاق مستحب دي.

# بَابٌ فِي تَحْوِيلِ الْوَجْهِ يَمِينًا وَشِمَالًا

## باب دي د مخ په ګرځولو کښې ښي طرف ته او چپ طرف ته:

{۲۴۹} عَنْ اَبِي جُحَيفَةَ اَنَّه رَاَى بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُؤَذِّنُ فَجَعَلْتُ اَتَتَبَّعُ فَاهُ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا بِالْاَذَانِ اخرجه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د ابي جحیفه نه روایت دي چې هغه حضرت بلال رضي الله عنه لیدلي دي چې اذان یې کاوه نو ما په اذان کښې د هغه د خولې په طرف کتل دي طرف ته او هغې طرفته یعنې ښي طرفته او چپ طرفته.

{۲۵۰} و عنه قَالَ رَأَيْتُ بِلَالًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خَرَجَ إِلَى الْاَبْطَحِ فَاَذَّنَ فَلَمَّا بَلَغَ حَيَّ عَلَى الصَّلَاةِ حي على الفلاح لَوَّى عُنُقَه يَمِينًا وَ شِمَالًا وَلَمْ يَسْتَدِرْ رواه ابو داود واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : جحیفه ویلي دي چې ما حضرت بلال رضي الله عنه لیدلي دي چې حضرت بلال رضي الله عنه ابطح نومي مقام ته راووته نو اذان یې وکړ نو کله چې حي على الصلوٰة حي على الفلاح ته ورسیده نو خپل څټ یې ښي طرف او چپ طرف ته واړاوه او په خپله نه دي اوختي راواوختي. د دي حدیث روایت ابوداؤد کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

{۲۵۱} وَ عَنه قَالَ رَأَيْتُ بِلَالًا يُؤَذِّنُ وَ يَدُورُ وَ يَتَتَبَّعُ فَاهُ هٰهُنَا وَ هٰهُنَا وَ اِصْبَعَاهُ فِي اُذُنَيْهِ رواه الترمذي و احمد و ابو عوانة و قال الترمذي حديث حسن صحيح.[3]

**ترجمه** : ابو جحیفه ویلي دي چې ما حضرت بلال رضي الله عنه لیدلي دي چې اذان یې کاوه او په خپله

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۸۸ باب هل يتبع المؤذن فاه ...الخ ، مسلم کتاب الصلوٰة ج۱ص ۱۹۶ باب سترة المصلي ...الخ.
(۲) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱ص ۷۷ باب المؤذن يستدير في اذانه.
(۳) ترمذي ابواب الصلوٰة ج۱ص ۲۹ باب ماجاء في ادخال الاصبع الاذن عند الاذان ، مسند احمد ج۴ ص ۳۰۸ ، ابوعوانة کتاب الصلوٰة ج۱ص ۳۲۹ باب بيان اذان بلال والصفة.

کرځیده او دي خوا او اخوايي خوله کرځوله او د دوه ؤ گوتو سرونه يې په دواړو غوږونو کې ايښي ؤ . د دي حديث روايت ترمذي ، احمد او ابوعوانه کړي او ترمذي ويلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي .

**مسئلة الباب** : په اذان کې " حي على الصلاة " باندې ښي طرف ته او په " حي على الفلاح " باندې کس طرف ته مخ اړول سنت دي .

## ددوو حديثونو په مينځ کې دفع دتعارض

استداره په مؤذن خانه کې آواز لره لري لري پورې درسولو په غرض سره ښي او کس طرفته دتلو راتلو او په کړکيو کې سر بهر ته وتلو ته ويلې کيږي .

دحضرت ابو جحيفه رضي الله عنه حديث نمبر ۲۵۰ کې "ولم يستدر" په ويلو سره داستداره نفي کړې شوې ده . او هم دده نه په بل حديث کې " ويدور" ويل داستداره اثبات کړې شوې دی . دتطبيق دوه صورتونه دي :۱.داثبات روايت تحويلِ رأس باندې محمول دې او نفي په پوره بدن سره دتاويدو راتاويدو باندې .۲.داثبات روايت دې محمول وي عندالضرورة تاويدو باندې او نفي دې محمول وي عند عدم الحاجة باندې .

# بَابُ مَا يَقُولُ عِنْدَ سِمَاعِ الأَذَانِ

## باب دې بيان دهغه څه کې چې ويلې کيږي د اذان د اوريدو په وخت کې

{۲۵۲} عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا سَمِعْتُمُ النِّدَاءَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ الْمُؤَذِّنُ رواه الجماعة .[1]

**ترجمه** :د حضرت ابوسعيد خدري رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې کله تاسي اذان واورئ نووايي تاسي هغه څه چې مؤذن يې وايي . د دي حديث روايت جماعت کړي دي .

{۲۵۳} وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ الْمُؤَذِّنُ اللهُ اَكْبَرُ

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۸۶ باب ما يقول اذا سمع المنادي ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۶۶ باب استحباب القول مثل قول المؤذن ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۵۱ باب ما يقول اذا سمع الاذان المؤذن ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۷ باب ما يقول اذا اذن المؤذن ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص۵۳ باب ما يقال اذا اذن المؤذن ، نسائي كتاب الاذان ج۱ص۱۰۹ باب القول مثل ما يقول المؤذن ، مسند احمد ج۳ص۹۰ .

الله اکبر فَقَالَ اَحَدُکُمُ الله اکبر الله کبر ثُمَّ قَالَ اَشْهدُ اَنْ لَا اِلٰه اِلَّا الله قالَ اَشهد ان لااله الا الله ثُمَّ قَالَ اشهد ان محمدًا رسولُ الله قال اشهد ان محمدا رسول الله قال اشهد ان محمدا رسول الله ثم قال حي على الصلاة قال لَا حَولَ وَلَا قُوَّة اِلَّا بِالله ثُمَّ قَالَ حي على الفلاح قال، لا حول ولا قوة الا بالله ثم قال الله اكبر الله اكبر قال الله اكبر الله اكبر ثم قال لا اله الا الله قال لا اله الا الله مِنْ قَلْبِه دَخَلَ الجَنَّة رواه مسلم و ابوداود.[1]

**ترجمه** : حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي کله چې مؤذن الله اکبرالله اکبر ووايي نو يو ستاسي نه هم الله اکبرالله اکبر ووايي بيا چې مؤذن اشهد ان لا اله الاالله ووايي او يو ستاسي هم اشهد ان لا اله الاالله ووايي بياچې مؤذن اشهد ان محمدا رسول الله ووايي او يو ستاسي دي هم اشهد ان محمداً رسول الله ووايي بيا چې مؤذن حي على الصلوٰة ووايي او يو ستاسي لا حول ولا قوة الا بالله ووايي بيا چې مؤذن حي على الفلاح ووايي او يو ستاسي لا حول ولا قوة الا بالله ووايي بيا چې مؤذن الله اکبرالله اکبر ووايي او يو ستاسي هم الله اکبرالله اکبر ووايي بيا چې مؤذن لا اله الاالله ووايي او يو ستاسي هم لا اله الاالله ووايي په تصديق د زړه سره نو جنت ته به داخل شي.

{۲۵۲}وَ عَنْ عَبدِ الله بْنِ عَمرِو بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا اَنَّه سَمِعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اِذَا سَمِعْتُمُ المُؤَذِّنَ فَقُولُوا مِثْلَ مَا يَقُولُ ثُمَّ صَلُّوا عَلَيَّ فَاِنَّه مَنْ صَلّٰي عَلَيَّ صَلَاةً صَلَّى الله عَليه بِهَا عَشْرًا ثُمَّ سَلُوا الله لِيَ الوَسِيلَةَ فَاِنَّهَا مَنْزِلَةٌ فِي الْجَنَّةِ لَا تَنْبَغِي اِلَّا لِعَبْدٍ مِنْ عِبَادِ الله وَاَرْجُو اَنْ اَكُونَ اَنَا هُوَ فَمَنْ سَاَلَ الله لِيَ الوَسِيلَةَ حَلَّتْ عَلَيه الشَّفَاعَة رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : د حضرت عبد الله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل يې کله چې تاسو د مؤذن اذان واورئ نو تاسي هم ووايئ د هغې په شان چې مؤذن يې وايي بيا په ما باندي درود ولېږئ بې شکه چې څوک په ما باندي يو ځل درود ولېږي

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۷ باب استحباب القول مثل قول المؤذن ...الخ ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۷۸ باب ما يقول اذا أذن المؤذن.

(۲) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۶ باب استحباب القول مثل قول المؤذن

الله په هغه باندي لس رحمتونه ليږي بيا ما د پاره دالله تعالى نه د وسيلي غوښتنه وکړئ بي شکه وسيله يو مقام دي په جنت چې دالله تعالى د بندګانو نه د يو بنده د پاره دي زه اميد کوم چې هغه زه يم نو چا چې ما د پاره دالله تعالى نه وسيله وغوښته دده په باره کې به زما شفاعت منظور شي .دا حديث مسلم روايت کړي دي.

**مسئلة الباب** : داجابت اذان دوه قسمونه دي: (۱) اجابت بالقول .(۲) اجابت بالأقدام.

اجابت يعنې داذان اواز په اوريدو سره په ژبه جواب ورکول . دعا لوستل مستحب دي او اجابت بالأقدام يعنې دجمې په مونځ کې حاضريدل واجب دي .

## دوو حديثونو په مينځ کې تطبيق:

۱... دباب اولني او په دريم حديث کې " مثل مايقول المؤذن" دالفاظو نه هم دا ظاهريږي چې دمؤذن په شان سامع هم "حي على الصلاة" او " حي على الفلاح" باندې همدغه کلمات به وايي ليکن په بل حديث کې واضح طور باندې " حيعلتين" باندې لاحول ولا قوة الا بالله دلوستلو ذکر دې. دتطبيق يو صورت دادې چې "مثل مايقول" نه " حيعلتين" حکم مستثنى اوګرځولې شي او په دې باندې "حوقله" اويلې شي دجمهور همدغه اختيار دې . دبعضې مشايخو په نزد ددواړو جمع کول بهتر دي او سامع په " حي على الصلاة" باندې دخپل ځان دمتوجه کولو نيت اوکړي .

# بَابُ مَا يَقُولُ بَعْدَ الأَذَانِ

## داباب دې په بيان د هغه څه کې چې لوستل کيږي پس دآذان نه

{۲۵۵} عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ قَالَ حِينَ يَسْمَعُ النِّدَاءَ: اَللّٰهُمَّ رَبَّ هٰذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ وَالصَّلَاةِ الْقَائِمَةِ آتِ مُحَمَّدًا الْوَسِيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ حَلَّتْ لَهُ شَفَاعَتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي څوک چې د اذان د اوريدو په وخت کې دا دعاء ووايي اي الله ! د دي کامل دعوت ( اذان ) او د قائم کيدلو والا مونځ رب او پروردګاره ! محمد – ته وسيله او فضيلت ورعطا کړه او په مقام محمود

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ ص ۸۶ باب الدعاء عند النداء .

باندي بې کامياب او فائز کړه هغه چې تا يې وعده هغه سره کړيده . نو د قيامت په ورځ ځما شفاعت د ده د پاره جائز او منظور دي .(بخاري دې لره روايت کړي دی )

# بَابُ مَا جَاءَ فِي اَذَانِ الْفَجْرِ قَبلَ طُلُوعِه

**باب دې په بيان د هغه حديثونو کې چې د سهر د ختو نه مخکې د اذان په باره کې راغلي دي**

{۲۵۶} عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ بِلَالًا يُنَادِي بِلَيلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتّٰى يُنَادِيَ اِبْنُ اُمِّ مَكْتُومٍ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي بې شکه حضرت بلال رضي الله عنه په شپه کې اذان کوي نو تاسي خورئ او څکئ تر هغې پوري چې ابن ام مکتوم رضي الله عنه اذان وکړي . د دې حديث روايت شيخينو کړي دي .

{۲۵۷} وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمْنَعَنَّ اَحَدَكُمْ اَذَانُ بِلَالٍ مِنْ سُحُورِهِ فَاِنَّهُ يُؤَذِّنُ اَوْ يُنَادِي بِلَيلٍ لِيَرجِعَ قَائِمَكُمْ وَلِيُنَبِّهَ نَائِمَكُم اخرجه الشيخان .[2]

**ترجمه** :د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي د بلال رضي الله عنه اذان دي ستاسي يو کس هم د پيش نمي نه منع نه کړي بې شکه چې بلال رضي الله عنه شپې په وخت کې اذان کوي د دې د پاره چې په تاسو کې تهجد کوونکي راواپس شي ( طعام ) ته او ويده ستاسي رابيدار کړي د دې حديث روايت شيخينو کړي دي .

{۲۵۸} وَ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ مُحَمَّدًا صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لاَ يَغُرَّنَّ اَحَدَكُمْ نِدَاءُ بِلَالٍ مِنَ السُّحُورِ وَلَا هٰذَا الْبَيَاضُ حَتّٰى يَسْتَطِيرَ رواه مسلم .[3]

**ترجمه** : حضرت سمره رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائلي

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ ۸۷ باب الاذان بعد الفجر ، مسلم كتاب الصيام ج۱ صـ ۳۴۹ باب بيان ان الدخول في الصوم يحصل بطلوع الفجر ...الخ .

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ ۸۷ باب الاذان قبل الفجر ، مسلم كتاب الصيام ج۱ صـ ۳۵۰ باب بيان ان الدخول في الصوم يحصل بطلوع الفجر

(۳) مسلم كتاب الصيام ج۱ صـ ۳۵۰ باب بيان ان الدخول في الصوم ...الخ .

يې دي : د بلال اذان دې ستاسي يو کس لره هم د دوډۍ د خوراک نه په دوکه کې، وانه چوي او نه دې دغه سپينوالي تاسي په دوکه کې واچوي تر هغې پورې چې دا سپين والې خور شي دا حديث مسلم روايت کړې دی.

{۲۵۹} و عن انس رضي الله عنه قال : قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم لا يَغُرَّنَّكُمْ اَذَانُ بِلَالٍ فَاِنَّ فِي بَصَرِهِ شَيْئًا رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه وايي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي د بلال رضي الله عنه اذان دې تاسي په دوکه کې وانه چوي بې شکه د ده په نظر کې لږ څه کمزوري ده . د دې حديث روايت طحاوي کړې او اسناد يې صحيح دي.

{۲۶۰} وَعَنْ شَيْبَانَ رضي الله عنه قَالَ تَسَحَّرْتُ ثُمَّ اَتَيْتُ الْمَسْجِدَ فَاسْتَنَدْتُ اِلَى حُجْرَةِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم فَرَأَيْتُه يَتَسَحَّرُ فَقَالَ اَبُو يَحْيٰى؟ قُلْتُ نَعَمْ قَالَ هَلُمَّ اِلَى الْغَدَاءِ قُلْتُ اِنِّي اُرِيْدُ الصِّيَامَ قَالَ وَ اَنَا اُرِيْدُ الصِّيَامَ وَلٰكِنْ مُؤَذِّنُنَا هٰذَا فِي بَصَرِهِ سُوءٌ اَوْ قَالَ شَيْءٌ وَ اِنَّه اَذَّنَ قَبْلَ طُلُوعِ الْفَجْرِ ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الْمَسْجِدِ فَحَرُمَ الطَّعَامُ وَكَانَ لَا يُؤَذِّنُ حَتّٰى يُصْبِحَ رواه الطبراني و قال الحافظ في الدراية اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د حضرت شيبان رضي الله عنه روايت دي هغه وايي دي چې پېشمني مې وکړو بيا مسجد ته راغلی شوم د نبي کريم صلى الله عليه وسلم حجرې ته مې تکيه ووهله نو ما رسول الله صلى الله عليه وسلم وليد چې پېشمني کاوه نو وې فرمايل ابويحيى ته راغلې؟ ما ورته وويل هو رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل راشه د سحر دوډۍ وخوره ما وويل د روژې د نيولو اراده مې ده هغه وفرمائل زما هم د روژې اراده ده ليکن زمونږ د دې مؤذن په نظر کې څه فرق دي او يا يې وفرمائل چې د مؤذن په نظر کې څه شی دي او ده د سبا د ختو نه مخکې اذان کړي دي بيا يې مسجد ته تشريف يوړ او خوراک حرام شوي ؤ او هغه اذان نه ؤ کړي تر څو پورې چې صبا صادق راڅرګند نه شو د دې حديث روايت طبراني کړي او حافظ په درايه کې وايي دي چې اسناد يې صحيح دي

{۲۶۱} وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيْزِ بْنِ اَبِيْ رَوَّادٍ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما اَنَّ بِلَالًا اَذَّنَ قَبْلَ الْفَجْرِ فَقَالَ لَهُ النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم مَا حَمَلَكَ عَلٰى ذٰلِكَ فَقَالَ اِسْتَيْقَظْتُ وَ اَنَا وَسْنَانُ فَظَنَنْتُ اَنَّ الْفَجْرَ طَلَعَ فَاَمَرَه

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱صــ ۹۷ باب التاذين للفجر اي وقت هو الخ

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج۷ صــ ۳۱۲ رقم الحديث ۷۲۲۸ ومجمع الزوائد ج۳ صــ ۱۵۳ نقلاً عن الطبراني في الكبير والاوسط دراية ج۱صــ ۱۲۰

النَّبِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَن يُنَادِي بِالْمَدِينَةِ ثَلَاثًا أَنَّ الْعَبْدَ قَدْ نَامَ ثُمَّ اقْعُدْهُ إِلَى جَنْبِهِ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ رواه البيهقي و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** : د عبدالعزيز بن رواد نه روايت شوي دي هغه د نافع نه روايت کړي او هغه د ابن عمر رضي الله عنه روايت کړي دي چې حضرت بلال رضي الله عنه سحر د ختو نه مخکې اذان وکړ هغه ته نبي عليه السلام وفرمائل ته دي خبري ته څه شي تيار او اماده کړي نو بلال رضي الله عنه ويل چې زه د خوب نه راپيدا شوم خوزه پرکاله وم نو ماګمان وکړ چې صباختلي نوحضرت بلال رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې په مدينه کې دري ځلي اواز وکړه او اعلان وکړه چې مؤذن بنده وده شوي وو بيا رسول کريم صلى الله عليه وسلم هغه د خپلې خوا سره کيناؤ تر هغي پوري چې صبا راؤختو. د دي حديث روايت بيهقي کړي دي او اسناد يې حسن دي .

{۲۶۲} وَعَن حُمَيدِ بنِ هِلَالٍ أَنَّ بِلَالًا أَذَّنَ لَيلَةً بِسَوَادٍ فَأَمَرَهُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَن يَرجِعَ إِلَى مَقَامِهِ فَيُنَادِي أَنَّ الْعَبدَ نَامَ فَرَجَعَ رواه الدارقطني و قال في الامام هو مرسل جيد ليس في رجاله مطعون فيه .[2]

**ترجمه** : د حُميد بن هلال نه روايت دي چې حضرت بلال رضي الله عنه شپه په تياره کې اذان وکړ. نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه ته حکم وکړ چې خپل د اذان ځاي ته واپس لاړ شي بيا اواز او اعلان وکړي چې بنده اوده شوي ؤ نو هغه واپس لاړ . دا حديث دارقطني روايت کړي او په امام کې يې ويلي دي چې دا حديث جيد مرسل دي او د دي په رجالو کې څه طعن نشته .

{۲۶۳} وَعَنِ امْرَأَةٍ مِن بَنِي النَّجَّارِ قَالَت كَانَ بَيتِي مِن أَطوَلِ بَيتٍ حَولَ الْمَسجِدِ فَكَانَ بِلَالٌ يَأتِي بِسَحَرٍ فَيَجلِسُ عَلَيهِ يَنظُرُ إِلَى الْفَجرِ فَإِذَا رَآهُ أَذَّنَ رواه ابوداود و قال الحافظ في الدراية (ص۱۲۰) اسناده حسن .[3]

**ترجمه** : د بني نجار د قبيلي يوي ښځي ويلي دي چې زما کور د مسجد د چار چاپيره تولوکورونو نه وزد ؤ حضرت بلال رضي الله عنه په سحر کې راته نو په هغي به کيناسته سحر ته به يې کتل بيا به يې کله

(۱) سنن الكبرى كتاب الصلوة ج۱ص ۳۸۳ باب رواية من روي النهي عن الاذان قبل الوقت
(۲) دارقطني ، كتاب الصلوة ج۱ص ۲۴۴ باب ذكر الاقامة ...الخ .
(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ ص ۷۷ باب الاذان فوق المنارة ، الدراية ج۱ص ۱۲۰

چې سحر وليده نو اذان به يې وکړ دا حديث ابوداؤد نقل کړي دي او حافظ په درايه کې ويلي دي چې اسناد يې حسن دي

{۲۶۴} وَعَن حَفصَةَ بِنتِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ بِالفَجرِ قَامَ فَصَلَّى رَكعَتَيِ الفَجرِ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى المَسجِدِ وَ حَرَّمَ الطَّعَامَ وَ كَانَ لَا يُؤَذِّنُ حَتَّى يُصبِحَ رواه الطحاوي والبيهقي و اسنادي جيد.[1]

**ترجمه**: د حضرت حفصه بنت عمر رضي الله عنها روايت چې کله به مؤذن د سحر اذان وکړ نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم به پاڅيده د سحر دوه رکعته مونځ به يې وکړ بيا به مسجد ته راؤواته او طعام به يې بند کړ او تر څو چې سحر شوي نه وُ اذان به يې نه کاوه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دي او بيهقي کړي دي او اسناد يې جيد دي.

{۲۶۵} وَعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت مَا كَانُوا يُؤَذِّنُونَ حَتَّى يَنفَجِرَ الفَجرُ اخرجه ابوبكر بن ابي شيبة في مصنفه و ابو الشيخ في كتاب الاذان و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي صحابه کرامو به تر هغه وخته پورې اذان نه کاوُ تر څو پورې به چې صبا وخاته دا حديث ابوبکر ابن ابي شيبه په خپل مصنف کې راوړي دي او ابو الشيخ په کتاب الاذان کې او اسناد يې صحيح دي.

{۲۶۶} وَعَن نَافِعٍ عَن مُؤَذِّنٍ لِعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يُقَالُ لَهُ مَسرُوحٌ أَذَّنَ قَبلَ الصُّبحِ فَأَمَرَهُ عُمَرُ أَن يَرجِعَ فَيُنَادِيَ رواه ابوداود والدارقطني و اسناده حسن قال النيموي ثَبَتَ بِهٰذِهِ الأَخبَارِ أَنَّ صَلَاةَ الفَجرِ لَا يُؤَذِّنُ لَهَا إِلَّا بَعدَ دُخُولِ وَقتِهَا وَ أَمَّا أَذَانُ بِلَالٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَبلَ طُلُوعِهِ فَإِنَّمَا كَانَ فِي رَمَضَانَ لِيُنَبِّهَ النَّائِمَ وَلِيَرجِعَ القَائِمُ لَا لِلصَّلَاةِ وَ أَمَّا فِي غَيرِ رَمَضَانَ فَكَانَ ذٰلِكَ خَطَأً مِنهُ لِظَنِّهِ أَنَّ الفَجرَ قَد طَلَعَ والله اعلم بالصواب.[3]

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۹۷ باب التاذين للفجر اي وقت ....الخ ، الجوهر النقي مع السنن الكبرى كتاب الصلوة ج۱ص۳۸۴ باب رواية من روى النهي عن الاذان قبل الوقت نقلاً عن البيهقي.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الاذان ج۱ص۲۱۴ باب من كره ان يؤذن المؤذن قبل الفجر ، الدراية كتاب الصلوة ج۱ص۱۲۰ باب الاذان نقلا عن ابي الشيخ.

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۷۹ باب في الاذان قبل دخول الوقت ، دارقطني كتاب الصلوة ج۱ص۲۴۴ باب ذكر الاقامة.

**ترجمه** : نافع د حضرت عمر رضي الله عنه مؤذن نه روايت کړي چې مسروح يې نوم دې ده د سحر د ختو نه مخکې اذان وکړنو حضرت عمر رضي الله عنه ورته دا عادې او بيايې ورته د اعلان حکم وکړ. د دې حديث روايت ابوداؤد او دارقطني کړي دې او اسناد يې حسن دې. نيموي ويلي دي چې په دې اخبارو او احاديثو باندې دا ثابته شويده چې د سحر د مانځه د پاره به اذان نشو کيدې مگر د وخت د داخليدو نه روسته او د سحر د ختو نه مخکې د حضرت بلال رضي الله عنه اذان د رمضان په مياشت کې و او په غير د رمضان نه د سحر د ختو نه مخکې د ده اذان د ده د خطا په وجه; او په دې گمان چې صبا ختلي دي.

**مسئلة الباب** : اذان چونکه د مونځ وخت اطلاع او دخبرداري ورکولو نوم دې نو ظاهره ده چې دخول وخت نه مخکې اذان جائز نه دې او مسئله هم همدغه ده چنانچې د علماؤ په دې باندې اتفاق دې چې د سحر نه علاوه باقي څلور مونځونو کې اذان قبل الوقت جائز نه دې . البته د سحر په مونځ کې اختلاف دې :

(١) ائمه ثلاثه رحمهم الله او د امام ابويوسف رحمه الله په نزد د سحر اذان د طلوع فجر نه مخکې د شپې په شپږمه حصه کې کول جائز دي يعني که اذان يې اوکړو نو دهغې اعتبار به کولې کيږي او دهغې ت ددضروري نه ده.

(٢) د امام ابوحنيفه رحمه الله او د امام محمد رحمه الله د رائ مطابق په سحر کې هم قبل از وقت اذان جائز نه دې . نو که يې اوکړو نو اعاده به کوي .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دليل** : د باب اولنې حديث (مروي عن ابن عمر رضي الله عنه) " أَنَّ بِلَالًا يُنَادِي بِلَيْلٍ فَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّى يُنَادِيَ ابْنُ أُمِّ مَكْتُومٍ " په دې صحيح حديث کې پخپله حضور صلی الله علیه وسلم فرمايي چې بلال رضي الله عنه به شپې اذان ويلو .

**دامام ابوحنيفه رحمه الله او دامام محمد رحمه الله دليل** :

١. د ابن عمر رضي الله عنه حديث چې يو ورځ د حضرت بلال رضي الله عنه طلوع د صبح صادق نه مخکې اذان وکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته د مدينې منورې په کوڅو کې د دې ويلو نه ويل چې " ان العبد قد نام " يعني د غلطۍ اظهار يې وکړو نو که د وخت نه مخکې اذان صحيح دې نو اعلان يې بيا ولې اوکړو ؟

٢... مرفوع حديث " لا تؤذن حتى يستبين لک الفجر هکذا ومد يديه عرضا " . (ابوداؤد)

٣... حديث نمبر ٢١٦ مطابق يو پيره د حضرت عمر رضي الله عنه مؤذن قبل الطلوع اذان اوکړو نو عمر رضي الله عنه هغه ته د اذان د دوباره کولو نه اويل چې اذان بيا اوکړه .

**ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب :**

۱. دحضرت بلال رضی الله عنه دصبح صادق نه مخکې اذان دسحر مونځ لپاره نه وو بلکې دپیشمنې او دتهجد لپاره وو ، حدیث دابن مسعود رضی الله عنه کې د " لیرجع قائمکم وینبه نائمکم " تصریح ده یعنې اولنې اذان دې لپاره وو چې کوم خلک له مخکې نه ویخ دي او تهجد کوي هغه دې لږ آرام اوکړي او څوک چې تر اوسه پورې اوده وو هغه دې ویخ شي او یو څو رکعته تهجد دې اوکړي . بیا دا ویل څنګه صحیح دي چې سحر اذان قبل الوقت جائز دې ځکه چې دا خبره دنورو صحیح احادیثو خلاف دي او دوي دمستدل حدیث کې هم دسحر تصریح نشته .

۲. که بالفرض دبلال رضی الله عنه قبل از صبح صادق دسحر مونځ لپاره وې نو په پوره ذخیره دحدیثو کې یو پیره هم په دې قبل از وقت اذان باندې داکتفا ذکر نشته بلکې چې کله داسې واقعه اوشوه نو دا اذان اعاده اوکړې شوه .

# بَابُ مَا جَاءَ فِي أَذَانِ الْمُسَافِرِ

## دهغه حدیثونو باب چې د مسافر د اذان په باره کې راغلي دي :

{۲۶۸} عَنْ مَالِكِ بنِ الْحُوَيرِثِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَتَى رَجُلَانِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرِيدَانِ السَّفَرَ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَنْتُمَا خَرَجْتُمَا فَأَذِّنَا ثُمَّ أَقِيمَا ثُمَّ لِيَؤُمَّكُمَا أَكْبَرُكُمَا رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت مالک بن الحویرث رضی الله عنه ویلي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته دوه سړي چې د سفر اراده یې وه راغله نونبي کریم صلی الله علیه وسلم ورفرمائل کله چې تاسي دواړه لاړ شئ نو اذان وکړئ بیا اقامت وکړئ بیا دې ستاسي نه مشر تاسي ته امامت وکړي . دا حدیث شیخینو روایت کړي .

**مسئلة الباب** : په سفر کې چې کوم ځاي کې دنورو خلکو په جمع کې دشاملیدو توقع نه وي نو دامام شافعي رحمه الله او دامام احمد رحمه الله په نزد هلته هم اذان او اقامت دواړه مسنون دي. امام ابوحنیفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله نه مروي دي چې په داسې صورت کې صرف اقامت باندې اکتفا بلا کراهته جائز دي . او اذان مسنون نه دي . حدیث باب دشافعیه او دحنابله دمسلک تائید کوي. دامام ابو حنیفه رحمه الله نه هم یو روایت دهمدې مطابق مروي دی ، چنانچې عام مشائخ حنفیو هم همدې ته ترجیح ورکړې ده چې په حالت دسفر اذا او اقامت دواړه ویل پکار دي .(رد المحتار ۱/۲۹۴)

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱صـ ۸۷ باب الاذان للمسافر ...الخ ، مسلم کتاب المساجد ج۱صـ ۲۳۶ باب من احق بالامامة

# بَابُ مَا جَاءَ فِي جَوَازِ تَرْكِ الأذَانِ لِمَنْ صَلَّى فِي بَيْتِهِ

**باب دي په بيان د هغه حديثونو کې چې د اذان د ترک د جواز په باره کې راغلي دي د هغه چا د پاره چې په کور کې مونځ کوي**

{۲۶۸} عَنِ الأَسْوَدِ و عَلْقَمَةَ قَالَا أَتَيْنَا عَبْدَ الله رضي الله عنه فِي دَارِهِ فَقَالَ أَصَلَّى هٰؤُلَاءِ خَلْفَكُم قُلْنَا لَا قَالَ قُومُوا فَصَلُّوا وَلَم يَأْمُرْ بِأَذَانٍ وَلَا إقَامَةٍ رواه ابن ابي شيبة و مسلم و آخرون.[1]

**ترجمه**: اسود او علقمه دواړو ويلي دي چې مونږ د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه کورته راغلو ابن مسعود رضي الله عنه وويل چې دوي تاسي پسي مونځ کړي مونږ ووېل چې نه هغه ويل چې پاڅئ ودريږئ نو مونځ يې او د اذان او اقامت حکم يې ونه کړو د دي حديث روايت ابن ابي شيبه او مسلم او نورو کړي دي.

**مسئلة الباب**: په ښار کې دننه کچرته په کور کې دننه جمع کيږي نو اذان، و اقامت دواړه ويل مستحب دي. ليکن د کوشي په اذان باندي اکتفا کولو په صورت کې بغير د اذان او اقامت نه په کور کې جمع بغير د کراهت نه صحيح ده. د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا قول مشهور دی چې په هداسې موقع باندي يې دا قول فرمايلې وو: "اذان الحي يكفينا".

# بَابُ اِسْتِقْبَالِ الْقِبْلَةِ

## باب قبلي طرف ته مخ کول

{۲۶۹} عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يُصَلِّي وَهوَ بِمَكَّةَ نَحوَ بَيتِ المُقَدَّسِ وَالْكَعبَةَ بَيْنَ يَدَيهِ رواه احمد و ابوداود و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مکه مکرمه کې د بيت المقدس طرف ته به يې مخ کاوه مونځ به يې کاوه او کعبه مبارکه به د ده په مخکې وه دا حديث ابوداود او احمد رحمه الله نقل کړي او اسناد يې صحيح دي

{۲۷۰} وَعَن عَبدِ الله بنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ بَينَا النَّاسُ بِقُبَاءٍ فِي صَلَاةِ الصُّبحِ إِذْ جَاءَهُم آتٍ فَقَالَ إِنَّ

---

[1] مصنف ابن ابي شيبة كتاب الاذان ج۱ صــ ۲۲۰ باب من كان يقول ليجزيه ان يصلي ...الخ

[2] مسند احمد ج۱ صــ ۳۲۵ . ابوداود كتاب الصلوة

رَسُولَ اللّٰه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَد أُنزِلَ عَلَيه اللَّيلَة قُرآنٌ وَ قَد أُمِرَ أَن يستَقبِلَ الكَعبَة فَاستَقبِلُوهَا وَ كَانَت وُجُوهُهُم إِلَى الشَّامِ فَاستَدَارُوا إِلَى الكَعبَة رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي دي چې خلکو د قبا په مسجد کې د سحر مونځ کاوه چې يو سړي راغي نو وې ويل چې په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د شپې قرآن کريم نازل شوي او هغه ته حکم نازل شوي دي چې کعبې شريفې ته مخ واړوه او د هغوي مخ شام طرف ته ؤ نو کعبې طرف ته راوګرځيدل د دي حديث روايت شيخينو کړي دي

{٢٧١} وَ عَنِ البَرَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَوَّلَ مَا قَدِمَ المَدِينَة نَزَلَ عَلَى أَجدَادِهِ أَو قَالَ أَخوَالِهِ مِنَ الأَنصَارِ وَ أَنَّهُ صَلَّى قِبَلَ بَيتِ المُقَدَّسِ سِتَّة عَشَرَ شَهرًا أَو سَبعَة عَشَرَ شَهرًا وَ كَانَ يعجِبُه أَن تَكُونَ قِبلَتُه قِبَلَ البَيتِ وَ أَنَّه صَلَّى أَوَّلَ صَلَاة صَلَّاهَا صَلَاة العَصرِ وَصَلَّى مَعَه قَومٌ فَخَرَجَ رَجُلٌ مِمَّن صَلَّى مَعَه فَمَرَّ عَلَى أَهلِ مَسجِد وَهُم رَاكِعُونَ فَقَالَ أَشهَدُ بِاللّٰه لَقَد صَلَّيتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ مَكَّة فَدَارُوا كَمَا هُم قِبَلَ البَيتِ رواه البخاري .[2]

**ترجمه** : د حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې کله نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ابتدا کې مديني منورې ته تشريف يوړ نو په انصارو کې دخپلو نيکونو او يا د خپلو ماماګانو کره بنکته شو او ده بيت المقدس طرف ته شپاړس مياشتې او يا اولس مياشتې مونځ وکړ او د ده دا خبره ډيره خوښه وه چې د ده قبله بيت الله طرف ته شي او د ده اولني مونځ چې بيت الله طرف ته يې کړي د ماښګر مونځ ؤ يو سړي چې هغه د نبي عَلَيْهِ السَّلَام سره يو ځاي مونځ کړي ؤ راووته او د يو مسجد په اهل باندې تير شو کله چې دوي رکوع کوله دې سړي وويل چې ځما دې په الله قسم وي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مکې طرف ته مونځ وکړ نو هغه په دغه حالت کې ؤ چې بيت الله طرف ته راؤګرځيدل. ددي حديث روايت بخاري کړي دي .

{٢٧٢} وَ عَن أَبِي هُرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا بَينَ المَشرِقِ وَالمَغرِبِ قِبلَة رواه الترمذي و صححه و قواه البخاري .[3]

---

(١) بخاري كتاب الصلوة ج١ص ٥٨ باب ماجاء في القبلة .. ،مسلم كتاب المساجد ج١ص ٢٠٠ باب تحويل القبلة من القدس الى الكعبة .

(٢) بخاري كتاب الايمان ج١ص ١٠ باب الصلوة من الايمان .

(٣) ترمذي ابواب الصلوة ج١ص ٧٩ باب ماجاء ان بين المشرق والمغرب قبلة .

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې د مشرق او مغرب تر منځ قبله ده . د دي حديث ترمذي روايت کړي او صحيح يې ګڼړلي دي او بخاري توي ګڼړلي دي .د دي د ظاهر نه معلوميږي چې دا د اهل مدينه ؤ د پاره دي .

{۲۷۳} وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا قُمْتَ إِلَى الصَّلَاةِ فَأَسْبِغِ الْوُضُوءَ ثُمَّ اسْتَقْبِلِ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي کله چې ته مانځه ته ودريږي يعني د مانځه اراده وکړي نو پوره او مکمل اودس وکړه بيا قبلې ته مخ کړه نو تکبير ووايه . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

{۲۷۴} وَ عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا أَنَّهُ كَانَ إِذَا سُئِلَ عَنْ صَلَاةِ الْخَوْفِ وَ صَفَهَا ثُمَّ قَالَ فَإِنْ كَانَ خَوْفٌ هُوَ أَشَدُّ مِنْ ذٰلِكَ صَلَّوْا رِجَالًا قِيَامًا عَلَى أَقْدَامِهِمْ وَ رُكْبَانًا مُسْتَقْبِلِي الْقِبْلَةِ أَوْ غَيْرَ مُسْتَقْبِلِيهَا قَالَ نَافِعٌ وَلَا أَرَى ابْنَ عُمَرَ ذَكَرَ ذٰلِكَ إِلَّا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري .[2]

**ترجمه** : نافع د حضرت بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړي دي چې کله د ده نه د خوف او ويرې د مانځه په باره کې پوښتنه وکړي شوه د هغې بيان يې وکړ او بيا يې وويل که چرته ويره زياته وي نو پياده په خپو ودريږه مونځ وکړه او سور شه او قبلې طرف ته مخ کړه او يا د قبلې نه غير بل طرف ته نافع ويلي دي څما په خيال ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دا نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه بيان کړي دي . د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

{۲۷۵} وَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُسَبِّحُ عَلَى الرَّاحِلَةِ قِبَلَ أَيِّ وَجْهٍ تَوَجَّهَ وَ يُوتِرُ عَلَيْهَا غَيْرَ أَنَّهُ لَا يُصَلِّي عَلَيْهَا الْمَكْتُوبَةَ رواه الشيخان .[3]

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سورلۍ باندې نفلي مونځ کاوه کوم طرف ته به يې چې توجه او مخ ؤ او وتر به يې هم په سورلۍ کول خو مګر فرض

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ صـ۱۷۰ باب وجوب القراءة في كل ركعة، بخاري كتاب الاستيذان ج۲ صـ۹۲۴ باب من رد فقال عليك السلام.

(۲) بخاري كتاب التفسير ج۱ صـ ۶۵۱ باب قوله عزوجل وَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا ...الخ .

(۳) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱ صـ ۱۴۸ باب ينزل للمكتوبة ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صـ ۲۴۴ باب جواز صلوة النافلة على الدابة الخ .

مونځ به يې په سورلئ باندي نه کول .دا حديث شيخينو روايت کړي .

**{۲۷٦} وَ عَن عَامِرِ بنِ رَبِيعَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ رَأَيتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَهوَ عَلَى الرَّاحِلَة يَسَبِّحُ يومِي بِرَاسِه قِبَلَ اَي وَجه تَوَجَّه وَلَم يكُن رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يصنَعُ ذٰلِكَ فِي الصَّلٰوة المَكتُوبَة اخرجه الشيخان.**[1]

**ترجمه** : د حضرت عامر بن ربيعه رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي هغه ويلي چې ما نبي عَلَيهِ السَّلَام په سورلئ باندي په مانځه کولو ليدلي دي او په خپل مبارک سر سره به يې اشاره کوله په هر طرف به يې چې توجه او مخ وُ او فرض مونځ به يې دغسي نه کاؤه . دا حديث شيخينو روايت کړي دي .

**مسئلة الباب** : ۱. په مونځ کې مخ قبلې ته کول بالاتفاق شرط دي .

۲. د سورلۍ په حالت کې بالاتفاق په ناسته نفل لوستلې شي او فرض بالاتفاق نشي ويلې البته دوترو په باره کې اختلاف دې .

(۱) د ائمه ثلاثه رحمهم الله او د صاحبينو په نزد لوستلې شي ځکه چې وتر د دوي په نزد سنت دي او حديث د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ "ويوتر عليها" أي على الراحلة نه ددې تائيد کيږي .

(۲) د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نزد وتر د سوريدو په حالت کې نشي لوستلې ځکه چې وتر د دوي په نزد واجب دي او د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دوتر مونځ د واجب کيدو نه وړاندې زمانې سره متعلق دې .

۳. . . . که د جنګ په حات کې ويره زياته شي نو د سورلۍ د پاسه هم مونځ لوستلې شي که قبلې ته يې مخ وي او که نه . البته د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نزد د سورلئ په حالت کې په جمې سره مونځ جائز نه دې او ائمه ثلاثه رحمهم الله ددې اجازت ورکوي .

# بَابُ سُترَة المُصَلِّي

## باب دي د ستري د مونځ کوونکي په بيان کې

**{۲۷۷} عَن اَبِي جُهيمِ بنِ الحَارِثِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَو يعلَمُ المَارُّ بَينَ يدَي المُصَلِّي مَاذَا عَلَيهِ مِنَ الاِثمِ لَكَانَ اَن يقِفَ اَربَعِينَ خَيرًا لَّه مِن اَن يمُرَّ بَينَ يدَيه رواه الشيخان.**[2]

---

(۱) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱ص ۱۴۸ باب ينزل للمكتوبة ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۴ باب جواز صلوة النافلة على الدابة ... الخ

(۲) بخاري كتاب الصلوة ج۱ص ۷۳ باب اثم المارين بدي المصلي . مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۷ باب سترة المصلي ... الخ

**ترجمه** : د حضرت ابي جهيم بن الحارث رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې مونځ كوونكي په مخكې تيريدونكې ته كه چرته دا معلومه وي چې په ده باندې څومره ګناه واقع كيږي نو څلوينښت كاله اودريدل به ده ته د دې نه چې د مونځ كوونكي په مخكې تير شي ډير بهتر وي. د دې حديث روايت شيخينو كړي دي.

{۲۸۸} وَ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت اِنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سُئِلَ فِي غَزوَةِ تَبُوكَ عَن سُترَةِ المُصَلِّي فَقَالَ كَمُؤخِرَةِ الرحلِ رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه روايت دي ويلي يې دي چې د تبوک په غزا كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د مونځ كوونكي د سترې په باره كې پوښتنه وشوه نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې د كجاوې د روستنۍ برخې په اندازه يو شئ دې دغه حديث مسلم روايت كړي دي

{۲۸۹} وَ عَنْ عَبدِ الله بْنِ الصَّامِتِ عَن اَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ اَحَدُكُم يُصَلِّي فَاِنَّه يَستُرُه اِذَا كَانَ بَينَ يَدَيه مِثلُ آخِرَةِ الرَّحْلِ فَاِذَا لَمْ يَكُنْ بَينَ يَدَيه مِثلُ آخِرَةِ الرَّحْلِ فَاِنَّه يَقْطَعُ صَلَاتَه الحِمَارُ وَالمَرأَةُ وَالكَلبُ الاَسوَدُ قُلتُ يَا اَبَاذَرٍّ مَا بَالُ الكَلبِ الاَسوَدِ مِنَ الكَلبِ الاَحمَرِ مِنَ الكَلبِ الاَصفَرِ قَالَ يَا ابنَ اَخِي سَأَلتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَمَا سَأَلتَنِي فَقَالَ الكَلبُ الاَسوَدُ شَيطَانٌ رواه الجماعة الا البخاري.[2]

**ترجمه** : د عبدالله بن الصامت نه روايت دي چې حضرت ابي ذر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي كله چې يو ستاسې اودريږي مونځ كوي نو هغه دې ستره جوړه كړي كله چې د هغه په مخ كې د كجاوې د روستنۍ برخې (لرګي) په برابرۍ كوم يو شئ ږدي او كله چې د هغه يعنې د مونځ كوونكي په مخ كې د كجاوې د روستنۍ برخې په برابرۍ يو څه شي نه وي او د هغه په مخ كې د مانځه په وخت كې ښځه او يا تور سپې تير شي نو د هغه مونځ ماتيږي. ما وويل اې حضرت ابوذره! څه حال او فرق دې د تور سپي او د سور او زېړ سپي تر منځ هغه وويل اې وراره ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه كړې ده لكه تا چې زما نه پوښتنه وكړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۹۵ باب سترة المصلي ...الخ.

(۲) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۹۷ باب سترة المصلي ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۷۹ باب ماجاء انه لا يقطع الصلوة الا الكلب ...الخ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۰۲ باب مايقطع الصلوة ، نسائي كتاب القبلة ج۱ص۱۲۲ باب ذكر ما يقطع الصلوة وما لا يقطع ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص۶۸ باب ما يقطع الصلوة ، مسند احمد ج۵ص۱۵۱ .

تور سپي شيطان دي . د دي حديث روايت د بخاري نه په غير جماعت کړي .

{۲۸۰} وَعَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَضَعَ أَحَدُكُمْ بَيْنَ يَدَيْهِ مِثْلَ مُؤْخِرَةِ الرَّحْلِ فَلْيُصَلِّ وَلَا يُبَالِ مَنْ مَرَّ وَرَاءَ ذٰلِكَ رواه مسلم .[۱]

**ترجمه** : حضرت طلحه بن عبيد الله رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي کله چې يو کس د ستاسو په خپله مخه کې د کجاوې د روستي لرګي په شان يو لرګي کيدي نو مونځ دي وکړي او د هغه چا پروا دي نه کوي کوم کس چې د دي لرګي نه اخوا تيريږي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

{۲۸۱} وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ الْكَلْبُ وَالْحِمَارُ وَالْمَرْأَةُ رواه البزار و اسناده صحيح .[۲]

**ترجمه** : حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې سپي ، خر او ښځه مونځ ماتوي . د دي حديث روايت البزار کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۸۲} و عن الفضل بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أَتَانَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَنَحْنُ فِي بَادِيَةٍ لَنَا وَمَعَهُ عَبَّاسٌ فَصَلَّى فِي صَحْرَاءَ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ وَحِمَارَةٌ لَنَا وَكَلْبَةٌ تَعْبَثَانِ بَيْنَ يَدَيْهِ فَمَا بَالَى بِذٰلِكَ رواه ابوداود والنسائي نحوه و اسناده صحيح .[۳]

**ترجمه** : حضرت فضل بن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم په داسي حال کې راغي چې مونږ په خپله يوه بانډه کې ؤ او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره حضرت عباس رضي الله عنه ملګري ؤ او په صحراء کې يې مونځ وکړو او په مخکې يې ستره نه وه او خر او سپي د هغو په مخکې لوبې کولې نو هغه د هغه هيڅ پرواه نه کوله . د دي حديث روايت ابوداؤد او نسائي او د د په شان نورو کسانو کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۹۵ باب سترة المصلي ...الخ .

(۲) كشف الاستار عن زوائد البزار كتاب الصلوة ج۱ص۲۸۱ برقم ۵۸۲ باب ما يقطع الصلوة .

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۰۴ باب من قال الكلب لا يقطع الصلوة ، نسائي كتاب القبلة ج۱ص۱۲۳ باب ذكر ما يقطع الصلوة ومالايقطع ...الخ .

{۲۸۳} وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جِئْتُ أَنَا وَغُلَامٌ مِنْ بَنِي هَاشِمٍ عَلَى حِمَارٍ فَمَرَرْنَا بَيْنَ يَدَيِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يُصَلِّي فَنَزَلْنَا عَنه وَ تَرَكْنَا الْحِمَارَ يَأْكُلُ مِنْ بَقْلِ الْأَرْضِ أَوْ قَالَ نَبَاتِ الْأَرْضِ فَدَخَلْنَا مَعَهُ فِي الصَّلَاةِ فَقَالَ رَجُلٌ أَكَانَ بَيْنَ يَدَيه عَنَزَةٌ قَالَ لَا رواه ابو يعلى و رجاله رجال الصحيح.[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې زه او د بني هاشم د قبيلي يو غلام په خر باندي راغلو رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ کاوه مونږ د هغې په مخکې تير شو نو مونږ د خر نه کوز شو او خر مو پريښود د زمکې وابنه او ګياه يې خوړله نو موږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مانځه کې داخل شو نو يو سړي وويل چې د نبي عليه السلام په مخه کې نيزه او ستره وه هغوي وويل چې نه. د دې حديث روايت ابو يعلى کړي او رجال يې رجال د صحيح.

{۲۸۴} وعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِالنَّاسِ فَمَرَّ بَيْنَ أَيدِيهِمْ حِمَارٌ فَقَالَ عَيَّاشُ بْنُ رَبِيعَةَ سُبحَانَ الله سُبحَانَ الله سُبْحَانَ الله فَلَمَّا سَلَّمَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ الْمُسَبِّحُ آنِفًا سُبْحَانَ الله قَالَ أَنَا يَارَسُولَ الله إِنِّي سَمِعتُ أَنَّ الْحِمَارَ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ قَالَ لَا يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ رواه الدار قطني و اسناده حسن.[2]

**ترجمه** : د حضرت انس رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم خلکو ته مونځ کاوه نو د دوي په مخکې خر تير شو نو حضرت عياش بن ربيعه وويل چې سبحان الله سبحان الله سبحان الله رسول الله صلى الله عليه وسلم چې سلام واړاوه نو وي فرمائل چې اوس تسبيح ويونکي څوک ؤ حضرت عياش وويل چې زه ؤم اى دالله رسوله صلى الله عليه وسلم بې شکه ما اوريدلي ؤ چې خر مونځ قطع کوي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هيڅ يو شي مونځ نه شي قطع کولي. د دې حديث روايت دار قطني کړي دي او اسناد يې حسن دي.

{۲۸۵} وعن سَالِمِ بنِ عَبدِ الله أَنَّ عَبدَ الله بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَقُولُ لَا يَقطَعُ الصَّلَاةَ شَيْءٌ مِمَّا يَمُرُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي رواه مالک و اسناده صحيح.[3]

---

(۱) مسند ابويعلى ج ۴ صـ ۳۱۱ برقم ۹۶ . ( ۲۴۲۳ ) .

(۲) دار قطني کتاب الصلوة ج ۱ صـ ۳۶۷ باب صفة السهو في الصلوة واحکامه ...الخ .

(۳) موطا امام مالک کتاب قصر الصلوة في السفر صـ ۱۴۰ باب الرخصة في المرور بين يدي المصلي .

**ترجمه** : د سالم بن عبد الله نه روایت دي چې عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به ویل چې د مونځ کوونکي په مخکې هیڅ یو تیریدونکي شئ مونځ نه ماتوي . د دي حدیث روایت مالک رَحِمَهُ الله کړي دي او اسناد یې صحیح دي .

{۲۸۶} و عنه قال قِيلَ لِابنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ عَبدَ الله بنَ عَياشِ بنِ اَبِي رَبِيعَة يَقُولُ يقْطَعُ الصَّلاَة الْكَلبُ وَالحِمَارُ فَقَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاَ يَقْطَعُ صَلاَة الْمُسْلِمِ شَيءٌ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : سالم ابن عبدالله ویلي دي چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وویلي شو چې عبد الله بن عیاش بن ابي ربیعه وایي چې سپې او خر مونځ ماتوي ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې د مسلمان مونځ هیڅ شئ نه شي ماتولي . د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد یې صحیح دي .

{۲۸۷} و عن سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيبِ اَنَّ عَلِيا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَا لَا يَقْطَعُ صَلاَة الْمُسْلِمِ شَيءٌ وَادْرَءُوا عَنهَا مَا اسْتَطَعْتُمْ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د سعید بن المسیب نه روایت دي چې حضرت علي او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا ویلي دي چې د مسلمان مونځ هیڅ شئ نه شي ماتولي او لري شئ د دي نه څومره چې لري کیدي شئ. د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد یې صحیح دي .

{۲۸۸} وَ عَنْ اَبِي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا صَلَّى اَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ تِلقَاءَ وَجْهه شَيْئا فَاِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيَنْصِبْ عَصًا فَاِنْ لَمْ يَكُنْ مَعَه عَصًا فَلْيَخْطُطْ خَطًّا ثُمَّ لاَ يَضُرُّهُ مَا مَرَّ اَمَامَه رواه ابوداود و ابن ماجه و احمد واسناده ضعيف.[3]

**ترجمه** : د حضرت ابي هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي کوم یو کس چې ستاسي نه مونځ کوي نو په خپله مخه کې دي یو شئ ودروي او که څه شئ پیدا نه کړي نو امسا دي ودروي نو که امسا ورسره نه وي نو یو خط دي راکاږي بیا د مونځ کوونکي په مخه کې د تیریدو والا شي هیڅ ضرر نه رسوي .ددي حدیث روایت ابوداؤد ابن ماجه او احمد کړي دي او اسناد یې ضعیف دي .

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۳۱۲ باب المرور بین یدي المصلي ...الخ .

(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۳۱۲ باب المرور بین یدي المصلي ...الخ .

(۳) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۰۰ باب الخط اذا لم یجد عصا،ابن ماجة کتاب الصلوة ص ۶۸ باب مایستر المصلي،مسند احمد ج۲ص ۲۴۹

## دسترې مباحث

**اولنې بحث:** " سترة "أي مايستر به " هغه شئ كوم لره چې پرده او كرخولې شي په شريعت كې ستره هغه شي ته ويلې كيږي كوم چې دمونځ كونكي پر وړاندې كيخودلې شي تر څو چې دده ځاي دسجدې ممتاز شي او تيريدونكې دده دسجدې ځاي كې دننه تير نشي ، برابره خبره ده كه هغه يو لرګې وي يا ديوال وي يا انسان يا پرده وغيره.

**دويم بحث** : (۱) داهل ظواهرو په نزد مونځ كونكې باندې واجب دي چې خپل وړاندې ستره كيږدي .(۲) دجمهورو او دائمه اربعو رحمهم الله په نزد سنت ده .

**داهل ظواهرو دليل**: حديث دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ "إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَجْعَلْ تِلْقَاءَ وَجْهِهِ شَيْئًا" په دې كې امر دې او امر دوجوب لپاره دې .

**دجمهورو دليل**: دفضل بن عباس او دعبدالله بن عباس رضي الله عنهم حدث " صَلَّى فِي صَحْرَاءَ لَيْسَ بَيْنَ يَدَيْهِ سُتْرَةٌ " چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په كولاو صحرا كې بغير دسترې ايخودلو مونځ اوكړو . كه امر والا حديث لره په استحباب يا په سنتيت باندې محمول كړې شي نو احاديث تر مينځ به تطبيق اوشي .

**دريم بحث** : په اوږدوالي كې دسترې مقدار كم ازكم يو ګز دې دعائشې رضي الله عنها په مرفوع حديث كې دي : "كموخرة الرحل" او دپلن والي په متعلق راجح قول دادې چې كم ازكم دې يو ګوتې دپلن والي په اندازه وي .

**څلورم بحث**: كه دسترې لپاره يو شئ ملاو نه شي نو بيا دې څه وكړي ؟

دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث كې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد مبارك دې " فليخطط خطا " يعنې خپل مخې ته يې په زمكه باندې يوه كرخه راكاږله ، ددې حديث په بناء باندې امام احمد رَحِمَهُ اللهُ ، ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ في رواية ستره بالخط قائله دي ، ابن الهمام حنفي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې پلن والې او اوږدوالې محرابي شكل كې جوړ كړئ او دا حديث ګويا چې ضعيف دې ليكن داعمالو په فضائلو كې ضعيف حديث باندې هم عمل كولې كيږي لهذا اصل مقصود يعنې دمونځ كونكي دځانله والي لپاره دهمده مطابق عمل اولى كيدل پكار دي ، امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دخط اعتبار نه كوي ځكه چې هغه دلرې نه نه خكاري او دسترې چې كومه فائده ده يعنې دسجدې دځاي نه ممتاز كيدل هغه ددې نه نه حاصليږي ، او كوم حديث چې پيش كړې شو په هغې كې يو راوي مجهول دې .(الدر المنضود ورد المختار)

**پنځم بحث** : دمونځ کونکي وړاندې دتیرودونکي لره دلاس په اشارې سره منع کول یا سبحان الله ویل دائمه ثلاثو په نزد مستحب دي او دائمه احناف رحمه الله په نزد دمنع کولو دادواړه طریقې جائز دي لیکن پخپل مونځ کې مشغولیدل بهتر دي .(البحر الرائق: ۱۸/۲)

**شپږم بحث** : دمونځ کونکي وړاندې تیریدل آیا قاطع صلاة دې یا نه؟

(۱) داهل ظواهرو په نزد ښځه، خر، او دسپي دمونځ کونکي مخې ته تیریدل قاطع صلاة دي .

(۲) دامام احمد رحمه الله په نزد صرف دسپي دمونځ کونکي مخې ته تیریدل قاطع صلاة دي کوم یو بل خناور تیریدل قاطع نه دي، البته فرمایي: " وفي قلبي من الحمار والمرأة شئ" .

(۳) دجمهورو علماء او دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد دیوڅا دمونځ کونکي په وړاندې تیریدل قاطع صلاة نه دي .

**داهل ظواهرو دلیل** : حدیث دانس رضي الله عنه : "يَقْطَعُ الصَّلَاةَ الكَلْبُ وَالحِمَارُ وَالمَرْأَةُ" .

**دامام احمد رحمه الله دلیل** : دانس رضي الله عنه حدیث البته "باب الوضوء بمس المرأة" کې دعائشه رضي الله عنها مذکور حدیث " كَانَ رسول الله صلى الله عليه وسلم لَيُصَلِّي وَإِنِّي لَمُعْتَرِضَةٌ بَيْنَ يَدَيْه اِعْتِرَاضَ الجَنَازَةِ" نه دښځې ،او دباب حدیث فضل ابن عباس رضي الله عنه " صَلَّى فِي صَحْرَاء لَيْسَ بَيْنَ يَدَيه سُتْرَةٌ وَ حِمَارَةٌ لَنَا وَكَلْبَةٌ تَعبثَانِ بَيْنَ يَدَيه فَمَا بَالي بِذٰلِكَ " نه دخر استثناء کیږي .

**دجمهور ائمه ثلاثه دلیل** : څو حدیثونه مثلا " لاَ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ شَيْء مِمَّا يَمُرُّ بَيْنَ يَدَي المُصَلِّي" دا حدیث مرفوعا او موقوفا په دواړو طرقو سره مروي دې .

**اهل ظواهرو او امام احمد رحمه الله ته جواب :**

۱... دمذکوره شیئرنه دمونځ دماتیدو حکم منسوخ شوې کوم باندې چې دلیل هغه حدیثونه دي کوم کې چې دڅه شي نه دمونځ نه ماتیدو حکم دې و دحضور صلى الله عليه وسلم نه پس جلیل القدر صحابه کرامو رضي الله عنهم هم ددې خبرې فتوی ورکړه ، پخپله امام احمد رحمه الله هم دښځې او دخر استثناء کوي او سابقه حدیث لره ددې دواړو په حق کې منسوخ ګرځوي .

۲... یا د "قطع" نه خشوع او خضوع او داطمینان قطع مراد واخیستې شي ، دڅه شان ددواړو قسمه په حدیثونو کې تطبیق کیږي .

**اووم بحث** : دباب داحادیثو نه ثابته شوه چې دمونځ کونکي په وړاندې تیریدل دکوم دوجې نه چې دده په مونځ کې خلل او بې اطمیناني راشي یا په خشوع او خضوع کې فرق راشي دیره لویه ګناه

او مکروه تحریمي دي خو بیا هم داسي نه ده چې دتیریدو یو صورت دې جائز نه وي ، بلکې چې کله اصل علت یعنې قطع خشوع نه وي نو تیریدل به جائز وي دفقهاؤ نه په دې سلسله کې دري اقواله منقول دي :

(۱) خشوع او خضوع والا مونځ کې په حالت دولاړې ترکوم ځاي پورې چې دمونځ کونکي نظر رسیږي دهغې نه وړاندې تیریدل جائز دي .

(۲) ددري صفه په پريخودو کې تیریدل جائز دي .(۳) ځاي دسجدې نه یو طرفته تیریدل جائز دي .

داتفصیل یو لوي جومات سره متعلق دې ، که جومات شپیته یا څلویښت یا ددېنه په کمه رقبه باندې وي نو پوره جمات د مکان واحد په حکم کې دې ، او دمونځ کونکي په وړاندې تیریدل مطلقا جائز نه دي .(رد المحتار ، والدر المختار).

# بَابُ الْمَسَاجِدِ

## د جماتونو (مسجدونو) باب

{۲۸۹} عَنْ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ بَنَى مَسْجِدًا لِلّٰهِ بَنَى اللهُ لَه بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه ویلي دي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چې فرمائل یې څوک چې د الله د رضا د پاره مسجد او جمات جوړ کړي الله به د ده د پاره په جنت کې کور جوړ کړي . د دې حدیث روایت شیخینو (بخاري او مسلم) کړي دي .

{۲۹۰} وعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَاةُ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ تُضَعَّفُ عَلَى صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَفِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ ضِعْفًا وَذٰلِكَ أَنَّهُ إِذَا تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوءَ ثُمَّ خَرَجَ إِلَى الْمَسْجِدِ لَا يُخْرِجُهُ إِلَّا الصَّلَاةُ لَمْ يَخْطُ خُطْوَةً إِلَّا رُفِعَتْ لَهُ بِهَا دَرَجَةٌ وَحُطَّ بِهَا خَطِيئَةٌ فَإِذَا صَلّٰى لَمْ تَزَلِ الْمَلَائِكَةُ تُصَلِّي عَلَيْهِ مَادَامَ فِي مُصَلَّاهُ اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ اَللّٰهُمَّ ارْحَمْهُ وَلَا يَزَالُ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاةٍ مَا انْتَظَرَ الصَّلَاةَ رواه الشيخان .[2]

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۰۱ باب فضل بناء المساجد .... الخ ، بخاري کتاب الصلوة ج۱ص ۶۴ باب من بنی مسجداً .

(۲) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۸۹ باب فضل صلوة الجماعة ، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۳۲ باب فضل الصلوة المکتوبة جماعة .

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي په جمع سره د سړي مونځ كول په هغه مانځه باندي چې په كور او يا بازار كې يې وكړي پنځه ويشت درجې زيات ثواب لري او دا په هغه وخت كې كيدي شي چې هغه په ښه طريقې سره ښه اودس وكړي بيا مسجد ته راووځي د مانځه نه په غير دا كوم بل يو شي نه وي راويستلي هغه يو قدم نه اخلي مگر په هغې سره د ده د پاره يوه درجه اوچتيږي او يو يې گناه معاف كيږي نو كله چې مونځ وكړي نو ملائكې د ده د پاره : رحمت دعاگاني كوي تر څو پوري چې هغه د مانځه په ځاي كې وي، فرشتي او ملائكې وايي اى الله په ده باند رحمت وليږي او په ده باندي رحم وكړي مسلسل به يو ستاسي په مانځه كې وي تر څو پوري چې د مانځه په انتظار كې وي. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

{۲۹۱} وَ عَنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَحَبُّ الْبِلاَدِ إِلَى الله مَسَاجِدُهَا وَ اَبْغَضُ الْبِلاَدِ أَسوَاقُهَا .رواه مسلم .[1]

**ترجمه** :او د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت دي چې رسول كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي چې د ټولو نه بهتر ځايونه د الله په نزد مسجدونه او جماتونه دي . او د ټولو نه ناكاره ځايونه بازارونه دي . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

{۲۹۲} وَ عَنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلاَةٌ فِي مَسْجِدِي هٰذَا خَيرٌ مِن أَلفِ صَلاَةٍ فِيمَا سِوَاهُ إِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامِ رواه الشيخان .[2]

**ترجمه**:او د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي : ځما په دي مسجد كې يو مونځ زر چنده د نورو مسجدونو نه بهتر دي په غير د مسجد حرم نه . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

{۲۹۳} و عن اَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ أُجُورُ أُمَّتِي حتى الْقَذَاةُ يخرِجُهَا الرَّجُلُ مِنَ الْمَسْجِدِ رواه ابوداود و آخرون و صححه ابن خزيمة .[3]

**ترجمه** : حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې ماته ځما د امت

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۳۴ باب فضل الجلوس في مصلاه ...الخ .

(۲) مسلم كتاب الحج ج۱ص ۴۴۷ باب فضل الصلوة بمسجدي مكة والمدينة ، بخاري كتاب التهجد والتطوع ج۱ص۱۵۹ باب فضل الصلوة في مسجد مكة ...الخ .

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۶۶ باب كنس المسجد .

ثوابونه پيش کولي شي تر دي پوري چې يو کس د مسجد نه وکې او خلخکي لري کړي . د دي حديث روايت ابوداؤد او اخرنو کړي دي او ابن خزيمه دا صحيح گڼرلي دي .

{۲۹۴} وعنه قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْبُزَاقُ فِي الْمَسْجِدِ خَطِيئَةٌ وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا رواه الشيخان(۱)

**ترجمه** : او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي په مسجد کې لاړي توکل گناه ده او د گناه کفاره د هغې توکانړ ښخول دي . د دي روايت شيخينو يعني امام بخاري او امام مسلم کړي دي .

{۲۹۵} وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ الْمُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرِبَنَّ مَسْجِدَنَا فَإِنَّ الْمَلَائِكَةَ تَتَأَذَّى مِمَّا يَتَأَذَّى مِنْهُ الْإِنْسُ رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي څوک چې د دغي بدبويه وني نه خوراک وکړي نو زمونږ مسجد او جومات ته دي نه رانزدي کيږي بي شکه ملائکي د هغه څه نه تکليف اوچتوي د کوم شئ نه چې انسان تکليف اوچتوي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

{۲۹۶} وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَبِيعُ أَوْ يَبْتَاعُ فِي الْمَسْجِدِ فَقُولُوا لَا أَرْبَحَ اللهُ تِجَارَتَكَ رواه النسائي والترمذي و حسنه . (۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي کله چې تاسي وګورئ چې يو سړي په مسجد کې اخستل او خرخول کوي نو ورته ووايي چې الله دي تاته په تجارت کې ګټه نه درکوي . د دي حديث روايت نسائي او ترمذي کړي او حسن يې ګڼرلي دي .

{۲۹۷} عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوُجُوهُ بُيُوتِ أَصْحَابِهِ شَارِعَةٌ فِي الْمَسْجِدِ فَقَالَ وَجِّهُوا هٰذِهِ الْبُيُوتَ عَنِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَصْنَعِ الْقَوْمُ شَيْئًا رَجَاءَ أَنْ يَنْزِلَ فِيهِمْ رُخْصَةٌ فَخَرَجَ إِلَيْهِمْ فَقَالَ وَجِّهُوا هٰذِهِ الْبُيُوتَ عَنِ الْمَسْجِدِ فَإِنِّي لَا أُحِلُّ الْمَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا لِجُنُبٍ رواه ابوداود و اسناده حسن .(۴)

---

(۱) بخاري کتاب الصلوة ج۱ص۵۹ باب کفارة البزاق في المسجد، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۰۷ باب النهي عن البصاق في المسجد .

(۲) مسلم کتاب المساجدج۱ص ۲۰۹ باب نهي من اکل ثوما وبصلاً ....، بخاري کتاب المساجد ج۱ص ۱۱۸ باب ماجاء في الثوم والنيء...

(۳) ترمذي کتاب البيوع ج۱ص ۲۴۷ باب النهي عن البيع في المسجد ، دارمي کتاب الصلوة ص ۱۷۰ باب النهي عن استنشاد الضالة في المسجد ...الخ عمل اليوم والليلة للنسائي مع ترجمه نبوي ليل ونهار ص ۱۲۸ برقم ۱۷۶.

(۴) ابوداؤد کتاب الطهارة ج ۱ص ۳۰ باب في الجنب يدخل المسجد .

نوابونه پیش کولي شي تر دي پوري چې یو کس د مسجد نه ؤکې او خلځکي لري کړي . د دي حدیث روایت ابوداؤد او اخرنو کړي دي او ابن خزیمه دا صحیح ګنړلي دي .

{۲۹۴} وعنه قَالَ قَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ البُزَاقُ فِي المَسْجِدِ خَطِيئَةٌ وَكَفَّارَتُهَا دَفْنُهَا رواه الشيخان(۱)

**ترجمه** : او د حضرت انس رضي الله عنه روایت دي هغه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي په مسجد کې لاړي توکل ګناه ده او د ګناه کفاره د هغې توکانړ ښخول دي . د دي روایت شیخینو یعني امام بخاري او امام مسلم کړي دي .

{۲۹۵} وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ اَكَلَ مِنْ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ المُنْتِنَةِ فَلَا يَقْرَبَنَّ مَسْجِدَنَا فَاِنَّ المَلَائِكَةَ تَتَأَذّٰي مِمَّا يَتَأَذّٰي مِنْهُ الاِنْسُ رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه ویلي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي څوک چې د دغي بدبویه ونې نه خوراک وکړي نو زمونږ مسجد او جومات ته دي نه رانزدي کیږي بې شکه ملائکې د هغه څه نه تکلیف اوچتوي د کوم شئ نه چې انسان تکلیف اوچتوي . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي .

{۲۹۶} وَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا رَأَيْتُمْ مَنْ يَبِيعُ اَوْ يَبْتَاعُ فِي المَسْجِدِ فَقُولُوا لَا اَرْبَحَ اللهُ تِجَارَتَكَ رواه النسائي والترمذي و حسنه . (۳)

**ترجمه** : د حضرت ابي هریره رضي الله عنه روایت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې تاسي وګورئ چې یو سړي په مسجد کې اخستل او خرڅول کوي نو ورته ووایئ چې الله دي تاته په تجارت کې ګټه نه درکوي . د دي حدیث روایت نسائي او ترمذي کړي او حسن يې ګنړلي دي .

{۲۹۷} عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ جَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَوُجُوهُ بُيُوتِ اَصْحَابِهِ شَارِعَةٌ فِي المَسْجِدِ فَقَالَ وَجِّهُوا هٰذِهِ البُيُوتَ عَنِ المَسْجِدِ ثُمَّ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَلَمْ يَصْنَعِ القَوْمُ شَيْئًا رَجَاءَ اَنْ يَنْزِلَ فِيهِمْ رُخْصَةٌ فَخَرَجَ اِلَيْهِمْ فَقَالَ وَجِّهُوا هٰذِهِ البُيُوتَ عَنِ المَسْجِدِ فَاِنِّي لَا اُحِلُّ المَسْجِدَ لِحَائِضٍ وَلَا لِجُنُبٍ رواه ابوداود و اسناده حسن .(۴)

---

(۱) بخاري كتاب الصلوة ج۱ص۵۹ باب كفارة البزاق في المسجد، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۷ باب النهي عن البصاق في المسجد .
(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۹ باب نهي من اكل ثوما وبصلاً ...، بخاري كتاب المساجد ج۱ص ۱۱۸ باب ماجاء في الثوم والنيء...
(۳) ترمذي كتاب البيوع ج۱ص ۲۴۷ باب النهي عن البيع في المسجد ، دارمي كتاب الصلوة ص ۱۷۰ باب النهي عن استنشاد الضالة في المسجد ...الخ عمل اليوم والليلة للنسائي مع ترجمة نوي ليل ونهار ص ۱۲۸ برقم ۱۷۴.
(۴) ابوداؤد كتاب الطهارة ج ۱ص ۳۰ باب في الجنب يدخل المسجد .

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف راوړو او د صحابه كرامو د كورونو دروازي مسجد طرف ته پرانستي وي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې د دي كورونو دروازي د مسجد نه واړوئ بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم رانووتو او خلكو تراوسه پوري هيڅ نه ؤ كړي په دي اميد باندي چې په دي باره كې به څه رخصت نازل شي نبي كريم صلى الله عليه وسلم د دوي طرف ته راوواته نو وي فرمائل چې د دي كورونو دروازي د مسجد نه واړوئ بې شكه چې زه د حائضي ښځي او د جنب د پاره مسجد حلال نه ګڼړم . د دي حديث روايت ابوداؤد كړي دي او اسناد يې حسن دي .

{۲۹۸} وَ عَنْ اَبِي حُمَيدٍ رضي الله عنه اَو اَبِي أُسَيدٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ افْتَحْ لِي اَبْوَابَ رَحْمَتِكَ وَ اِذَا خَرَجَ فَلْيَقُلْ اَللّٰهُمَّ اِنِّي اَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** :دابي حُميد رضي الله عنه او يا د ابي اُسيد رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي : كله چې يو ستاسي مسجد ته داخل شي نو اللهم افتح لي ابواب رحمتك، دعا دي ووايي او كله چې د جمات نه وځي نو ( اللهم اني اسئلك من فضلك ) دعا دي ووايي . د دي حديث روايت مسلم كړي دي يعني اي الله ستا د رحمت دروازي ماته كلاؤ او پرانيزه . اي الله بې شكه زه ستا نه ستا فضل غوارم .

{۲۹۹} وَ عَنْ اَبِي قَتَادَةَ السُّلَمِي رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ اِذَا دَخَلَ اَحَدُكُمُ الْمَسْجِدَ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ رواه الشيخان .[2]

**ترجمه** : حضرت ابوقتاده السلمي رضي الله عنه ويلي دي چې په تحقيق رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي كله چې يو ستاسي مسجد ته ننوځي نو دوه ركعته مونځ دي وكړي . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ...الخ ج۱ص ۲۴۸ باب ما يقول اذا دخل المسجد .

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۸ باب استحباب تحية المسجد ...الخ بخاري كتاب الصلوة ج۱ص ۶۳ باب اذا دخل احدكم المسجد ...الخ .

(۳۰۰) وَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ رَجُلٌ بَعْدَ مَا اَذَّنَ الْمُؤَذِّنُ فَقَالَ اَمَّا هٰذَا فَقَدْ عَصٰى اَبَا الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَالَ اَمَرَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ فَلَا يَخْرُجْ اَحَدُكُمْ حَتّٰى يُصَلِّيَ رواه احمد و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح .[1]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې يو سړي د مسجد نه د مؤذن د اذان نه روسته واته نو ابوهريره رضي الله عنه وويل چې دې سړي د ابو القاسم صلى الله عليه وسلم نافرماني وکړه بيا يې وويل چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم کړي چې کله تاسي په مسجد کې ياست او د مانځه اذان وشي تر هغې پورې دې د مسجد نه يو ستاسي نه وځي چې تر څو پورې يې مونځ نه وي کړي. د دې حديث روايت احمد کړي او هيثمي رحمه الله ويلي دي چې د دې رجال د صحيح رجال دي.

**مسئلة الباب**: جومات د شعائر الله نه دې د دې د خه احترام کولو حکم کړې شوې دې، د باب په حديثونو کې د جومات د يو څو آدابو بيان دې.

**قوله** "اِذَا كُنْتُمْ فِي الْمَسْجِدِ فَنُوْدِيَ بِالصَّلٰوةِ" د ابن ماجه په يو روايت کې د اذان نه پس د جومات نه وتونکي ته "منافق" ويلې شوې دی مګر په همدې روايت کې دا تصريح هم ده چې "چې دا سي کس د څه ضرورت نه بغير وتلې وي او په جومات کې د واپس راتللو اراده هم نه وي" بيا خو به هغه د وعيد مستحق نه وي ورنه وي به، په دې خبره باندې د ټولو اتفاق دې چې بغير د جومات نه پس د اذان نه بهر ته وتل مکروه دي البته د عذر په تفصيل کې څه اختلاف دې، د احنافو په نزد که يو کس په بل جومات کې د امامت يا د اذان يا د نظم جمات ذمه دار وي يا خپل مونځ يې له مخکې کړې وي، يا څه ضروري کار ورته راپيښ شوې وي او په يو بل ځاي کې د جومات ملاويدو اميد يې وي نو ده لپاره خروج بعد الاذان جائز دې.

---

(۱) مسند احمد ج۲صـ ۲۳۷ ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صـ ۵ باب فيمن خرج من المسجد بعد الاذان .

# بَابُ خُرُوجِ النِّسَاءِ إِلَى الْمَسَاجِدِ

## جماتونو ته د ښځو د وتلو باب :

{۳۰۱} عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا اسْتَأْذَنَكُمْ نِسَائُكُمْ بِاللَّيْلِ إِلَى الْمَسَاجِدِ فَأْذَنُوا لَهُنَّ رواه الجماعة الا ابن ماجه. (۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي کله چې ستاسې نه ستاسې ښځې د شپې مسجد ته د مانځه د پاره د تلو اجازت وغواړي نو هغوته اجازت ورکړئ. دا حدیث جماعت روایت کړي دي مګر خو ابن ماجه يې روایت نه دي کړي.

{۳۰۲} وَ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللهِ مَسَاجِدَ اللهِ وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٌ رواه احمد و ابوداود و ابن خزيمة و اسناده حسن. (۲)

**ترجمه** : د حضرت ابو هريره رضي الله عنه روایت دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چې د الله تعالی بندګاني د الله تعالی د مسجدونو نه مه منع کوئ هغوي دي د زينت او سينګار نه په غیر وځي. د دي حدیث روایت احمد رحمه الله ابو داؤد او ابن خزيمه کړي دي او اسناد يې حسن دي.

{۳۰۳} وَ عَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَمْنَعُوا إِمَاءَ اللهِ الْمَسَاجِدَ وَلْيَخْرُجْنَ تَفِلَاتٍ رواه احمد والبزار والطبراني و قال الهيثمي اسناده حسن. (۳)

**ترجمه** : د زيد بن خالد جهني رضي الله عنه نه روایت دي ويلي يې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي د الله بنده ګاني ښځې د الله تعالی د مسجدونو نه مه منع کوئ دوي دې په غير د زينت او سينګار وځي د دې حدیث روایت احمد، بزار، طبراني کړي دي او هيثمي ويلي دي چې اسناد يې حسن دي.

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ ۱۱۹ باب خروج النساء الى المساجد ...الخ ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۸۳ باب خروج النساء الى المساجد اذا لم يترتب عليه فتنة...الخ نسائي كتاب المساجد ج۱ صـ ۱۱۵ باب النهي عن منع النساء...الخ . ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۸۴ باب ماجاء في خروج النساء الى المسجد . ترمذي ابواب السفر ج۱ صـ ۱۲۷ باب في خروج النساء الى المساجد ، مسند احمد ج۲ صـ ۱۴۳.

(۲) مسند احمد ج۲ صـ ۴۳۸، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۸۴ باب ماجاء في خروج النساء الى المسجد، ابن خزيمة جماع ابواب صلوة النساء في الجماعة ج۳ صـ ۹۰ رقم الحديث ۱۶۷۹.

(۳) مسند احمد ج ۵ صـ ۱۹۲، كشف الاستار كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۲۲، رقم ۴۴۵ ، المعجم الكبير للطبراني ج ۵ صـ ۲۴۸ رقم ۵۲۳۹ ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج ۲ صـ ۳۲ باب خروج النساء الى المساجد ...الخ .

{۳۰۴} وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ لَوْ أَدْرَكَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحْدَثَ النِّسَاءُ لَمَنَعَهُنَّ الْمَسْجِدَ كَمَا مُنِعَتْ نِسَاءُ بَنِي إِسْرَائِيلَ اخرجه الشيخان.(۱)

**ترجمه:** حضرت عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې که چرته نبي علیه السلام د ښځو او سني حالت لیدلی او موندلی وی چې اوس ښځې مسجدونو ته په څومره زینت راځي نو خامخا به یې د مسجدنه منع کړي وې لکه څنګه چې د بني اسرائیلو ښځې منع کړې شوي دي . د دې حدیث روایت شیخینو کړی دی.

{۳۰۵} وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّمَا امْرَأَةٍ أَصَابَتْ بَخُورًا فَلَا تَشْهَدْ مَعَنَا الْعِشَاءَ الْآخِرَةَ رواه مسلم و ابوداود والنسائي.(۲)

**ترجمه:** د حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت دی هغه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي کومې یوې ښځې چې خوشبویي لګولې وي هغه ښځې دې د ماسختن مانځه ته زمونږ سره نه حاضرېږي. د دې حدیث روایت مسلم، ابوداؤد او نسائي کړی دی.

{۳۰۶} وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سُوَيْدٍ الْأَنْصَارِيِّ عَنْ عَمَّتِهِ أُمِّ حُمَيْدٍ امْرَأَةِ أَبِي حُمَيْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّهَا جَاءَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَتْ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُحِبُّ الصَّلَاةَ مَعَكَ قَالَ قَدْ عَلِمْتُ أَنَّكِ تُحِبِّينَ الصَّلَاةَ مَعِي وَصَلَاتُكِ فِي بَيْتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي حُجْرَتِكِ وَصَلَاتُكِ فِي حُجْرَتِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي دَارِكِ وَصَلَاتُكِ فِي دَارِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ وَصَلَاتُكِ فِي مَسْجِدِ قَوْمِكِ خَيْرٌ لَكِ مِنْ صَلَاتِكِ فِي مَسْجِدِي قَالَ فَأَمَرَتْ فَبُنِيَ لَهَا مَسْجِدٌ فِي أَقْصَى شَيْءٍ مِنْ بَيْتِهَا وَأَظْلَمِهِ فَكَانَتْ تُصَلِّي فِيهِ حَتَّى لَقِيَتِ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ رواه احمد و اسناده حسن.(۳)

**ترجمه:** د عبدالله بن سوید الانصاري رضي الله عنه نه روایت دی هغه د خپلې ترور د عمې حضرت ام حمید رضي الله عنها چې د حضرت ابو حمید الساعدي ښځه ده روایت کړي چې دا نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغله نو وې ویل چې ای د الله رسوله زما تاسره مونځ کول خوښ دي رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۱۹ باب خروج النساء الى المساجد ...الخ ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۳ باب خروج النساء الى المساجد ...الخ .

(۲) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۳ باب خروج النساء الى المساجد ...الخ ، ابوداؤد كتاب الترجل ج۲ص ۲۱۹ باب في طيب المرأة للخروج ، نسائي كتاب الزينة ج۲ص ۲۸۲ باب النهي للمرأة ان تشهد الصلوة ...الخ .

(۳) مسند احمد ج ۶ ص ۳۷۱ .

و فرمائل بې شکه زه پوه يم چې ستا ماسره مونځ کول خوښ دي او ستا مونځ ستا د پاره ستا په کوټه کې بهتر دي د مانځه ستا نه په حجره او بيټهک ستا کې او مونځ ستا په حجره ستا کې بهتر دي د مانځه ستا نه په کور ستا کې او مونځ په کور ستا کې بهتر دي د مانځه ستا نه زما په مسجد کې عبدالله بن سويد الانصاري ويلي دي چې هغې حکم وکړو نو د دې د پاره د ښېلي کوټې په اخري تياره برخه کې مسجد جوړ کړې شو نو هغې به په دغه مسجد کې تر هغې پورې مونځ کاوه تر څو پورې چې دالله سره ملاقي شوه د دې حديث روايت احمد کړي او اسناد يې حسن دي.

{۲۰۷} وَ عَنِ ابنِ مَسعُودٍ رضي الله عنه قَالَ مَا صَلَّتِ امرَأَةٌ خَيرٌ لَّهَا مِن قَعرِ بَيتِهَا اِلَّا اَن يَّكُونَ المَسجِدُ الحَرَامُ اَو مَسجِدُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِلَّا اِمرَأَةٌ تَخرُجُ فِي مَنقَلِيهَا يَعنِي خُفَّيهَا رواه الطبراني في الكبير و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت ابن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې هيڅ يوې ښځې مونځ نه دې کړې چې د هغې د پاره د کور په پټ ځاى کې د مونځ کولو نه بهتر وي مګر چې په مسجد حرم کې وي او يا په نبوي مسجد کې وي مګر هغه ښځه چې د څرمنې په موزو کې راوځي ددې حديث روايت طبراني په کبير کې کړې او هيثمي رحمه الله ويلي دي چې د دې رجال د صحيح رجال دي.

{۲۰۸} وَ عَنه قَالَ كَانَ الرِّجَالُ وَالنِّسَاءُ مِن بَنِي اِسرَائِيلَ يُصَلُّونَ فَكَانَتِ المَرأَةُ اِذَا كَانَ لَهَا خَلِيلٌ تَلبَسُ القَالِبَينِ تَطُولُ بِهِمَا لِخَلِيلِهَا فَاَلقَى اللهُ عَزَّ وَ جَلَّ عَلَيهِنَّ الحَيضَ فَكَانَ ابنُ مَسعُودٍ يَقُولُ اَخِّرُوهُنَّ مِن حَيثُ اَخَّرَهُنَّ اللهُ قُلنَا مَا القَالِبَينِ قَالَ رَفِيطَتَينِ مِن خَشَبٍ رواه الطبراني في الكبير و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح.[2]

**ترجمه**: او د ابن مسعود رضي الله عنه روايت دي هغه ويلي دي چې د بني اسرائيلو ښځو او سړو به يو ځاى په جمع مونځ کاوه د کومې ښځې به چې کوم دوست وُ نو هغې ښځې به قالبين په خپو کول چې په دې وجه خپل دوست ته په اوږدوالي ورسيږي نو الله تعالى په هغو باندې د حيض وينه جاري کړه نو ابن مسعود رضي الله عنه به ويل چې دا ښځې وباسئ د کوم ځاى نه چې الله هغه ويستلي دي مونږ وويل چې قالبين څه شي دي هغه وويل چې قالبين د لرګي نه جوړې شوې پټې دي. د دې حديث

(۱) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ صـــ ۳۳۹ رقم ۹۴۷۲، مجمع الزوائد ج۲ صـــ ۳۴ باب خروج النساء الي المساجد...الخ.
(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ صـــ ۳۴۲ رقم ۹۴۸۴، مجمع الزوائد ج۲صـــ ۳۵ باب خروج النساء الي المساجد...الخ.

روایت طبراني په کبیر کې کړي دي او هیثمي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې رجال یې د صحیح رجال دي.

{۲۰۹} وَعَنْ أَبِي عَمْرٍو الشَّيْبَانِيِّ أَنَّهُ رَأَى عَبْدَ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُخْرِجُ النِّسَاءَ مِنَ الْمَسْجِدِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَ يَقُولُ أُخْرُجْنَ إِلَى بُيُوتِكُنَّ خَيْرٌ لَكُنَّ رواه الطبراني في الكبير و قال الهيثمي رجاله موثقون .(۱)

**ترجمه** : او د عمرو بن شیبان رَحِمَهُ اللهُ نه روایت دي چې هغه عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لیدلي دي چې د جمعې په ورځ به یې د مسجد نه ښځې ویستلې او ویل به یې چې ځئ خپلو کورونو ته ځئ هغه ستاسي د پاره بهتر دي . د دې حدیث روایت په کبیر کې طبراني کړي او هیثمي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې رجال یې ثقه دي.

## د ښځو جوماتِ ته تلل څنګه دي ؟

حضرت عائشه رضي الله عنها فرمایي که چرته حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ښځو موجوده حالت ته کتلې نو دوي لره به یې د جوماتِ ته تللو نه منع فرمایلې داد خیر القرون په زمانه کې دحضرت عائشه رضي الله عنها تأثر دې ، لیکن نن سبا چې کوم حال دې دهغې اندازه هر ذي شعور کس کولې شي ، حضور اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښځو لره د جوماتِ ته تللو لپاره اجازت ورکړې وو لیکن دې سره یې داخبرداري هم ورکړې وو چې " وليخرجن تفلات" یعنې جوماتِ ته په داسې حال کې لاړ شئ چې خیرنې یئ پاکې مه ځئ یعنې دپاک والي په حالت کې مه ځئ او دا یې هم اوفرمایل چې " وبيوتهن خيرلهن " چې ستاسو لپاره هم کور بهتر او غوره دې ، په وروستو کې چې کله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اهل زمانې حالت یکدم بدل اولیدل او د ښځو دجوماتِ ته دراتللو نه دسختې فتنې خوریدو ویره پیدا شوه نو مطلقا ښځې دجوماتِ ته دتللو نه منع اوګرځیدلې ، او په صحابه کرامو کې د هیچا نکیر هم په دې باندې ثابت نه دې لیکن چې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مذکوره فیصله دلوي حکمتونو او ددفع مضرت باندې مبني وه بالکل خروج نساء الی المساجد دعدم جواز باندې نه ، نو ددې وجې فقهاء خروج نساء الی المساجد لپاره څلور لازمي شرطونه دحدیثو په رڼا کې ذکر کړي دي او هغه دادي ؛ (۱) دسړي او دښځې اختلاط دې نه وي.(۲) زینت دې اختیار نه کړي . (۳) خوشبو دې نه لګوي .(۴) دهیڅ قسمه دفتنې ویره دې نه وي .

---

(۱) المعجم الکبیر للطبراني ج ۹ ص ۳۴۰ رقم ۹۴۷۵ ، مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۱ص ۳۵ باب خروج النساء الی المساجد .

# اَبوَابُ صِفَةِ الصَّلَاةِ
## دا بابونه په صفت د مانځه کې دي

# بَابُ اِفتِتَاحِ الصَّلَاةِ بِالتَّكبِيرِ
## (باب دې په شروع کولو د مانځه کې په تکبير سره)

{۲۱۰} عَن اَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ النَّبِي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا قُمتَ اِلَى الصَّلَاةِ فَاَسبِغِ الوُضُوءَ ثُمَّ استَقبِلِ القِبلَةَ فَكَبِّر رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت ابي هريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي کله چې د مانځه اراده وکړې نو په ښه شان سره مکمل اودس وکړه بيا قبلې طرف ته مخ کړه او تکبير وکړه. دغه حديث شيخينو روايت کړې.

{۲۱۱} وَ عَن عَلِيٍّ بنِ اَبِي طَالِب رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَنَّه قَالَ مِفتَاحُ الصَّلَاةِ الطُّهورُ وَ تَحرِيمُهَا التَّكبِيرُ وَتَحلِيلُهَا التَّسلِيمُ رواه الخمسة الا النسائي وفي اسناده لين.[2]

**ترجمه** : د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه روايت دې چې بې شکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې د مانځه کونجي او چابي اودس دې او حراموالې يې تکبير دې او حلالوالې يې سلام دې. د دې حديث روايت د نسائي نه په غير پنځو محدثينو کړې دې او د دې په اسناد کې کمزوري ده.

{۲۱۲} وَ عَن اَبِي حُمَيدٍ نِ السَّاعِدِي رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَامَ اِلَى الصَّلَاةِ اِستَقبَلَ القِبلَةَ وَرَفَعَ يَدَيهِ وَقَالَ اَللّٰهُ اَكبَر رواه ابن ماجه واسناده حسن.[3]

**ترجمه** : ابي حُميد الساعدي رضي الله عنه ويلي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته ودريده

---

(۱) بخاري كتاب الاستئذان ج ۲ صــ ۹۲۴ باب من رد فقال عليک السلام ، مسلم كتاب الصلوة ج۱صــ ۱۷۰ ، باب وجوب القراءة الفاتحة في كل ركعة .....الخ .

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج ۱صــ ۵۵ باب ماجاء في تحريم الصلوة وتحليلها ، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱صــ ۹ باب فرض الوضوء ، ابن ماجة كتاب الطهارة صــ ۲۴ باب مفتاح الصلوة الطهور ، مسند احمد ج۱صــ ۱۲۳

(۳) ابن ماجة كتاب الصلوة ج ۱صــ ۵۸ باب افتتاح الصلوة .

قبلې طرف ته به يې مخ کړ او لاسونه به يې اوچت کړل او الله اکبر به يې وو ايه . د دې حديث روايت ابن ماجه کړې دې او اسناد يې حسن دې .

{۲۱۲} وَعَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مِفْتَاحُ الصَّلَاةِ اَلتَّكْبِيرُ وَانْقِضَائُهَا اَلتَّسْلِيمُ رواه ابونعيم في كتاب الصلاة و قال الحافظ في التلخيص و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** :د حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دې هغه وېلي دي چې د مانځه کونجي تکبير دې او د مانځه پوره والي په سلام کرځولو سره کيږي . ابو نُعيم په کتاب الصلوٰة کې د دې حديث روايت کړې دې او حافظ په تلخيص کې وېلي دي چې اسناد يې صحيح دې .

**دتکبير تحريمي الفاظ** : دمونځ په شروع کې تکبير تحريمه بالاتفاق فرض دې البته دتکبير تحريمي په الفاظو کې دائمو اختلاف دې :

(۱) ائمه ثلاثه رَحِمَهُ اللهُ او امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ دتکبير صيغې لره فرض کرځوي ، ددوي په نزد يو بله صيغه چې په تعظيم باندې دلالت کوي " دتکبير قائمقام نه دې بيا دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد خاص " الله اکبر " وېل ضروري دي ، دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد د " الله الاکبر " کنجائش هم شته او دامام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد " الله الکبير " هم جائز دې .

(۲) دامام ابوحنيفه او دامام محمد رحمهم الله په نزد درب په تعظيم باندې ددلالت کولو والا يو لفظ هم کافي دې مثلا : الله أجل، الله أعظم . البته خاص " الله اکبر " وېل واجب دي ددې په پريخودلو سره اعاده دصلاة لازميږي .

## ائمه ثلاثه او دامام ابويوسف رحمهم الله دليل:

**۱. د حضرت علي رضي الله عنه حديث : "تحريمها التکبير" په لفظ تکبير کې حصر دې**

۲. دحضرت عبدالله رضي الله عنه حديث " مفتاح الصلاة التکبير " په لفظ تکبير کې حصر دې .

## دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او دامام محمد رَحِمَهُ اللهُ دليل:

آيت قرآني " وذکراسم ربه فصلى " په دې کې عموم دې مطلق اسم درب نه دمونځ شروع کيدلو ذکر دې دتکبير دصيغې خصوصيت نشته.

---

(۱) تلخيص الحبير ج۱ص ۲۱۶ باب صفة الصلوة نقلاً عن ابي نعيم في كتاب الصلوة .

**ائمه ثلاثه رحمهم الله او امام ابو یوسف رحمه الله ته جواب :**
په حدیث کې چې د تکبیر د صیغې کوم تخصیص کړې شوې دی هغه د خبر واحد کیدو په بناء باندې قطعي الثبوت نه دې ، لهذا د دېنه خو به فرضیت ثابت نه وي ، البته وجوب ترې ضرور ثابتیږي .

**فائده** : د صفة الصلاة په ضمن کړ داخبره یاد ساتل پکار دي چې د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد د فرض او سنت په مینځ کې د ماموراتو هیڅ درجه "واجب" وغیره نه ده ، چنانچې هغه حضرات د خبرواحد نه هم فرضیت ثابتوي او د احنافو په نزد دلته د فرض دوه قسمونه دي :
(۱) فرض اعتقادي د کوم ثبوت چې نص قطعي ته محتاج دې .
فرض عملي د کوم ثبوت چې نص ظني او د خبرواحد نه هم کیږي او د همدې فرض عملي دویم نوم د دوي په نزد "واجب" دي .

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ تَكْبِيرَةِ الْإِحْرَامِ وَبَيَانُ مَوَاضِعِهِ

**د تکبیر تحریمې په وخت د لاسونو د پورته کولو او د تکبیر د مواضعو د بیان باب :**

{۲۱۴} عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ شروع کاوه دواړه لاسونه به یې د اوږو په برابرئ اوچتول . د دې حدیث روایت شیخینو کړي دي .

{۲۱۵} وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ أَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ الْمَكْتُوبَةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِلَى آخِرِ الْحَدِيثِ رواه الخمسة و صححه احمد والترمذي.[2]

**ترجمه** : د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه نه روایت دي چې کله به رسول الله صلی الله علیه وسلم فرض مانځه ته ودریده تکبیر به یې وایه او دواړه لاسونه به یې د اوږو په برابرئ اوچتول ، د حدیث تر اخره پوري . د دې حدیث روایت پنځو محدثینو کړي دي او احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله صحیح

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۲ ۱۰ باب رفع اليدين في التكبيرة الافتتاح ،مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۶۸باب، استحباب رفع اليدين ....
(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج ۱ص ۱۱۰ باب ما يستفتح به الصلوة ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۶۲ باب رفع اليدين اذا رفع رأسه من الركوع ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۴۰ باب رفع اليدين حذوا لمنكبين ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۵۹ باب رفع اليدين عند الركوع ، مسند احمد ج۱ص ۹۳ .

ګڼلي دي.

{۲۱۶} وَ عَن أَبِي حُمَيدِ السَّاعِدِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيه حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا مَنكِبَيه الحديث اخرجه الخمسة الا النسائي و صححه الترمذي.[1]

**ترجمه** : حضرت ابي حُميد الساعدي رضي الله عنه ويلي دي کله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته اودريده دواړه لاسونه به يې د اوږو په برابرئ اوچتول. د حديث تر اخره پورې. د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي خو ولې نسائي نه دي کړي او ترمذي صحيح ګڼلي دي.

{۲۱۷} وَ عَن أَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيه مَدًّا رواه الخمسة الا ابن ماجه و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رضي الله عنه ويلي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته اودريده دواړه لاسونه به يې پورته اوچتول، د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي خو ولې ابن ماجه نه دي کړي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۱۸} وَ عَن مَالِكِ بنِ الحُوَيرِثِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا كَبَّرَ رَفَعَ يَدَيه حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا أُذُنَيه و في رواية حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيه رواه مسلم.[3]

**ترجمه** : د حضرت مالک بن حوريث نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به کله تکبير وکړو دواړه لاسونه به يې اوچت کړل تر دي پورې چې دواړه لاسونه به يې د غوږونو سره برابر کړل او په يو بل روايت کې راغلي دي چې دواړه لاسونه به يې د غوږونو د پورتنئ برخې نه اوچت کړل. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

{۲۱۹} وَ عَن وَائِلِ بنِ حَجَرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيهِ حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَصَفَ هَمَّامٌ حِيَالَ أُذُنَيه رواه مسلم.[4]

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۰۴ باب افتتاح الصلوة ، ترمذي ابواب الصلوة ج ۱ص ۵۹ باب رفع اليدين عند الركوع ، ابن ماجه كتاب الصلوة ج۱ص ۶۲ باب رفع اليدين اذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع ، مسند احمد ج۵ ص ۴۲۴.

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۵۶ باب في نشر الاصابع ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۰ باب من لم يذكر الرفع عند الركوع ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۴۱ باب رفع اليدين مدًّا ، مسند احمد ج۲ ص ۳۷۵.

(۳) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۸ باب استحباب الرفع اليدين حذو المنكبين ...الخ.

(۴) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۳.

**ترجمه** : د حضرت وائل ابن حُجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي دي چې ده نبي عليه السلام ليدلي دي چې کله به هغه په مانځه کې داخل شو نو دواړه لاسونه به يې اوچت کړل تکبير به يې وو ايه.
همام بيان کړي دي چې د دواړو غوږونو په برابر.

{۲۲۰} وَعَنه قَالَ رَأَيتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يَدَيهِ حِيَالَ أُذُنَيهِ قَالَ ثُمَّ أَتَيتُهُم فَرَأَيتُهُم يَرفَعُونَ أَيدِيهِم إِلَى صُدُورِهِم فِي اِفتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَ عَلَيهِم بَرَانِسُ وَ أَكسِيَة رواه ابوداود و آخرون و اسناده حسن.[1]

**ترجمه** :د حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې کله رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ شروع کړ ما هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وليد چې دواړه لاسونه يې د غوږونو په برابرئ اوچت کړل هغه ويلي دي چې زه بيا هغو ته راغلم نو ما وليدل چې هغو د مانځه په شروع کې دواړه لاسونه تر سينو پورې په داسې حال کې اوچت کړل چې په هغو باندې اوږدې ټوپې خولئ او څادرونه وُ . د دې حديث روايت ابو داؤد رَحِمَهُ اللهُ او نورو (آخرون) کړي دي او اسناد يې حسن دي.

## دتکبير تحريمې مسائل

**اولنۍ مسئله** : دتکبير تحريمې په وخت دلاس اوچتولو حکم څه دې ؟

دائمه اربعو رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد سنت او دابن حزم ظاهري رَحِمَهُ اللهُ او د امام اوزاعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد فرض دي.

**دويمه مسئله** : دتکبير تحريمې لپاره به لاس کله اوچتولې شي ؟

دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد دتکبير سره سره لاس هم اوچتيدل پکار دي ليکن داحنافو په نزد درې روايته دي : (۱) صاحب دبدائع او محيط مقارنت (دې سره سره اوچتول) لره غوره کړې دې .(۲) په هدايه کې اول لاسونه اوچتول مذکور دي.(۳) دبعضو په نزد اول دې تکبير اووايي بيا دې لاس اوچت کړي دهدايه والا قول ډير بهتر دې .(رد المحتار: ۱/ ۴۸۲)

**دريمه مسئله** :لاس تر کوم ځاي اوچتول پکار دي ؟

(۱) دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد تر اوږو پورې .(۲) دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد دغوږونو تر بوڅکو (نرمۍ) پورې .(۳) دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ نه درې روايته دي مشهور دادي چې مونځ کونکي ته اختيار دې خوښه يې ده که تر اوږو يې اوچتوي او که تر غوږونو پورې.

---

[1] ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۰۵ باب رفع اليدين باب وضع اليمنیٰ علی اليسرىٰ .

## داحاديثو په مينځ کې تطبيق:

١. په بعضې حديثونو کې "حذو منكبيه" يعنې تر اوږو پورې دلاس اوچتولو ذکر دې.
٢. او په بعضې حديثونو کې "حتى يحاذي بهما أذنيه" تر غوږونو پورې دلاس اوچتولو ذکر دې.
٣. او په بعضې حديثونو کې "... فروع أذنيه" دغوږونو نه بره پورې دلاس اوچتولو ذکر دې.
۴. په بعضې حديثونو کې "يرفعون أيديهم إلى صدورهم" سينې پورې دلاس اوچتولو ذکر دې.

دتطبيق صورت دادې چې په عام حالت کې لاسونو لره دې داسې اوچت کړې چې ورغوې يې تر اوږو پورې او غټه گوته يې دغوږونو تر بوڅکو (نرمې) پورې او گوتې يې دغوږونو تر بره اورسي او چې کله څه مجبوري وي نو تر سينې پورې هم لاس اوچتولې شي. (رد المحتار: ١/٨٢)

# بَابُ وَضعِ اليمنٰى عَلَى اليسرٰى

## داباب دې په بيان د کيخودلو د ښي لاس په گس لاس باندې

{٢٢١} عَن سَهلِ بنِ سَعدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّاسُ يُؤمَرُونَ أن يَضَعَ الرَّجُلُ يَدَهُ اليمنٰى عَلَى ذِرَاعِهِ اليسرٰى فِي الصَّلَاةِ قَالَ أَبُو حَازِمٍ لَا أَعلَمُهُ إِلَّا يَنمِي ذٰلِكَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري.[1]

**ترجمه**: دا باب دې په باره د اينبودو د ښي لاس کې په چپ لاس باندې. د سهل بن سعد رضي الله عنه روايت دې ده ويلې دې چې خلکو ته به ويلې شو او امر به ورته کولې شو چې سړې دې خپل ښي لاس په چپ ليچې باندې ږدي ابوحازم رحمه الله ويلې دې چې حضرت سهل رضي الله عنه دغه خبره تر نبي کريم صلى الله عليه وسلم پورې مرفوع کړې د دې حديث روايت بخاري کړې دې.

{٢٢٢} وَعَن وَائِلِ بنِ حُجرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيهِ حِينَ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ وَكَبَّرَ ثُمَّ التَحَفَ بِثَوبِهِ ثُمَّ وَضَعَ اليمنٰى عَلَى اليسرٰى رواه احمد و مسلم.[2]

**ترجمه**: د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه روايت دې چې بې شکه ده نبي عليه السلام ليدلې دې چې لاسونه يې هغه وخت کې اوچت کړل چې کله په مانځه کې داخل شو او تکبير يې ووايه بيا يې ځان

(١) بخاري کتاب الاذان ج١ صـ ١٠٢ باب وضع اليمنٰى على اليسرٰى في الصلوة.
(٢) مسلم کتاب الصلوة ج١ صـ ١٧٣ باب وضع يده اليمنٰى على اليسرٰى ...الخ، مسند احمد ج ۴ صـ ٣١٠.

په جامه کې تاؤ کړ بیا یې ښي لاس په چپ لاس باندې کیښود . د دې حدیث روایت احمد او مسلم کړي دي.

{۲۲۳} وَعَنه قَالَ ثُمَّ وَضَعَ يَدَه الْيمنى عَلى ظَهرِ كَفِّه اليسرىٰ وَالرُّسغِ وَالسَّاعِدِ رواه احمد والنسائي وابوداودواسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه روایت دی ده ویلي چې بیا یې ښي لاس د چپ ورغوي په شا باندې کیښود او په مړوند او لیچي باندې . د دې حدیث روایت احمد رحمة الله ، نسائي رحمه الله او ابوداؤد نقل کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

{۲۲۴} وَعَنِ ابنِ مَسعُودٍ رضي الله عنه اَنَّه كَانَ يصَلِّي فَوَضَعَ يدَه اليسرىٰ عَلَى اليمنىٰ فَرَآه النَّبي صلى الله عليه وسلم فَوَضَعَ يدَه اليمنىٰ عَلَى اليسرىٰ رواه الاربعة الا الترمذي واسناده حسن.[2]

**ترجمه** : عبدالله بن مسعود رضي الله عنه مونځ وکړ او خپل چپ لاس یې په ښي لاس باندې کیښود نو هغه نبي علیه السلام ولیده نو د هغه ښي لاس یې په چپ لاس باندې کیښود . د دې حدیث روایت څلورو محدثینو کړي دي خو ولې ترمذي نه دي کړي او اسناد یې حسن دي.

**مسئلة الباب** : په مونځ کې په حالت د قیام د ښي لاس ورغوي لره د چپ لاس په شا باندې ایخودل د جمهور علماء او د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد مسنون دي او د امام مالک رحمه الله نه په دې سلسله کې درې روایتونه دي :

(۱) د مشهور روایت مطابق مطلقا لاسونو لره سیده پریخودل پکار دي.

(۲) په فرائضو کې ارسال بهتر دی او په نوافلو کې وضع الیمنی علی الیسری جائز دي.

(۳) مطلقا وضع الیمنی علی الیسری سنت دي. (بدایة المجتهد ، الدر المنضود)

دباب د احادیثو نه د جمهورو د قول تائید کیږي چې مطلقا وضع الیمنی سنت دي.

---

(۱) مسند احمد ج۴ ص۳۱۸ ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ ص۱۴۱ باب موضع اليمين من الشمال في الصلوة ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ ص۱۰۵ باب رفع اليدين .

(۲) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ ص۱۴۱ باب في الامام اذا رأى الرجل ... الخ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ ص۱۱۰ باب وضع اليمنى على اليسرى ، ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ ص۵۹ باب وضع اليمين على الشمال في الصلوة .

# بَاب فِي وَضعِ اليَدَينِ عَلَى الصَّدرِ
## دا باب دی په بیان د کیخودلو د لاسونو په سینه باندې

{۲۲۵} عَن وَائِلِ بنِ حُجرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صَلَّيتُ مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَوَضَعَ يَدَهُ اليمنٰى عَلَى يَدِهِ اليسرٰى عَلَى صَدرِهِ رواه ابن خزيمة في صحيحه و في اسناده نظر و زيادة على صدره غير محفوظة .[۱]

**ترجمه** : په سینه باندې د لاسونو د ایخودلو باب: حضرت وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ویلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سره مونځ وکړ نو هغه خپل ښي لاس په خپل چپ لاس په سینه باندې د پاسه کیخوده دا حدیث ابن خزیمه په خپل صحیح کې راوړي دي اوددې په اسناد کې خبري دي او د على صدره زیاتوالي په حدیث کې محفوظ نه دي .

{۲۲۶} وَ عَن قَبِيصَةَ بنِ هلبٍ عَن اَبِيه رضي الله عنه قَالَ رَأَيتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ينصَرِفُ عَن يمِينِه وَ عَن يسَارِهِ وَرَأَيتُه يضَعُ هٰذِه عَلَى صَدرِهِ وَ وَصَفَ يحيي اليمنٰى عَلَى اليسرىٰ فَوقَ المَفصَلِ رواه احمد و اسناده حسن لكن قوله على صَدرِهِ غَيرُ مَحفُوظٍ .[۲]

**ترجمه** : او د قبیصه بن هلب نه روایت دي هغه د خپل پلار نه روایت کړي ده ویلي دي چې ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نیدلي دي چې هغه خپل ښي طرف ته راګرځیده او چپ طرف ته به هم راګرځیده او ما هغه صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لیدلي چې دا به یې په سینه باندې اینبوده او دایښودو طریقه یې بیان کړیده چې ښي لاس به یې په چپ باندې د بند د پاسه ؤ. د دې حدیث روایت احمد کړي او اسناد یې حسن دي لیکن دا قول چې على صدره دي غیر محفوظ دي .

{۲۲۷} وَعَن طَاؤسٍ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يضَعُ يدَهُ اليمنٰى عَلَى يدِهِ اليسرىٰ ثُمَّ يشُدُّ بِهِمَا عَلَى صَدرِهِ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ رواه ابوداود في المراسيل و اسناده ضعيف.[۳]

**ترجمه** : طاؤس رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې نبي عَلَيهِ السَّلَام به ښي لاس په چپ لاس باندې ایخوده بیا به یې دا دواړه په سینه باندې ترل او هغه به په مانځه کې ؤ . د دې حدیث روایت په مراسیلو کې ابوداؤد

---

(۱) صحیح ابن خزیمة کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۴۳ رقم الحدیث ۴۷۹.

(۲) مسند احمد ج ۵ ص ۲۲۶.

(۳) مراسیل ملحقة سنن ابي داؤد کتاب الصلوة صـ ۶ باب ماجاء في الاستفتاح .

کړي دي .

**قَالَ النِّيمَوِي وَفِي البَابِ اَحَادِيثُ اخَرُ كُلُّهَا ضَعِيفَة .**

**ترجمه** : او نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په باب کې نور احاديث هم شته خو ټول ضعيف دي.

**مسئلة الباب** : دباب احاديث په حالت دقيام په سينه باندې دلاس دپاسه ايخودلو باندې دلالت کوي تصيلي بحث مخکې راروان دي .

## بَابُ وَضعُ اليدَينِ فَوقَ السُّرَّة

## په نامه د پاسه د لاسونو د ايښودلو باب :

**{۲۲۸} عَنْ جَرِيرِ الضَّبِّي قَالَ رَأَيتُ عَلِيا يُمسِكُ شِمَالَه بِيمِينِه عَلَى الرُّسْغِ فَوقَ السُّرَّة رواه ابوداود زِيادَة فَوقَ السُّرَّة غَيرُ مَحفُوظَة .[1]**

**ترجمه** : حضرت جرير الضّبي ويلي دي چې ما حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليدلى ؤ چې په نامه د پاسه يې د چپ لاس مړوند په ښي لاس باندي نيولى ؤ . د دي حديث روايت ابوداوُد کړي دي او د فوق السـرة زيادة محفوظ نه دي .

**{۲۲۹} وَعَن اَبِي الزُّبَيرِ قَالَ اَمَرَنِي عَطَاء اَنْ اَسْاَلَ سَعِيدًا اَينَ تَكُونُ اليدَانِ فِي الصَّلاة فَوقَ السُّرة أَو اَسْفَلَ مِنَ السُّرَّة فَسَالتُه فَقَالَ سَعِيدٌ فَوقَ السُّرَّة رواه البيهقي و اسناده ليس بالقوي .[2]**

**ترجمه** : د ابوالزبير نه روايت دي ده ويلي چې ماته عطاء امر کړي ؤ چې د سعيد ابن جبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه پوښتنه وکړم چې په مانځه کې لاسونه په کوم ځاي کې ايخودل شوي د نامه د پاسه او که د نامه نه لاندي نو ما د هغه نه پوښتنه وکړه نو سعيد بن جبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې د نامه د پاسه . د دي حديث روايت بيهقي کړي او اسناد يې قوي نه دي .

**مسئلة الباب**: دباب حديثونو په حالت دقيام کې دنوم نه بره لاس تړلو باندې دلالت کوي تفصيلي بحث مخکې راروان دي .

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۲۸۰ برقم ۷۵۶ باب وضع اليمنیٰ على اليسریٰ في الصلوة هذا الحديث موجود في بعض نسخ ابي داؤد دون بعض نقلناه من مطبوعة المصر وايضًا موجود في حواشي طبع مكتبه امداديه ملتان ، پاکستان .

(۲) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲صـــ ۳۱ باب وضع اليدين على الصدر ...الخ .

# بَابٌ فِي وَضْعِ الْيَدَيْنِ تَحتَ السُّرَّةِ

## د نامه نه لاندې د لاسونو د ایښودلو باب :

{۲۲۰} عن عَلقَمَةَ بنِ وَائِلِ بنِ حُجْرٍ عَن أَبِيه رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ رَأَيتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَضَعُ يَمِينَه عَلَى شِمَالِه فِي الصَّلَاةِ تَحتَ السُّرَّةِ رواه ابن ابي شيبة و اسناده صحيح .[۱]

**ترجمه** : د علقمه بن وائل بن حجر نه روایت دې هغه د خپل پلار نه روایت کړې دې ویلي یې دي چې ما نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لیدلې ؤ چې ایخې یې ؤ خپل ښي لاس په چپ لاس باندې په مانځه کې لاندې د نامه نه . روایت یې ابن ابي شیبه کوې او اسناد یې صحیح دې .

{۲۲۱} وَعَنِ الحَجَّاجِ بنِ حَسَّانٍ قَالَ سَمِعتُ أَبَا مِجلَزٍ أَو سَأَلتُه قَالَ قُلتُ كَيفَ أَضَعُ قَالَ يَضَعُ بَاطِنَ كَفِّ يَمِينِه عَلَى ظَاهِرِ كَفِّ شِمَالِه وَيَجعَلُهُمَا أَسفَلَ مِنَ السُّرَّةِ رواه ابو بكر بن شيبة و اسناده صحيح .[۲]

**ترجمه** : حجاج بن حسان ویلي دي چې ما د ابي مجلز نه اورېدلي دي او یا یې ویلي دي چې ما د ابي مجلز نه پوښتنه کړې ده چې مونږ لاسونه څنګه کېدو هغه ووېل چې هغه د ښي لاس د ورغوي باطن طرف د چپ لاس د ورغوي په ښکاره طرف باندې کېښود او دواړه لاسونه یې د نامه نه لاندې کړل . د دې حدیث روایت ابوبکر بن ابي شیبه کړې او اسناد یې صحیح دې .

{۲۲۲} وَعَن إِبرَاهِيمَ قَالَ يَضَعُ يَمِينَه عَلَى شِمَالِه فِي الصَّلَاةِ تَحتَ السُّرَّةِ رواه ابن ابي شيبة واسناده حسن[۳]

**ترجمه** : ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې ده به په مانځه کې ښي لاس په چپ باندې د نامه نه لاندې ایښوده . د دې حدیث روایت ابن ابي شیبه کړې دې او د دې حدیث اسناد صحیح دې .

مسئلة الباب : د باب حدیثونه په حالت د قیام د نامه نه لاندې لاس تړلو باندې دلالت کوي .

## په مسئلة الباب کې د فقهاؤ اقوال

(۱) امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ (د وضع یدین والا روایت مطابق) په نزد د نامه نه بره او د سینې نه لاندې لاس تړل پکار دي .

(۲) د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د نامه نه لاندې لاس تړل پکار دي (رحمة الامة ص ۳۲)

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۱ص ۳۹۰ باب وضع اليمين على الشمال .
(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۱ص ۳۹۱ باب وضع اليمين على الشمال .
(۳) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۱ص ۳۹۰ باب وضع اليمين على الشمال .

## دامام شافعي رحمه الله او دامام مالک رحمه الله دليل :

۱. دوائل بن حجر رحمه الله حديث : "وَضَعَ يَدَه اليمنى عَلَى يدِه اليسرٰى عَلَى صَدرِهٖ".

۲. حديث دقبيصه بن هلب عن أبيه رضي الله عنه : "رأيته يضع هذه على صدره".

۳. حديث دطاوس رحمه الله مرسلا : "ثم يشد بهما على صدره".

## دامام ابو حنيفه رحمه الله او دامام احمد رحمه الله دليل :

۱. حديث دوائل بن حجر رضي الله عنه : "يضَعُ يمِينَه عَلَى شِمَالِه فِي الصَّلاَةِ تَحتَ السُّرَّة" ليكن دا حديث دسند صحيح نه باوجود متنا مضطرب دی.

۲. د حضرت علي رضي الله عنه قول : "ان من السنة وضع الكف على الكف في الصلوٰة تحت السرة" يعني معنى دا چې په مانځه کې د سنت طريقې ځيني ايخودل د ورغوي دي په ورغوي باندي د نامه لاندي.

۳.. دابي مجلز رحمه الله قول : "يجعلهما أسفل من السرة".

۴... دابراهيم نخعي رحمه الله قول : "يضع يمينه على شماله في الصلاة تحت السرة".

## دامام شافعي رحمه الله او دامام مالک رحمه الله ددليل جواب :

۱... دوائل رضي الله عنه په حديث کې "على صدره" اضافه غير محفوظ ده ، ددې په سند کې مؤمل بن اسماعيل دې کوم چې انتهائي ضعيف دې ، په جز ددې چا هم "على صدره" نه دې نقل کړې.

۲... دقبيصه په حديث کې او داسې نور قوي روایاتو په رڼا کې دا ويلې شي چې په دې روايت کې تصحيف شوې دی ، اصل روايت "يضع هذه على هذه" دې چا ديوې غلطۍ نه دې لره "يضع هذه على صدره" ويلې دی.

۳... حديث دطاوس مرسل ضعيف دې لهذا قابل داستدلال نشي کيدې.

**دبحث خلاصه** : صحيح خبره داده چې په دې سلسله کې دفريقينو په دلائلو باندې کلام دې، چا سره صحيح او صريح حديث مرفوع نشته چاته چې واجب العمل اويلې شي كما قال ابن الهمام، البته دفقهاؤ په ترجيح کې اختلاف دې ، حنفيه تحت السرة لره او شافعيه تحت الصدر لره ترجيح ورکوي ، زمونږ له طرف نه ويل شوي دي چې مونځ مَظهر دتعظيم دې او په قيام تعظيمي کې معهود وضع تحت السره دې ، هو داظهار عشق په صورت کې وضع على الصدر کيږي.

# بَابُ مَا يَقْرَأُ بَعدَ تَكبِيرَةِ الاِحْرَامِ

## باب دې په بيان دهغه څه کې چې ويل کيږي وروسته د تکبير تحريمې :

{۲۲۲} عَن اَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَسكُتُ بَينَ التَّكبِيرِ وَ بَينَ القِرَائَة إِسكَاتَة قَالَ اَحسِبُه قَالَ هنَية فَقُلتُ بِأبِي وَ اُمِّي يَا رَسُولَ الله إِسكَاتُك بَينَ التَّكبِيرِ وَ بَينَ القِرَاءة مَا تَقُولُ قَالَ اَقُولُ : اَللّٰهمَّ بَاعِدْ بَينِي وَ بَينَ خطَايَاي كَمَا بَاعَدتَ بَينَ المَشرِقِ وَ المَغرِبِ اَللّٰهمَّ نَقِّنِي مِنَ الخَطَايَا كَمَا يُنَقَّى الثَّوبُ الاَبيَضُ مِنَ الدَّنَسِ اَللّٰهمَّ اغسِلْ خَطَايَاي بِالمَاء وَالثَّلجِ وَالبَرَدِ رواه الجماعة الا الترمذي . (۱)

**ترجمه** : د احرام د تکبير نه وروسته څه ولوستل شي :حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د تکبير او د قرات تر منځ چپوالي کاوه راوي ويلي دي چې ما داسي خيال کاوه چې هغو ويلي دي چې لږ وخت به يې خاموشي فرمائله ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې ما عرض وکړ چې اي دالله رسوله څما مور پلار ستانه قربان شه تاسو د قرات ؛و د تکبير تر منځ د خاموشۍ په دوران کې څه وايي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمائل زه وايم.اى الله څما او څما د گناهونو ترمنځ دومره لرې واټن وکړي لکه څنګه چې تا د مشرق اومغرب تر منځ لريوالي راوستي دي اى الله مادګناهونونه داسي پاک کړي لکه څنګه چې سپينه جامه دخيرې نه پاکولي شي اى الله څماګناهونه په اوبو ، واوره او يخ باندي وه وينځې . د دي حديث روايت د ترمذي نه په غير جماعت کړي دي .

{۲۲۳} و عنْ عَلِي بْنِ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عنْ رسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَنَّه كَانَ اِذَا قَامَ اِلي الصَّلَاة قَالَ وَجَّهتُ وَجهي لِلَّذِي فَطَرَ السَّموٰاتِ وَالاَرضَ حَنِيفًا وَمَا اَنَا مِنَ المُشرِكِينَ اِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحيَاي وَمَمَاتِي لِله رَبِّ العَالَمِينَ لَا شَرِيكَ لَه وَ بِذٰلِكَ اُمِرتُ وَ اَنَا مِنَ المُسلِمِينَ اَللّٰهمَّ اَنتَ المَلِكُ لَا اِلٰه اِلاَّ اَنتَ . اَنتَ رَبِّي وَاَنَا عَبدُكَ ظَلَمتُ نَفسِي وَاعتَرَفتُ بِذَنبِي فَاغفِرلِي ذُنُوبِي جَمِيعًا اِنَّه لَا يَغفِرُ الذُّنُوبَ اِلَّا اَنتَ وَاهدِنِي لِاَحسَنِ الاَخلَاقِ لَا يَهدِي لِاَحسَنِهَا اِلاَّ اَنتَ وَاصرِفْ عَنِّي سَيِّئَهَا لَا يَصرِفُ عَنِّي سَيِّئَهَا اِلاَّ

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۳ باب ما يقرأ بعد التكبير ، مسلم كتابُ المساجد ج۱ص ۲۱۹ باب ما يقال بين تكبيرة الاحرام والقراءة،نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۴۲باب الدعاءبين التكبيروالقراءة ،ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۳باب السكتة عند الافتتاح ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۵۹ باب افتتاح الصلوة ، مسند احمد ج۲ ص ۲۳۱.

اَلْتَ لَبَّيْکَ وَ سَعْدَيْکَ وَالْخَيْرُ كُلُّه فِي يَدَيْکَ وَالشَّرُّ لَيْسَ اِلَيْکَ اَنَا بِکَ وَاِلَيْکَ تَبَارَکْتَ وَتَعَالَيْتَ اَسْتَغْفِرُکَ وَاَتُوبُ اِلَيْکَ وَاِذَا رَكَعَ قَالَ اِلٰى آخِرِ الْحَدِيْثِ رواه مسلم فِي صَلَاةِ اللَّيْلِ.[1]

**ترجمه**: د حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه روايت دي چې كله به رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته ودريده نو ويل به يې: ما خپل مخ د هغه ذات په طرف اړولي دي كوم ذات چې اسمانونه او ځمكه پيدا كړي ده په داسې حال كې چې ګرځيدونكې يم د باطل نه حق ته او نه يم زه د شرک كوونكو نه بې شكه زما مونځ ځما قرباني زما ژوند او زما مرګ خاص الله تعالى لره دي چې د ټول عالم پروردګار دي هيڅ شريک ورله نشته او ماته په دې امر شوي دي او زه د حكم منونكو ځيني يم، ته بادشاه يې ستا نه په غير بل معبود نشته ته ځما رب يې او زه ستا بنده يم ما په خپل ځان ظلم كړي او په خپله ګناه مې اقرار كړي نو ماته ځما ټول ګناهونه معاف كړه ځكه چې ستا نه په غير بل هيڅوک ګناهونه معاف كولې نشي د ښو اخلاقو په طرف ماته رهنمايي وكړه ستانه په غير ښو اخلاقو طرف بل څوک لارښودنه نه شي كولي او ستا نه په غير ما د بدو اخلاقو نه بل څوک نشي اړولي زه ستا په خدمت كې هميشه حاضر يم او ټول خيرونه ستا په قبضه كې دي بدي او شر ستا په طرف نشي كيدي زه په تا سره او ستا په طرف پناه نيسم ته اوچت او بركت والا ذات زه ستا نه بخښش غواړم او ستا طرف ته رجوع كوم او كله به يې چې ركوع كوله ويل به يې د حديث تر اخره پورې. د دې حديث روايت مسلم د شپې په مانځه كې كړي دي.

{٢٣٥} وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ مَسْلَمَةَ رضي الله عنه اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صلى الله عليه وسلم كَانَ اِذَا قَامَ يُصَلِّيْ تَطَوُّعًا قَالَ اَللهُ اَكْبَرُ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا مُسْلِمًا وَمَا اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اِنَّ صَلَاتِيْ وَ نُسُكِيْ وَ مَحْيَايَ وَ مَمَاتِيْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ لَا شَرِيْکَ لَه وَ بِذٰلِکَ اُمِرْتُ وَ اَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ الْمَلِکُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ سُبْحَانَکَ وَبِحَمْدِکَ ثُمَّ يَقْرَأُ رواه النسائي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: محمد بن مسلمه رضي الله عنه ويلي دي چې بې شكه كله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د نفلي مانځه لپاره ودريده الله اكبر به يې ووايه او توجيه به يې وويله يعني وجهت وجهي للذي فطر السموات والارض حنيفاً مسلماً وما انا من المشركين ان صلاتي ونسكي ومحياي ومماتي لله رب

---

(١) مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج١ صـ ٢٦٣ باب صلوة النبي صلى الله عليه وسلم ودعائه بالليل.

(٢) نسائي كتاب الافتتاح صـ ١٤٣ باب الدعاء بين التكبير والقراءة.

العالمین لا شریک له وبذلک امرتُ وانا اول المسلمین اللهم انت الملکُ لا اله الا انت سبحانک وبحمدک ثم یقرأ، بیا به یې قرات لوسته . او ترجمه یې په (۳۳۴) نمبر حدیث کې تیره شوې ده .

{۳۳۶} و عن حُمَیدِ الطَّوِیلِ عَن اَنَسِ بْنِ مَالِکٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ کَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاة قَالَ سُبْحَانَکَ اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَ تَعَالٰى جَدُّکَ وَلَا اِلٰه غَیرُکَ رواه الطبراني في کتابه المفرد في الدعاء و اسناده جید .[1]

**ترجمه** : حُمید طویل د انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ روایت کړي ویلي یې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله مونځ شروع کاوه ویل به یې : چې پاکې تالره اې الله د ټولوعیبونو تغیر او زوال نه سره د حمد او ثنا ستا او برکت والا دې نوم ستا او لوي دې شان ستا او نشته مستحق د عبادت غیر ستا نه بل هیڅوک . د دې حدیث روایت الطبراني په خپل کتاب المفرد کې في الدعاء کې کړې دې .

{۳۳۷} وَ عَنِ الاَسْوَدِ عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه کَانَ اِذَا اسْتَفْتَحَ الصَّلَاة قَالَ سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَتَعَالٰی جَدُّکَ وَلاَ اِلٰه غَیرُکَ رواه الدار قطني والطحاوي واسناده صحیح .[2]

**ترجمه** : اسود د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ روایت کړي چې بې شکه حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به چې مونځ شروع کاوه نو دا دعاء به یې ویله سبحانک اللهم وبحمدک وتبارک اسمک وتعالیٰ جدک ولا اله غیرک . د دې حدیث روایت دار قطني او طحاوي کړې دې او اسناد یې صحیح دې .

{۳۳۸} عن اَبِي وَائِلٍ قَالَ کَانَ عُثْمَانُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاة یقُولُ سُبْحَانَکَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ وَتَبَارَکَ اسْمُکَ وَتَعَالٰي جَدُّکَ وَلَا اِلٰه غَیرُکَ یسْمِعُنَا ذٰلِکَ رواه الدار قطني و اسناده حسن .[3]

**ترجمه** : ابو وائل ویلي دي چې کله به حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنهُ مونځ شروع کاوه نو دا دعاء به یې ویله سبحانک اللهم وبحمدک وتبارک اسمک وتعالیٰ جدک ولا اله غیرک او دا به یې مونږ ته را

---

(۱) الدرایة في تخریج احادیث الهدایة ، کتاب الصلوة ج۱ص۱۲۹ باب صفة الصلوة نقلاً عن الطبراني في الدعاء.

(۲) دار قطني کتاب الصلوة ج۱ص۳۰۰ باب دعاء الاستفتاح بعد التکبیر ، طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص۱۳۶ باب ما یقال بعد تکبیرة الافتتاح .

(۳) دارقطني کتاب الصلوة ج۱ص۳۰۲ باب دعاء الاستفتاح بعد التکبیر .

اوروله . د دي حديث روايت الدار قطني کړي دي او اسناد يې حسن دي .

**دثناء حکم** :دتکبير تحريمي نه پس او دقرأت نه مخکې څه دعاء دې اويلې شي يا نه ؟

۱... دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول دادې چې که ثناء وي يا توجيه (اني وجهت وجهي للذي....الخ) نوره کومه دعادې اونه لوستلې شي فورا دې قرأت اولوستلې شي.

۲... جمهور علماء او ائمه ثلاثه رَحِمَهُ اللهُ داستفتاح ددعاء قائله دي ، په دې سلسله کې په احاديثو کې په کثرت سره دعاګانې واردې شوي دي ، خو ليکن زيات ثواب په کومې دعا لوستلو کې دې؟ په دې کې اقوال دي :

۱... امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ او احمد او محمد رَحِمَهُ اللهُ "سبحانک اللهم .... الخ " يعنې ثناء لوستلو لره غوره بولي .

۲... امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دعاء توجيه (اني وجهت وجهي للذي....الخ) لره غوره ګڼي .

۳... امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ ثناء او دعاء توجيه لره دجمع کولو قائله دي ، داحنافو په نزد مفتی به قول دادې چې فرائضو کې خو دې صرف ثناء اووائي ، باقي په نوافلو کې که دې سره کومه دعا غواړي او دې وائي.

**دامام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **دليل** : د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث : " كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ بِالْحَمْدُ لِلهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ " .

**دجمهورو دليل**: دباب قول مرفوع او موقوف حديثونه کوم چې دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، علی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، محمد بن سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، انس بن مالک ،عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه منقول دي او په دې کې دتکبير او دقرأت په مينځ کې دڅه لوستلو ذکر شته .

**امام مالک** رَحِمَهُ اللهُ **ته جواب** : دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث مذکوره کې دجهري قرأت ابتداء مراد ده، ددعاګانو سري قرأت ددې منافي دی . دغه شان په احاديثو کې تطبيق هم کيږي .

# بَابُ التَّعَوُّذِ وَقِرَاءَةِ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ وَتَرْكِ الْجَهْرِ بِهِمَا

## داعوذ بالله او بسم الله په جهر سره د پرېښودلو باب :

قَالَ تعالىٰ (فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ)

{۳۲۹} عَنِ الْأَسْوَدِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ رَأَيْتُ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حِينَ افْتَتَحَ الصَّلَاةَ كَبَّرَ ثُمَّ قَالَ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ وَتَبَارَكَ اسْمُكَ وَتَعَالىٰ جَدُّكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ ثُمَّ يَتَعَوَّذُ رواه الدار قطني

واسناده صحيح .(۱)

الله تعالى په قران مجيد کې فرمايلي دي ﴿ فاذا قرأت القرآن فاستعذ بالله من الشيطان الرجيم ﴾ معنى دا چې کله ته قران لولې نو په الله سره پناه ونيسه د شيطان رټلي شوي نه .

**ترجمه** : اسود بن يزيد ويلي دي چې ما حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه وخت کې وليده چې مونځ يې شروع کاوه نو تکبير يې وکړ بيا يې سبحانك اللهم وبحمدك تر اخره پورې ولوست بيا يې اعوذ بالله وويله د دې حديث روايت الدار قطني کړي دی او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۰} و عن أبي وائل قال كانوا يسرّون التعوّذ والبسملة في الصلاة سعيد بن منصور في سننه و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : ابي وائل رضي الله عنه ويلي دي چې صحابه ؤ به اعوذ بالله او بسم الله الرحمن الرحيم پټه په مانځه کې لوستله ، د دې حديث روايت سعيد بن منصور په خپل سنن کې کړي دی او اسناد يې صحيح دي .

{۲۲۱} وعن نعيم المجمر قال صليت وراء أبي هريرة رضي الله عنه فقرأ بسم الله الرحمن الرحيم ثم قرأ بأم القرآن حتى إذا بلغ غير المغضوب عليهم ولا الضالين فقال آمين فقال الناس آمين و يقول كلما سجد الله أكبر وإذا قام من الجلوس في الاثنتين قال الله أكبر وإذا سلم قال والذي نفسي بيده إني لأشبهكم صلاة برسول الله صلى الله عليه وسلم رواه النسائي والطحاوي وابن خزيمة وابن الجارود وابن حبان والحاكم والبيهقي واسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : نُعيم المجمر ويلي دي چې د ابي هريره رضي الله عنه پسې يې مونځ وکړ نو هغه بسم الله

---

(۱) دارقطني كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۳۰۰ باب دعاء الاستفتاح بعد التكبير .

(۲) الدراية كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۳۵ باب صفة الصلوة نقلاً عن سعيد بن منصور .

(۳) نسائي كتاب الافتتاح ج۱صـــ ۱۴۴ باب قراءة بسم الله الرحمن الرحيم ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۳۷ باب قراءة بسم الله الرحمن الرحيم ، صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۵۱ رقم الحديث ۴۹۹ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج ۴ صـــ ۱۴۵رقم الحديث ۱۷۹۸، مستدرک حاکم كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۳۲ باب ان رسول الله صلى الله عليه وسلم قرأ في الصلوة بسم الله الرحمن الرحيم ...الخ منتقى ابن جارودصـــ ۷۲ برقم ۱۸۴ باب صفة الصلوة رسول الله،سنن الكبرى للبيهقي ج۲صـــ۴۶ كتاب الصلوة باب افتتاح القراءة .

الرحمن الرحيم ووېله بيا يې أمُّ القرآن ( فاتحه ) ولوستله تر دي پوري چې كله يې غير المغضوب عليهم ولا الضالين ولوسته نو هغه امين ووايه او خلكو هم امين ووايه او كله يې چې سجده كوله نو الله اكبر يې ووايه او كله چې د دوه و ركعتونو د جلسي نه پورته كيده الله اكبر يې ووايه او كله يې چې سلام وګرځاوه ويې فرمائل ځما په هغه ذات قسم دي چې ځما روح د هغه په قبضه كې دي چې زه ستاسي ټولو نه په مانځه كې د رسول الله ﷺ سره زيات مشابه يم د دي حديث روايت النسائي ، طحاوي ، او ابن خزيمه رحمه الله او ابن جارود رحمه الله او ابن حبان او حاكم او بيهقي كړي دي . او اسناد يې صحيح دي .

{٣٢٢} وَ عَنْ أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ وَ أَبَا بَكْرٍ رضي الله عنه وَ عُمَرَ رضي الله عنه كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ بِالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ رواه الشيخان وزاد مسلم لَا يَذْكُرُونَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ فِي أَوَّلِ قِرَاءَةٍ وَلَا فِي آخِرِهَا .(١)

**ترجمه** : د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شكه نبي كريم ﷺ ابوبكر رضي الله عنه او عمر رضي الله عنه مانځه شروع په الحمدلله رب العالمين سره كوله . د دي حديث روايت شيخينو كړي او مسلم دغه الفاظ زيات كړي چې هغو به د قرات په شروع او اخري كې د بسم الله الرحمن الرحيم ذكر نه كاوه .

{٣٢٣} و عنه قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ وَأَبِي بَكْرٍ رضي الله عنه وَ عُمَرَ رضي الله عنه وَ عُثْمَانَ رضي الله عنه فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقْرَأُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ رواه مسلم .(٢)

**ترجمه** : او د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې د رسول كريم ﷺ ابوبكر رضي الله عنه عمر رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه پسي مې مونځ كړي د دي يو نه هم ما بسم الله الرحمن الرحيم نه دي اوريدلي د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

(١) بخاري كتاب الاذان ج١ صـ ١٠٣ باب ما يقرأ بعد التكبير ، مسلم كتاب الصلوة صـ ١٧٢ باب حجة من قال لا يجهر بالبسملة .
(٢) مسلم كتاب الصلوة ج١ صـ ١٧٢ باب حجة من قال لا يجهر بالبسملة .

{۲۲۴} وعنه قَالَ صَلَّيتُ خَلفَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأَبِي بَكرٍ وَعُمَرَ وَعُثمَانَ رضي الله عنهم فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنهُمْ يَجْهَرُ بِبِسْمِ الله الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ رواه النسائي و آخرون و اسناده صحيح. (۱)

**ترجمه** : او د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دي هغه ويلي دي چې ماد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او ابي بكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې روسته مونځ کړې دي د دي يو نه هم مانه دي اوريدلي چې په جهر سره يې بسم الله الرحمٰن الرحيم ويلي وي. د دي حديث روايت نسائي او اخرونو كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۲۵} وعن ابن عَبدِ الله بنِ مُغَفَّلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعَنِي أَبِي وَأَنَا فِي الصَّلَاةِ أَقُولُ بِسْمِ الله الرحمن الرحيم فَقَالَ لِي أَي بُنَيَّ مُحْدَثٌ إِيَّاكَ وَالحَدَثَ قَالَ وَلَمْ أَرَ أَحَدًا مِنْ أَصْحَابِ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ أَبْغَضَ إِلَيهِ الحَدَثَ فِي الإِسْلَامِ يعني مِنه و قَالَ قَدْ صَلَّيتُ مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ أَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وعُمَرَ رضي الله عنه وَمَعَ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنهُمْ يَقُولُها فَلَا تَقُلْها إِذَا أَنتَ صَلَّيتَ فَقُلِ الحَمْدُ لِلهِ رَبِّ العَالَمِينَ رواه الترمذي و حسنه. (۲)

**ترجمه** : او عبدالله بن مُغَفَّل ويلي دي چې ځما نه ځما پلار په داسي حال کې واوريده چې زه په مانځه کې وم او ما بسم الله الرحمن الرحيم ويلو نو ماته يې وويل چې اي بچوړيه دا په دين کې نوي خبره ده په دين کې د نوي خبري نه ځان وساته وي ويل ما د اصحابو د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ديو کس نه هم نه دي ليدلي چې دير مبغوض وي ده ته د نوي خبري نه په اسلام او دين کې يعنې د دينه اووي ويل چې يه تحقيق ماد نبي عَلَيْهِ السَّلَام ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره مونځونه کړي دي خو نه مي دي اوريدلي د دوي ديو کس نه چې بسم الله الرحمٰن الرحيم يې ويلي وي نو ته بسم الله الرحمٰن الرحيم مه وايه کله چې ته مونځ کوي نو الحمدلله رب العالمين وايه. د دي حديث روايت ترمذي کړي او حسن يې ګڼلي دي.

---

(۱) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ ص ۱۴۵ باب ترک الجهر بسم الله الرحمٰن الرحيم.

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ ص ۵۷ باب ماجاء في ترک الجهر بسم الله الرحمٰن الرحيم.

{۳۴۶} و عن عِكْرَمَةَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي الْجَهْرِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ قَالَ ذٰلِكَ فِعْلُ الْأَعْرَابِ رواه الطحاوي و اسناده حسن. (۱)

**ترجمه** : په جهر سره د بسم الله الرحمن الرحيم په باره کې عکرمه د ابن عباس رضي الله عنه روايت کړي دي چې ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې دا فعل بانډه چيانو شروع کړي دي. د دې حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد يې حسن دي.

**مسئلة الباب** : د دې باب لاندې دوه مختلف فيه مسائل دي :

**اولنې مسئله** : د قرأت نه مخکې د تعوذ او د تسميه حکم.

(۱) امام مالک رحمه الله تکبير تحريمه او د قرأت په مينځ کې د يو دعا يا د تعوذ او د تسميه قائله نه دی. (۲) جمهور علماء تعوذ او تسميه لره مسنون ګرځوي.

**د امام مالک رحمه الله دليل** :

۱... د انس رضي الله عنه حديث : " اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَا بَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانُوا يَفْتَتِحُونَ الصَّلَاةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ " د سورت نه د ابتدا ذکر دې.

۲... حديث د عبد الله بن مغفل رضي الله عنه : " أي بُنَيَّ ا مُحدَث " بسم الله لوستلو ته ئې "بدعت" اويل او وي ويل چې حضور صلى الله عليه وسلم حضرت ابوبکر رضي الله عنه، عمر رضي الله عنه او عثمان رضي الله عنه به بسم الله نه لوستله.

**د جمهور دليل** : ۱. د ابووائل حديث : "كَانُوا يُسِرُّونَ التَّعَوُّذَ وَالْبَسْمَلَةَ فِي الصَّلَاةِ".

۲. حديث د عمر رضي الله عنه موقوفا : "ثم يتعوذ".

۳. حضرت ابوهريره رضي الله عنه د قرأت نه مخکې بسم الله اولوستله او د مونځ د فراغت نه پس يې اوفرمايل چې زه په تاسو کې د ټولو نه زيات د حضور صلى الله عليه وسلم په انداز سره مونځ کونکې يم.

**امام مالک رَحِمَهُ اللهُ ته جواب** : ۱.د انس رضي الله عنه په حديث کې مطلق أعوذ بالله، بسم الله د لوستلو نفي نه کيږي بلکې جهرا تعوذ او د تسميه نفي کيږي ځکه چې همدغه روايت په نسائي کې په صحيح سند سره داسې راغلې دې : " فَلَمْ أَسْمَعْ أَحَدًا مِنْهُمْ يَقْرَأُ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ ".

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج ۱ ص ۱۴۰ باب قراءة بسم الله في الصلوة.

۲... دعبدالله بن مغفل په حديث کې چونکه دده ځوي په دومره اوچت آواز سره بسم الله اويله چې حضور ﷺ واوريده ، دده دليل دا قول دي : " سَمِعَنِي أَبِي وَ أَنَا فِي الصَّلَاةِ أَقُولُ بِسْمِ اللهِ الرحمن الرحيم " لهذا ذبدعت اطلاق په همدې جهرا بسم الله باندې کيږي ددېنه دمطلق بسم الله لوستلو نفي نه کيږي . " فلا تقلها " معنى " فلا تجهربها " ده .

## دويمه مسئله : بسم الله دې جهرا اولوستلې شي يا سرا ؟

**د بسم الله په جهر او سِر کې د مذهبونو اختلاف** :په دې باره کې درې مذهبونه دي (۱) امام مالک رحمه الله ويلي دي په پټه باندې بسم الله ويل هم مشروع نه دي : لا يقرأ ذلک احد لا سراً ولا علانية لا امام ولا غير امام .

(۲)د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې د بسم الله لوستل سنت دي او ويلي يې دي چې بسم الله په جهري مونځونو کې په جهر سره سنت ده او په خفيه مونځونو کې په پټه ويل سنت دي .

(۳)احناف رحمهم الله وايي چې بسم الله ويل سنت دي په هر حال کې يې په پټه سره ويل افضل دي برابره خبره ده چې جهري مونځونه وي او که خفيه وي د بعض شوافعو هم دغه مسلک دي امام ابن تيميه رحمه الله او ابن قيم رحمه الله هم په دې مسئله کې د احنافو سره ملګري دي .

## د درې وارو مذهبونو دليلونه : د امام مالک رحمه الله دليلونه :

(۱)دليل د دې (۳۴۵) حديث کوم چې د عبدالله بن مغفل نه روايت شوي او امام ترمذي په خپل سنن کې ذکر کړي ابن مغفل ويلي دي چې زما پلار ځما نه په مانځه کې په جهر سره بسم الله واوريده نو هغه دا بدعت وګانړه او وي ويل چې ما د حضرت ابوبکر رضي الله عنه ، حضرت عمر رضي الله عنه ، حضرت عثمان رضي الله عنه او په خپله د نبي کريم ﷺ سره مونځونه کړي دي د يوه نه مي هم نه دي اوريدلي نو ته بسم الله مه وايه کله چې ته مونځ کوي نو الحمدلله رب العالمين وايه .

(۲)دليل په دې باب کې د حضرت انس رضي الله عنه درې روايتونه راغلي دي (۳۴۲ـ ۳۴۴ ) پورې د ټولو مضمون او معنى يو شان اويو قسم ده لکه (کانو يفتتحون بالحمدلله رب العالمين )

احناف د دې روايتونو په جواب کې وايي چې په دې روايتونو باندې استدلال کافي نه دي ځکه چې صحيحو او صريحو روايتونو کې راغلي دي چې رسول الله ﷺ او خلفاء راشدينو بسم الله لوستي ده لکه چې په همدې باب کې ذکر دي نو دغه روايتونه يې ولې پريښي دي .

(۳)د جهر روایتونه منسوخ دي امام ابن تیمیه رَحِمَهُ اللهُ او علامه حازمي ویلي ((روي الطبراني باسناد صحيح عن ابن عباس ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان يجهر بها اذا كان بمكة وانه لماهاجر الي المدينة ترک الجهر بها حتی مات.(۱)

ددي روایت نه معلومه شوه چې د جهر روایتونه منسوخ دي د دي وجهي نه د مالکیانو په مستدلو روایتونو کې مطلق ویل نفي شوي نه ده بلکه په جهر سره بسم الله ویل نفي شوي ده لکه چې د ابن معفل د روایت الفاظو نه چې سمعنی اني دي معلومه شوه چې بسم الله یې په جهر سره لوستي وه نو هغه په جهري بسم الله باندي بد وګنړل . او په حدیث کې د فلا تقلها معنی فلا تجهرها ده لکه چې د دي روایت په ځیني طریقو کې د فلا تقلها په ځاي باندي فلا تجهرها الفاظ راغلي دي . او دغسي په اعلاء السنن کې د ابن عباس رضی الله عنهما نه روایت شوي دي چې هغه هم په دي باندي دلالت کوي چې د تسمیي د جهر مونځونه منسوخ دي وعن ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال كان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اذا قرأ بسم الله الرحمن الرحيم هزأ منه المشركون وقالوا محمد يذكر اله اليمامه الخ (۲) یعني معنی دا چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله د بسم الله قرات کولو مشرکانو به ور پوري خندل او ویل به یې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د یمامه د اله نوم یاد وي او مسیله خان ته رحمن او رحیم نومونه ایښودي وو نو کله چې دا آیت نازل شو چې لاتجهر نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ امر وکړو چې بسم الله په جهر سره مه وایې (۳) که چرته په اعتراض کې وویلي شي چې دا آیت خو په دعا کې نازل شوي دي او دا دواړه روایتونه په بخاري کې د بني اسرائیل په سورة کې راغلي دي نو په جواب کې به ویلي شي چې ددي آیت نزول په بسم الله الرحمن الرحيم کې خه منافي نه دي ولې ځکه چې په یو آیت کې په تعدد د اسناد د نزول کې څه باک نشته.

## د شوافعو د دلیلونو نه د احنافو جواب :

د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ د ټولونه قوي او محکم دلیل د دي باب (۳۴۱) روایت دي چې نسائي او طحاوي دا روایت کړي دي نُعیم مجمر ویلي دي چې ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د بسم الله قرات وکړ او بیا

---

(۱) كتاب الاعتبار للحازمي ص ۸۰.

(۲) اعلاء السنن ج۲ص ۲۱۲ـ۲۱۳.

(۳) مجمع الزوائد باب في بسم الله ج۱ص ۱۸۵ من للمذهب او ج۲ص ۱۰۸ من الموسوعه .

يې فاتحه لوستې ده او په اخر د حديث کې يې ويلي چې زه د مانځه په اعتبار سره د ستاسې نه زيات مشابه يم د رسول الله ﷺ سره.

زيلعي په نصب الرايه کې د دې جواب کړي ويلي يې دي چې (۱) دا روايت شاذ او معلول دې ځکه چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه (۸۰۰) شاګردان وُ د دوې نه څو کسانو دغه واقعه بيان کړې ليکن د نُعيم مجمر نه په غير يو هم د بسم الله د قرات دغه جمله نه ده نقل کړې. دا د دې خبرې دليل دې چې دغه روايت شاذ دې (ب) او که چرته بالفرض دې ته هم اعتبار ورکړې شي بيا هم دغه روايت د شوافعو په مسلک باندې صريح نه دې ځکه چې د قرات د لفظ نه د نفس بسم الله قرءت ثابتيږي جهر ترې نه ثابتيږي د دې وجهې نه د قرات په لفظ کې د بسم الله د سرې قرات احتمال هم شته نو د دې روايت نه د شوافعو استدلال پوره او مکمل نه دې.(۱)

( ۲) **دليل** : برسيره په دې چې نعيم مجمر ذکر شوې روايت د شوافعو حافظ زيلعي د لطيفي په شکل کې يو کلام ذکر کړې دې. قوي مستدل دې خو ولې خطيب بغدادي رحمه الله او امام دار قطني د شوافعو په تائيد کې زيات روايتونه جمع کړي او ليکلي دي او خو ولې امام زيلعي رحمه الله په نصب الرايه کې د هغې ټولونه جوابونه کړي دي او هغه ضعيف ګڼړلي دي. لکه چې حافظ زيلعي رحمه الله په نصب الرايه کې د لطيفي په شکل کې يو کلام پيش کړې دې ويلي يې دي: چې امام دار قطني د بسم الله په جهر کې ډير روايتونه جمع کړي او يوه رساله يې جوړه کړې ده نو مالکيان هغه ته راغله او قسم يې ورکړ چې په دې کې صحيح روايت هم شته او که نه.

نو امام دار قطني په جواب کې ووېل :په مانځه کې د بسم الله د جهر په باره کې چې د رسول الله ﷺ نه هر څه روايت شوي وي صحيح نه دي او د صحابه کرامو نه چې څه روايت شوي دي هغه ځيني صحيح او ځيني ضعيف دي. د امام دار قطني د اعتراف له مخې معلومه شوه چې د شوافعو استدلالات کمزوري دي.(۲)

## د احنافو دلائل :

(۱) د دې باب (۳۴۳ ـ او ۳۴۴) شماره روايتونه چې د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت او نقل شوي دي چې اول حديث مسلم او دويم حديث نسائي روايت کړي د دواړو مضمون او مفهوم يو دې چې ما د

---

(۱) درس ترمذي ج۱ص ـ ۵۰۰ـ۵۰۱.

(۲) معارف السنن ج۲ ص ـ ۳۶۶ بحور.

حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسي مونځ کړي د يوه نه مي هم نه دي اوريدلي چې بسم الله يې لوستلي ده او د نسائي په روايت کې د يقرا په ځاي يجهر راغلي دي د دې نه معلومه شوه چې د مسلم په روايت کې د قرات د نفي نه د جهر نفي مراد ده .

په دي باب کې د عبدالله بن مغفل (۳۴۱) روايت هم د احنافو مستدل دي په دي روايت کې لا تقلها د لا تجهر بها په معنی سره دي . د نسائي په جلد اول کې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يو بل روايت د دي تائيد شوي دي ( صلى بنا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فلم يسمعنا قراءة بسم الله الرحمن الرحيم وصلى بنا ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وعمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فلم نسمعها منهما ) يعني معنى دا چې مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وکړ او بسم الله الرحمن الرحيم يې مونږ ته وانه وراوله او ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونږ ته مونځ وکړ خو مونږ د دوي نه بسم الله وانه وريده . د دي نه معلومه شوه چې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث مقصد په جهر سره د بسم الله الرحمن الرحيم نفي ده نه د بسم الله دنفي قرات . شوافعو رَحِمَهُ اللهُ د عبدالله بن مغفل روايت مجهول ګڼرلي دي چې په دي وجه د دي روايت اعتبار ساقط. شوي خو ولي د حديث پوهانو د دي جواب کړي دي چې د ده نوم يزيد دي او د ده نه دري راويانو روايت کړي دي . دغه يزيد ابن عبدالله بن مغفل نه دا حديث قيس بن عبايه روايت کړي ، عبدالله بريده روايت کړي (۳۰) ابوسفيان طريف بن شهاب روايت کړي . (۱)

او د محدثينو قانون دا دي چې د دغسي راوي نه چې دوه راويان روايت وکړي نو جهالت يې ختميږي او دلته خو د ده نه روايت کوونکي د دوه ؤ نه زيات دي د همدي وجې نه امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ د عبدالله بن مغفل د حديث په روايت باندي د حسن حديث حکم کړي دي .

(۳) **دليل** : د حضرت عکرمه د حضرت بن عباس نه (۳۴۶) روايت دي چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د جهري بسم الله الرحمن الرحيم لوستل د بانډه چيانو عمل ګڼرلي دي .

(۴) **دليل** : عن ابي وائل قال كان علی وعبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لا يجهران ببسم الله الرحمن الرحيم ولا بالتعويذ ولا بالتأمين . واحال اعلاء السنن بالطبراني في الكبير .

---

(۱) اعلاء السنن ج ۲ ص ۲۱۶ - ۲۱۷ .

(۵) **دليل** : ددي باب (۳۴۰) حديث هم د حضرت ابو وائل نه روايت شوي چې په دي کې د جمهورو صحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فعل نقل شوي دي چې هغو بسم الله او اعوذبالله په رو لوستله

(۶) **دليل** :د ابووائل نه دي ، **قال كان عمرو علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا لا يجهران ببسم الله الرحمٰن الرحيم ولا بالتعوذ ولا بالتأمين** . (۱)

## بَابٌ فِي قِرَائَةِ الْفَاتِحَة

### دا باب دی د فاتحې په لوستلو کې :

{۲۲۷} **عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ** رواه الجماعة .(۲)

**ترجمه** : حضرت عُباده ابن الصامت رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې نشته مونځ دهغه چاچې دکتاب فاتحه يې نه وي لوستلي .ددي حديث روايت جماعت کړي دي.

{۲۲۸} **و عنْ اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَن صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيها بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَهِي خِدَاجٌ يقُولُها ثَلَاثًا** رواه مسلم .(۳)

**ترجمه** : ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې هر څوک مونځ وکړي او په مانځه کې د کتاب فاتحه ونه لولي نو مونځ يې ناقص دي دا کلمه يې دري ځلي تکرار کړه . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

{۲۲۹} **وعَنْ عَائشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقُولُ مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يقْرَأْ فِيها بِأمِّ الْقُرْآنِ فَهِي خِدَاجٌ** رواه احمد وابن ماجه والطحاوي واسناده حسن .(۴)

---

(۱) شرح معاني الآثار ج ۱.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۔ ۱۰۲باب وجوب القراءة للامام والمأموم ..... مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۶۹ باب وجوب القراءة الفاتحة في كل ركعة...ابوداؤدكتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۱۹ باب من ترک القرأة في صلوته ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۔ ۵۷باب ماجاءانه لاصلوة الابفاتحة الكتاب، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص۱۳۵باب ايجاب القرأة فاتحة الكتاب ....ابن ماجة ابواب الصلوة ص۔۶۰ باب القراءة خلف الامام،مسنداحمدج۵ ص۔ ۳۱۴.

(۳) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۷۰ باب وجوب القراءة الفاتحة في كل ركعة .

(۴) مسند احمد ج۶ ص۔ ۱۴۲ ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص۔ ۶۱ باب القرأة خلف الامام . طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۴۸ باب القراءة خلف الامام .

**ترجمه** : او حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائل يې چې څوک مونځ وکړي او ام القران يعني سورت فاتحه پکې ؤ نه لولي نو دا مونځ نيمګړي اوناقص دي. دا حديث احمد رحمه الله ابن ماجه او طحاوي روايت کړي او اسناديې حسن دي.

{۲۵۰} وعَنْ اَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِي رضي الله عنه قَالَ اُمِرْنَا اَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ رواه ابوداود و احمد و ابويعلى وابن حبان و اسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : او د ابوسعيد رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې مونږ ته امر کړي شوي دي چې مونږ فاتحه او د قران کريم نه هغه څه ولولو چې مونږ ته اسان وي . د دي حديث روايت ابوداؤد رحمه الله ، احمد رحمه الله ، ابو يعلى او ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۵۱} وعَنْ رِفَاعَةَ بْنِ رَافِعٍ الزُّرَقِي رضي الله عنه وَكَانَ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم قَالَ جَاءَ رَجُلٌ وَرَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ فَصَلَّى قَرِيبًا مِنْهُ ثُمَّ انْصَرَفَ اِلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَقَالَ لَه اَعِدْ صَلَاتَكَ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَقَالَ يَا رَسُولَ الله عَلِّمْنِي كَيفَ اَصْنَعُ قَالَ اِذَا اسْتَقْبَلْتَ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِاُمِّ الْقُرْآنِ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا شِئْتَ فَاِذَا رَكَعْتَ فَاجْعَلْ رَاحَتَيكَ عَلَى رُكْبَتَيكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ وَمَكِّنْ لِرُكُوعِكَ فَاِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَاَقِمْ صُلْبَكَ حَتّٰى تَرْجِعَ الْعِظَامُ اِلَى مَفَاصِلِهَا فَاِذَا سَجَدْتَ فَمَكِّنْ لِسُجُودِكَ فَاِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَاجْلِسْ عَلَى فَخِذِكَ الْيُسْرىٰ ثُمَّ اصْنَعْ ذٰلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ رواه احمد واسناده حسن.(۲)

**ترجمه** : او د حضرت رفاعه بن رافع الزرقي رضي الله عنه چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د صحابو څخه ؤو ويلي يې دي چې يو سړي راغي او رسول الله صلى الله عليه وسلم جمات ( مسجد ) کې تشريف فرما ؤ نو نبي عليه السلام ته يې نږدي مونځ وکړو بيا نبي عليه السلام ته واپس راغي نو نبي عليه السلام ورته وفرمائل چې خپل مونځ راوګرځود بې شکه تا مونځ نه دي کړي نو هغه سړي نبي عليه السلام ته وويلي چې اي د الله تعالى رسوله ماته وښايه څنګه يې وکړم نبي عليه السلام ورته وفرمائل چې کله ته قبلي ته مخامخ شي نو تکبير وکړه بيا ام القران يعني سورت فاتحه ولوله بيا دي چې څه خوښه وي هغه ولوله نو کله

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۸ باب من ترک القراءة في صلاته ، مسند احمد ج۳ص ۳۰ ، صحيح ابن حبان کتاب الصلوة ج ۴ ص ۱۴۰ رقم ۱۷۸۷ ، مسند ابي يعلى ج۲ ص ۴۱۷ رقم الحديث ۲۳۶. (۱۲۱۰).

(۲) مسند احمد ج ۴ ص ۳۴۰ .

چې ته رکوع کوي نو ورغوي خپلو په زنګنونو باندي کيده او شا خوره او هوار کړه او په اطمنان او ارام سره رکوع وکړد نو کله چې ته سر راپورته کړي نو شا او ملا نيغه کړه تر څو پوري چې هډوکي خپلو بندونو ته ورسيږي او کله چې ته سجده کوي نو په اطمنان او ارام سره سجده وکړه نو کله چې ته سر راپورته کړي نو په ګس او چپ پتون باندي کينه بيا په هر رکعت کې دغه کار کوه ...د دي حديث روايت احمد رحمه الله کړي دي او اسناد يې حسن دي .

**مسئلة الباب** : په مونځ کې خو مطلق قرأت فرض دى ليکن خاص دسوره فاتحې په فرضيت کې اختلاف دې :

(۱) دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد سوره فاتحه فرض ده .

(۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد سوره فاتحه او ضم دسورت يو حکم دې يعني دواړه واجب دي که مطلق قرأت يي او کړو نو مونځ يي کيږي البته ديو په پريخودلو سره پرې سجده سهوه لازميږي .

**دائمه ثلاثه رحمه الله مضبوط دليل :**

۱... حديث دعباده رضي الله عنه : " لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ " .

۲... حديث دابو هريره رضي الله عنه او دعائشه رضي الله عنها : " مَنْ صَلَّى صَلَاةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَهِيَ خِدَاجٌ " .

**دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل :**

۱... حديث دابو سعيد رضي الله عنه : " أُمِرْنَا أَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ " په دې کې سوره فاتحه او "ماتيسر" يعني ضم دسورت ددواړو ويل په يو درجه کې لازم ګرځولې شوي دي .

۲... درفاعه رضي الله عنه حديث يعني حديث مسيئ الصلاة : " ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا شِئْتَ " په دې کې هم دمونځ طريقه دحضور صلى الله عليه وسلم په ژبه ذا ښودل شوي ده چې دسوره فاتحې نه پس هم څه ويل واجب دي فان الامر للوجوب لهذا په دواړو کې فرق کول صحيح نه دي .

**ائمه ثلاثه رحمه الله ته جواب :**

۱.دعباده رضي الله عنه دحديث الفاظ په مختلف روايتونو کې مختلف وارد شوي دي ، مثلا : " **بفاتحة الكتاب فصاعدا** " ، **بفاتحة الكتاب وسورة**" ، "**بفاتحة الكتاب وشيئا**" وغيره ، حاصل دټولو همدغه دې چې سوره فاتحه اودې سره يوڅو آيتونو نه لوستلو والا مونځ نه کيږي ، دفساد صلاة مدارصرف دسوره فاتحې په نه لوستلو باندې نه دې بلکې دفاتحې او سورت دواړو باندې دی .

۲.حدیث دابو هریره رضي الله عنه او عائشي رضي الله عنها کې "خداج" په معنی دناقص دی ، او په کوم مونځ کې چې واجب پاتې شي هغه یقینا ناقص او واجب الاعاده دي ددېنه دسوره فاتحې فرضیت نه ثابتیږي.

# بَابٌ فِي الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْإِمَامِ

## دا باب د امام پسي د قرات په باره کې دي

{۳۵۲} عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ رواه الشيخان و قَدْ تَقَدَّمَ حديثُ أَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَ عَائشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا قَالَ النِّيمَوِي وَفِي الْإِسْتِدلَالِ بِهٰذِهِ الأَحَادِيثِ نَظَرٌ .(۱)

**ترجمه** : دا باب د امام پسي د قرات په باره کې دي :او د عباده ابن الصامت رضي الله عنه نه روایت دي هغه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چې د هغه چا مونځ نشته چې هغه د فاتحې سورت نوي لوستلي . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي او د حضرت ابي هریره رضي الله عنه او د حضرت عائشي رضي الله عنها حدیث تیر شوي دي . نیموي رحمه الله ویلي دي چې په دي احادیثو باندي د استدلال په باره کې نظر او اعتراض دي .

{۳۵۳} وعنه قَالَ كُنَّا خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فَقَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَثَقُلَتْ عَلَيه الْقِرَاءةُ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ لَعَلَّكُمْ تَقْرَءُونَ خَلْفَ إِمَامِكُمْ قُلْنَا نَعَمْ هذًا يَارَسُولَ اللهِ قَالَ لَا تَفعَلُوا إِلَّا بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ فَإِنَّه لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِهَا رواه ابوداود والترمذي والبخاري في جزء الْقِرَاءة وآخرون قال النِّيمَوِي فِيه مَكْحُولٌ وَهوَ يدَلِّسُ رواه مُعَنْعَنًا وَقَدِ اضْطَرَبَ فِي إِسْنَادِهِ وَمَعَ ذٰلِكَ قَدْ تَفَرَّدَ بِذِكْرِ مَحْمُودِ بنِ الرَّبِيعِ عَن عُبَادَةَ فِي طَرِيقِ مَكْحُولٍ مُحَمَّدُ بنُ إِسحَاقَ وَهوَ لَا يحتَجُّ بِمَا انفَرَدَ بِه فَالحَدِيثُ مَعلُولٌ بِثَلَاثَةِ وُجُوهٍ .(۲)

**ترجمه** : حضرت عباده بن صامت رضي الله عنه ویلي دي چې مونږ د سحر په مانځه کې د رسول الله

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص— ۱۰۴ باب وجوب القراءة الامام والمأموم ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص— ۱۶۹ باب وجوب القراءة الفاتحة في كل ركعة ...الخ .

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج ۱ ص— ۱۱۹ باب من ترک القراءة في صلوته ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص— ۵۷ باب ماجاء انه لا صلوة الا بفاتحة الكتاب ، جزء القراءة للبخاري ص— ۸.

ﷺ پسې وُ نو په رسول الله ﷺ باندې قرأت درون شو نو کله چې د مانځه نه فارغ شو وې فرمائل چې ښايې چې تاسې د خپل امام پسې قرات وايې مونږ ووېل : چې هو اې دالله رسوله هغه وفرمائل چې د قرات فعل مه کوئ خو ولې د فاتحې قرات کوئ ځکه چې شان د خبرې دا دې نشته مونځ د هغه چا د پاره چې د فاتحې قرات يې نه وې کړې ۰ د دې حديث روايت ابوداؤد او ترمذې کړې او د قرات په جزء کې بخارې کړې او اخرونو کړې ۰

نيموې رحمه الله وېلي دي چې د دې روايت په سند کې مکحول دې او هغه به تدليس کاوه او د ده نه دغه روايت معنعن نقل شوې او هغه د ده په اسناد کې مضطرب هم دې او د دې سره سره د مکحول په سند کې دا حديث د حضرت عباده نه په نقل کولو کې د محمود بن ربيع ذکر نقطيواځې محمد بن اسحاق کړې دې او په دې سند کې محمد بن اسحاقيواځې دې په دې حديث سره استدلال نشې کيدې نو دا حديث په دريو طريقو او وجوهو سره معلول دې ۰

{۲۵۲} وَعَنْ نَافِعِ بْنِ مَحْمُودِ بْنِ رَبِيعِ الْاَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اَبْطَأَ عُبَادَةُ عَنْ صَلَاةِ الصُّبْحِ فَاَقَامَ اَبُوْنُعَيْمٍ الْمُؤَذِّنُ الصَّلَاةَ فَيُصَلِّي اَبُوْنُعَيْمٍ بِالنَّاسِ وَاَقْبَلَ عُبَادَةُ وَاَنَا مَعَهُ حَتّٰى صَفَفْنَا خَلْفَ اَبِيْ نُعَيْمٍ وَاَبُوْنُعَيْمٍ يَجْهَرُ بِالْقِرَاءَةِ فَجَعَلَ عُبَادَةُ يَقْرَأُ بِاُمِّ الْقُرْآنِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قُلْتُ لِعُبَادَةَ سَمِعْتُكَ تَقْرَأُ بِاُمِّ الْقُرْآنِ وَاَبُوْنُعَيْمٍ يَجْهَرُ قَالَ اَجَلْ صَلّٰى بِنَا رَسُوْلُ اللهِ ﷺ بَعْضَ الصَّلَوَاتِ الَّتِيْ يَجْهَرُ فِيْهَا الْقِرَاءَةَ قَالَ فَالْتَبَسَتْ عَلَيْهِ الْقِرَاءَةُ فَلَمَّا انْصَرَفَ اَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهٖ فَقَالَ هَلْ تَقْرَءُوْنَ اِذَا جَهَرْتُ بِالْقِرَاءَةِ فَقَالَ بَعْضُنَا اِنَّا لَنَصْنَعُ ذٰلِكَ قَالَ لَا تَفْعَلُوْا وَاَنَا اَقُوْلُ مَالِيْ يُنَازِعُنِيَ الْقُرْآنَ فَلَا تَقْرَءُوْا بِشَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ اِذَا جَهَرْتُ اِلَّا بِاُمِّ الْقُرْآنِ رواه ابوداود والنسائي والبخاري في جزء القراءة و خلق افعال العباد و آخرون و فيه مستور. (۱)

**ترجمه**: نافع بن محمود بن ربيع الانصارې رضي الله عنه وېلي دي چې حضرت عُباده رضي الله عنه د سحر د مانځه نه روسته شو. نو ابونعيم مؤذن مانځه ته ودريده ابو نعيم خلکو ته مونځ کاوه او عباده رضي الله عنه راغلي او زه ورسره وم تر دې پورې چې مونږ د ابو نعيم پسې صفونه جوړ کړ او ابونعيم په جهر سره قرات کاوه نو عباده د فاتحې په لوستلو شروع وکړه نو کله چې د مانځه نه فارغ شو ما

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـ ۱۱۹ باب من ترک القراءة في صلوته ، نسائي کتاب الافتتاح ج۱صـ ۱۴۶ باب قراءة ام القرآن خلف الامام فيما جهر به الامام ، جزء القراءة للبخاري صـ ۲۲ برقم ۳۳.

عباده ته ووېل چې ستا نه ما په داسې حال کې د فاتحې قرات واورېده چې ابو نعيم په جهر سره قرات لوسته عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ووېل چې هو مونږ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې ځينې داسې مونځونه ادا کړي دي چې په هغې کې په زوره قرات لوستلې شو نو په هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې قرات گډوډ کړې شو کله چې د مانځه نه فارغ شو نو مونږ ته يې مخ مبارک راوگرځاوه نو وې وېل ايا کله چې زه په جهر سره قرات کوم تاسې ته تاسو هم قرءت کوئ نو زمونږ بعض کسانو ووېل چې بې شکه مونږ دا کارکوو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائل چې داسې مه کوئ.زه وايم چې څه دې مالره چې ما سره په قران کې جګړه کوي د قران مجيد ځينې يو شي هم مه لولئ کله چې زه په جهر سره قرات کوم مګر خو سورت فاتحه لولئ. د دې حديث روايت ابوداؤد او نسائي کړي او بخاري د قرات په جزء او په خلق افعال العباد کې روايت کړي.

قَالَ النيموي إِنَّ حَدِيثَ عُبَادَةَ بنِ الصَّامِتِ فِي إِلتِبَاسِ القِرَاءة قَدْ رُوِيَ بِوُجُوه كُلُّهَا ضَعِيفَة .

**ترجمه** : امام نيموي رَحِمَهُ اللهُ وېلي دي چې د حضرت عباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث د قرات د التباس په باره کې په ډيرو لاروسره روايت شوي دي او ټولې لارې ضعيفې دي .

{۳۵۵} وَعَن أَبِي قِلَابَةَ عَن أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى بِأَصحَابِهِ فَلَمَّا قَضَى صَلَاتَه أَقبَلَ عَلَيهِم بِوَجهِهِ فَقَالَ أَتَقرَئُونَ فِي صَلَاتِكُم خَلفَ الإِمَامِ وَالإِمَامُ يَقرَأُ فَسَكَتُوا فَقَالَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَقَالَ قَائِلٌ أَو قَائِلُونَ إِنَّا لَنَفعَلُ قَالَ فَلَا تَفعَلُوا وَليَقرَأ أَحَدُكُم بِفَاتِحَة الكِتَابِ فِي نَفسِهِ رواه البخاري في جزء القراءة و آخرون واعله البيهقي بان هذه الطريق غير محفوظة .[1]

**ترجمه** : ابي قلابه رَحِمَهُ اللهُ د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپلو اصحابو ته مونځ وکړ چې کله يې مونځ ادا کړو نو صحابه وُ کرامو ته يې مبارک مخ راوګرځاوه نو وې فرمائل چې ايا تاسې د امام پسې په خپل مانځه کې قرات لولئ نو دوی چپ شول نو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ درې ځله دغه وينا وکړه نو يو اويا ډيرو کسانو ووېل چې خامخا مونږ دغه کار کوو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ وفرمائل چې داسې مه کوئ ودې لولي يو ستاسې د فاتحې سورت په خپل زړه کې . د دې حديث روايت د قرات په جزء کې بخاري کړي دي او اخرونو کړي او بيهقي دغه روايت معلول ګڼلي دي په دې وجه چې دغه طريقه غير محفوظ ده .

(۱) جزء القراءة للبخاري صـــ ۲۳ برقم ۳۵ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج ۲صـــ ۱۶۶ باب من قال لا يقرأ خلف الامام على الاطلاق .

{۲۵۶} وَعَنه عَن مُحَمَّدِ بنِ اَبِي عَائِشَة عَن رَجُلٍ مِّن اَصحَابِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ : قَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَعَلَّكُم تَقرَءُونَ وَالاِمَامُ يَقرَأُ مَرَّتَينِ اَو ثَلَاثًا قَالُوا يَا رَسُولَ الله اِنَّا لَنَفعَلُ قَالَ لَا تَفعَلُوا اِلَّا اَن يَقرَأَ اَحَدُكُم بِفَاتِحَةِ الكِتَابِ رواه احمد و آخرون و اسناده ضعيف.(۱)

**ترجمه** : او ابي قلابي د محمد بن ابي عائشه نه او هغه د نبي علیه السلام د اصحابو د يو سړي نه روايت کړي دي ويلي يې دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي کيدي شي چې امام قرأت لولي تاسي هم قرأت لولئ دغه خبره يې دوه ځلي يا دري ځلي وفرمائله هغوي وويل چې اي دالله رسوله مونږ خامخا په تحقيق سره دغه کار کوؤ نبي علیه السلام وفرمائل چې تاسي دا کار مه کوئ مګر چې يو کس ستاسي نه د فاتحي سورت لولي . دغه حديث احمد او نورو محدثينو روايت کړي او اسناد يې ضعيف دي .

{۲۵۷} عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَن صَلَّى صَلَاةً لَم يَقرَأْ فِيهَا بِاُمِّ القُرآنِ فَهِيَ خِدَاجٌ ثَلَاثًا غَيرُ تَمَامٍ فَقِيلَ لِاَبِي هرَيرَة اِنَّا نَكُونُ وَرَاءَ الاِمَامِ فَقَالَ اقرَا بِهَا فِي نَفسِكَ فَاِنِّي سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ الله تَعَالٰى قَسَمتُ الصَّلَاةَ بَينِي وَبَينَ عَبدِي نِصفَينِ وَ لِعَبدِي مَا سَاَلَ فَاِذَا قَالَ العَبدُ اَلحَمدُ لِلّٰهِ رَبِّ العَالَمِينَ قَالَ الله تَعَالٰى حَمِدَنِي عَبدِي وَ اِذَا قَالَ اَلرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ قَالَ اَثنٰى عَلَيَّ عَبدِي وَاِذَا قَالَ مَالِكِ يَومِ الدِّينِ قَالَ مَجَّدَنِي عَبدِي وَاِذَا قَالَ اِيَّاكَ نَعبُدُ وَاِيَّاكَ نَستَعِينُ قَالَ هٰذَا بَينِي وَبَينَ عَبدِي وَلِعَبدِي مَا سَاَلَ وَاِذَا قَالَ اِهدِنَا الصِّرَاطَ المُستَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ اَنعَمتَ عَلَيهِم غَيرِ المَغضُوبِ عَلَيهِم وَلَا الضَّالِّينَ قَالَ هٰذَا لِعَبدِي وَلِعَبدِي مَا سَاَلَ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : د حضرت ابو هريره رضی الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چې څوک مونځ وکړي او په دي کې د فاتحي سورت ونه وايي نو دغه مونځ ناقص دي دري ځله يې وفرمائل چې دغه مونځ ناقص دي ابوهريره رضی الله عنه ته چا وويل چې مونږ د امام نه روسته يو نو هغه ورته وويل چې په خپل زړه کې يې لوله ځکه چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې

(۱) مسند احمد ج ۵ صـــ ۶۰.
(۲) مسلم کتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۶۹ باب وجوب القراءة في کل رکعة .

فرمائل یې چې سورت صلاة یعنې سورت فاتحه ځما او ځما د بنده تر مینځ تقسیم کړي شوي نیمه شوي ده او ځما د بنده د پاره هغه څه دي چې غوښتې یې دي نو کله چې بنده ووایي چې الحمد لله رب العالمین نو الله تعالی وفرمایي چې ځما بنده ځما ثناء وویله او کله چې بنده الرحمٰن الرحیم ووایي نو الله وفرمایي چې ځما بنده ځما صفت وکړ او کله چې بنده مالک یوم الدین ووایي نو الله تعالی وفرمایي چې ځما بنده ځما لويې بیان کړه او کله چې بندي ایاک نعبد وایاک نستعین ووایي نو الله تعالی وفرمایي چې دا ځما او ځما د بنده تر منځ ده او کله چې بنده ووایي چې اهدنا الصراط المستقیم صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین .الله تعالی وفرمایي چې دا ځما د بنده د پاره دي او ځما د بنده د پاره هغه څه دي چې هغه یې سوال کړي دي.

{۳۵۸}وَ عَنه قَالَ اِذَا قَرَأَ الاِمَامُ بِأُمِّ القُرآنِ فَاقْرَأْ بِهَا وَاسبِقْه فَاِنَّه اِذَا قَالَ وَلَا الضَّالِّينَ قَالَتِ المَلَائِكَةُ آمِينَ مَن وَافَقَ ذٰلِکَ قَمِنٌ اَن يستَجَابَ بِهِم رواه البخاري في جزء القراءة واسناده حسن.(۱)

**ترجمه** : او د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دي هغه ویلي دي چې کله امام ام القرآن یعنې سورت فاتحه لولي نو ته یې هم ولوله او د هغه نه وړاندي او مخکې شه بې شکه شان دا دي چې کله هغه ولا الضالین ووایي ملائکې امین وایي د چا امین چې د ملائکو د امین سره موافق شي وړاو لائق ده چې د هغو دعا قبوله شي . د قرات په جزء کې بخاري د دي حدیث روایت کړي دي او اسناد یې حسن دي .

قال النيموي وفي الباب آثار أخر عن الصحابة رضي الله عنهم.

**ترجمه** : نیموي رحمه الله ویلي دي چې په باب کې د صحابهؤ نه نور اثار هم شته .

**مسئلة الباب :**

## امام پسي د قرأت حکم

(۱) د امام شافعي رحمه الله په نزد د راجح قول په بناء باندي قرأت د فاتحې خلف الامام پسي فرض دی که جهري مونځ وي او که سري .

(۱) جزء القراءة للبخاري صـ ۷۳ برقم ۱۵۳.

(۲) باقي ائمه ثلاثه رَحِمَهُ اللهُ دقرأت خلف الامام فرض کيدو باندې خو متفق نه دي ، البته ددوي په نزد په دې کې څه لږ شان تفصيل دې :
۱.دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد په جهري مونځ کې قرأت مکروه دې او په سري کې ددوارو نه صرف جائز يا جائز مع الاستحباب مروي دې .
۲.دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد قرأت خلف الامام مطلقا جائز نه دې ، بلکې دراجح قول مطابق جهري او سري هر قسمه مونځ کې قرأت خلف الامام مکروه تحريمي دي .

**دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ دليل:**

د باب تول احاديث دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دليلونه دي ، دکوم چې اجمالي بيان دادې :
۱.دعباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث : " لاَ صَلَاةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ " په دې کې "صلاة " عام دې جهريه وي او که سريه ، فرض وي يا نفل او د "من" نه عموم مصلی طرفته اشاره ده ، که منفرد وي يا امام ،يا مقتدي يعنې دچا هم هيڅ يو مونځ بغير دسوره فاتحې نه بغير صحيح نه دې ، لهذا خلف الامام فرضيت ثابت شو .
۲. دعباده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث کوم کې چې دسحر په مونځ کې اختلاط قرأت على النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذکر دې او ددې په آخر کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا صريح ارشاد دې : " لاَتَفْعَلُوا اِلاَّ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ " په جهري مونځ کې هم دمقتدي لپاره دسوره فاتحې استثناء کړې شوې ده .
۳... دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث موقوفا : "اِذَا قَرَأَ الاِمَامُ بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَاقْرَأْ بِهَا وَاسْبِقْهُ" .
۴... دعمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، او دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل .

# بَابٌ فِي تَرْكِ الْقِرَاءَةِ خَلْفَ الْاِمَامِ فِي الْجَهْرِيَةِ

## دباب دې په جهري مونځونو کې امام پسې دقرأت نه کولو په بيان کې

قَالَ اللهُ تَعَالَى وَاِذَا قُرِئَ الْقُرْآنُ فَاسْتَمِعُوا لَهُ وَاَنْصِتُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ .

**ترجمه** :او چې کله قرآن اولوستلې شي نو هغه په غور سره واورئ او چپ اوسئ ، کيداې شي چې پرتاسو رحم اوکړې شي:

{۲۵۱} عَنْ اَبِي مُوسَى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ عَلَّمَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا قُمْتُمْ اِلَى الصَّلَاةِ

فَلْيَؤُمَّكُم اَحَدُكُم وَاِذَا قَرَأَ الاِمَامُ فَانصِتُوا رواه احمد ومسلم وهو حديث صحيح .(١)

**ترجمه** : په جهري مانځه کې د امام پسې د قرات د پرېښودلو باب :الله تعالى فرمايلي او کله چې قرآن کريم لوستلي شي نو غوږ ورته کېږدئ او چپ شئ دي د پاره چې په تاسو باندې رحم وکړې شي.

ابو موسى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تعليم راکاوه فرمائلي يې دي چې کله تاسو مانځه ته اراده وکړئ نو امامت دي وکړي تاسو ته يو ستاسي او کله چې امام قرات کوي نو چپ اوسئ. د دي حديث روايت احمد او مسلم کړي دي او دغه حديث صحيح دي .

{٢٦٠} عَن اَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا جُعِلَ الاِمَامُ لِيؤتَمَّ بِه فَاِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَاِذَا قَرَأَ فَانصِتُوا رواه الخمسة الا الترمذي و هذا حديث صحيح .(٢)

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې بې شکه امام د دي د پاره مقرر کړې شوي دي چې اقتداء ورپسي وشي نو کله چې امام تکبير وکړي نو تاسو هم تکبير ووايي او کله چې امام قرات کوي نو تاسو چپ شي . د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي خو ولي ترمذي نه دي روايت کړي او دا حديث صحيح دي .

{٢٦١} وَعَن سُفيانَ بنِ عُيينَةَ عَنِ الزُّهرِي عَنِ ابنِ اُكيمِة قَالَ سَمِعتُ اَبَا هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يقُولُ صَلَّى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِاَصحَابِه صَلَاةً نَظُنُّ اَنَّهَا الصُّبحُ فَقَالَ هل قَرَأَ مِنكُم اَحَدٌ قَالَ رَجُلٌ اَنَا قَالَ اِنِّي اَقُولُ مَالِي اُنَازَعُ القُرآنُ رواه ابن ماجه و اسناده صحيح .(٣)

**ترجمه** : د سفيان بن عيينه نه روايت دي هغه د زهري نه روايت کړي او هغه د ابن اُکيمه نه روايت کړي هغه ويلي دي چې ما د ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه اوريدلي دي چې ويل به يې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَام اصحابو ته مونځ وکړ مونږ ګمان کوو چې دغه مونځ د سحر مونځ وُ نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائل چې ايا يو کس د ستاسي نه قرات لوستلي دي يو سړي وويل چې قرات ما لوستي دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائل چې زه وايم چې څه دي ما لره چې ما سره په قران کريم جګړه کولي شي . د دي حديث روايت ابن ماجه کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(١) مسند احمد ج٢ ص ٤١٤ ، مسلم كتاب الصلوة ج١ ص ١٧٤ باب التشهد في الصلوة .

(٢) ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ ص ٨٩ باب الامام يصلي من قعود ، نسائي كتاب الافتتاح ج ١ ص ١٤٦ باب تاويل قوله اذا قرئ القران ، ابن ماجة ابواب الصلوة ص ٦١ باب اذا قرأ الامام فانصتوا ، مسند احمد ج٢ ص ٣٧٦ .

(٣) ابن ماجة كتاب الصلوة ص ٦١ باب اذا قرأ الامام فانصتوا .

**مسئلة الباب** : ددې باب دحديثونو نه ددې خبرې ثبوت ملاويږي چې په جهري مونځونو کې قرأت خلف الاما نه دي کول پکار او همدا قول دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ او دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ دي .

**دلائلو باندې يو نظر** : امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دباب په احاديثو کې دقرأت امام تشريح په قرأت جهريه سره کوي ، ځکه داټول حديثونه ددوي هم دليل جوړيږي کماهي للامام أبي حنيفه رَحِمَهُ اللهُ.

## بَابٌ فِي تَرْكِ الْقِرَاءَةِ خَلفَ الإِمَامِ فِي الصَّلَوَاتِ كُلِّهَا

## په ټولو مونځونو کې د امام پسې د قرأة د پريښودلو باب :

{۲۶۲} عَنْ عِمْرَانَ بنِ حُصَيْنٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى الظُّهرَ فَجَعَلَ رَجُلٌ يَقرَأُ خَلفَهُ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الأَعلَى فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ أَيُّكُم قَرَأَ أَو أَيُّكُمُ القَارِي قَالَ رَجُلٌ أَنَا فَقَالَ قَد ظَنَنتُ أَنَّ بَعضَكُم خَالَجَنِيهَا رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : د حضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې بې شکه رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسپخين مونځ کاوه نو يو سړي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې د سبح اسم ربک الاعلیٰ د سورت قرات شروع کړنو کله چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سلام وګرځاوه وي فرمائل ستاسي کوم کس قرات کاوه او يا کوم کس ستاسي قرات کوونکي وُ يو سړي وويل چې ما نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په تحقيق ما ګمان کاوه چې ستاسي نه کوم څوک ما سره جګړه کوي . دغه حديث مسلم روايت کړي دي .

{۲۶۳} وَعَن أَبِي الأَحوَصِ عَن عَبدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانُوا يَقرَؤُونَ خَلفَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ خَلَطتُم عَلَيَّ القِرَاءَةَ رواه الطحاوي والطبراني واسناده حسن .(۲)

**ترجمه** : د ابي الاحوص رَحِمَهُ اللهُ نه روايت دي چې عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې خلکو به د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې قرات کاوه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائل چې تاسو په ما باندې قرات

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۷۲ باب نهي المأموم عن جهره بالقرأة خلف امامه .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۲۹ باب القراءة خلف الامام ، مسند احمد ج۱ ص ۴۵۱، كشف الاستار عن زوائد البزار ج۱ص ۲۳۹ باب القراءة خلف الامام برقم ۴۸۸ ، مسند ابي يعلى ج ۸ ص ۴۲۳ رقم ۵۰۰۶ ، مجمع الزوائد ج۱ص۱۱۰ وقال الهيثمي ورجال احمد رجال الصحيح ، مجمع الزوائد ج۲ ص ۱۱۰ فتشت ولم اجد في للمعجم الكبير .

کړي دي. دا حديث طحاوي او طبراني روايت کړي دي.

{۲۶۴} وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَ لَهُ إِمَامٌ فَقِرَاءَةُ الإِمَامِ لَهُ قِرَاءَةٌ رواه الحافظ احمد بن منيع في مسنده و محمد بن الحسن في المؤطأ و الطحاوي والدارقطني و اسناده صحيح. (۱)

**ترجمه**: د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې د چا امام وي نو د امام قرات د هغه قرات دي. دا حديث احمد بن منيع په مسند کې روايت کړي او محمد بن الحسن په موطأ کې روايت کړي او طحاوي او دار قطني روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۶۵} عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ خَلْفَ الإِمَامِ فَحَسْبُهُ قِرَاءَةُ الإِمَامِ وَإِذَا صَلَّى وَحْدَهُ فَلْيَقْرَأْ قَالَ وَكَانَ عَبْدُ اللهِ لَا يَقْرَأُ خَلْفَ الإِمَامِ رواه مالك في الموطأ و اسناده صحيح. (۲)

**ترجمه**: نافع د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت کړي هغه ويلي دي کله چې يو ستاسي نه د امام پسې مونځ کوي نو قرات د امام کافي او بس دي هغه لره او کله چې څوک کسيوا ځې مونځ کوي نو قرات دي کوي. نافع ويلي دي چې عبد الله بن عمر رضي الله عنه د امام پسې قرات نه کاوه. د دي حديث روايت په موطا کې مالک رحمه الله کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۶۶} وَعَنْ وَهْبِ بْنِ كَيْسَانَ أَنَّهُ سَمِعَ جَابِرَ بْنَ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَقُولُ مَنْ صَلَّى رَكْعَةً لَمْ يَقْرَأْ فِيهَا بِأُمِّ الْقُرْآنِ فَلَمْ يُصَلِّ إِلَّا وَرَاءَ الإِمَامِ رواه مالك و اسناده صحيح. (۳)

**ترجمه**: د وهب بن کيسان نه روايت دي چې هغه د جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه اوريدلي دي چې ويل به يې کوم کس چې يو رکعت مونځ وکړي او فاتحه پکې ونه لولي هغه مونځ هم نه دي کړي مګر خو هغه چې امام پسې وي د دي حديث روايت مالک رحمه الله کړي او اسناد يې صحيح دي.

---

(۱) مؤطا امام محمد صـــ ۹۶ باب القراءة في الصلوة خلف الامام، طحاوي كتاب الطهارة ج ۱ صـــ ۱۲۹ باب القراءة خلف الامام، دار قطني كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۳۲۳ باب ذكر قوله صلى الله عليه وسلم من كان له امام ...الخ بغية الالمعي في تخريج الزيلعي حاشية نصب الراية ج۲ صـــ ۷ نقلاً عن مسند احمد بن منيع.

(۲) مؤطا امام مالک، كتاب الصلوة صـــ ۶۸ باب ترک القراءة خلف الامام فيما جهر به.

(۳) مؤطا امام مالک كتاب الصلوة صـــ ۶۶ باب ماجاء في ام القرآن، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـــ ۷۱ باب ماجاء في ترک القراءة خلف الامام اذا جهر بالقراءة، طحاوي كتاب الصلوة ج ۱ صـــ ۱۲۹ باب القراءة خلف الامام.

{۲۶۷} وَعَن عَطَاء بنِ يَسَارٍ اَنَّه سَأَلَ زَيدَ بنَ ثَابِتٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ القِرَاءَةِ مَعَ الاِمَامِ فَقَالَ لَا قِرَاءَةَ مَعَ الاِمَامِ فِي شَيءٍ رواه مسلم في باب سجود التلاوة .[1]

**ترجمه** :عطاء بن يسار رَضِيَ اللهُ عَنهُ د امام سره د قرات په باره کې د زيد بن ثابت نه پوښتنه وکړه نو هغه ورته ووېل چې د امام پسې په هيڅ شئ کې قرات نشته . د دي حديث روايت د تلاوت د سجدي باب کې مسلم کړي دي .

{۲۶۸} وَعَن عُبَيدِ اللهِ بنِ مِقسَمٍ اَنَّه سَأَلَ عَبدَ اللهِ بنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَزَيدَ بنَ ثَابِتٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَجَابِرَ بنَ عَبدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَقَالُوا لَا يقرأُ خلفَ الاِمَامِ فِي شَيءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ رواه الطحاوي واسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : عبدالله بن مقسم د عبدالله بن عمر ، زيد بن ثابت او د جابر بن عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُم نه پوښتنه وکړه نو هغو ورته ووېل چې په هيڅ يو مانځه کې د امام پسې قرات نشي کېدلي . طحاوي د دي حديث روايت کړي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۶۹} وَعَن اَبِي وَائِلٍ عَنِ ابنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ أَنصِتْ لِلقِرَاءَةِ فَإِنَّ فِي الصَّلَاةِ شُغلًا وَسَيَكفِيكَ ذٰلِكَ الاِمَامُ رواه الطحاوي واسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : د ابو وائل نه روايت دي چې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې د قرات د پاره چپ شه په تحقيق په مانځه کې مشغوليت دي او په دي کې ستاسي د پاره امام کافي دي . طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د دي حديث روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

{۲۷۰} وَعَن عَلقَمَةَ عَنِ ابنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لَيتَ الَّذِي يقرأُ خَلفَ الاِمَامِ مُلِئَ فُوهُ تُرَابًا رواه الطحاوي واسناده حسن.[4]

**ترجمه** :د علقمه نه روايت دي چې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې، کاش چې د هغه چا خوله د خاورو ډکه شوي وي چې څوک د امام پسې قرات کوي. طحاوي د دي حديث روايت کړي دي او اسناد يې حسن دي .

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ صـــ ۱۱۵ باب سجود التلاوة .

(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۵۱ باب القراءة خلف الامام .

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۵۰ باب القراءة خلف الامام ، المعجم الکبير للطبراني ج ۹ صـــ ۳۰۳ رقم ۹۳۱۱.

(۴) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۵۰ باب القراءة خلف الامام .

{۲۷۱} وَعَنْ أَبِي جَمْرَةَ قَالَ قُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَقْرَأُ وَالإِمَامُ بَيْنَ يَدَيَّ فَقَالَ لَا رواه الطحاوي و اسناده حسن.[1]

**ترجمه** :ابي جمره ويلي دي چې ما ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويل په داسي حال کې چې امام ځما په مخ کې وي زه قرات ولولم نو هغه جواب ورکړ چې نه ، طحاوي رَحِمَهُ اللهُ د دي حديث روايت کړي دي او اسناد يې حسن دي .

{۲۷۲} وَعَنْ كَثِيرِ بْنِ مُرَّةَ عَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَامَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَفِي كُلِّ صَلَاةٍ قُرْآنٌ قَالَ نَعَمْ فَقَالَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ وَجَبَ هٰذَا فَقَالَ أَبُو الدَّرْدَاءِ يَا كَثِيرُ وَأَنَا إِلَىٰ جَنْبِهِ لَا أَرَى الإِمَامَ إِذَا أَمَّ الْقَوْمَ إِلَّا قَدْ كَفَاهُمْ رواه الدارقطني والطحاوي و احمد و اسناده حسن و في الباب آثار التابعين رضوان الله عليهم اجمعين .[2]

**ترجمه** : کثير بن مره د ابي الدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړي چې يو سړي پاڅيده نو وي ويل چې اي دالله رسوله ايا په هر مانځه کې قرات دي نو ويې فرمائل چې هو نو د قوم د جملي نه يو کس وويل چې دا واجب دي نو ابوداؤد رَحِمَهُ اللهُ وويل چې زه د هغه په خوا کې وم اي کثيره د امام د پاره زه داسي فکر کوم چې کله يې امام قوم ته جمع ورکوي او امامت يې کوي امام دوي د پاره بس او کافي دي د دي حديث روايت الدار قطني ، طحاوي او احمد کړي او اسناد يې حسن دي او په باب کې د تابعينو اثار هم شته .

## د قرأت خلف الامام په مسئله کې دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په دلائلو باندې يو نظر :

**د احنافو دليلونه** : (۱) د احنافو اولني او قوي دليل دالله دا قول دي ( واذا قرأ ي القرآن فاستمعوا له وانصتوا لعلكم تُرحمون ) د قرآن کريم دغه مبارک ايت د قرآن کريم د تلاوت په وخت کې د اوريدو او د چپ والي په وجوب باندې صريح نص دي لهذا چې کله هم امام قرأت کوي نو دوجوب استماع حکم به متوجه وي او قرأت خلف الامام به ممنوع او ګرځولي شي.

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۵۰ باب القراءة خلف الامام .

(۲) دار قطني كتاب الصلوة ج۱ ص ۳۳۲ باب ذكر قوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ من كان له امام ... الخ ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۴۸ باب القراءة خلف الامام ، مسند احمد ج۶ ص ۴۴۸.

ابن جرير طبري ويلي دي چې ابن مسعود رضي الله عنه مونځ وکړ نو د څو کسانو نه يې د امام سره قرأت واوريده نو کله چې فارغ شو نو وي ويل چې ايا ستاسي د پوهيدو وخت نه دي راغلي او يا ستاسي د پاره د سوچ او فکر کولو وخت نه دي راغلي چې په دي ايت کې فکر وکړئ( اذا قرأ القرآن فاستمعوا له وانصتوا) كما امركم الله .لکه چې څنګه تاسي ته الله امر کړي دي.

۲...حديث دابو موسى اشهري رضي الله عنه او دابوهريره رضي الله عنه مرفوعا : "وَإِذَا قَرَأَ الإِمَامُ فَانصِتُوا".

۳...دجابر رضي الله عنه حديث : "مَن كَانَ لَهُ إِمَامٌ فَقِرَاءةُ الإِمَامِ لَهُ قِرَاءةٌ" په دې کې قاعده کليه بيان کړې شوه چې مقتدې دامام پسي ولې چپ وي څکه چې دامام قرأت دمقتدي قرأت دي څکه مقتدي ته دقرأت ضرورت نشته.

۴... دجابر رضي الله عنه حديث موقوفا : "مَن صَلّٰى رَكعَةً لَم يقرَأْ فِيها بِأُمِّ القُرآنِ فَلَم يصَلِّ إِلَّا وَرَاءَ الإِمَامِ" په دې کې صراحة دقرأت خلف الامام نه ممانعت دي.

۵.حديث دعمران بن حصين رضي الله عنه، ابن مسعود رضي الله عنه، عبدالله بن عمر رضي الله عنه، زيد بن ثابت رضي الله عنه ، ابو الدرداء رضي الله عنه،وابن عباس رضي الله عنه موقوفا. دې حضراتو به دقرأت خلف الامام نه منع کوله.

## دامام شافعي رحمه الله ددلائلو جواب:

۱...دعباده رضي الله عنه حديث "لاَ صَلَاةَ لِمَن لَّمْ يقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الكِتَابِ" نه څو جوابانو کړې شوي دي:

(الف) کلمه د "من" په ټولو ځايونو کې عام نه وي ، په قرآن کريم کې دي (ويستغفرون لمن في الارض) دلته بالاتفاق "من في الارض" نه اهل ايمان مراد دي څکه چې کافرانو لپاره فرشتې دمغفرت دعاګانې نه غواړي که چرته "من" عام هم اومنلې شي نو دقرآن کريم آيت او دنورو احاديثو دوجې نه به قرأت دفاتحې حکم لره دامام او منفرد سره مخصوص منو څکه چې دجابر رضي الله عنه حديث "من كان له امام فقراءة الامام له قراءة" نه دامام قرأت کول دمقتدي قرات کول دي ددې دوجې نه امام احمد رحمه الله فرمايي "هذا اذا كان وحده".

(ب) دعباده رضي الله عنه حديث مذکور دامام بخاري او دامام مسلم رحمه الله روايت کړه دې او دمسلم په يو روايت کې بفاتحة الكتاب نه پس ورسره "فصاعدا" اضافه دې يعنې دسورة نه علاوه يو بل سورت هم پکار دې ، ددواړو حکم يو کيدل پکار دي څکه چې کله شوافع رحمه الله سورت ملاوولو

لره دمقتدي لپاره لازم نه ګڼي نو سوره فاتحې لره هم همداسې ګڼل پکار دي .
(د) که يو کس امام لره درکوع په حالت کې بيامومي او بغير له قرات نه صرف قيام او رکوع اوکړي نو دټولو په نزد دده دغه رکعت اوشو حالانکه ده خو سورت فاتحه نه ده لوستلې ، معلومه شوه چې دامام اقتداء دقرات په سقوط کې څه اثر ضرور دې .
۲... دعباده رضي الله عنه حديث " لاَ تَفعَلُوا اِلاَّ بِفَاتِحَة الكِتَابِ " ددريو وجوهاتو په بناء باندې معلول دې:
(۱) دده يو راوي مکحول دې کوم چې مدلس دې ، هغه دې حديث لره "عن عن" سره نقل کوي، حال دا چې قاعده ده چې دمدلس عن عن والا روايت غير مقبول دې تر څو چې دخپل شيخ نه پخپله دحديث اوريدو وضاحت اونکړي .(نزهة النظر،ص:۸۲)
(۲) ددې حديث په سند کې اضطراب دې : ۱- مکحول عن عبادة بن الصامت رضي الله عنه. ۲- مکحول عن نافع بن محمود عن عبادة رضي الله عنه. ۳- مکحول عن محمود عن عبادة رضي الله عنه . ۴- مکحول عن ابي نعيم أنه سمع عبادة رضي الله عنه.
داضطراب في السند نه حديث ضعيف کيږي .
(۳) دمکحول په شاګردانو کې دعن عبادة سند سره محمد بن اسحاق متفرد دې او دمحمد بن اسحاق منفرد سند سره استدلال نه کيږي .
۳... دشوافع په نورو دلائلو باندې دمصنف رحمه الله کلام پخپله واضح دې .
بهر حال دعبادة رضي الله عنه حديث مذکور په دې قرات خلف الامام په مسئله کې د شوافعو رحمه الله (ومن تبعهم من غير المقلدين) يو مهم دليل بلکې اصل الاصول دې ليکن ددې حال تاسو اوکتو چې دعلتونو دوجې نه دحسن درجې ته هم اونه رسيدو ، ليکن ددې په مقابله کې احناف رحمه الله ومن معهم من الجمهور دلائل دومره واضح او صريح دي چې په دې باندې نور کلام نشي کيداي .

## بَابُ تَأمِينِ الإِمَامِ
## دامام دآمين ويلو باب :

{۳۷۳} عَن اَبِي هرَيرَة رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ اِذَا اَمَّنَ الاِمَامُ فَاَمِّنُوا فَاِنَّه مَن

وَافَقَ تَأمِينُه تَأمِينَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَه مَاتَقَدَّمَ مِن ذَنْبِه رواه الجماعة.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې كله امام امين ووايي نو تاسو هم امين ووايي په تحقيق شان دا دي د چا امين چې د ملائكو د امين سره موافق او برابر شي نو مخكې ټول ګناهونه به ورته معاف كړي شي . جماعت د دي حديث روايت كړي دي.

{۳۷۴} وَعَنه اَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ إِذَا قَالَ الإِمَامُ غير المغضوب عليهم ولا الضالين فَقُولُوا آمِينَ فَإِنَّه مَن وَافَقَ قَولُه قَولَ الْمَلَائِكَةِ غُفِرَ لَه مَاتَقَدَّمَ مِن ذَنْبِه رواه البخاري ولمسلم نحوه.[2]

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې كله امام امين ووايي نو تاسو هم امين ووايي په تحقيق شان دا دي د چا امين چې د ملائكو د امين سره موافق او برابر شي نو مخكې ټول ګناهونه به ورته معاف كړي شي . بخاري او مسلم او نورو د دي حديث روايت كړي دي .

{۳۷۵} وَعَن اَبِي مُوسَى الاَشعَرِي رضي الله عنه فِي حَدِيثٍ طَوِيلٍ قَالَ إِنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم خَطَبَنَا فَبَيَّنَ لَنَا سُنَّتَنَا وَعَلَّمَنَا صَلَاتَنَا فَقَالَ إِذَا صَلَّيتُم فَأَقِيمُوا صُفُوفَكُم ثُمَّ لِيَؤُمَّكُم اَحَدُكُم فَإِذَا كَبَّرَ فَكَبِّرُوا وَإِذَا قَالَ غير المغضوب عليهم ولا الضالين فَقُولُوا آمِين يُحِبُّكُمُ الله رواه مسلم.[3]

**ترجمه** : په يواوږد حديث كې ابوموسى اشعري رضي الله عنه ويلي دي چې، مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم خطبه ولوستله او مونږ ته يې زمونږ سنت بيان كړه او مونږ ته يې زمونږ د مانځه باره كې ښودنه وكړه نو وي ويل كله چې تاسو مونځ كوئ نو خپل صفونه برابر كړئ بيا دې تاسي ته ستاسي يو كس امامت وكړي كله چې هغه تكبير ووايي نو تاسو هم تكبير ووايي او كله چې هغه غير

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ ۱۰۸ باب جهر الامام بالتامين ، مسلم كتاب الصلوة صـ ۱۷۶ باب التسميع والتحميد والتامين ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـ ۵۸ باب ماجاء في فضل التامين ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۳۵ باب التامين وراء الامام ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱صـ ۱۴۷ باب جهر الامام بآمين ، ابن ماجة كتاب الصلوة صـ ۶۱ باب الجهر بآمين ، مسند احمد ج۲صـ ۴۵۹.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ ۱۰۸ باب جهر الامام بالتامين ، مسلم كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۷۶ باب التسميع والتحميد والتامين .

(۳) مسلم كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۷۴ باب التشهد في الصلوة .

المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي نو تاسو آمين ووايئ الله به تاسي سره محبت وفرمايي. د دې حديث روايت مسلم کړی دی.

{۲۷۶} وَعَنْ اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَالَ الْاِمَامُ غَيْرِ المغضوب عليهم ولا الضالين فَقُولُوا آمِين وَ اَنَّ الْمَلَائِكَة تَقُولُ آمِين وَاَنَّ الاِمَامَ يَقُولُ آمين فَمَن وَافَقَ تَامِينُه تَامِينَ الْمَلَائِكَة غُفِرَ لَه مَاتَقَدَّمَ مِن ذَنْبِه رواه احمد والنسائي والدارمي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: او حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې کله امام غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايي نو تاسي امين ووايي او په تحقيق سره ملائکې امين وايي او بې شکه امام امين وايي نو چې د چا امين د ملائکو د امين سره برابر او موافق شي ده ته به مخکني گناهونه وبخل شي. د دې حديث روايت احمد، نسائي او الدارمي کړی او اسناد يې صحيح دي.

**د کلماتو تحقيق:**

"آمين" اسم فعل په معنی داستجب (قبليدلو سره).

**مسئلة الباب**: آمين ويل د جمهورو په نزد مستحب يا سنت دي، البته د امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ شافعي او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد امام، منفرد او مقتدي ټولو لپاره سنت دي، ليکن د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد غير امام لپاره سنت دي، د باب د احاديثو نه د ائمة ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ د قول تائيد کيږي.

## بَابُ الْجَهرِ بِالتَّامِينِ

### په جهر سره د امين ويلو باب دی:

{۲۷۷} عَن وَائِلِ بنِ حُجرٍ رضي الله تعالى عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا قَرَأَ ولا الضالين قَالَ آمِين رَفَعَ بِهَا صَوتَه رواه ابوداود والترمذي و آخرون وهو حديث مضطرب.[2]

(۱) مسند احمد ج۲ ص ۲۳۳، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ ص ۱۴۷ باب جهر الامام بآمين. سنن دارمي كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۴۷ باب في فضل التامين.

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ ص ۱۳۵ باب التامين وراء الامام، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ ص ۵۷ باب ماجاء في التامين.

**ترجمه** : حضرت وائل ابن حجر رضي الله عنه وېلي دي کله به چې رسول الله ﷺ ولا الضالين ولوسته آمين به يې وفرمايه او چت به يې کړ په هغې سره اواز خپل د دی حديث روايت ابوداؤد ، ترمذي او آخرونو کړي دی او دا حديث مضطرب دي .

{۲۷۸} وَعَن أَبِي هرَيرَة رضي الله عنه قَالَ كَانَ النَّبِي ﷺ إِذَا فَرَغَ مِن قِرَاءة أُمِّ القُرآنِ رَفَعَ صَوتَه وقَالَ آمين رواه الدارقطني والحاكم وفي اسناده لين .[1]

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رضي الله عنه وېلي دي او نبي عليه السلام چې کله به د ام القرآن (فاتحي) د فاتحي د سورت د لوستلو نه فارغ شو خپل اواز به يې اوچت کړ او آمين به يې وفرمايه . د دی حديث روايت الدار قطني او حاکم کړي او د دي په اسناد کې ضعف او کمزوري ده .

{۲۷۹} وَعَن أَبِي عَبدِ الله بنِ عَمِّ أَبِي هرَيرَة عَن أَبِي هرَيرَة رضي الله عنه قَالَ تَرَكَ النَّاسُ التَّامِينَ وَكَانَ رَسُولُ الله ﷺ إِذَا قَالَ غير المغضوب عليهم ولا الضالين قَالَ آمِين حَتَّى يسمَعَ اَهلُ الصَّفِّ الاَوَّلِ فَيَرتَجُّ بِها المَسجِدُ رواه ابن ماجه واسناده ضعيف .[2]

**ترجمه** :د حضرت ابي هريره رضي الله عنه د تره زوي أبي عبدالله نه روايت دی چې حضرت ابي هريره رضي الله عنه وېلي دي چې خلکو امين وېل پرېخوده او کله به چې رسول الله ﷺ غير المغضوب عليهم ولا الضالين ووايه امين به يې فرمايه تر دی چې د اول صف والا خلکو به اورېده چې د دی په وجه به په مسجد کې اواز او نګازه پورته شوه .د دی حديث روايت ابن ماجه رحمه الله کړي او اسناد يې ضعيف دي .

{۲۸۰} وعن أُمِّ الحُصَينِ رضي الله عنها أَنَّهَا صَلَّتْ خَلفَ رَسُولِ الله ﷺ فَلَمَّا قَالَ وَلَا الضَّالِّينَ قَالَ آمِينَ فَسَمِعَتْه وَهِي فِي صَفِّ النِّسَاء رواه ابن راهويه في مسنده والطبراني في الكبير وفيه اسماعيل بن مسلم المكي وَهوَ ضَعِيفٌ قَالَ النِّيمَوِي لَمْ يَثبُتِ الجَهرُ بِالتَّامِينِ عَنِ النَّبِي ﷺ وَلَا عَنِ الخُلَفَاء الاَربَعَة رضي الله عنهم وَمَا جَاء فِي البَابِ فَهوَ لَا يَخلُو مِن شَيء .[1]

---

(۱) مستدرک حاکم کتاب الصلوة ج۱ص ۲۲۳ باب كان اذا فرغ من ام القرآن ...الخ ، دار قطني كتاب الصلوة ج۱ص ۳۳۵ باب التامين في الصلوة ...الخ .

(۲) ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۶۲ باب الجهر بامين.

**ترجمه:** د ام حصين رضي الله عنها نه روايت دی چي هغي د رسول الله صلى الله عليه وسلم پسي مونځ وکړو نو چي کله يې ولا الضالين ووفرمايه نو امين يې ووايه نو هغي واوريدو او هغه د ښځو په صف کې وه.
د دی حديث روايت راهويه په خپل مسند کې کړي دي او طبراني په کبير کې د دي روايت کړي دي او په دي کې اسمعيل بن مسلم مکې دي او هغه ضعيف دي. امام نيموي رحمه الله ويلي دي چي په جهر سره امين ويل د نبي عليه السلام نه نه دي ثابت شوي او نه د څلورو خليفه ګانو نه ثابت شوي او په دي باب کې چي څه راغلي دي هغه د يو څه شئ (ضعف) نه خالي نه دي.

## آمين او چت آواز سره ويل افضل دي او که ټيټ آواز سره؟

(۱) دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد جهرا افضل دي، البته دامام شافعي رحمه الله نه يو روايت دمقتدي په حق کې سرا او امام مالک رحمه الله په نزد يو روايت دامام په حق کې سرا دافضل کيدو هم دي په سري مونځ کې دده په نزد سرا افضل دي.
(۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد آمين دامام او دمقتدي دواړو لره په ټيټ آواز سره ويل افضل دي.
**دائمه ثلاثو رحمه الله دليل:** دباب څلور واړه حديثونه دجمهورو دليلونه دي.

۱... حديث دوائل بن حجر رضي الله عنه بسند سفيان ثوري رحمه الله: **قال "آمين رفع بها صوته".**

۲... حديث دابو هريره رضي الله عنه: **"رفع صوته وقال: آمين".**

۳... حديث دابو هريره رضي الله عنه ايضا: **"آمين حتى يسمع أهل الصف الصف الاول".**

۴... حديث دام الحصين رضي الله عنها: **قال: آمين فسمعته وهي في صف النساء".**
(دامام ابوحنيفه رحمه الله دلائل په بله صفحه باندې اوګورئ)

# بَابُ تَرْكِ الْجَهْرِ بِالتَّأْمِينِ:

## په جهر سره دامين د پريښودلو باب:

**قَالَ عَطَاء آمِينَ دُعَاء وَقَدْ قَالَ اللهُ تعالى أُدْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَة.**
عطاء فرمايي چې آمين يو دعا ده او په تحقيق سره الله تعالى فرمايي: تاسو خپل رب لره په عاجزئ او په خاموشئ سره راوبلئ.

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني ج ۲۵ صـــ ۱۵۸ رقم ۳۸۳، الدراية كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۳۹ باب صفة الصلوة نقلاً ابن راهويه.

{۲۸۱} عن أبي هريرة رضي الله عنه قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يعلمنا يقول لا تبادروا الإمام إذا كبر فكبروا و إذا قال ولا الضالين فقولوا آمين و إذا ركع فاركعوا وإذا قال سمع الله لمن حمده فقولوا اللهم ربنا لك الحمد رواه مسلم قال النيموي يستفاد منه أن الإمام لا يجهر بآمين.[1]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم تعليم راکاوه فرمائيلې د امام نه جلتي او مخکې والي مه کوئ کله چې تکبير ووايي نو تاسو هم تکبير ووايي او چې کله ولا الضالين ووايي نو تاسو آمين ووايي او چې کله رکوع کوي نو تاسو هم رکوع کوئ او چې کله سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسو ربنا ولک الحمد ووايي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي . نيموي رحمه الله ويلي دي چې د دي حديث نه دا خبره اخستلي شي چې امام دي په جهر سره امين نه وايي .

{۲۸۲} و عن الحسن أن سمرة بن جندب رضي الله عنه و عمران بن حصين رضي الله عنه تذاكرا فحدث سمرة بن جندب رضي الله عنه أنه حفظ عن رسول الله صلى الله عليه وسلم سكتتين سكتة إذا كبر و سكتة إذا فرغ من قراءة غير المغضوب عليهم ولا الضالين فحفظ ذلك سمرة و أنكر عليه عمران بن حصين فكتبا في ذلك إلى أبي بن كعب رضي الله عنه فكان في كتابه إليهما أو في رده عليهما أن سمرة قد حفظ رواه ابوداود و آخرون و اسناده صالح.[2]

**ترجمه** : د حسن رحمه الله نه روايت دي چې بي شکه سمره ابن جندب او عمران بن حصين رضي الله عنهما په خپل منځ کې مذاکره کوله نو حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه حديث بيان کړ چې ده د حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم نه دوه سکتې يادي ساتلي دي يو سکته هغه وخت وه چې کله يې تکبير وفرمايې او دويمه هغه وخت وه چې کله رسول الله صلى الله عليه وسلم د غير المغضوب عليهم ولا الضالين ويلو نه فارغ شو . هغه سمره رضي الله عنه په خپل حفظ کې ساتلي وي او حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه د دې نه منکر ؤ نو دواړو په دې باره کې حضرت ابي بن کعب رضي الله عنه ته خط وليکه نو ابي بن کعب رضي الله عنه په خط کې دې دواړو ته او يا په واپس کيدو د خط د ده کې په دواړو

---

(۱) مسلم کتاب الصلوة ج۱صــ ۱۷۷ باب النهي عن مبادرة الامام بالتكبير وغيره .

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صــ ۱۱۳ باب السكتة عند الافتتاح .

باندي داسي ؤو چې حضرت سمره رضي الله عنه صحيح ياد ساتلي دي . دا حديث ابوداؤد او نورو محدثينو روايت کړي او اسناد يې صالح دي .

{۳۸۳} وعنه عَنْ سَمُرَةَ بنِ جُنْدُبٍ رضي الله عنه أنَّه كَانَ إذَا صَلَّى بِهِمْ سَكَتَ سَكْتَتَيْنِ إذَا افْتَتَحَ الصَّلاةَ وَإذَا قَالَ وَلاَ الضَّالِّينَ سَكَتَ أيضًا هنَيهة فَأنْكَرُوا ذلِكَ عَلَيه فَكَتَبَ إلَى أُبَيِّ بنِ كَعْبٍ رضي الله عنه فَكَتَبَ إلَيهِمْ أُبَيٌّ أنَّ الأمْرَ كَمَا صَنَعَ سَمُرَةُ رواه احمد والدارقطني واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : او د حسن رحمه الله نه روايت دي هغه د حضرت سمره بن جندب رضي الله عنه نه روايت کړي چې ده به کله خلکو ته مونځ کاوه نو دوه سکتې به يې په مانځه کې کولې کله به يې چې مونځ شروع کاوه او کله به يې چې ولا الضالين ووايه نو لږه شان سکته به يې کوله نو خلکو په دې خبره د باندې انکار وکړو نو أبي بن کعب رضي الله عنه ته ده خط وليکه نو حضرت أبي بن کعب رضي الله عنه جواب ورکړو چې کار همدغسې دې کوم چې سمره رضي الله عنه کړې دې .د دې حديث روايت احمد او دار قطني کړې دې او اسناد يې صحيح دې .

{۳۸۴} وَعَنْ وَائِلِ بنِ حُجْرٍ رضي الله عنه قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم فَلَمَّا قَرَأَ غَيرِ المَغْضُوبِ عَلَيهِمْ وَلاَ الضَّالِّينَ قَالَ آمِينَ وَأخْفَى بِهَا صَوتَه وَوَضَعَ يَدَهُ اليُمْنَى عَلَى يَدِهِ اليُسْرَى وَسَلَّمَ عَنْ يَمِينِه وَعَنْ يَسَارِهِ رواه احمد والترمذي و ابوداود الطيالسي و الدارقطني والحاكم و آخرون و اسناده صحيح و في مَتْنِه اِضْطِرَابٌ .[2]

**ترجمه** : حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه ويلي دي چې موږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ وکړو نو کله يې چې غير المغضوب عليهم ولا الضالين ولوسته امين يې ووايه او په هغه سره يې خپل آواز ټيټ کړو او ښي لاس يې په چپ لاس باندي کيښود او ښي او ګس طرف ته يې سلام واړوه . د دې حديث روايت احمد ، ابوداود طيالسي او دار قطني او حاکم او نورو کړې دې اسناد يې صحيح دې او په متن کې يې اضطراب دې .

(۱) مسند احمد ج ۵ صـ ۲۳ ، سنن دارقطني كتاب الصلوة ج۱صـ ۳۳۶ باب موضع سكتات ...الخ .
(۲) مسند احمد ج۴صـ ۳۱۶ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـ ۵۸ باب ماجاء في التامين ، ابوداود الطيالسي صـ ۱۳۸ برقم ۱۰۲۴ ، دارقطني كتاب الصلوة ج۱صـ ۳۳۴ باب التامين في الصلوة ، مستدرک حاکم کتاب التفسير ج۲صـ ۲۳۲ باب آمين يخفض الصوت .

{۲۸۵} وَ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ قَالَ كَانَ عُمَرُ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ وَ عَلِي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ لَا يَجْهَرَانِ بِبِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ وَلَا بِالتَّعَوُّذِ وَلَا بِآمِينَ رواه الطحاوي وابن جرير وَإِسْنَادُهُ ضَعِيفٌ.[1]

**ترجمه** : حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه ويلي دي چې حضرت عمر او حضرت علي رضي الله عنهما به بسم الله الرحمٰن الرحيم او اعوذ بالله او امين په جهر سره نه ويل. د دې حديث روايت طحاوي او ابن جرير کړي او اسناد يې ضعيف دي.

{۲۸۶} وَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ خَمْسٌ يُخْفِيهِنَّ الْإِمَامُ سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَ بِحَمْدِكَ وَالتَّعَوُّذُ وَ بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ وَ آمِينَ وَ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ رواه عبد الرزاق في مصنفه واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : ابراهيم رحمه الله ويلي دي چې پنځه شيان دي چې امام به يې په پټه وايي : (۱) سبحانك اللهم وبحمدك (۲) اعوذ بالله من الشيطان الرجيم (۳) بسم الله الرحمٰن الرحيم. (۴) امين (۵) اللهم ربنا ولك الحمد. د دې حديث روايت عبدالرزاق په خپل مصنف کې کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## آمين بالسر باندې دامام ابوحنيفه رحمه الله دلائل :

دباب ټول احاديث داخفاء بآمين په مسئله باندې دامام صاحب دليلونه دي يو څو اهم دادي :

۱... آمين يوه دعا ده او ددعا متعلق دالله ارشاد دې (اُدْعُوْا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً) يعني په سوال او زارۍ سره او په ټيټ آواز سره خپل رب لره راوبلئ كما قال عطاء.

۲... حديث دسمره رضي الله عنه : " وَ سَكْتَةً إِذَا فَرَغَ مِنْ قِرَاءَةِ غَيْرِ الْمَغْضُوبِ عَلَيْهِمْ وَلَا الضَّالِّينَ" دا سكته او خاموشي به امين لوستلو لپاره وه ، معلومه شوه چې امين بالسر وو ورنه آواز به اوريدل كيدو.

۳... دوائل بن حجر رضي الله عنه په سند دشعبة بن الحجاج : " قَالَ : آمِينَ وأَخْفَى بِهَا صَوْتَه".

۴... دعمر رضي الله عنه علي رضي الله عنه فعل او دابراهيم نخعي رحمه الله قول.

## دائمه ثلاثه رحمهم الله په دلائلو باندې كلام :

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۱۲۰ باب قراءة بسم الله في الصلوة.

(۲) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۲ص۸۷ باب ما يخفي الامام.

۱... حدیث دوائل رحمه الله سندا دصحیح کیدو دباوجود متنا مضطرب دی، ځکه چې ددې سند مدار په دوو مستند راویانو باندې دې، (۱) سفیان ثوري رحمه الله.(۲) شعبه بن حجاج رحمه الله دواړه دخپل وخت محدثین وو او ددوي په ثقاهت کې هیڅ قسمه کلام نشته ؟سفیان ثوري رحمه الله "رفع بها صورته" نقل کوي دکوم نه چې ائمه ثلاثه رحمه الله استدلال کوي او ددوي معاصر امام شعبه رحمه الله "خفض بها صورته" یا "أخفى بها صوته" نقل کوي دکوم نه چې احناف استدلال کوي.

علامه نیموي رحمه الله فرمایي چې دبعضې اقوالو نه دسفیان او بعضې اقوالو نه دشعبه روایت لره ترجیح حاصلیږي لیکن زما په ذهن کې روایت دشعبه یوه لویه وجه دترجیح ده هغه دا چې سفیان ثوري اګر چې ثقه او حجة دې لیکن کله نا کله هغه تدلیس کوي او هغه دې روایت لره عن سره روایت کوي او دشعبه عادت مطلقا دتدلیس نه وو او ددې نه باوجود هغه لفظ "أخبرنا" سره روایت کوي همدارنګه سفیان ثوري مسلک دخپل روایت برعکس دشعبه روایت مطابق آمین بالسر دې.

۲... حدیث دابو هریره رضي الله عنه "رفع صورته" جواب دادې چې ددې یو راوري اسحاق بن ابراهیم لره بعضو دیر ضعیف او عوف طائي کذاب ویلې دی.

۳... دابو هریره رضي الله عنه حدیث "قال: آمین حتى یسمع أهل الصف الاول" هم ضعیف دې دده یو راوي بشر بن رافع لره ابن حبان موضوع روایت نقل کولو والا بنودلې دې.

۴... حدیث دام الحصین رحمه الله هم ضعیف دې په وجه دیو راوي محمد بن اسماعیل.

حاصل دکلام او داحادیثو په مینځ کې تطبیق؛

امام ابو حنیفه رحمه الله په دې باب کې آیت قرآني (ادْعُوا رَبَّكُمْ تَضَرُّعًا وَخُفْيَةً) لره اصل ګرځوي او په مختلف حدیثونو کې تطبیق کوي په دې طور باندې چې (۱) درفع صوت نه مراد رفع یسیر (معمولي شان جهر) او اخفاء نه مراد اخفاء غیر شدید یعني یو اندازه ټیټ آواز دې .(۲) دجهر والا روایتونه وقتا فوقتا تعلیم ورکولو باندې محمول دي. والله اعلم بالصواب

# بَابُ قِرَاءَةِ السُّورَةِ بَعْدَ الْفَاتِحَةِ فِي الْأُولَيَيْنِ

## د فاتحي د سورت نه روسته په اولو دوه ؤر كعتونو كې د سورت د لوستلو باب:

{۲۸۷} عَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَتَيْنِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهٰكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهٰكَذَا فِي الصُّبْحِ رواه الشيخان. (۱)

**ترجمه**: ابوقتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ماسپخين په اولو دوه ركعتونو كې فاتحه او دوه سورتونه ويل او په روستو دوه ؤ ركعتونو كې به يې د فاتحي سورت او ايت به يې مونږ ته را اوروه او اول ركعت به يې د دويم ركعت نه اوږداوه دغسې به يې د مازيګر په مانځه كې او دغسې به يې د سحر په مانځه كې كول. د دي حديث روايت شيخينو كړي.

{۲۸۸} وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْمَغْرِبِ بِالطُّورِ

رواه الجماعة الا الترمذي. (۲)

**ترجمه**: او حضرت جبير بن مطعم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې د ماښام په مانځه كې يې د طور سورت لوسته. د دي حديث روايت د ترمذي نه په غير جماعت كړي.

{۲۸۹} وعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ فِي صَلَاةِ الْمَغْرِبِ بِسُورَةِ الْأَعْرَافِ فَرَّقَهَا فِي الرَّكْعَتَيْنِ رواه النسائي واسناده صحيح. (۳)

**ترجمه**: د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د ماښام په مانځه كې د اعراف سورت لوستو او په دواړو ركعتونو به يې تقسيماوه. د دي حديث روايت نسائي كړي

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۷ باب يقرأ في الاخريين بفاتحة الكتاب، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۶ باب القراءة في الظهر والعصر.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۵ باب الجهر في المغرب، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۷ باب القرأ في الصبح،

(۳) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۵۴ باب القراءة في المغرب بالمص.

ابوداود كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۸ باب قدر القراءة في المغرب نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۵۴ باب القراءة في المغرب بالطور، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۶۰ باب القراءة في صلوة المغرب، مسند احمد ج۴ ص ۸۴.

دي او اسناد يې صحيح دي.

{۲۹۰} وَعَنِ الْبَرَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي سَفَرٍ فَقَرَأَ فِي الْعِشَاءِ فِي اِحْدَى الرَّكْعَتَيْنِ بِالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: حضرت براء رضي الله عنه ويلي دي چې په سفر کې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ماسختن د دوو رکعتونونه په يو رکعت کې دوالتين والزيتون سورت قرات کړي وُ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

{۲۹۱} وعن جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ عُمَرُ لِسَعْدٍ لَقَدْ شَكَوْكَ فِي كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى الصَّلَاةِ قَالَ اَمَّا اَنَا فَاَمُدُّ فِي الْاُوْلَيَيْنِ وَ اَحْذِفُ فِي الْاُخْرَيَيْنِ وَلَا آلُو مَا اقْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ صَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَدَقْتَ ذَاكَ الظَّنُّ بِكَ اَوْ ظَنِّي بِكَ رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه**: حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه حضرت سعد رضي الله عنه ته وويل چې خلک ستا نه په هر يو شئ کې شکايت کوي تردي چې په مانځه کې هم شکايت کوي حضرت سعد رضي الله عنه وويل چې زه خو په اولو دوه وُ رکعتونو کې قرات اوږدوم او په اخرو دوه وُ رکعتونو کې قرات لنډوم او ما په دي کې کمي نه دي کړي کوم چې ما د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مانځه کې اقتداء کړي حضرت عمر رضي الله عنه وويل ته ريښتيا وايي ستا په باره کې څما هم دا خيال وُ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

{۲۹۲} وعن اَبِي سَعِيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اُمِرْنَا اَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ رواه ابوداود و احمد و ابويعلى وابن حبان، واسناده صحيح.(۳)

**ترجمه**: د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه روايت دي مونږ ته امر شوي دي چې مونږ د فاتحي سورت او د قرآن مجيد نه څه اسان وي ولولو. د دي حديث روايت ابوداؤد، احمد، ابويعلى او ابن

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۵ باب الجهر في العشاء، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۷ باب القراءة في العشاء.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۶ باب يطوّل في الاولين ...الخ، مسلم كتاب الصلوة، ج۱ص ۱۸۶ باب القراءة في الظهر والعصر.

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۸ باب من ترك القراءة في صلوته، مسند احمد ج۳ص ۳، مسند ابي يعلى ج۲ص ۴۱۷ رقم الحديث ۲۳۴، صحيح ابن حبان ج ۴ ص ۱۴۰ رقم ۱۷۸۷.

حبان کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

**مسئلة الباب**: په اولني دوو رکعتونو کې د سورة الفاتحې سره يو سورت ملاوول واجب دي يا سنت؟

(۱) دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد اولني دوو رکعتونو کې ضم د سورت مستحب دي.

(۲) حنفيه او بعضي مالکيو په نزد واجب دي.

**دائمه ثلاثه دليل**: ددې حضراتو سره په دې مسئله کې هيڅ صريح حديث نشته.

**دحنفيه او بعض مالکيه دليل**:

دضم دسورت دلائل دادي:

۱... حديث دابو سعيد رضي الله عنه: "أُمِرْنَا أَنْ نَقْرَأَ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ وَمَا تَيَسَّرَ".

۲... حديث دابو قتاده رضي الله عنه: "كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَتَيْنِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهٰكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهٰكَذَا فِي الصُّبْحِ".

۳... دقرات خلف الامام مسئلې لاندې تير شوي هغه حديثونه کوم کې چې "فاتحة الکتاب" سره "فصاعدا" يا "وما زاد" يا "وشيئا" راغلي دي.

او داولني دوو رکعتونو تعيين للقراءة دلايل دادي:

۱... دابو قتاده رضي الله عنه حديث: كَانَ يَقْرَأُ فِي الظُّهْرِ فِي الْأُولَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَسُورَتَيْنِ وَفِي الرَّكْعَتَيْنِ الْأُخْرَيَيْنِ بِأُمِّ الْكِتَابِ وَيُسْمِعُنَا الْآيَةَ وَيُطَوِّلُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى مَا لَا يُطِيلُ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ وَهٰكَذَا فِي الْعَصْرِ وَهٰكَذَا فِي الصُّبْحِ.

۲... حديث دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه: "أَمَّا أَنَا فَأَمُدُّ فِي الْأُولَيَيْنِ وَأَحْذِفُ فِي الْأُخْرَيَيْنِ وَلَا آلُو مَا اقْتَدَيْتُ بِهِ مِنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم" په آخرينې دوو رکعتونو کې تخفيف قرات لزومي سنت اوګرځو او حضرت عمر رضي الله عنه د حضور صلى الله عليه وسلم تصويب اوکړ.

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الرُّكُوعِ وَعِنْدَ رَفْعِ الرَّأْسِ مِنَ الرُّكُوعِ

## د رکوع او د رکوع نه د سر د اوچتولو په وخت کې د لاسونو د اوچتولو باب دې

{۲۹۳} عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنهما أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صلى الله عليه وسلم كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ إِذَا

افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَه مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهمَا كَذٰلِكَ أَيضًا وَقَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَه رَبَّنَا وَلَكَ الحَمْدُ وَكَانَ لَا يَفعَلُ ذٰلِكَ فِي السُّجُودِ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَاللهُعَنهُ ويلي دي چي کله به رسول الله په مانځه کې شروع کوله نو دواړه لاسونه به يې د اوږو په برابرئ اوچتول او کله به يې چې د رکوع تکبير کاوه او د رکوع نه به يې چې کله سر مبارک اوچتاوه دغسې به يې هم دواړه لاسونه اوچتول او سمع الله لمن حمده ربنا ولک الحمد به يې وايه او په سجده کې به يې داسې نه کول . د دې حديث روايت شيخينو (بخاري او مسلم ) کړي دي .

قَالَ النِّيمَوِي وَفِي البَابِ عَنْ أَبِي حُمَيدٍ السَّاعِدِي رَضِيَاللهُعَنهُ وَمَالِكِ بْنِ الْحُوَيرِثِ رَضِيَاللهُعَنهُ وَوَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَاللهُعَنهُ وعَلِي رَضِيَاللهُعَنهُ وَغَيرِهِم مِنْ أَصْحَابِ النَّبِي صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ .

**ترجمه** : نيموي رَحِمَهُاللهُ ويلي دي : او په باب کې د ابي حميد الساعدي او مالک بن الحويرث او وائل بن حجر او دعلي رَضِيَاللهُعَنهُم نه او د دوي نه په غير د رسول الله صَلَّىاللهُعَلَيهِوَسَلَّمَ د نورو اصحابو هم روايتونه موجود دي .

## مسئله درفع اليدين

دتکبير تحريمې په وخت رفع يدين بالاتفاق سنت دي ، دغه شان سجدې ته دتللو په وخت او دسجدې نه دراوچتيدو په وخت بالاتفاق رفع يدين متروک دي ، البته رکوع ته دتللو په وخت او درکوع نه دسراوچتولو په وخت په رفع يدينو کې اختلاف دې ؛

(۱) امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَااللهُ په نزد په دې دواړو مواقعو کې رفع يدين افضل دې .

(۲) دامام ابو حنيفه او مالک رَحِمَهُمَااللهُ په نزد ترک درفع يدين افضل دي .

مصنف درفع يدينو يه مسئله باندې پنځه بابونه قائم کړي دي او په دې کې يې پنځلس حديثونه ذکر کړي دي .

### دامام شافعي او احمد رَحِمَهُمَااللهُ دلائل :

۱... دابن عمر رَضِيَاللهُعَنهُ حديث : "كَانَ يرفَعُ يدَيهِ حذوَ مَنكِبَيهِ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ وَإِذَا كَبَّرَ لِلرُّكُوعِ وَ

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۲ باب رفع اليدين في التكبيرة الاولىٰ ...الخ ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۹ باب استحباب رفع اليدين حذو المنكبين ...الخ .

إِذَا رَفَعَ رَأْسَه مِنَ الرُّكُوعِ رَفَعَهُمَا كَذٰلِکَ اَيضًا" داحديث بغير دڅه شبهې نه اصح مافي الباب او ددې سند دقوت په اعتبار سره سلسلة الذهب دې.

دامام بخاري رَحِمَهُ اللهُ شيخ علي بن المديني رَحِمَهُ اللهُ ددې حديث متعلق فرمايي: "وحديث ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حجة الله على الخلق في رفع اليدين". (درس مشكوة بغير)

۲... حديث دمالک بن الحويرث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: "رَأَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيهِ فِي صَلَاتِه إِذَا رَكَعَ وَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَه مِنَ الرُّكُوعِ وَإِذَا سَجَدَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَه مِنَ السُّجُودِ حَتّٰى يحَاذِي بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيه".

۳... دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث: "رَأَيتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يرْفَعُ يدَيه فِي الصَّلَاةِ حَذْوَ مَنْكِبَيه حِينَ يفْتَتِحُ الصَّلَاةَ وَ حِينَ يرْكَعُ وَ حِينَ يسْجُدُ".

(دامام ابوحنيفه او دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دليلونه "باب ترک رفع اليدين في غير الافتتاح" تر بحث لاندې اوګورئ).

## بَابُ مَا اسْتَدَلَّ بِه عَلٰى اَنَّ رَفْعَ الْيدَينِ فِي الرُّكُوعِ وَاظَبَ عَلَيه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَادَامَ حَيا

**باب دې په بيان دهغه روايت کې چې په هغې سره يې د هغه روايت نه استدلال کړې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په رکوع کې د لاسونو په اوچتولو هميشه والې کړې دې تر څو پورې چې ژوندې وُ**

**{۳۹۴} عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا افْتَتَحَ الصَّلَاةَ رَفَعَ يدَيه وَإِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَه مِنَ الرُّكُوعِ وَ كَانَ لَا يفْعَلُ ذٰلِکَ فِي السُّجُودِ فَمَا زَالَتْ تِلْکَ صَلَاتُه حَتّٰى لَقِيَ اللهَ تَعَالٰى رواه البيهقي و هو حديث ضعيف بل موضوع.** (۱)

**ترجمه**: د حضرت بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې کله به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مانځه شروع کوله نو خپل دواړه لاسونه به يې اوچتول او کله به يې چې رکوع کوله او کله به بې چې د رکوع نه سر اوچتاو او په سجده کې يې داسې نهٔ کړې او د هغه مونځ همدغسې وُ څو پورې چې يې دالله سره ملاقات وشو. دا حديث بيهقي روايت کړې او دا حديث ضعيف دې بلکه موضوع دې.

---

(۱) نصب الراية كتاب الصلوة ج۱ص ۴۰۹، والدراية ج۱ص ۱۵۳، وتلخيص الحبير ج۱ص ۲۱۸، نقلا عن البيهقي.

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الْقِيَامِ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ

### د دوه ؤر رکعتونو نه د اوچتيدو په وخت کې د لاسونو د اوچتولو باب :

{۳۹۵} عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ إِذَا دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ كَبَّرَ وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا رَكَعَ رَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ رَفَعَ يَدَيْهِ وَإِذَا قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ رَفَعَ يَدَيْهِ وَرَفَعَ ذٰلِكَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري.(۱)

**ترجمه** : د حضرت نافع رحمه الله نه روايت دي چې کله به حضرت عبد الله عمر رضي الله عنه په مانځه کې داخليده تکبير به يې وايه او دواړه لاسونه به يې اوچتول او کله به يې چې رکوع کوله دواړه لاسونه به يې اوچتول او کله به يې چې سمع الله لمن حمده ويله دواړه لاسونه به يې اوچتول او کله به چې د دويم رکعت نه پورته کيدو دواړه لاسونه به يې اوچتول او ابن عمر رضي الله عنه دا حديث نبي عليه السلام ته رسولي دي.

## بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ لِلسُّجُودِ

### د سجدې د پاره د لاسونو د اوچتولو باب :

{۳۹۶} عَنْ مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَفَعَ يَدَيْهِ فِي صَلَاتِهِ إِذَا رَكَعَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ وَإِذَا سَجَدَ وَإِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ حَتَّى يُحَاذِيَ بِهِمَا فُرُوعَ أُذُنَيْهِ رواه النسائي وإسناده صحيح.(۲)

**ترجمه** : د حضرت مالک بن الحويرث رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې کله رسول الله صلى الله عليه وسلم رکوع کوله او کله به يې چې د رکوع نه سر مبارک راپورته کاوه او کله يې چې سجده کوله او کله يې چې د سجدې نه سر مبارک راپورته کاوه نو دواړه لاسونه به يې اوچتول تر دې پورې چې د خپلو مبارکو غوږونو د برخې برخې په برابر به يې اوچت کړل. د دې حديث روايت نسائي کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۱۰۲ باب رفع اليدين اذا قام من الركعتين
(۲) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص۱۶۵ باب رفع اليدين للسجود.

{۳۹۷} وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ رواه ابو يعلى واسناده صحيح.[۱]

**ترجمه**: د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه نبي عليه السلام په رکوع او سجده کې دواړه لاسونه اوچتول. د دې حديث روايت ابو يعلى کړي او اسناد يې صحيح دي.

د دې حديث د مرفوعيت دعوى صحيح او سمه نه ده بلکه صحيح خبره دا ده چې دا حديث مرفوع نه دي او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه پورې موقوف دي لکه چې امام ابوداوُد رحمه الله ويلي دي چې صحيح خبره دا ده چې د ابن عمر رضي الله عنه قول مرفوع نه دي.[۲]

په خپله امام بخاري رحمه الله هم دې خبرې ته اشاره کړې ده چې د ابن عمر رضي الله عنه روايت موقوف دي[۳].

د سجدې په وخت کې هم رفع اليدين په اتفاق سره متروک دي. د دې باب اول روايت (۳۹۶) نمبر حديث د مالک بن الحويرث نه روايت شوي دي د دې د جواب تفصيل په باب د رفع اليدين عند الرکوع کې دې په (۳۹۳) حديث کې تير شوي دي.

دا خبره د يادولو وړ ده چې احناف حضرات د رفع اليدين د ثبوت نه منکر نه دي خو ولې کومو حضراتو چې دا خبره کړې ده چې ترک د رفع اليدين د احاديثو نه نه دي ثابت شوي احناف په دلائلو سره د دې خبرې ترديد کوي. هو احناف دا خبره کوي چې ترک د رفع اليدين هم په احاديثو سره ثابت دي او دا يې افضل او راجح ګڼلي دي. او د دې دلائل او د ترجيح وجوه په راتلونکي باب کې ذکر کيږي.

{۳۹۸} وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَرْفَعُ عِنْدَ تَكْبِيرِ الرُّكُوعِ وَعِنْدَ التَّكْبِيرِ حِينَ يَهْوِي سَاجِدًا رواه الطبراني في الاوسط وقال الهيثمي إسناده صحيح.[۴]

---

(۱) مسند ابي يعلى ج۶ صـ ۳۹۹ برقم ، ۹۹۷ (۳۷۵۲) ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۳۵ باب من كان يرفع يديه اذا افتتح الصلوة ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صـ۱۰۱ باب رفع اليدين في الصلوة .

(۲) ابوداؤد ج۱صـ ۱۰۸.

(۳) ج۲صـ ۱۰۲ .

(۴) المعجم الاوسط ج۱صـ ۳۹ برقم ۱۶ ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صـ ۱۰۲ باب رفع اليدين في الصلوة .

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د ركوع د تكبير په وخت او د هغه تكبير په وخت كې چې سجدې ته به خكته كيده لاسونه اوچتول. د دې حديث روايت په اوسط كې طبراني كړي او هيثمي رحمه الله وېلي دي چې اسناد يې صحيح دي.

{۳۹۹} وَ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يَرْفَعُ يَدَيه فِي الصَّلاَةِ حَذْوَ مَنْكِبَيه حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلاَةَ وَ حِينَ يَرْكَعُ وَ حِينَ يَسْجُدُ رواه ابن ماجه رواته كلهم ثقات الا اسماعيلُ بنُ عَياشٍ وَ هوَ صَدُوقٌ وَ فِي روايته عَن غَيرِ الشَّامِيينَ كلامٌ.[1]

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رضي الله عنه وېلي دي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې په مانځه كې يې د مانځه د شروع كولو او د ركوع او سجدې په وخت كې لاسونه اوچت كړي د دې حديث روايت ابن ماجه كړي او راويان يې ټول ثقه دي مګر اسماعيل بن عياش او هغه صدوق دي خو ولې د شامينو نه په غير د نورو محدثينو نه د ده په روايت كې كلام او خبرې شته.

{۴۰۰} وَ عَن حُصَينِ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ قَالَ دَخَلنَا عَلَى اِبْرَاهِيمَ فَحَدَّثَه عَمرُو بنُ مُرَّةَ قَالَ صَلَّينَا فِي مَسْجِدِ الحَضْرَمِيينَ فَحَدَّثَنِي عَلقَمَةُ بنُ وَائِلٍ عَنْ اَبِيه اَنَّه رَأَي رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يَرْفَعُ يَدَيه حِينَ يَفْتَتِحُ الصَّلاَةَ وَ اِذَا رَكَعَ وَ اِذَا سَجَدَ فَقَالَ اِبْرَاهِيمُ مَا اَرَي اَبَاكَ رَأَي رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم اِلاَّ ذٰلِكَ اليَومَ الوَاحِدَ فَحَفِظَ ذٰلِكَ وَ عَبدُ الله لَمْ يَحْفَظْ ذٰلِكَ مِنه ثُمَّ قَالَ اِبْرَاهِيمُ اِنَّمَا رَفْعُ اليَدَينِ عِنْدَ اِفْتِتَاحِ الصَّلاَةِ. رواه الدارقطني واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: حصين بن عبدالرحمن وېلي دي مونږ ابراهيم ته ورغلو نو عمرو بن مره وېلي دي چې مونږ د حضرمينو په مسجد كې مونځ وكړو نو علقمه بن وائل د خپل پلار نه حديث بيان كړي چې هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې د مانځه د شروع او د ركوع او د سجدې په وخت كې به لاسونه اوچتول نو ابراهيم ووېل چې زما دا خيال دي چې ستا پلار رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دې ليدلي مګر په همدغه يوه ورځ كې نو د هغه نه يې دا خبره ياده كړې ده او عبدالله نه ده ياده كړې بيا ابراهيم ووېل چې رفع اليدين فقط په شروع د مانځه كې دي. د دې حديث روايت الدار قطني كړي او اسناد يې صحيح دي.

---

(۱) ابن ماجة كتاب الصلوٰة صـــ ۶۲ باب رفع اليدين اذا ركع واذا رفع رأسه من الركوع.

(۲) سنن دارقطني كتاب الصلوٰة ج۱صـــ ۲۹۱ باب ذكر التكبير ورفع اليدين عند الافتتاح.

{۴۰۱} وعن يحيى بن اَبي إسحَاقَ قَالَ رَأَيتُ اَنَسَ بنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يرفَعُ يدَيهِ بَينَ السَّجدَتَينِ رواه البخاري في جزء رَفعُ اليدَينِ و اسناده صحيح قال النِّيموي لَمْ يصِبْ مَنْ جزَمَ بِأَنَّه لا يثْبُتُ شيء في رفْعِ اليدَينِ لِلسُّجودِ وَمَنْ ذهبَ إلى نَسخِهِ فَلَيسَ لَه دَلِيلٌ عَلى ذٰلِكَ إلاَّ مِثْلَ دَلِيلِ مَنْ قَالَ لا يرفَعُ يدَيه في غَيرِ تَكبِيرَةِ الإفتِتَاحِ.[1]

**ترجمه**: يحي ابن ابي اسحاق ويلي دي چې ما حضرت انس ابن مالک رَضِيَ اللهُ عَنهُ وليده چې د دوارو سجدو ترمنځ يې لاسونه اوچت کړل. بخاري د رفع اليدين په جزء کې د دي حديث روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي. نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دا خبره هيڅ صحت نه لري چې د سجدي په رخت کې د رفع اليدين څه شي نه دي ثابت شوي او چا منسوخ ګڼرلي دي د هغوئ د پاره په دي باندي څه دليل نشته مګر په مثل د دليل د هغه چا چې ويلي يې دي د افتتاح د تکبير نه په غير دي لاسونه نه اوچتوي.

# بَابُ تَرْكِ رَفْعِ الْيدَينِ فِي غَيرِ الْإِفْتِتَاحِ

## د تکبير تحريمي نه په غير درفع اليدين نه کولو باب:

{۴۰۲} عَنْ علقَمَةَ قَالَ: قَالَ عَبدُ اللهِ بنُ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَلاَ أُصَلِّي بِكُمْ صَلاةَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى لَمْ يرفَعْ يدَيهِ إلَّا فِي أوَّلِ مَرَّةٍ رواه الثلاثة وهو حديث صحيح.[2]

**ترجمه**: علقمه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې عبد الله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې ايا زه تاسي ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د مانځه په شان مونځ ونه کړم نو مونځ يې وکړو او لاسونه يې د اول ځل نه په غير اوچت نه کړل. د دي حديث روايت دريو کسانو کړي دي او دا صحيح حديث دی.

{۴۰۳} وَعَنِ الأسوَدِ قَالَ رَأَيتُ عُمَرَ بنَ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يرفَعُ يدَيهِ فِي أوَّلِ تَكبِيرَةٍ رواه الطحاوي و ابوبكر بن ابي شيبة وهو اثر صحيح.[3]

---

[1] جزء رفع اليدين للبخاري مترجم صـ ۴۸.

[2] ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۰۹ باب من لم يذكر الرفع عند الركوع، ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـ ۵۹ باب رفع اليدين عند الركوع، نسائي كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۶۱ باب رفع اليدين والرخصة في ترك ذلك.

[3] طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۵۶ باب التكبيرات، مصنف ابن ابي شيبة، كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۳۷ باب من كان يرفع يديه في اول تكبيرة ثم لا يعود.

**ترجمه** : اسود رحمه الله ویلي دي چې ما حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه لیدلي دي چې هغه به اولني تکبیر کې خپل دواړه لاسونه اوچتول . د دي حدیث روایت طحاوي رحمه الله او ابوبکر ابن ابي شیبه کړي دي او دا صحیح اثر دي .

{۲۰۴} وَعَنْ عَاصِمِ بْنِ كُلَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ عَلِيًا رضي الله عنه كَانَ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي أَوَّلِ تَكْبِيرَةٍ مِنَ الصَّلَاةِ ثُمَّ لَا يَرْفَعُ بَعْدَهُ رواه الطحاوي و ابوبكر بن ابي شيبة والبيهقي و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : او عاصم ابن کُلیب د خپل پلار نه روایت کړي دي چې بې شکه حضرت علي رضي الله عنه د مانځه په اولني تکبیر کې دواړه لاسونه اوچتول او بیا به یې روسته نه اوچتول د دي حدیث روایت طحاوي او ابوبکر بن ابي شیبه او بیهقي کړي دي او اسناد یې صحیح دي .

{۲۰۵} وعن مُجَاهِدٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه فَلَمْ يَكُنْ يَرْفَعُ يَدَيْهِ إِلَّا فِي التَّكْبِيرَةِ الْأُولَى مِنَ الصَّلَاةِ رواه الطحاوي و ابوبكر بن ابي شيبة والبيهقي في المعرفة و سنده صحيح .[2]

**ترجمه** : او مجاهد رحمه الله ویلي دي چې ما د حضرت ابن عمر رضي الله عنه پسې مونځ وکړ نو هغه لاسونه نه دي اوچت کړي مګر د مانځه په اولني تکبیر کې . د دي حدیث روایت طحاوي ، ابوبکر ابن ابي شیبه او بیهقي په معرفت کې کړي دي او سند یې صحیح دي .

{۲۰۶} وعَنْ إِبْرَاهِيمَ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ رضي الله عنه لَا يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَاةِ إِلَّا فِي الْإِفْتِتَاحِ رواه الطحاوي وابن ابي شيبة و اسناده مرسل جيد .[3]

**ترجمه** : ابراهیم رحمه الله ویلي دي چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه د مانځه په یوه شي کې هم لاسونه نهٔ اوچت کړي په غیر د شروع د مانځه نه . د دی حدیث روایت طحاوي او ابن ابي شیبه کړي دي او اسناد یې مرسل جید دي .

{۲۰۷} وَعَنْ أَبِي إِسْحَاقَ قَالَ كَانَ أَصْحَابُ عَبْدِ اللهِ رضي الله عنه وَأَصْحَابُ عَلِيٍّ رضي الله عنه لَا يَرْفَعُونَ أَيْدِيَهُمْ

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۴ باب التكبير ، مصنف ابن ابي شيبة ، كتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۶ باب من كان يرفع يديه ...الخ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲ص ۸۰ من لم يذكر الرفع الا عند الافتتاح .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۵ باب التكبير ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۷ باب من كان يرفع يديه ...الخ ، معرفة السنن والآثار كتاب الصلوة ج۲ص ۴۲۹ رقم الحديث ۳۳۰۸ .

(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۶ باب التكبير مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۶ باب من كان يرفع يديه ...الخ .

اِلاَّ فِي اِفْتِتَاحِ الصَّلاَةِ قَالَ وَكِيعٌ ثُمَّ لاَ يَعُودُونَ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : ابي اسحاق رحمه الله ويلي دي چې د حضرت عبد الله رضي الله عنه او د حضرت علي رضي الله عنه ملگرو خپل لاسونه بقط د مانځه د شروع کې اوچت کړي ؤ . وکيع رحمه الله ويلي دي چې بيا يې نه ؤ اوچت کړي . دا حديث ابوبکر بن ابي شيبه روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

قَالَ النِّيمَوِي الصَّحَابَة رضي الله عنهم وَ مَنْ بَعْدَهُمْ مُخْتَلِفُونَ فِي هٰذَا الْبَابِ وَ أَمَّا الْخُلَفَاء الأَرْبَعَة رضي الله عنهم فَلَمْ يَثْبُتْ عَنْهُمْ رَفْعُ الأَيْدِي فِي غَيْرِ تَكْبِيرَةِ الإِحْرَامِ والله أَعْلَمُ بِالصَّوَابِ .

**ترجمه** : امام نيموي رحمه الله ويلي دي چې صحابه رضي الله عنهم او تابعين رحمهم الله په دې باره کې مختلف دي . څلور خلفاء رضي الله عنهم چې دي د هغو نه د تحريمي تکبير نه په غير رفع اليدين نه دي ثابت شوي .

## ترک رفع يدين په دلائلو باندې يو سرسري نظر :

۱... دابن مسعود رضي الله عنه حديث : " اَلاَ اُصَلِّي بِكُمْ صَلاَةَ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَصَلَّى لَمْ يَرْفَعْ يَدَيهِ اِلَّا فِي اَوَّلِ مَرَّةٍ " دا حديث سندا او متنا صحيح کيدو سره سره مسلکِ احناف عدم رفع باندې صريح هم دې.

۲... دابن عباس رضي الله عنه حديث مرفوعا وموقوفا : " ترفع الأيدي في سبع مواطن : اذا قام الى الصلاة . واذا رأى البيت . وعلى الصفاء والمروة . وفي جمع . وفي عرفات . وعند انحمار " حديث سندا قوي دې ، په مذکوره اوه ځايونو کې عندالرکوع وعند الرفع ذکر نشته .

۳... امام نيموي رحمه الله فرمايي چې خلفاء راشدين رضي الله عنهم، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه او نور ډير صحابه کرام رضي الله عنهم او دهغوي شاگردان درفع يدين قائل نه وو .

## درفع يدين ددلائلو جواب :

۱... په دې باب کې درفع قائلينو دټولو نه مضبوط دليل حديث دابن عمر رضي الله عنه لره گرځولې دې ، داحنافو دطرفنه ددې دوه مشهور جوابونه دي :

(الف) دا حديث منسوخ شوې دی ، ځکه چې پخپله راوي دحديث عبدالله بن عمر رضي الله عنه درفع يدين قائله نه وو دا خبره دده نه دده يو تکړه شاگرد مجاهد رحمه الله نقل کړي ده او ددې ثبوت په صحيح سند سره دې لهذا دراوي عمل به خپل مروي حديث په خلاف ددې دنسخ دليل گڼلې کيږي .

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۶ باب من كان يرفع يديه ...الخ .

(ب) دابن عمر رضي الله عنه درفع يدين والا روايتونه دومره متعارض دي چې ددېنه يو لره ترجيح ورکول مشکل دي ، صحاح سته ، مؤطا مالک رحمه الله او جزء رفع اليدين للبخاري او په نورو کتابونو کې ابن عمر رضي الله عنه نه اوه ځاي درفع يدين ثبوت دې :

(۱) تکبير دافتتاح په وخت .(۲) عند الرکوع . (۳) عندالرفع من الرکوع :(۴) دريم رکعت ته داودريدو په وخت .(۵) سجدې ته دتللو په وخت .(٦) ددوو سجدو په مينځ کې .(۷) دسرخکتول او اوچتولو په وخت .

**يو سوال:** چې کله تاسو دابن عمر رضي الله عنه دروايت مطابق رفع يدين کول غواړي نو په باقي څلور ځايونو کې ولې رفع يدين نه کوي ؟ **فما هو جوابکم عنها فهو جوابنا!**

۲... حديث دمالک بن الحويرث رضي الله عنه او دابوهريره رضي الله عنه کې دسجدې په وخت هم درفع يدين ذکر موجود دې دکوم مطابق چې پخپله دشوافعو او حنابلو عمل نشته .

## دترک رفع يدين يو څو دترجيح وجې :

(۱) دترک رفع يدين والا روايتونه اوفق بالقرآن دي : ځکه چې دالله تعالى جل شانه ارشاد دې : (**وقوموا لله قانتين**) په مونځ کې خشوع او خضوع او داطمينان حکم دې او په ترک درفع کې دکم نه کم حرکت په وجه دآيت په مقتضى باندې زيات عمل دې .

(۲) دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه روايات په ترک رفع کې هيڅ اختلاف يا اضطراب نشته نه دده عمل ددې په خلاف منقول دې بلکې دده نه صرف ترک رفع ثابت ده حال دا چې دابن عمر رضي الله عنه په روايتونو کې اختلاف هم دې او پخپله دده نه ترک رفع هم ثابته ده لکه څنګه چې پاس ددې وضاحت اوشو .

(۳) داحاديثو په مينځ کې دتعارض په وخت تعامل دصحابو او تعامل امت لره لوي اهميت حاصل دې . چنانچې ابن مسعود رضي الله عنه پخپله دلويو صحابو نه دې او په سفر او په حضر کې دحضور صلى الله عليه وسلم "صاحب النعلين والسواک والوسادة" کيدو شرف هم ورته حاصل دې دا دحضور صلى الله عليه وسلم عمل ترک درفع نقل کوي او ددېنه غير لوي صحابه مثلا حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه عشره مبشره رضي الله عنهم عمل هم دده دروايتونو مؤيد دې همدارنګه اهل مدينه او اهل کوفه يعني دعلوم نبوت ددوو اهم مرکزونو خلکو تعامل هم دترک رفع پاتې شوې دی ليکن په نورو ښارونو کې رافعين او تارکين دواړه موجود وو .

(۴) دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه دروایت ټول روات فقهاء دي او پخپله حضرت ابن مسعود رضي الله عنه درفع یدین دټولو راویانو په مقابله کې افقه دی او حدیث مسلسل بالفقهاء دنورو روایاتو په مقابله کې راجح وي.

# بَابُ التَّكْبِيرِ لِلرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ وَالرَّفْعِ

## د رکوع، سجدي او ددې نه د اوچتیدو دپاره د تکبیر باب،

{٢٠٨} عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ يُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْكَعُ ثُمَّ يَقُولُ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَهُ مِنَ الرُّكُوعِ ثُمَّ يَقُولُ وَهُوَ قَائِمٌ رَبَّنَا وَلَكَ الْحَمْدُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَهْوِي ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَسْجُدُ ثُمَّ يُكَبِّرُ حِينَ يَرْفَعُ رَأْسَهُ ثُمَّ يَفْعَلُ ذٰلِكَ فِي الصَّلَاةِ كُلِّهَا حَتَّى يَقْضِيَهَا وَيُكَبِّرُ حِينَ يَقُومُ مِنَ الثِّنْتَيْنِ بَعْدَ الْجُلُوسِ رواه الشيخان.(١)

**ترجمه**: حضرت ابي هريره رضي الله عنه ويلي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته پاڅیده د ودریدو په وخت کې به یې تکبیر کاوه بیا به یې د رکوع په وخت کې تکبیر کاوه بیا به یې سمع الله لمن حمده په هغه وخت کې ویله چې د رکوع نه به یې شا اوچته کړه بیا به یې ربنا ولک الحمد په هغه وخت وایه چې هغه به ولاړ ؤ بیا به یې په هغه وخت کې تکبیر کاو چې ښکته کیده به بیا به یې په هغه وخت کې تکبیر کاوه چې کله به یې سر اوچتاوه بیا به یې تکبیر کاوه چې کله به یې سجده کوله بیا به یې تکبیر وایه چې کله به یې سر اوچتاوه بیا به یې په ټول مانځه کې همدغه شان کول تر څو پورې به یې چې مونځ ادا کړو او په هغه وخت کې به یې تکبیر وایه چې د کیناستو نه روسته به د دوه ؤ رکعتونو نه اوچتیده. د دې حدیث روایت شیخینو کړی دی.

{٢٠٩} وعن أَبِي سَلَمَةَ رضي الله عنه عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رضي الله عنه كَانَ يُصَلِّي بِهِمْ فَيُكَبِّرُ كُلَّمَا خَفَضَ وَرَفَعَ فَإِذَا انْصَرَفَ قَالَ إِنِّي لَأُشْبِهُكُمْ صَلَاةً بِرَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم رواه البخاري.(٢)

---

(١) بخاري كتاب الاذان ج١صـ ١٠٩ باب التكبير اذا قام من السجود، مسلم كتاب الصلوة ج١صـ ١٦٩ باب اثبات التكبير في كل خفض ...الخ.

(٢) بخاري كتاب الاذان ج١صـ ١٠٩باب اتمام التكبير في الركوع.

**ترجمه** : د حضرت ابي سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغوی ته مونځ کړي ؤ نو کله به چې په مانځه کې ښکته کيده او پورته کيده نو تکبير به يې وايه او کله يې چې سلام واړوؤ نو وي ويل چې ما تاسو ته د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مانځه سره مشابه مونځ ادا کړ. د دې حديث روايت بخاري کړي.

{۲۱۰} وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ صَلَّى لَنَا أَبُو سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَجَهَرَ بِالتَّكْبِيرِ حِينَ رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السُّجُودِ وَ حِينَ سَجَدَ وَ حِينَ رَفَعَ وَ حِينَ قَامَ مِنَ الرَّكْعَتَيْنِ وَ قَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : د سعيد بن الحارث رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې مونږ ته ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مونځ وکړو نو په جهر سره يې تکبير ووايه کله يې چې د سجدې نه سر پورته کړ او کله يې چې سجده کوله او کله يې چې د سجدې نه سر پورته کاوه او کله چې د دوه ؤ رکعتونو نه اوچتيده او وې ويل چې ما همدغسې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدلي. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

{۲۱۱} وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ رَفْعٍ وَ خَفْضٍ وَ قِيَامٍ وَ قُعُودٍ رواه احمد والنسائي والترمذي وصححه.[2]

**ترجمه** : حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هر يو د پورته کيدو ښکته کيدو او ودريدو او د کيناستو په وخت کې چې تکبير به يې کاوه ليدلي دي.

{۲۱۲} وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ ثَلَاثٌ كَانَ يَفْعَلُهُنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَكَهُنَّ النَّاسُ كَانَ إِذَا قَامَ إِلَى الصَّلَاةِ رَفَعَ يَدَيْهِ مَدًّا وَكَانَ يَقِفُ قَبْلَ الْقِرَاءَةِ هُنَيَّةً وَكَانَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ رواه النسائي واسناده حسن.[3]

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې درې شيان داسې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کول او خلکو هغه پريښودل کله به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مانځه ته اودريده نو لاسونه به يې

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صـــ ۱۱۴ باب يكبر وهو ينهض من السجدتين .

(۲) مسند احمد ج۱صـــ ۳۸۶ ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱صـــ ۱۴۴ باب التكبير للسجود ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـــ ۵۹ بـــاب ماجاء في التكبير عند الركوع والسجود .

(۳) نسائي كتاب الافتتاح ج۱صـــ ۱۴۱ باب رفع اليدين مدًا .

پورته او ځتول او د قرات نه به لږ مخکې چپ کيده او د هر ښکته کيدو او پورته کيدو په وخت کې به يې تکبير وايه. د دې حديث روايت نسائي کړي او اسناد يې حسن دی.

مسئلة الباب: ائمه اربعه رحمهم الله او جمهور علماء په دې باندې اتفاق دی چې رکوع او سجدې او نورو مواقعو باندې ديو رکن نه بل رکن طرفته د منتقل کيدو په وخت تکبير الله اکبر ويل سنت دي.

## بَابُ هَيْآتِ الرُّكُوعِ

## د رکوع د هيئت او شکل باب:

{٢١٣} عَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ صَلَّيْتُ إِلَى جَنْبِ أَبِي فَطَبَّقْتُ بَيْنَ كَفَّيَّ ثُمَّ وَضَعْتُهُمَا بَيْنَ فَخِذَيَّ فَنَهَانِي أَبِي وَقَالَ كُنَّا نَفْعَلُهُ فَنُهِينَا عَنْهُ وَأُمِرْنَا أَنْ نَضَعَ أَيْدِيَنَا عَلَى الرُّكَبِ رواه الجماعة.(١)

**ترجمه**: مُصعب ابن سعد رحمه الله ويلي دي چې د خپل والد پلار په خوا کې مې مونځ کاوه نو ما دواړه ورغوي يو ځای کړل بيا مې د دواړو ورنونو تر منځ کيخودل نو زه خپل پلار منع کړم او وې ويل چې مونږ دا کار کاوه نو مونږ د دې نه منع کړې شو نو مونږ ته امر وکړې شو چې مونږ دواړه لاسونه په زنګنونو او ګونډو باندې کيدو. د دې حديث روايت د محدثينو جماعت کړې دی.

{٢١٤} وعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ عُقْبَةَ بْنِ عَمْرٍو رضي الله عنه أَنَّهُ رَكَعَ فَجَافَى يَدَيْهِ وَوَضَعَ يَدَيْهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ وَفَرَّجَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ مِنْ وَرَاءِ رُكْبَتَيْهِ وَقَالَ هَكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم يُصَلِّي رواه احمد و ابوداود و النسائي و اسناده صحيح.(٢)

**ترجمه**: د ابي مسعود عقبه ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې هغه رکوع وکړه نو خپل لاسونه يې د اړخونو نه لرې وساتل او خپل دواړه لاسونه يې په زنګنونو باندې کيخودل او د ګوتو تر منځ يې پراخوالي اوکړ او د ګونډو په مخامخ برخه يې ګوتې پراخه او کولاؤ کړې او وې ويل چې

---

(١) بخاري كتاب الاذان ج١ص ١٠٩ باب وضع الاكف على الركب في الركوع ، مسلم كتاب المساجد ج١ص٢٠٢ باب الندب الى وضع الايدي ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج١ص ٥٩ باب ماجاء في وضع اليدين على الركبتين في الركوع ، نسائي كتاب الافتتاح ج١ص ١٥٩ باب التطبيق ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ص ١٢٤ باب تفريع ابواب الركوع والسجود ...الخ ابن ماجة كتاب الصلوة ص ٦٣ باب وضع اليدين على الركبتين ، مسند احمد ص .

(٢) مسند احمد ج٢ ص ١٣٠ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ص ١٢٦ باب صلوة من لا يقيم صلبه في الركوع والسجود ، نسائي كتاب الافتتاح ج١ص ١٥٩ باب مواضع اصابع اليدين في الركوع .

دغــي مي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدلي دي چي مونځ يې كاوه د دي حديث روايت احمد، ابوداؤد او نسائي كړي او اسناد يې صحيح دي.

{۳۱۵} وعن اَبِي بَرْزَةَ الاَسْلَمِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا رَكَعَ لَو صُبَّ عَلى ظَهرِهِ مَاء لَا سْتَقَرَّ رواه الطبراني في الكبير والاوسط وقال الهيثمي رجاله ثقات. (۱)

**ترجمه**: حضرت ابي برزه الاسلمي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به كله ركوع كوله كه چرته د دوه په مبارك شا اوبه اړولې شوي وي خامخا به په خپل ځاي ولاړي وې. دا حديث طبراني په كبير او اوسط كې نقل كړي دي او هيثمي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې رجال يې ثقه دي.

## تطبيق في الركوع مطلب او حكم

"هيئات الركوع" په ركوع كې دجسم مختلف حصو دحالتونو په اعتبار سره يې "هيئات" جمع راوړه.

قوله "فطبقت بين كفي" تطبيق ديته وايي چې ددواړو لاسونو ورغوو لره يوځاي كړي او ديو لاس گوتې په بل كې ورداخلې كړي لكه څنګه چې په "تشبيک" كې كيږي، او بيا دواړو لاسونو ته دزنگنونو په مينځ كې زور كړې شي.

دباب اولني حديث: حضرت سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دزوي مصعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دي هغه فرمايي چې ما په ركوع كې دننه تطبيق اوكړنو والد محترم حضرت سعد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دداسي كولو نه منع اوفرمايله او وي فرمايل چې دتطبيق حكم په ابتداء كې وو بيا روسته منسوخ شو.

# بَابُ الْاِعتِدَالِ وَالطَّمَانِينَة فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

## په ركوع او سجده كې د اعتدال او ارام كولو باب:

{۳۱٦} عَنْ اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ المَسْجِدَ فَدَخَلَ رَجُلٌ فَصَلّى ثُمَّ جَاء فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَدَّ عَلَيه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِرْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَصَلّى ثُمَّ جَاء فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِرْجِعْ فَصَلِّ فَاِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ ثَلاثًا فَقَالَ وَالَّذِي بَعَثَكَ

---

(۱) المعجم الاوسط ج ۶ صـــ ۳۱۴ برقم ۵۶۷۲ مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صـــ ۱۲۳ باب صفة الركوع نقلاً عن الطبراني في الكبير وابي يعلى.

بِالْحَقِّ مَا اُحْسِنُ غَيْرَهٗ فَعَلِّمْنِيْ فَقَالَ اِذَا قُمْتَ اِلَى الصَّلَاةِ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ مَا تَيَسَّرَ مَعَكَ مِنَ الْقُرْآنِ ثُمَّ ارْكَعْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ رَاكِعًا ثُمَّ ارْفَعْ حَتّٰى تَعْتَدِلَ قَائِمًا ثُمَّ اسْجُدْ حَتّٰى تَطْمَئِنَّ سَاجِدًا ثُمَّ افْعَلْ ذٰلِكَ فِيْ صَلَاتِكَ كُلِّهَا رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابو هریره رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم مسجد ته تشریف ویوړنو یو سړي مسجد ته راغي نو مونځ یې وکړ بیا راغي په نبي علیه السلام باندې یې سلام واچوه نو نبي علیه السلام پرې سلام رد کړ نو وي فرمائل چې واپس لاړ شه مونځ وکړه بې شکه تا مونځ نه دی کړي نو مونځ یې وکړ بیا راغي په نبي علیه السلام باندي یې سلام واچوه نو ورته وي فرمائل چې واپس لاړ شه مونځ وکړه بې شکه تا مونځ نه دی کړي دري ځله یې داسي ورته وفرمائل نو هغه عرض وکړ وي ویل په هغه ذات قسم دي چې ته یې په حقه رالیږلي یې چې زه د دي نه په ښه شان سره مونځ نشم کولي نو ماته مونځ وښایه نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمائل چې کله ته اراده د مانځه وکړي نو تکبیر ووایه بیا چې تا سره د قرآن کریم نه اسان څه شي وي لوله بیا رکوع وکړه تر هغې پوري چې ته ښه ارام شي د رکوع په حالت کې بیا اوچت شه تر هغې پوري چې د ولاړي په حالت کې ښه برابر شي بیا سجده وکړه تر هغې پوري چې د سجدي په حالت کې ښه ارام شي بیا پاڅه تر هغې پوري چې د کیناستو په حالت کې ښه په ارام شي بیا سجده وکړه تر هغې پوري چې د سجدي په حالت کې ښه په ارام شي بیا دغسي فعل او عمل په خپلو ټولو مونځونو کې کوه د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي.

{۲۱۲} وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رضي الله عنه قَالَ كَانَ رُكُوْعُ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم وَ سُجُوْدُهٗ وَ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَاِذَا رَفَعَ رَأْسَهٗ مِنَ الرُّكُوْعِ مَا خَلَا الْقِيَامِ وَالْقُعُوْدِ قَرِيْبًا مِنَ السَّوَاءِ رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه** : حضرت براء ابن عازب رضي الله عنه وېلي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم رکوع او سجده او د دوؤ سجدو تر منځ وقفه او کله به یې چې سر مبارک د رکوع نه اوچتاوه په غیر د قیام (ودریدو) او د قعود (د تشهد د پاره کیناستل) سره تقریبًا برابر و.

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۱۰۹ باب امر النبي صلی الله علیه وسلم الذي لا يتم ركوعه بالاعادة ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۰ باب وجوب قراءة الفاتحة في كل ركعة ...الخ .

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۱۰۹ باب حد اتمام الركوع ...الخ ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۸۹ باب اعتدال اركان الصلوة وتخفيفها في تمام .

{۴۱۸} وَعَن رِفَاعَةَ بنِ رَافِعٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ وَرَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ فِي الْمَسْجِدِ فَصَلَّى قَرِيبًا مِنهُ ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعِدْ صَلَاتَكَ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَرَجَعَ فَصَلَّى كَنَحْوِ مَا صَلَّى ثُمَّ انْصَرَفَ إِلَى رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَسَلَّمَ عَلَيهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعِدْ صَلَاتَكَ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ عَلِّمْنِي فَقَالَ إِذَا اسْتَقْبَلْتَ الْقِبْلَةَ فَكَبِّرْ ثُمَّ اقْرَأْ بِأُمِّ الْقُرْآنِ ثُمَّ اقْرَأْ بِمَا شِئْتَ فَإِذَا رَكَعْتَ فَاجْعَلْ رَاحَتَيْكَ عَلَى رُكْبَتَيْكَ وَامْدُدْ ظَهْرَكَ وَمَكِّنْ رُكُوعَكَ فَإِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَأَقِمْ صُلْبَكَ حَتَّى تَرْجِعَ الْعِظَامُ إِلَى مَفَاصِلِهَا فَإِذَا سَجَدْتَ فَمَكِّنْ لِسُجُودِكَ فَإِذَا رَفَعْتَ رَأْسَكَ فَاجْلِسْ عَلَى فَخِذِكَ الْيُسْرَى ثُمَّ اصْنَعْ ذٰلِكَ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ وَسَجْدَةٍ رواه احمد و اسناده حسن.[1]

**ترجمه**: حضرت رفاعه بن رافع رضي الله عنه وايي چې يو سړي په داسي حال کې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغي چې هغه په مسجد کې ناست ؤ نو هغه سړي رسول الله صلى الله عليه وسلم سره نزدي مونځ وکړو بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته راغي نو سلام يې په هغه باندي واچاوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمائل چې. مونځ راوګرځوه بې شکه تا مونځ نه دي کړي نو سړي واپس شو او د مخکې مونځ په شان يې بيا مونځ وکړو بيا راغي رسول الله صلى الله عليه وسلم طرف ته نو سلام يې واچو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې مونځ دي راوګرځوه تا مونځ نه دي کړي نو سړي وويل چې اي دالله تعالى رسوله ماته يې وهايه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې کله قبلې ته مخامخ شي نو تکبير ووايه بيا سورت فاتحه ولوله بيا د قران کريم نه دي چې څه خوښه وي هغه ولوله کله چې رکوع کوي نو دواړه لاسونه په ګنډو او زنګنونو باندي کيده او شا خوره کړه او په ارام سره رکوع وکړه نو کله چې ته سر را اوچت کړي نو ملا نيغه کړه تر هغې پورې چې تول هډوکي خپلو خپلو بندونو ته واپس ورشي او کله چې ته سجده کوي نو په ارام سره سجده وکړه او کله چې ته د سجدي نه سر را اوچت کړي نو په چپ او ګس ورون باندي کينه بيا په هره رکوع او سجده کې دا کار وکړه. د دي حديث روايت احمد کړي او اسناد يې حسن دي.

{۴۱۹} وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَسْوَأُ النَّاسِ سَرِقَةً الَّذِي يَسْرِقُ

---

(۱) مسند احمد ج ۴ ص ۳۴۰.

مِنْ صَلَاتِهِ قَالُوا يَارَسُولَ اللهِ كَيْفَ يَسْرِقُ مِنْ صَلَاتِهِ قَالَ لَا يُتِمُّ رُكُوعَهَا وَلَا سُجُودَهَا وَلَا يُقِيمُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَلَا فِي السُّجُودِ رواه احمد والطبراني و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح .[۱]

**ترجمه** : او د حضرت قتاده رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي په خلکو کې بدترين غل هغه څوک وي چې د خپل مانځه نه غلا کوي صحابه کرامو ويل اې د الله تعالى رسوله هغه به څنګه د خپل مانځه نه غلا وکړي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې په مانځه کې رکوع او سجده پوره او مکمله نه کوي او په رکوع او سجده کې ملا نه نيغوي . د دې حديث روايت احمد او طبراني کړي دي او هيثمي ويلي دي چې د دې حديث راويان د صحيح راويان دي .

۲۲۰ ﴿وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ شَيْبَانَ رضي الله عنه وَكَانَ مِنَ الْوَفْدِ قَالَ خَرَجْنَا حَتَّى قَدِمْنَا عَلَى رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَبَايَعْنَاهُ وَصَلَّيْنَا خَلْفَهُ فَلَمَحَ بِمُؤْخِرِ عَيْنِهِ رَجُلًا لَا يُقِيمُ صَلَاتَهُ يَعْنِي صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ فَلَمَّا قَضَى النَّبِيُّ صلى الله عليه وسلم الصَّلَاةَ قَالَ يَامَعْشَرَ الْمُسْلِمِينَ لَا صَلَاةَ لِمَنْ لَا يُقِيمُ صُلْبَهُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ رواه ابن ماجه واسناده صحيح .[۲]

**ترجمه** : او د حضرت علي بن شيبان رضي الله عنه نه روايت دي او هغه د وفد د جملې نه ؤ ويلي يې دي چې مونږ راؤوتلو تر دې پورې چې د حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم په حضور کې حاضر شو نو مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره بيعت وکړو او د ده پسې مو مونځ وکړو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم د مبارکو سترګو په کونجونو کې يو سړي وليد چې نه به يې نيغه وله شا خپله په رکوع او سجده کې نو کله چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو وي فرمائل چې اې د مسلمانانو ډلې د هغه چا مونځ نشته چې په رکوع او سجده کې خپله شا نه نيغه وي . د دې حديث روايت ابن ماجه کړي او اسناد يې صحيح دي .

---

(۱) مسند احمد ج ۵ صـــ ۳۱۰ ، المعجم الكبير للطبراني ج۳ صـــ ۲۴۲ رقم ۳۲۸۳ ، مستدرک حاکم کتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۲۹ باب في رسول الله صلى الله عليه وسلم من سرقة الصلاة ، مجمع الزوائد ج۲صـــ ۱۲۰ باب ماجاء في الركوع والسجود.

(۲) ابن ماجة كتاب الصلوة صـــ ۶۳ باب الركوع في الصلوة .

{۲۲۱} و عن ابن عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سَجْدَةٌ مِنْ سُجُودِ هٰؤلَاءِ أَطْوَلُ مِنْ ثَلَاثِ سَجَدَاتِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه احمد والطبراني و اسناده حسن.[۱]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عُمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې د هغه خلکو د سجدو نه د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوه سجده د دريو سجدو نه زياته اوږده وه . د دي حديث روايت په طبراني کې احمد کړي دي او اسناد يې حسن دي .

{۲۲۲} وَ عَنْ عَدِيِ بْنِ حَاتِمٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَن أَمَّنَا فَلْيُتِمِّ الرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ فَإِنَّ فِينَا الضَّعِيفَ وَالْكَبِيرَ وَ عَابِرَ سَبِيلٍ وَ ذَا الحَاجَة هٰكَذَا كُنَّا نُصَلِّي مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه احمد و اسناده صحيح.[۲]

**ترجمه** : حضرت عدي بن حاتم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې کوم کس چې مونږ ته امامت کوي نو رکوع او سجده دي پوره کړي بيشکه په مونږ کې کمزوري ، بوډا ، مسافر او حاجتمند خلک موجود دي همدغسي به مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونځ کاوه . دا حديث احمد روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

## دتعديل ارکان حکم

دتعديل ارکان حقيقت دادې چې دمونځ هر رکن دې دومره اطمينان سره ادا کړې شي چې ټول اندامونه پخپل پخپل مقام باندې مستقر شي .

(۱) ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد فرض دي دد بنه بغير رکوع او سجدې صحيح نه دي او مونځ باطل دې .

(۲) دامام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد دمشهول قول په بناء باندې واجب دې ، ددې په ترک کولو سره خو به فرض ادا شي ليکن مونځ به واجب الاعاده وي .

**منشاء د اختلاف** : دا اختلاف په دې اصولي اختلاف باندې مبني دې چې امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ دخبرواحد نه دفرضيت دثبوت قائله نه دې بلکې امام صاحب په نزد دخبرواحد نه واجب ثابتيږي کوم چې دفرض او دسنت په مينځ کې يوه درجه ده ، ليکن دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد فرض او واجب کې هيڅ فرق نشته .

---

(۱) مسند احمد ج۲ صـ ۱۰۹.

(۲) مسند احمد ج۴ صـ ۲۵۷.

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دليل:**

۱... دابوهريره رضي الله عنه حديث چې يو کس دتعديل داركانو نه بغير مونځ اوکړو نو حضور صلی الله علیه وسلم هغه ته اوفرمايل " اِرْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ فَصَلّٰى ثُمَّ جَاءَ فَسَلَّمَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اِرْجِعْ فَصَلِّ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ " نو دتعديل اركان په نه كولو سره دمونځ نه نفي اوکړې شوه او په دويم ځل دکولو حکم ورته اوکړې شو.

۲... درفاعه بن رافع رضي الله عنه حديث: "اَعِدْ صَلَاتَكَ فَإِنَّكَ لَمْ تُصَلِّ" دمخکيني په شان.

دامام ابوحنيفه رحمه الله او دامام محمد رحمه الله دليل: دغه دواړه حديثونه خاص کر درفاعه حديث چې "حديث مسيء الصلاة" په نوم باندې مشهور دې، استدلال په دې طور باندې دې چې دروايت په آخر کې (په روايت دامام ترمذي) دحضور صلی الله علیه وسلم ددې کس نه دا ارشاد موجود دې " فاذا فعلت ذلک فقد تمت صلاتک وان انتقصت منه شيئا انتقصت من صلاتک " . تعديل اركان په نه كولو باندې چې كله ابتداءً "لم تصل" اويلې شوه نو صحابه كرام رضي الله عنهم لږ پريشان شو ليكن چې كله په آخر كې يې دا واوريدل چې تعديل اركان سره مونځ بالكل نه كالعدم كيږي بلكې په دې كې نقص او كمي راځي كوم بندې چې په ترک دواجب دوجې نه دمونځ اعاده واجب اوکرځولې شوه نو دوئه دا خبره د مخکې خبرې نه داسې پيکه اولګيده.

# بَابُ مَا يُقَالُ فِي الرُّكُوعِ وَالسُّجُودِ

## باب دې په بيان دهغه څه کې چې ويل کيږي په رکوع او سجده کې

۲۲۲ {عَنْ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَرَكَعَ فَقَالَ فِي رُكُوعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيمِ وَفِي سُجُودِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى رواه النسائي و آخرون و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت حذيفه رضي الله عنه ويلي دي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره مونځ وکړ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله رکوع کې سبحان ربي العظيم او په خپله سجده کې يې سبحان ربي الاعلى روايه، معنى دا چې زما د عظمت والا رب پاک دي. او زما رب دير اوچت او اعلى دي. دا حديث نسائي او نورو محدثينو روايت کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

(۱) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۶۰ باب الذكر في الركوع.

}۲۲۴ {وَعن عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ الْجُهَنِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ فَسَبِّحْ بِاسْمِ رَبِّكَ الْعَظِيمِ قَالَ لَنَا رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجْعَلُوْهَا فِيْ رُكُوْعِكُمْ فَلَمَّا نَزَلَتْ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلٰى قَالَ اِجْعَلُوْهَا فِيْ سُجُوْدِكُمْ}

رواه احمد و ابوداود وابن ماجه والحاكم وابن حبان واسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : او حضرت عقبه بن عامر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ويلي دي چې كله فسبح باسم ربك العظيم ايت نازل شو رسول كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته وفرمائل چې دا په خپله ركوع كې وګرځوئ او كله چې سبح اسم ربك الاعلیٰ ايت كريمه نازل شو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائل چې دا په خپله سجده كې وګرځوئ. د دي حديث روايت احمد ، ابوداؤد ، ابن ماجه ، حاكم او ابن حبان كړي دي او اسناد يې حسن دي .

}۲۲۵ {وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُسَبِّحُ فِيْ رُكُوْعِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْعَظِيْمِ ثَلَاثًا وَفِيْ سُجُوْدِهِ سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى ثَلَاثًا} رواه البزار والطبراني واسناده حسن .(۲)

**ترجمه** : د حضرت ابي بكره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په خپله ركوع كې درې ځله سبحان ربي العظيم او په خپله سجده كې يې درې ځله سبحان ربي الاعلیٰ فرمائلي دي . د دي حديث روايت بزار او طبراني كړي دي او اسناد يې حسن دي .

**مسئلة الباب** : په ركوع او په سجده كې د تسبيح حكم

په ركوع او په سجده كې كم ازكم يو ځل سبحان الله ويل د امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد فرض دي ، ليكن د جمهورو په نزد تسبيح ويل سنت دي : درې ځله ويل د سنت ادنى درجه ده او پنځه ځله اوسط او اوه (۷) ځله اكمل. د درېو نه كم مكروه تنزيهي دي .(رد المحتار : ۱/۴۹۴)

# بَابُ مَا يَقُوْلُ اِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوْعِ

(۱) مسند احمد ج ۴ صـــ ۱۵۵ ، ابن ماجة كتاب الصلوٰة ج۱صـــ ۱۲۶ باب ما يقول الرجل في ركوعه وسجوده، ابن ماجة كتاب الصلوٰة صـــ ۶۴ باب التسبيح في الركوع والسجود . مستدرک حاكم كتاب الصلوٰة ج۱صـــ ۲۲۵ باب ان النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كان اذا ركع فرج بين اصابعه ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوٰة ج۳صـــ ۱۸۵ رقم الحديث ۱۸۹۵ .

(۲) كشف الاستار عن زوائد البزار ج۱صـــ ۲۶۲ رقم ۵۳۸ ، مجمع الزوائد ج۲ صـــ ۱۲۸ .

**باب دې په بيان د هغه ځه کې چې ويل کيږي د رکوع نه د سر د اوچتيدو په وخت کې:**

۲۲٦ {عن أبي هريرة رضي الله عنه قال كان رسول الله صلى الله عليه وسلم إذا قام إلى الصلاة يكبر حين يقوم ثم يكبر حين يركع ثم يقول سمع الله لمن حمده حين يرفع صلبه من الركوع ثم يقول وهو قائم ربنا لك الحمد رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې. كله به رسول الله صلى الله عليه وسلم مانځه ته اراده وكړه تكبير به يې وكړ كوم وخت كې به چې ودريده بيا به يې تكبير وكړو كله به يې چې ركوع كوله بيا به يې سمع الله لمن حمده وويل كله به يې چې د ركوع نه شا مباركه اوچتوله بيا به يې ربنا ولك الحمد په داسي حال كې وايه چې وبه دريده . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

۲۲۷ {وعنه أن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال إذا قال الإمام سمع الله لمن حمده فقولوا اللهم ربنا لك الحمد فإنه من وافق قوله قول الملائكة غفر له ما تقدم من ذنبه رواه الشيخان.[2]

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې امام سمع الله لمن حمده ووايي نو تاسي اللهم ربنا لك الحمد ووايي ولي ځكه چې د چا قول د ملائكو د قول سره موافق او برابر شي نو د هغه پخواني ګناهونه به معاف كړي شي . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

۲۲۸ {وعن أنس بن مالك رضي الله عنه قال سقط رسول الله صلى الله عليه وسلم عن فرس فجحش شقه الأيمن فدخلنا عليه نعوده فحضرت الصلاة فصلى بنا قاعدا فصلينا وراءه قعودا فلما قضى الصلاة قال إنما جعل الإمام ليؤتم به فإذا كبر فكبروا وإذا ركع فاركعوا وإذا رفع فارفعوا وإذا قال سمع

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۹ باب التكبير اذا قام من السجود ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۹ باب اثبات التكبير في كل خفض ورفع .

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۹ باب فضل اللهم ربنا ولك الحمد ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۶ باب التسميع والتحميد والتامين .

اللهُ لِمَنْ حَمِدَه فَقُولُوا رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ وَاِذَا سَجَدَ فَاسْجُدُوا رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې رسول کريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د اس نه وليدلي ؤ نو ښي اړخ يې ګريدلي ؤ نو مونږ يې پوښتني ته ورغلو نو د مانځه وخت شو نو په ناسته يې مونږ ته مونځ وکړ نو مونږ هم ورپسي په ناسته مونځ وکړ نو کله چې د مانځه نه فارغ شو وي فرمائل چې په تحقيق خبره همدا ده چې امام د دې د پاره مقرر کړې شوي چې اقتداء ورپسي وکړې شي نو امام چې کله تکبير وايي تاسي به هم تکبير وايي او کله چې رکوع کوي نو تاسي به هم رکوع کوئ او کله چې اوچتيږي نو تاسي به هم اوچتيږئ او کله چې سمع الله لمن حمده وايي نو تاسي به ربنا لک الحمد وايي او کله چې امام سجده کوي نو تاسي به سجده کوئ. د دې حديث روايت شيخينو کړې دي.

## په قومه کې دتسميع حکم

دمنفرد په باره کې اتفاق دې چې هغه به تسميع او تحميد دواړه وايي، همدارنګه مقتدي په باره کې هم اتفاق دې چې هغه به صرف تحميد وايي، البته دامام په باره کې اختلاف دې :
(۱) دامام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد امام به دمنفرد په شان دواړه وايي.(۲) امام ابو حنيفه، امام مالک او امام احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد امام به صرف تسميع وايي.

**دامام شافعي** رَحِمَهُ اللّٰهُ **دليل** : حديث دابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ "ثُمَّ يَقُولُ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَه حِينَ يَرْفَعُ صُلْبَه مِنَ الرَّكُوعِ ثُمَّ يَقُولُ وَهوَ قَائِمٌ رَبَّنَا لَکَ الْحَمْدُ" حضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به امام وو خو بيا به يې هم تسميع او تحميد دواړه ويلې.

**دائمه ثلاثه** رَحِمَهُمُ اللّٰهُ **دليل** : دويم او دريم حديث کوم کې چې تقسيم دې چې کله امام سمع الله لمن حمده اوايي نو تاسو ربنا لک الحمد اوايي.

**تطبيق** : دحضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ په اولني او دويم حديث کې تطبيق په دې طور باندې دې چې په اولني حديث کې دحضور صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انفرادي مونځ مراد وي او په بل حديث کې دجمې والا دمونځ حکم بيان وي.

په دريم حديث کې مذکوره مسئله اقتداء القائم بالقاعد وراندې به دمستقل باب لاندې بيان شي.

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص۱۰۱ باب ايجاب التكبير وافتتاح الصلوة ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۶ باب ايتمام المأموم بالامام

## بَابُ وَضْعِ الْيَدَيْنِ قَبْلَ الرُّكْبَتَيْنِ عِنْدَ الْاِنْحِطَاطِ لِلسُّجُوْدِ

## د سجدې په وخت کې د ځنګنونو نه مخکې د لاسونو د ایخودلو باب:

۳۲۹ {عن أبي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ أَحَدُكُمْ فَلَا يَبْرُكْ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيْرُ وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ ثُمَّ رُكْبَتَيْهِ رواه احمد والثلاثة وهو حديث معلول .(۱)

**ترجمه**: حضرت ابو هریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې رسول کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي: چې که یو د ستاسې سجده وکړي نو داسې دې نه کیني لکه اوښ چې کیني معنی دا چې اوښ مخکې ځنګنونه ګدې خو هغه ته پکار داسې ده چې اول دې لاسونه کېږدي او بیا دې ځنګنونه کېږدي. د دې حدیث روایت احمد او د حدیث دریو کتابونو کړي او دا حدیث معلول دی.

۳۳۰ {وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا سَجَدَ يَضَعُ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ رواه الدار قطني والطحاوي والحاكم وابن خزيمة وصححه وهو معلول .(۲)

**ترجمه**: د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دی چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله سجده کوله نو لاسونه به یې د ځنګنونه مخکې ایخودل. د دې حدیث روایت دار قطني، طحاوي، حاکم او ابن خزیمه کړی او ابن خزیمه هغه صحیح ګڼلي دي او دا حدیث معلول دی.

**مسئلة الباب**: سجدې ته د تللو طریقه

(۱) امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې اول لاسونه او بیا ځنګنونه په زمکه باندې کېخودل پکار دي.

(۲) د امام ابو حنیفه، شافعي او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد اول ځنګنونه په زمکه باندې کیده بیا لاسونه. دجمهورو په نزد اصول دادي چې کوم اندام زمکې ته نزدې دې سجدې ته د تللو په وخت اول هغه په زمکه کیده او بیا دا ورڅېدلو په وخت ددې برعکس.

---

(۱) مسند احمد ج۲ص ۳۸۱، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۱ باب ماجاء في وضع اليدين قبل الركبتين في السجود باب اخر منه، سنن نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۶۵ باب اول ما يصل الى الارض من الانسان في سجوده. ابوداود كتاب الصلوة ج۱ص ۱۲۲ باب كيف يضع ركبتيه قبل يديه.

(۲) دار قطني كتاب الصلوة ج۱ص ۳۴۴ باب ذكر الركوع والسجود ...الخ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۴ باب ما يبدأ بوضعه في السجود ...الخ صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۱ص ۳۱۹ رقم ۶۲۷، مستدرک حاکم کتاب الصلوة ج۱ص ۲۲۶ باب القنوت في الصلوات الخمس.

**دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دليل :**

١... قولي حديث دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "لَا يَبْرُكُ كَمَا يَبْرُكُ الْبَعِيرُ وَلْيَضَعْ يَدَيْهِ ثُمَّ رُكْبَتَيْه" په دې كې په زمكه باندې اول څنګون لره دايخودلو نه منع كړې شوې ده .

٢... فعلي حديث دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "كان إذا سجد يضع يديه قبل ركبتيه" .حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به اول خپل لاس مبارک او بيا به يې څنګون په زمكه باندې ايخودلو .

دجمهورو دلايل دراروان باب لاندې اوګورئ.

## بَابُ وَضْعِ الرُّكْبَتَيْنِ قَبْلَ الْيَدَيْنِ عِنْدَ الْإِنْحِطَاطِ لِلسُّجُودِ

## سجدې ته د ښكته كيدو په وخت كې د لاسونو نه مخكې د زنګنونو دايخودلو باب

}٣٢١ {عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَجَدَ وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ وَإِذَا نَهَضَ رَفَعَ يَدَيْهِ قَبْلَ رُكْبَتَيْهِ رواه الاربعة وابن خزيمة وابن حبان وابن السكن وحسنه الترمذي .(١)

**ترجمه** : حضرت وائل ابن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ليدلي دي چې كله يې سجده كوله د خپلو لاسونو نه يې مخكې خپل زنګنونه ايخودل او كله به چې د سجدې نه اوچتيده نو خپل لاسونه به يې د زنګنونه مخكې اوچتول . د دې حديث روايت څلورو صاحبانو او ابن خزيمه ، ابن حبّان او ابن سكن كړي دي او ترمذي حسن ګڼرلي دي .

}٣٢٢ {وَعَنْ عَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ قَالَا حَفِظْنَا عَنْ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي صَلَاتِهِ أَنَّهُ خَرَّ بَعْدَ رُكُوعِهِ عَلَى رُكْبَتَيْهِ كَمَا يَخِرُّ الْبَعِيرُ وَوَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ رواه الطحاوي واسناده صحيح .(٢)

**ترجمه** : حضرت علقمه رَحِمَهُ اللهُ او حضرت اسود رَحِمَهُ اللهُ دواړو ويلي دي چې مونږ د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه د ده په مانځه كې دا خبره ياده كړې ده چې هغه د ركوع نه روسته په خپلو څنګنونو

---

(١) ترمذي ابواب الصلوة ج١ص ٦١ باب ماجاء في وضع اليدين قبل الركبتين ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ص ١٢٢ باب كيف يضع ركبتيه قبل يديه، نسائي كتاب الافتتاح ج١ص ١٢٥ باب اول ما يصل الى الارض من الانسان في سجوده...الخ ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ٦٣ باب السجود ، صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج١ص ٣١٩ رقم الحديث ٦٢٩ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج٣ ص ١٩١ رقم الحديث ١٩٠٩.

(٢) طحاوي كتاب الصلوة ج١ص ١٧٦ باب ما يبدأ بوضعه في السجود ....الخ .

پرېوانه لکه څنګه چې اوښ پرېوزي او کېنودل هغه خپل دوا ړه څنګنونه مخکې د لاسونو نه . د دې حديث روايت طحاوي کړي او اسناد يې صحيح دي .

## په مسئلة الباب کې د جمهورو دليل:

۱... حديث د وائل بن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : " وَضَعَ رُكْبَتَيْهِ قَبْلَ يَدَيْهِ " د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دا عمل وو چې په سجده کې به يې اول څنګنونه او بيا به يې لاس په زمکه ايخودلو .

۲... د علقمه رَحِمَهُ اللهُ او د اسود رَحِمَهُ اللهُ حديث چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم اول څنګنونه او وروسته به يې لاسونه په زمکه باندې ايخودلو .

**امام شافعي** رَحِمَهُ اللهُ **ته جواب**: ۱. د ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث سندا ضعيف کېدو سره سره په دې کې يو سخت علت دې هغه دا چې ددې اولنۍ او دويمه تکړا ديو بل متضاد د؛ ځکه چې په اولنۍ تکړه کې د اوښ په شان د ناستې نه ممانعت دي او د اوښ عادت دې چې اول خپل لاسونه په زمکه باندې ګدي لهذا ددې تکړې مقصد داشو چې اول څنګنونه په زمکه کېږده ترڅو چې د اوښ مخالفت اوشي ليکن په دويمه تکړه کې اول لاسونو لره په زمکه باندې دايخودلو حکم دې کوم چې بعينه د اوښ په شان کيناستل دي په اصل کې د حديثو الفاظ دا وو : "**وليضع ركبتيه قبل يديه**" ديو راوي نه غلطي شوې .

۲. حديث د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم معلول دې هغه داسې چې ددې عمل نسبت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طرفته د عبيدالله په خوشاګردانو کې صرف عبدالعزيز بن محمد کولو او عبدالعزيز باندې محدثينو جرح کړې

# بَابُ هَيْئَاتِ السُّجُودِ

## د سجدې د شکل او هيئت باب :

**۲۲۳ {عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِعْتَدِلُوا فِي السُّجُودِ وَلَا يَبْسُطْ أَحَدُكُمْ ذِرَاعَيْهِ اِنْبِسَاطَ الْكَلْبِ رواه الجماعة** .(۱)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي ارام او اطمنان کوئ په سجده کې او نه دې خوروي ليچي يو ستاسې نه په شان د خورولو د سپي د

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۱۳ باب لا يفترش ذراعيه في السجود ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۳ باب الاعتدال في السجود ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۳ باب ماجاء في الاعتدال في السجود ، ابوداؤد ج۱ص ۱۳۰ باب صفة السجود ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۶۷ باب الاعتدال في السجود ، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۶۴ باب الاعتدال في السجود ، مسند احمد ج۳ص ۱۱۵.

دي حديث روايت يو جماعت کړي دي.

}۴۲۴ {و عن ابن عباس رضي الله عنه قال قال النبي صلى الله عليه وسلم أمرت أن أسجد على سبعة أعظم على الجبهة وأشار بيده إلى الأنف واليدين والركبتين وأطراف القدمين ولا نكفت الثياب والشعر رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول كريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې ماته امر شوي دي چې په اوو اندامونو باندي سجده وكړم په مخ باندي او په مبارك لاس يې پوزې ته اشاره وفرمائله او په دواړو لاسونو او په دواړو ځنګنونو او د قدمونو په اطرافو باندي او مونږ ته امر شوي دي چې خپلي جامي او ويخته په مانځه كې راټول نكړو د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

}۴۲۵ {و عن عبد الله بن مالك بن بحينة رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا صلى فرج بين يديه حتى يبدو بياض إبطيه رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن مالك بن بحينه رضي الله عنه نه روايت دي چې كله به نبي كريم صلى الله عليه وسلم مونځ كاوه پراخه به يې نيول دواړه لاسونه تر دي چې خكاره كيده به سپينوالي د دواړو ارخونو مباركو د ده. د دي حديث روايت شيخينو د مسلم او بخاري كړي دي.

}۴۲۶ {و عن أبي حميد رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم كان إذا سجد أمكن أنفه و جبهته من الأرض و نحى يديه عن جنبيه و وضع كفيه حذو منكبيه رواه ابوداود و الترمذي و صححه وابن خزيمة في صحيحه.(۳)

**ترجمه**: د ابي حُميد رضي الله عنه نه روايت دي چې حضرت نبي كريم صلى الله عليه وسلم به چې كله سجده كوله نو خپله پوزه او مبارك تندي به يې په ځمكه باندي اينوده او دواړه لاسونه به يې د ارخونو نه لري ساتل او دواړه ورغوي به يې د اوږو په برابرۍ ايخودل. د دي حديث روايت ابوداؤد او ترمذي

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صـــ ۱۱۲ باب السجود على الانف. مسلم كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۹۳ باب اعضاء السجود...الخ.
(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱صـــ۱۱۲باب يبدئ ضبعيه ويجافي في السجود. مسلم كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۹۴ اب الاعتدال في السجود.
(۳) ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـــ ۶۱ باب ماجاء في السجود على الجبهة والانف. ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۰۷ باب افتتاح الصلوة. صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۱صـــ ۳۲۳ رقم الحديث ۶۴۰.

کړي. د په خپله ابن خزيمه کړي او ترمذي صحيح ګرځولي دي.

(۲۲) {وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رضي الله عنه مَرْفُوعًا فَلَمَّا سَجَدَ سَجَدَ بَيْنَ كَفَّيهِ رواه مسلم}.[1]

**ترجمه**: د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه نه مرفوع روايت شوي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به كله سجده كوله نو د دواړو ورغو ترمنځ به يې سجده كوله. د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

(۲۳) {وَعَنْه قَالَ رَمَقْتُ النَّبِي صلى الله عليه وسلم فَلَمَّا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيهِ حِذَائَ أُذُنَيهِ رواه اسحاق بن راهويه وعبدالرزاق والنسائي والطحاوي واسناده صحيح}.[2]

**ترجمه**: او د حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه نه روايت دي ويلي يې دي چې ما به رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې كله به يې سجده كوله نو دواړه لاسونه به يې د دواړو غوږونو په برابرۍ ايښودل. د دي حديث روايت اسحاق بن راهويه، عبدالرزاق، نسائي او طحاوي كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## په سجده كې څو اندامونه استعماليږي؟

په دې خبره باندې د ټولو اتفاق دې چې سجده په اوه (۷) اندامونو سره كيږي. لاسونه، ګنډونه، قدمونه، مخ. البته په دې كې كوم يو اندامونه په زمكه باندې ايښودل فرض دي او د كومو ايښودل فرض نه دي؟ په دې باره كې د فقهاؤ اختلاف دې:

(۱) امام احمد رحمه الله په نزد اوه (۷) واړه اندامونه په زمكه باندې ايښودل فرض دي ورنه سجده به يې نه وي.

(۲) امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله (د مشهور قول مطابق) او د صاحبينو په نزد تندي ايښودل ضروري دي، اقتصار على الأنف جائز نه دې.

(۳) امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد هيئت تعظيمي سره تندي او د پوزې نه په يو باندې اكتفا كولو سره هم سجده كيږي ليكن بغير د عذر نه په يو باندې اكتفاء كول مكروه دي باقي قدمونو لره په سجده كې په اوچت نيولو سره ترې د استهزاء بوي راځي ځكه سجده نه كيږي نه دا چې قدمونو لره ايښودل هم فرض دي. (معارف السنن: ۳/۳۳)

---

[1] مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۳ باب وضع يده اليمنى على اليسرى ... الخ.

[2] مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۲ص ۱۷۵ باب موضع اليدين رقم الحديث ۲۹۴۸، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۶ باب رفع اليدين للسجود ... الخ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۶۶ باب مكان اليدين من السجود، الدراية كتاب الصلوة ج۱ص ۱۴۴ باب صفة الصلوة نقلا عن اسحق بن راهويه.

**دامام احمد** رحمه الله **دليل**: حديث دابن عباس رضي الله عنه " **أُمِرْتُ أَنْ أَسْجُدَ عَلَى سَبْعَةِ أَعْظُمٍ** " په اوه اندامونو باندې دسجدې کولو حکم دې کوم چې په وجوب باندې دلالت کوي.

امام مالک رحمه الله، شافعي، او دصاحبينو رحمه الله دليل، حديث دابو حميد رضي الله عنه " **كان اذا سجد امكن انفه وجبهته من الارض** " دتندي او دپوزې ددواړو ذکر دې.

**دامام ابو حنيفه** رحمه الله **دليل**: په قرآن کريم کې بې شماره ځايونو کې دسجدې دوجوب لپاره (اسجدوا) سره خطاب شوې دی او دسجدې حقيقت فقط " **وضع بعض الجبهة على الارض مما لاسخرية فيه** " دې صرف دپوزې او تندي لره په زمکه ايخودلو سره دا مفهوم ادا کيږي البته دحديث شريف دنظر نه تندي او پوزه ددواړو ايخودل واجب شو لهذا بغير دعذر نه په يو باندې اکتفا به مکروه تحريمي وي.

**امام احمد** رحمه الله **ته جواب**: امر دټولو اعضاء دوجوب لپاره نه دې بلکې داثر بين الوجوب والسنة دې چې ددې اوه(۷) نه دځه کول واجب په معنی دفرض او دځه کول مامور بطريق السنة دې ځکه چې په يو حديث کې حضور صلى الله عليه وسلم دسجدې په حالت کې ددعاګو بنتلو په وخت دسجدې کولو نسبت ئې صرف "وجه" طرف ته اوکړو او دالله په دربار کې يې سوال اوکړو " **سجد وجهي للذي خلقه**......الخ لهذا "وجه" يعني تندې يا پوزه (لکه ځنګه چې دامام صاحب قول دې) يا دواړه "لکه ځنګه چې دنورو ائمو قول دې) سره به سجده متحقق کيږي.

**داحاديثو په مينځ کې تطبيق:**

دابو حميد رضي الله عنه په حديث کې " **وضع كفيه حذو منكبيه** " او د وائل رضي الله عنه په يو روايت کې " **فلما سجد سجد بين كفيه** " او په بل روايت کې " **وضع يديه حذاء اذنيه** " وارد شوې دی که چرته داسې سجده اوکړې چې ددواړو لاسونو غټه ګوته دغوږونو تر پوځکو پورې برابر شي او ګوتې مخکې ترې وتې وي نو ددريو واړو حديثونو باندې به عمل راشي.

## بَابُ النَّهيِ عَنِ الْإِقْعَاءِ كَإِقْعَاءِ الْكَلْبِ

### دا د نهي باب دې د کيناستو نه په شان د کيناستو د سپي

۴۳۹{عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ نَهَانِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ ثَلَاثٍ عَنْ نُقْرَةٍ كَنُقْرَةِ الدِّيكِ

وَإِقْعَاءٍ كَإِقْعَاءِ الْكَلْبِ وَالْتِفَاتٍ كَالْتِفَاتِ الثَّعْلَبِ رواه احمد و في اسناده لين.(۱)

**ترجمه**: د حضرت ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې مونږ نبي كريم صلى الله عليه وسلم په مانځه كې د دريو شيانو نه منع كړي يو (۱) د چرګ د ټونګې په شان يې د ټونګي نه منع كړي يو (۲) او د سپي د كيناستو په شان يې د كيناستو نه منع كړي يو (۳) او د ګيدړ د كتلو په شان يې د كتلو نه منع كړي يو . د دې حديث روايت احمد كړي دى او د دې په اسناد كې ضعف دى .

۲۲۰ (وَعَنْ سَمُرَةَ رضي الله عنه قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم عَنِ الْإِقْعَاءِ فِي الصَّلَاةِ رواه الحاكم و قال حديث صحيح على شرط البخاري وَلَمْ يخرجاه .(۲)

**ترجمه**: حضرت سمره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په مانځه كې د سپي په شان د كيناستو نه منع كړي ده . د دې حديث روايت حاكم كړي دى او ده ويلي چې دا حديث د بخاري په شرط باندې صحيح دى خو ولې شيخينو نه دى روايت كړي .

**د ناستې دري مكروه حالتونه**: د مونځ په وخت كې د دري قسمه حالت اختيارولو نه منع كړې شوې ده :

(۱) **نقرة كنقرة الديك**: يعني د چرګ په شان د ټونګې وهلو په شان د ركوع او د سجدې او د سنن او د مستحباتو د اهتمام نه بغير زر زر كولو نه منع كړې شوې ده .

(۲) **اقعاء كاقعاء الكلب**: د اقعاء دوه تفسيرونه كړې شوي دي :

(الف) يو دا چې يو كس په كوناټو باندې كيني او خپلې خپې داسې اودروي چې ځنګون د چوختو په مقابل كې راشي او خپل دواړه لاسونه په زمكه باندې اولګوي د دې تفسير مطابق بالاتفاق مكروه تحريمي دى .

(ب) دويم تفسير دا دې چې دواړه خپې په پنجو اودروي او په پوندو باندې كيني د دې تفسير په لحاظ سره د اقعاء په حكم كې اختلاف دى امام شافعي رحمه الله دې لره د دوو سجدو په مينځ كې سنت ګرځوي يعني د جلسه بين السجدتين دوه طريقې دي : افتراش او اقعاء . باقي د ائمو په نزد دا مكروه تنزيهي يعني خلاف اولى دى . (ائمه ثلاثه رحمهم الله دلائل او امام شافعي رحمه الله د دلائلو جواب به په راروان باب كې راشي) .

(۱) مسند احمد ج ۲ صـ ۳۱۱ .
(۲) مستدرک حاکم کتاب الصلوة ج ۱ صـ ۲۷۲ باب النهي عن الاقعاء في الصلوة .

(۳) التفات الثعلب: "دګیدړي په شان التفات کول" په مونځ کې دالتفات دري صورتونه دي (۱) مخ واړول شي فقط، دا مکروه دي. (۲) سینه واړول شي، دا مفسد دمونځ دي داستقبال قبله دفوت کیدو دوجې نه. (۳) دسترګو په کونجونو کې کتل، دا خلاف اولی دي منافي دخشوع کیدو دوجې نه، البته مباح عند الضرورة دي.

# بَابُ الْجُلُوسِ عَلَى الْعَقِبَيْنِ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ

## د دوه وُ سجدو تر منځ په پوندو باندي د کیناستو باب:

}۴۲۱ {عَنْ طَاوُسٍ قَالَ قُلْنَا لِابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي الْإِقْعَاءِ عَلَى الْقَدَمَيْنِ فَقَالَ هِيَ السُّنَّةُ فَقُلْنَا لَهُ إِنَّا لَنَرَاهُ جَفَاءً بِالرَّجُلِ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بَلْ هِيَ سُنَّةُ نَبِيِّكَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: د طاؤس رحمه الله نه روایت دي ده ویلي دي چې ما په قدمونو باندي د کیناستو په باره کې د ابن عباس رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه هغه وویل چې دا سنت طریقه ده نو مونږ هغه ته وویل چې بې شکه مونږ خامخا مونږ د خپي سره دا کار ظلم ګڼړو نو ابن عباس رضي الله عنه وویل چې دا ستاسي نبي علیه السلام سنت دي. د دي حدیث روایت مسلم کړي دي.

}۴۲۲ {وَعَنِ ابْنِ طَاوُسٍ، عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ رَأَى ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَابْنَ الزُّبَيْرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُقْعُونَ رواه عبد الرزاق واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: د ابن طاؤس نه روایت دي هغه د خپل پلار نه روایت کړي دي چې ده بن عمر رضي الله عنه ابن الزبیر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه لیدلي دي چې په مانځه کې په پوندو باندي کیناستل. د دي حدیث روایت عبدالرزاق کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

### داقعاء په مسئله کې دامام شافعي رحمه الله دلیل:

۱... حدیث دابن عباس رضي الله عنه کوم کې چې مختلف فیه اقعاء لره سنت ویلې شوي ده.
۲... ابن عمر رضي الله عنه، ابن زبیر رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه عملا اقعاء مذکور کول.

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ صـ ۲۰۲ باب جواز الاقعاء علی العقبین.
(۲) مصنف عبدالرزاق کتاب الصلوة ج۲ صـ ۱۹۱ باب الاقعاء في الصلوة رقم ۳۰۲۹.

# بَابُ اِفْتِرَاشِ الرِّجْلِ الْيسْرىٰ وَالْقُعُودِ عَلَيهَا بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ وَتَرْكِ الْجُلُوسِ عَلَى الْعَقِبَيْنِ

**باب دي د دوه سجدو تر منځ د چپي خپي دخوريدو او په هغي باندي د کيناستو او په پوندو د نه کيناستو**

۲۲۳ {عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يَفْرِشُ رِجْلَه الْيسْرىٰ وَ يَنْصَبُ رِجْلَه الْيمْنىٰ وَكَانَ يَنْهىٰ عَنْ عُقْبَةِ الشَّيطَانِ اخرجه مسلم وهو مختصر .(١)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي ويلي يې دي چې رسول کريم صلى الله عليه وسلم به چپه خپه خوروله او ښي خپه به يې اودروله او د شيطان د کيناستو نه به يې منع فرمائله دا حديث مسلم خارج کړي او دا مختصر دي.

۲۲۴ {وَعَنْ أَبِي حُمَيدٍ السَّاعِدِي رضي الله عنه مَرْفُوعًا ثُمَّ يهوِي إِلَى الأَرْضِ فَيجَافِي يدَيه عَنْ جَنْبَيه ثُمَّ يرْفَعُ رَأسَه وَ يثْنِي رِجْلَه الْيسْرىٰ وَ يقْعُدُ عَلَيهَا وَ يفْتَحُ اَصَابِعَ رِجْلَيه إِذَا سَجَدَ ثُمَّ يسْجُدُ ثُمَّ يقُولُ اَللّٰه اَكْبَرُ اَلْحَدِيثُ رواه ابوداود والترمذي وابن حبان واسناده صحيح .(٢)

**ترجمه** : د حضرت ابو حُميد ساعدي رضي الله عنه نه مرفوع روايت دي چې بيا به رسول کريم صلى الله عليه وسلم ځمکي ته ښکته شو نو دواړه لاسونه به يې د دواړو ارخونو نه لري ساتل بيا به يې سر مبارک اوچت کړ او چپه خپه به يې خوره کړه او په هغي باندي به کيناست او د سجدي په وخت کې به يې د دواړو خپو ګوتي پرانستي بيا به يې سجده وکړه بيا به يې الله اکبر ووايه الحديث . د دي حديث روايت ابوداؤد ، ترمذي او ابن حبان کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

۲۲۵ {وعن المُغِيرَةِ بنِ حَكِيمٍ أَنَّه رَأىٰ عَبْدَ اللهِ بنَ عُمَرَ رضي الله عنه يرْجِعُ فِي سَجْدَتَينِ فِي الصَّلاَةِ عَلَى صُدُورِ قَدَمَيه فَلَمَّا انْصَرَفَ ذَكَرَ لَه ذٰلِكَ فَقَالَ إِنَّهَا لَيسَتْ بِسُنَّةِ الصَّلاَةِ وَإِنَّمَا أَفْعَلُ هٰذَا مِنْ أَجْلِ أَنِّي أَشْتَكِي رواه مالک في الموطأ واسناده صحيح.(٣)

---

(١) مسلم كتاب الصلوة ج١ صـــ ١٩٥ باب ما يجمع صفة الصلوة .

(٢) ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ صـــ ١٠٤ باب افتتاح الصلوة ، ترمذي ابواب الصلوة ج١ صـــ ٦٧ باب ما جاء في وصف الصلوة ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج٣ صـــ ١٧٣ رقم الحديث ١٨٦٧.

(٣) موطا امام مالک كتاب الصلوة ج١ صـــ ٧١ باب العمل في الجلوس في الصلوة .

**ترجمه**: د مغيره بن حكيم نه روايت دي ده ويلي دي چې ما حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ليدلي دي چې دا د مانځه د دوه و سجدو تر منځ د قدمونو په سرونو يعني د ګوتو په څوکو او چتيده نو کله چې د مانځه نه فارغ شو نو ده ته دا خبره ياده کړي شوه نو وي ويل چې دا د مانځه سنت نه دي بې شکه چې ما دا کار کاوه د دې وجهې نه چې زه بيمارووم. د دې حديث روايت مالک رحمه الله په مؤطا کې کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## داقعاء په مسئله کې دائمه ثلاثه رحمهم الله دلائل:

۱. دعائشې رضي الله عنها حديث چې حضور صلى الله عليه وسلم به جلسه بين السجدتين کې افتراش کولو او د پوندو په سر کيناستلو نه به ئې منع کوله.

۲. دابو حميد الساعدي رضي الله عنه حديث؛ په دې کې هم د حضور صلى الله عليه وسلم افتراشا ناسته مذکوره ده.

۳. دابن عمر رضي الله عنه حديث چې دوي په پوندو باندې ناسته خپله مجبوري بنودلې وه او ددې دسنت کيدو نه يې نفي کوله.

## دامام شافعي رحمه الله ددليل رد:

۱. دابن عباس رضي الله عنه حديث ضعيف دې همدارنګه د سنت نه مراد سنت دائمي نه دې بلکې سنت په وخت دعذر دې.

۲. دبعضي صحابه کرامو رضي الله عنهم جلوس على العقبين په حالت دعذر باندې محمول دې لکه څنګه چې ابن عمر رضي الله عنه ددې په باره کې خپل عذر بيان کړ.

# بَابُ مَا يُقَالُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ

## باب د دوه و سجدو تر منځ به څه ويلې شي

۲۲۶) {عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُوْلُ بَيْنَ السَّجْدَتَيْنِ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَاجْبُرْنِيْ وَاهْدِنِيْ وَارْزُقْنِيْ رواه الترمذي و آخرون وهو حديث ضعيف}(۱)

**ترجمه**: د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د دوه و سجدو تر منځ دا دعا ويله (اللهم اغفرلي وارحمني واجبرني واهدني وارزقني). يعني معنى دا چې اې الله ماته بخښنه وکړې او په ما رحم وکړې او زما نقصان پوره کړې او زما لاربنوونه وکړې

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۳ باب ما يقول بين السجدتين.

او ماته رزق را عطا کړي. دا حديث ترمذي او نورو محدثينو روايت کړي او دا حديث ضعيف دي.
**مسئلة الباب**: په فرائضو کښ په شرط ددې چې امام نه وي او په نوافلو کښ مطلقا ددوو سجدو په مينځ کښ ماثور دعاګانې ويل پکار دي.

# بَابُ جَلْسَةِ الْإِسْتِرَاحَةِ بَعْدَ السَّجْدَتَيْنِ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولٰى وَالثَّالِثَةِ

## د دوه وُ سجدو نه روستو، په اول او دريم رکعت کښ د استراحت د جلسي باب

۲۲۷ {عن مَالِكِ بْنِ الْحُوَيْرِثِ اللَّيْثِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّه رَأَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي فَإِذَا كَانَ فِي وِتْرٍ مِنْ صَلَاتِه لَمْ يَنْهَضْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا رواه البخاري.[1]

**ترجمه**: د حضرت مالک بن حويرث الليثي رضي الله عنه نه روايت دي چه ده نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مانځه په حالت کښ ليدلي چه کله به هغه د وترو په مانځه کښ وُ نو نه به اوچتيده تر هغي پوري چه برابر به کيناست. دا حديث بخاري روايت کړي دي.

**مسئلة الباب**: په اولني او دريم رکعت کښ د دويمې سجدې نه د فارغيدو نه پس جلسه استراحت (لږ څه وخت لپاره د راحت او ارام حاصلولو په غرض ناسته) په باره کښ اختلاف دي:

(۱) د امام شافعي رحمه الله په نزد جلسه د استراحت مسنون ده.

(۲) باقي دري واړه ائمه او جمهور دې لره مسنون نه ګرځوي ددوي په نزد: ناستې پر ځاي نيغ اودريدل افضل دي. البته د احنافو او د حنابلو په نزد جلسه د استراحت جائز ده مفسد نه ده.

**دامام شافعي** رحمه الله **دليل**: د باب حديث مالک بن الحويرث رضي الله عنه "لَمْ يَنْهَضْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَاعِدًا".

# بَابٌ فِي تَرْكِ جَلْسَةِ الْإِسْتِرَاحَةِ

## د استراحت د جلسي د پريښودلو باب

۲۲۸ {عَنْ عِكْرِمَةَ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ شَيْخٍ بِمَكَّةَ فَكَبَّرَ ثِنْتَيْنِ وَعِشْرِيْنَ تَكْبِيرَةً فَقُلْتُ لِابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّه أَحْمَقُ فَقَالَ ثَكِلَتْكَ أُمُّكَ سُنَّةَ أَبِي الْقَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري[2]

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ ص ۱۱۳ باب من استوى قاعدا في وتر من صلاته ثم نهض.

(۲) بخاري کتاب الاذان ج۱ ص ۱۰۸ باب التکبير اذا قام من السجود.

قَالَ النِّيمَوِي يُسْتَفَادُ مِنهُ تَرْكُ جَلْسَةِ الاِسْتِرَاحَةِ وَإِلاَّ لَكَانَتِ التَّكْبِيرَاتُ أَرْبَعًا وَعِشْرِينَ مَرَّةً لِأَنَّهُ قَدْ ثَبَتَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ خَفْضٍ وَرَفْعٍ وَقِيَامٍ وَقُعُودٍ.

**ترجمه** : د حضرت عکرمه نه روايت دي ده ويلي دي ما د مکي د يو شيخ پسې مونځ وکړو نو هغه دوه ويشت تکبيرونه وويل نو ما ابن عباس رضي الله عنه ته وويل چې يقينًا دا بې وقوف دي نو ابن عباس رضي الله عنه وويل چې ورک دې کړي تا لره مور ستا (مور دې بوره شه) د ابو القاسم صلى الله عليه وسلم سنت دي. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

نيموي رحمه الله ويلي دي چې د دې حديث نه د استراحت د جلسې پرېښودل فهميږي او که داسې نه وي نو تکبيرونه به څلېرويشت وي ځکه چې دا خبره ثابته ده چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به هر ښکته کېدو پورته کېدو. اودرېدو او کېناستو کې تکبير ويلي دي. خو ولې سره د دې هم دوه ويشت تکبيرونه ويل شوي نو دا دې ښکاره دليل دې چې د استراحت جلسه د مانځه دا عمالو نه ده.

۳۴۹ {وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَوْ عَيَّاشِ بْنِ سَهْلٍ السَّاعِدِيِّ أَنَّهُ كَانَ فِي مَجْلِسٍ فِيهِ أَبُوهُ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِي الْمَجْلِسِ أَبُو هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَأَبُو حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَأَبُو أُسَيْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَذَكَرَ الْحَدِيثَ وَفِيهِ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ ثُمَّ كَبَّرَ فَقَامَ وَلَمْ يَتَوَرَّكْ رواه ابوداود واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : د عباس او يا عياش بن سهل الساعدي نه روايت دي چې دا په يو مجلس کې وه چې په هغې کې د هغه پلار هم موجود ؤ او هغه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم صحابي ؤ او په هغه مجلس کې ابو هريره، ابو حميد الساعدي او ابو أسيد رضي الله عنهم هم ؤ هغوي يو حديث بيان کړي چې په هغه کې ؤ بيا يې تکبير وکړ نو سجده يې وکړه بيا يې تکبير وکړ نو اودرېده او کېنه ناست. د دې حديث روايت ابو داؤد کړي او اسناد يې صحيح دي.

۳۵۰ {عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ غَنْمٍ أَنَّ أَبَا مَالِكٍ الْأَشْعَرِيَّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جَمَعَ قَوْمَهُ فَقَالَ يَامَعْشَرَ الْأَشْعَرِيِّينَ اجْتَمِعُوا وَاجْمَعُوا نِسَاءَكُمْ وَأَبْنَاءَكُمْ أُعَلِّمُكُمْ صَلٰوةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنَا بِالْمَدِينَةِ فَاجْتَمَعُوا وَاجْمَعُوا نِسَاءَهُمْ وَأَبْنَاءَهُمْ فَتَوَضَّأَ وَأَرَاهُمْ كَيْفَ يَتَوَضَّأُ فَأَحْصَى الْوُضُوْءَ إِلَى أَمَاكِنِهِ حَتّٰى لَمَّا أَنْ فَاءَ الْفَيْءُ وَانْكَسَرَ الظِّلُّ قَامَ فَأَذَّنَ فَصَفَّ الرِّجَالَ فِي أَدْنَى الصَّفِّ وَصَفَّ الْوِلْدَانَ خَلْفَهُمْ وَصَفَّ

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۰۷ باب افتتاح الصلوة.

النِّسَاء خَلْفَ الوِلْدَانِ ثُمَّ اَقَامَ الصَّلاَةَ فَتَقَدَّمَ فَرَفَعَ يَدَيْه فَكَبَّرَ فَقَرأَ بِفَاتِحَة الكِتَابِ وَ سُورَةً يسِرُهمَا ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ فَقَالَ سُبْحَانَ الله وَ بِحَمْدِه ثَلاَثَ مِرَارٍ ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه وَاسْتَوىٰ قَائِمًا ثُمَّ كَبَّرَ وَ خَرَّ سَاجِدًا ثُمَّ كَبَّرَ فَرَفَعَ رَأْسَه ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ ثُمَّ كَبَّرَ فَانْتَهضَ قَائِمًا فَكَانَ تَكْبِيرُه فِي اَوَّلِ رَكْعَة سِتَّ تَكْبِيرَاتٍ وَكَبَّرَ حِينَ قَامَ اِلَى الرَّكْعَة الثَّانِيَة فَلَمَّا قَضٰى صَلاَتَه اَقْبَلَ اِلٰى قَوْمِه بِوَجْهِه فَقَالَ احْفَظُوا تَكْبِيرِي وَتَعَلَّمُوا رُكُوعِي وَ سُجُودِي فَاِنَّها صَلاَةُ رَسُوْلِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الَّتِي كَانَ يُصَلِّي لَنَا كَذَا السَّاعَةَ مِنَ النَّهارِ رواه احمد و اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : د عبدالرحمن بن غنم نه روايت دي چې ابومالک اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل قوم راجمع کړنو وي ويل چې د اشعرينو ډلي په خپله هم راجمع شئ ښځي او ځامن هم راجمع کړئ څه تاسو ته د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه مونځ ښايم کوم چې مونږ ته نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مدينه منوره کې کړي دي نو پخپله هم د قبيلي خلک راجمع شو ښځي او ځامن يې هم راجمع کړنو اودس يې وکړ او ورته وي ښودل چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ څنګه اودس کاوه او د اودس اندامونه يې پوره پوره راګير کړ او په ښه شان سره يې اودس وکړ تر دي چې کله زوال وشو او سوري رامات شو اودريد اذان يې وکړنو مخکې يې د سړو اول صف جوړ کړ بيا يې ورپسي روسته د هلکانو صف جوړ بيا يې د هلکانو نه روسته ښځو صف کړ بيا يې د مانځه د پاره اقامت وکړنو مخکې شو دواړه لاسونه يې اوچت کړنو تکبير يې وکړ او په پټه يې فاتحه او ورسره يې بل سورت ولوسته بيا يې تکبير وکړنو رکوع يې وکړه او دري ځله يې سبحان الله وبحمده وويله بيا يې سمع الله لمن حمده وويله او نيغ اودريده بيا يې تکبير اوکه او په سجده پريوته بيا يې تکبير اوويله نو سر يې اوچت کړ بيا يې تکبير اوويل نو سجده يې وکړه بيا يې تکبير وواېه نو نيغ پاڅيده نو په اول رکعت کې يې شپږ تکبيرونه وُ او کله چې دويم رکعت ته پاڅيده نو تکبير يې وکړ نو کله يې چې مونځ ادا کړ (قوم ته يې مخ راواړاوه نو وي ويل څما تکبيرونه ياد کړئ او څما سجده او رکوع زده کړئ په تحقيق دا د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه مونځ دي کوم چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ورځې په دغه وقت کې کړي وُ . دا حديث احمد نقل کړي او اسناد يې حسن دي .

---

(۱) مسند احمد ج ۵ ص ۳۴۳

۲۵۱ {وَ عَنِ النُّعْمَانِ بنِ اَبِي عَيَّاشٍ قَالَ اَدْرَكْتُ غَيْرَ وَاحِدٍ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَكَانَ اِذَا رَفَعَ رَاْسَه مِنَ السَّجْدَةِ فِي اَوَّلِ رَكْعَةٍ وَالثَّالِثَةِ قَامَ كَمَا هُوَ وَلَمْ يَجْلِسْ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده حسن.(۱)

**ترجمه** : نعمان بن عياش ويلي دي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ډير صحابه كرام ليدلي دي چې كله به يې د اول او دريم ركعت د سجدې نه سر پورته كړنو نيغ به او چتيده او نه به كيناسته. د دې حديث روايت ابوبكر ابن ابي شيبه كړي او اسناد يې حسن دي.

۲۵۲ {وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ رَمَقْتُ عَبْدَ الله بْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي الصَّلَاةِ فَرَاَيْتُه يَنْهَضُ وَلَا يَجْلِسُ قَالَ يَنْهَضُ عَلٰى صُدُورِ قَدَمَيهِ فِي الرَّكْعَةِ الْاُولٰى وَالثَّالِثَةِ رواه الطبراني في الكبير والبيهقي في السنن الكبرى و صححه .(۲)

**ترجمه** :د عبدالرحمن بن يزيد نه روايت دى ويلي يې دي چې ما په مانځه كې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته بـه ليدل نو ما هغه وليد چې پاڅيده او كينه ناست. راوي وايي چې هغه په اول او دريم ركعت كې د خپلو قدمونو په پنجو باندې پاڅيده. دا حديث طبراني په كبير او بيهقي په سنن كبرى كې روايت كړى او بيهقي صحيح ګڼلى دى.

۲۵۳ {وعَنْ وَهبِ بْنِ كَيْسَانَ قَالَ رَاَيْتُ ابْنَ الزُّبَيرِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِذَا سَجَدَ السَّجْدَةَ الثَّانِيةَ قَامَ كَمَا هُوَ عَلٰى صُدُورِ قَدَمَيهِ رواه ابن ابي شيبة و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : وهب بن كيسان ويلي دي چې ما حضرت زبير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ليدلي دي چې كله هغه د دويم ركعت سجده وكړه نو د خپلو خپو په څوكو چې څنګه وُ پاڅيده. د دې حديث روايت ابن ابي شيبه كړي دي او اسناد يې صحيح دي.

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج۱ص ۳۹۵ باب من كان يقول اذا رفعت رأسك من السجدة الثالثة ....الخ.

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ ص ۳۰۴ رقم الحديث ۹۳۲۷، السنن الكبرى كتاب الصلوة ج۲ ص ۱۲۵ باب من قال يرجع على صدور قدميه ، مجمع الزوائد ج۲ص ۱۳۶ وقال رجاله رجال الصحيح .

(۱) مصنف ابن ابي شيبة ج۱ص ۳۹۴ باب من كان ينهض على صدور قدميه .

**په مسئلة الباب کې د جمهورو په دلايلو باندې يو نظر :**

۱... دباب اولني حديث کوم کې چې ابن عباس رضي الله عنه د جلسه استراحت نه بغير مونځ کول سنت طريقه ګرځولې ده.

۲... حضرت سهل ساعدي رضي الله عنه، ابوهريره رضي الله عنه، ابوحميد ساعدي رضي الله عنه او ابوسعيد خدري رضي الله عنه د جلسه استراحت نه بغير د حضور صلى الله عليه وسلم طريقه د مونځ بيانول.

۳... ابو مالک اشعري رضي الله عنه خپل قوم له راجمع کول او د جلسه استراحت نه بغير مونځ کول او بيا دې طريقې له د حضور صلى الله عليه وسلم د سنت موافق ګرځول.

۴... نعمان بن عياش رحمه الله د متعدد صحابه کرامو نه جلسه د استراحت نه بغير د مونځ طريقې له روايت کول.

**دامام شافعي رحمه الله د دليل رد :** جلسه استراحت والا حديث بيانِ جواز يا حالت عذر باندې محمول دې په آخري عمر کې د حضور صلى الله عليه وسلم جسم مبارک درووند شوې وو نو حضور صلى الله عليه وسلم جلسه د استراحت او کړه ورنه که دا مستقل سنت صلاة وې نو د صحابه کرامو يو جم غفير به دا ضرور نقل کولو.

## ﴿بَابُ اِفْتِتَاحِ الثَّانِيَةِ بِالْقِرَاءَةِ﴾

## په دويم رکعت کې د قرات د شروع کولو باب

}۲۵۴{ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ اِذَا نَهَضَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ اِسْتَفْتَحَ الْقِرَاءَةَ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ وَلَمْ يَسْكُتْ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه :** حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم دويم رکعت ته پاڅيده نو د الحمد لله رب العلمين نه به يې قرات شروع کاوه او سکوت به يې نه کاوه . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

**د کلماتو تحقيق :**

**قوله "ولم يسکت"** يعني په دويم رکعت کې ثناء او تعوذ به يې نه ويلو.

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۱۹ باب ما يقال بين تكبيرة الاحرام والقراءة .

# بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّوَرُّكِ

## باب دې په بيان د هغه احاديثو کې کوم چې د تورک په باره کې راغلي دي

۳۵۵} عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ عَمْرِو بْنِ عَطَاءٍ اَنَّهُ كَانَ جَالِسًا فِي نَفَرٍ مِنْ اَصْحَابِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرْنَا صَلَاةَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ اَبُوْ حُمَيْدٍ السَّاعِدِيُّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَا كُنْتُ اَحْفَظَكُمْ لِصَلَاةِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَيْتُهُ اِذَا كَبَّرَ جَعَلَ يَدَيْهِ حَذْوَ مَنْكِبَيْهِ وَاِذَا رَكَعَ اَمْكَنَ يَدَيْهِ مِنْ رُكْبَتَيْهِ ثُمَّ هَصَرَ ظَهْرَهُ فَاِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ اِسْتَوٰى حَتّٰى يَعُوْدَ كُلُّ فِقَارٍ مَكَانَهُ فَاِذَا سَجَدَ وَضَعَ يَدَيْهِ غَيْرَ مُفْتَرِشٍ وَلَا قَابِضِهِمَا وَاسْتَقْبَلَ بِاَطْرَافِ اَصَابِعِ رِجْلَيْهِ الْقِبْلَةَ فَاِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلٰى رِجْلِهِ الْيُسْرٰى وَنَصَبَ الْاُخْرٰى وَقَعَدَ عَلٰى مَقْعَدَتِهِ رواه البخاري .(۱)

**ترجمه** :محمد بن عمرو بن عطاء نه روايت دي چې يقينًا هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اصحابو په يوه ډله کې ناست ؤ نو مونږ ته يې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مانځه ذکر وکړو نو ابو حميد الساعدي رضي الله عنه وويل چې زه ستاسو نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د مانځه په حقله ډير ښه ياد ساتونکي يم ما هغه صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې کله يې تکبير کاوه نو دواړه لاسونه به يې د اوږو په برابرئ اوچت کړل او کله يې چې رکوع کوله نو دواړه لاسونه يې په زنګنونو باندي کيخودل بيا به يې خپله شا مبارکه هواروله او کله به يې چې سر مبارک پورته کاوه نو نېغ به اودريده تر دي پوري چې د ملا هر هډوکي به خپل خپل ځاي ته راوګرځيده او کله به يې چې سجده کوله لاسونه به يې پداسي شان سره کيخودل چې نه به يې په ځمکه ښورول او نه به يې راغونډول او د خپو ګوتي به يې د قبلي په طرف ګرځولي او کله به چې په دوه ؤ رکعتونو کيناسته نو په چپه خپه به کيناسته او ښئ خپه به يې اودروله او کله به چې په اخري رکعت کيناسته نو چپه خپه به يې رامخکې کړه او بله خپه به يې اودروله او د مبارک جسم يوه برخه به يې په ځمکه کيښوده . د دي حديث روايت بخاري کړي دي .

## په تشهد کې دناستې طريقه او کيفيت

(۱) دامام مالک رحمه الله په نزد اولنې او اخرينې دواړو قعدو کې تورک افضل دي .

(۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دواړو کې افتراش افضل دي .

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صــ ۱۱۴ باب سنة الجلوس في التشهد .

(۳) امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ قعده اولی او اخيره کي فرق کوي يعني امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ قعده اخيره کي دتورک او په قعده اولی کي دافتراش دافضل کيدو قائله دي ، ليکن امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دري او څلور رکعتي مونځ کي په قعده اولی کي افتراش او په اخيره کي تورک لره او په دوه رکعتي مونځ کي افتراش لره افضل وايي.

**دتورک دوه طريقي دي:** (۱) ښئ خپه دي خوره کړي او هغه دي چپ طرفته اوباسي او چپه خپه دي اودرولي شي .(۲) دښئ خپي په پوندو کيناستل او دواړه خپي چپ طرفته ويستل لکه څنګه چي حنفي ښځي کيني.

**دافتراش طريقه** : ښئ خپه خورول او په هغې کيناستل او چپه خپه اودرول.

**دتورک دقائلينو دليل:**

دباب حديث ابو حميد ساعدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "فَإِذَا جَلَسَ فِي الرَّكْعَتَيْنِ جَلَسَ عَلَى رِجْلِهِ الْيُسْرَى وَنَصَبَ الْأُخْرَى وَقَعَدَ عَلَى مَقْعَدَتِهِ".

## ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي عَدَمِ التَّوَرُّكِ﴾

## دا باب د تورک د نه کولو په باره کي دي

۲/۵۲ (عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَسْتَفْتِحُ الصَّلَاةَ بِالتَّكْبِيرِ وَالْقِرَاءَةِ بِالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ وَكَانَ إِذَا رَكَعَ لَمْ يُشْخِصْ رَأْسَهُ وَلَمْ يُصَوِّبْهُ وَلٰكِنْ بَيْنَ ذٰلِكَ وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ الرُّكُوعِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ قَائِمًا وَكَانَ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ مِنَ السَّجْدَةِ لَمْ يَسْجُدْ حَتّٰى يَسْتَوِيَ جَالِسًا وَكَانَ يَقُولُ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ التَّحِيَّاتُ وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرَى وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنَى وَكَانَ يَنْهَى عَنْ عُقْبَةِ الشَّيْطَانِ وَيَنْهَى أَنْ يَفْتَرِشَ الرَّجُلُ ذِرَاعَيْهِ افْتِرَاشَ السَّبُعِ وَكَانَ يَخْتِمُ الصَّلَاةَ بِالتَّسْلِيمِ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونځ په تکبير سره شروع کاوه او قرات به يي د الحمدلله رب العالمين نه شروع کاوه او کله به يي چي رکوع کوله مبارک سربه يي نه اوچتاوه او نه به يي ښکته کاوه خو ولي مبارک سر به يي د اوچتوالي او د

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۴ باب ما يجمع صفة الصلوة ...الخ.

ټيټوالي تر منځ لاره او کله به يې چې د رکوع نه سر مبارک اوچتاوه نو سجدې ته به نه ته تر څو پورې
به چې برابر اودريده او کله به يې چې د سجدې نه سر مبارک اوچتاوه نو سجدې ته به نه ته تر څو
پورې به چې برابر جيرابو کيناسته او په هرو دوه ؤ رکعتونو کې به يې التحيات لوستله او چپه خپه
به يې بسوروله او ښۍ خپه به يې اودروله او د شيطان په شان د کيناستو نه به يې منع فرمائله او د دې
نه به يې هم منع فرمائله چې سړي دواړه لاسونه په ځمکه داسې خواره کړي لکه څنګه يې چې درنده
ګان خوروي او مونځ به يې په سلام سره ختماوه . د دې حديث روايت مسلم کړې دې .

}۴۵۷ {وَ عَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا قَعَدَ وَ تَشَهَّدَ فَرَّشَ قَدَمَهُ الْيُسْرىٰ عَلَى الْاَرْضِ وَ جَلَسَ عَلَيْهَا رَوَاهُ سَعِيْدُ بْنِ مَنْصُوْرٍ والطحاوي و اسنادہ صحیحٌ.(۱)

**ترجمه** : حضرت وائل بن حُجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې ما د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې مونځ وکړ
نو کله چې کيناست او تشهد (يعني) التحيات يې لوسته نو ګس قدم يې په ځمکه خور کړ او په
هغې کيناست . د دې حديث روايت سعيد بن منصور او طحاوي کړې دې او اسناد يې صحيح دې .

}۴۵۸ {وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مِنْ سُنَّةِ الصَّلاةِ اَنْ تُنْصَبَ الْقَدَمُ الْيُمْنٰى وَ اسْتِقْبَالُهُ بِاَصَابِعِهَا الْقِبْلَةَ وَالْجُلُوْسُ عَلَى الْيُسْرٰى رواه النسائي و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې د ښۍ خپې او چت اودرول او د هغې د
ګوتو قبلې طرف ته مخکول او په چپ قدم باندې کيناستل د مانځه د مسنوني طريقې ځيني دي . د
دې حديث روايت نسائي کړې دې او اسناد يې صحيح دې .

## دافتراش دقائلينو دلائل:

۱... دعائشې رضي الله عنها حديث : "وَكَانَ يَفْرِشُ رِجْلَهُ الْيُسْرىٰ وَيَنْصِبُ رِجْلَهُ الْيُمْنٰى" .

۲... حديث دوائل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "فَلَمَّا قَعَدَ وَتَشَهَّدَ فَرَّشَ قَدَمَهُ الْيُسْرىٰ عَلَى الْاَرْضِ وَ جَلَسَ عَلَيْهَا" په
دواړو حديثونو کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عمل مطلقا افتراش منقول دې من غير فرق.

۳... عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مطلقا افتراش لره سنت صلاة اوګرځولو .

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوٰة ج۱ص ۱۷۸ باب صفة الجلوس .

(۲) نسائي کتاب الافتتاح ج۱ص ۱۷۳ باب الاستقبال باطراف اصابع القدم ...الخ .

**دتورک قائلینو ته جواب :** حدیث دابو حمید رضي الله عنه يعني تورک والا حدیث حالت دعذر باندې محمول دې لهذا حضرت ابن عمر رضي الله عنه قعده اولی او اخیره په دواړو کې تورک کولو او فرمایل به يې : " ان رجلاي لاتحملاني " زما خپې اوس زما دجسم بوج نشي اوچتولې .(طحاوي شريف)

# ﴿بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّشَهُّدِ﴾

## داباب دې په بيان دهغه حدیثونو کې چې د تشهد په حقله راغلي دي

۲۵۱ (عن عَبْدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلْنَا اَلسَّلَامُ عَلَى جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ وَالسَّلَامُ عَلَى فُلَانٍ وَفُلَانٍ فَالْتَفَتَ إِلَيْنَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ إِنَّ اللهَ هُوَ السَّلَامُ فَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَعَلَى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ فَإِنَّكُمْ إِذَا قُلْتُمُوهَا أَصَابَتْ كُلَّ عَبْدٍ لِلّٰهِ صَالِحٍ فِي السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه :** د عبد الله رضي الله عنه نه روايت دې هغه ويلي دي چې كله به مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې مونځ كاوه مونږ به ويل السلام على جبرائيل وميكائيل السلام علي فلان وفلان نو مونږ ته به رسول الله صلى الله عليه وسلم وكتل او متوجه به شو نو وبه يې ويل چې بې شكه الله تعالى سلام دې نو كله چې يو ستاسي مونځ كوي نو داسي دې ووايي چې [ التحيات لله والصلوات والطيبات السلام عليك ايها النبي ورحمة الله وبركاته السلام علينا وعلى عبادالله الصالحين ، اشهد ان لا اله الاالله واشهد ان محمداً عبده ورسوله ] يعني معنى دا چې د ټولو قولي ، بدني او مالي عبادتونو تحفې خاص الله تعالى لره دي او په تا دې سلامتيا وي اې دالله تعالى نبي او دالله تعالى رحمت دې وي او بركتونه دې وي او سلامتيا دې وي په مونږ باندې او دالله جل مجده په نيكانو بنده گانو باندې نو كله چې تاسې داؤوايئ نو بې شكه ستاسې سلام به دالله تعالى نه هر يو نيک بنده ته چې په اسمان كې وي او كه ځمكه كې وي ورسيږي .او زه گواهي وركوم چې دالله جل عظمته نه په غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته او زه گواهي وركوم چې بې شكه محمد صلى الله عليه وسلم دالله تعالى بنده او رسول دې .

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صـــ ۱۱۵ باب التشهد في الآخرة ، مسلم كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۷۳ باب التشهد في الصلوة .

۲۶۰} {وَ عَنْه قَالَ اِنَّ مُحَمَّدًا صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَ اِذَا قَعَدْتُمْ فِي كُلِّ رَكْعَتَيْنِ فَقُولُوا اَلتَّحِيَّاتُ لِلّٰهِ وَالصَّلَوَاتُ وَالطَّيِّبَاتُ اَلسَّلَامُ عَلَيْکَ اَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُه اَلسَّلَامُ عَلَيْنَا وَ عَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِينَ اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَ اَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُولُه ثُمَّ لِيَتَخَيَّرْ اَحَدُكُمْ مِنَ الدُّعَاءِ اَعْجَبَه اِلَيْهِ فَلْيَدْعُ بِه رَبَّه عَزَّ وَجَلَّ رواه احمد والنسائي و اسناده صحيح.

قَالَ الترمذي حديثُ ابْنُ مَسْعُودٍ قَدْ رُوِيَ عَنْه مِنْ غَيْرِ وَجْه وَهُوَ اَصَحُّ حَدِيثٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي التَّشَهُّدِ وَالْعَمَلُ عَلَيه عِنْدَ اَكْثَرِ اَهْلِ الْعِلْمِ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَمَنْ بَعْدَهُمْ مِنَ التَّابِعِينَ.(۱)

**ترجمه**.:د حضرت عبد الله رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې محمد صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي او كله چې تاسي په هرو دوه ؤ ركعتونو كې كينئ نو وو ايي چې التحيات لله والصلوات والطيبات السلام عليک ايها النبي ورحمة الله وبركاته السلام علينا وعلى عباد الله الصالحين اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدا عبده ورسوله . او ترجمه يې د دي باب په اولني حديث كې تيره شوي ده.

۲۶۱} {وَعَنْه قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اَنْ يُخْفَى التَّشَهُّدُ رواه ابوداود والترمذي وحسنه والحاكم وصححه.(۲)

**ترجمه** : حضرت عبد الله رضي الله عنه ويلي دي چې په پټه سره تشهد ويل د سنت طريقي څيني دي. دا حديث ابوداؤد او ترمذي روايت كړي او ترمذي حسن ګڼرلي او حاكم روايت كړي او صحيح يې ګڼرلي دي.

**دتشهد څلورويشت طريقې**: دتشهد څلورويشت طريقې دصحابه كرامو رضي الله عنهم نه مروي دي او ددوي په الفاظو كې لږ دير فرق دي ، په دې باندې دټولو اتفاق دي چې ددېنه هر يو طريقه جائز ده ، البته په افضليت كې اختلاف دي ؛

(۱) امام ابوحنيفه رحمه الله او احمد رحمه الله تشهد ابن مسعود لره ترجيح وركوي دكوم الفاظ چې معروف دي.

---

(۱) مسند احمد ج۱ص ۴۱۳ ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۷۴ كيف التشهد.

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۵ باب ماجاء في التشهد.

(۲) امام مالک رحمه الله تشهد د عمر فاروق رضي الله عنه لره ترجيح ورکوي ، د کوم الفاظ چې دادي : التحيات لله الزاكيات الله الطيبات الصلوات الله السلام عليک ....الخ ،والباقي کتشهد ابن مسعود رضي الله عنه
(۳) امام شافعي رحمه الله تشهد دابن عباس رضي الله عنه لره ترجيح ورکوي دکوم الفاظ چې په يو روايت کې داسي دي : "التحيات المباركات ، الصلوات الطيبات لله ، السلام عليک أيها النبي ... الخ ،والباقي کتشهد ابن مسعود رضي الله عنه) وفي رواية : ".... سلام عليک أيها النبي ورحمة الله وبركاته ، سلام علينا.... الى قوله .... وأشهد أن محمدا رسول الله ".

**دابن مسعود رضي الله عنه دتشهد يو څو وجوه دترجيح :**

(۱) دټولو محدثينو په نزد دتشهد په باب کې تشهد دابن مسعود رضي الله عنه دصحيح روايت نه ثابت دې .
(۲) تشهد دابن مسعود رضي الله عنه صحاح سته و سره سره په نورو ډيرو کتابونو دحديثو کې دې ليکن کمال دادې چې ددې په الفاظو کې هيڅ اختلاف نشته ، حال دا چې په نورو ټولو تشهداتو په الفاظو کې اختلاف موجود دې .
(۳) حضور صلى الله عليه وسلم ډير په لوي اهتمام سره حضرت ابن مسعود رضي الله عنه له لاسه اونيولو او دتشهد تعليم يې ورته ورکړ ، او حضرت ابن مسعود رضي الله عنه هم په داسي اهتمام سره خپلو شاګردانو ته تشهد اوښودلو .
(۴) دشلو صحابه کرامو نه منقول دې او اکثر تابعين هم ددې قائله وو .
(۵) ددې ثبوت په صيغې دامر سره شوې دې چې حضور صلى الله عليه وسلم ددې دزده کولو او بل ته دورزده کولو حکم فرمايلې دې وغير ذلک .(معارف السنن :۳/۸۲-۸۵)

# بَابُ الْإِشَارَةِ بِالسَّبَّابَةِ

## په سبابه ګوته باندې د اشارې کولو باب

۲۶۲ { عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم إِذَا قَعَدَ يَدْعُو وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى وَيَدِهِ الْيُسْرٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُسْرٰى وَأَشَارَ بِإِصْبَعِهِ السَّبَّابَةِ وَوَضَعَ إِبْهَامَهُ عَلٰى

اِصْبَعِهِ الْوُسْطٰى وَيُلْقِمُ كَفَّهُ الْيُسْرٰى رُكْبَتَهُ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن الزبير رضي الله عنه وېلي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم کيناست دعا به يې فرمائله ښي مبارک لاس به يې په ښي مبارک ورون باندي او ګس لاس به يې په ګس مبارک ورون باندي کيښود او په سبابه مبارکه ګوته به يې اشاره وکړه او کټه ګوته به يې په منځنۍ ګوته باندي کيښوده، او چپ ورغوي به يې په زنګون د لقمي او مړئ په شان جوړ کړ . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

}۴۶۳{ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا قَعَدَ فِي التَّشَهُّدِ وَضَعَ يَدَهُ الْيُسْرٰى عَلٰى رُكْبَتِهِ الْيُسْرٰى وَوَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى رُكْبَتِهِ الْيُمْنٰى وَ عَقَدَ ثَلاثاً وَ خَمْسِينَ وَ اَشَارَ بِالسَّبَابَةِ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه**: د حضرت بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم په تشهد کې کيناست او چپ مبارک لاس يې په چپ زنګون باندي کيښود او ښي مبارک لاس به يې په ښي زنګون باندي کيښود او د دري پنځوس د عدد په شان به يې غوټه جوړه کړه او په سبابه مبارکه ګوته به يې اشاره وکړه . د دي حديث روايت مسلم شريف کړي دي .

}۴۶۴{ وَعَنْ وَائِلِ بْنِ حُجْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ حَلَّقَ الْإِبْهَامَ وَالْوُسْطٰى وَرَفَعَ الَّتِي تَلِيهِمَا يَدْعُو بِهَا فِي التَّشَهُّدِ رواه الخمسة الا الترمذي و اسناده صحيح .(۳)

**ترجمه**: حضرت وائل بن حجر رضي الله عنه وېلي دي چې ما نبي کريم صلى الله عليه وسلم ليدلي دي چې کټه او منځنۍ ګوته يې حلقه کړي او هغه ګوته يې اوچته کړه کومه چې دي دواړو ته نږدي وه او په هغي سره يې په تشهد کې اشاره وکړه . د دي حديث روايت د ترمذي نه په غير پنځو محدثينو کړي دي او اسناد يې صحيح دي .

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج ۱ صـــ ۲۱۶ باب صفة الجلوس في الصلوة ....الخ .

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱صـــ ۲۱۶ باب صفة الجلوس في الصلوة ....الخ .

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۳۸ باب كيف الجلوس في التشهد ، نسائي كتاب السهو ج۱صـــ ۱۸۶ باب موضع الذراعين ، ابن ماجة كتاب الصلوة صـــ ۶۶ باب الاشارة في التشهد ، مسند احمد ج ۴ صـــ ۳۱۸ .

٣٦٥) (وَعَنْ مَالِكِ بْنِ نُمَيْرِ الْخُزَاعِيِّ عَنْ أَبِيهِ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاضِعًا يَدَهُ الْيُمْنٰى عَلٰى فَخِذِهِ الْيُمْنٰى فِي الصَّلَاةِ وَيُشِيرُ بِإِصْبَعِهِ رواه ابن ماجه و ابوداود والنسائي و اسناده صحيح. (۱)

قَالَ النِّيمَوِيُّ إِنَّ الْإِشَارَةَ بِالسَّبَّابَةِ فِي التَّشَهُّدِ ذَهَبَ إِلَيْهَا جَمَاعَةٌ مِنْ أَهْلِ الْعِلْمِ وَهُوَ قَوْلُ الْإِمَامِ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللّٰهُ تعالى عَلٰى مَا قَالَ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ فِي مُوَطَّاهُ.

**ترجمه**: مالک ابن نُمیر الخزاعي د خپل پلار نه روایت کړي دي ویلي یې دي چې ما رسول کریم ﷺ په مانځه په داسي حالت کې لیدلي دي چې د ښي لاس په ښي ورون باندي ایښودونکي ؤ او په مبارکه ګوته یې اشاره وکړه د دي حدیث روایت ابن ماجه، ابوداؤد او نسائي کړي دي او اسناد یې صحیح دي.

نیموي وایي چې بې شکه په تشهد کې دشهادت په ګوتي سره اشاره کولو طرفته داهل علمو یو جماعت تګ کړي دی، او همدغه قول دامام ابوحنیفه رحمه الله دي لکه څنګه چې امام محمد بن حسن رحمه الله په خپل مؤطا کې ویلي دي.

## دسبابه وجه تسمیه:

دشهادت والا ګوتې په عربئ کې دوه نومونه دي یو سبابه دکوم په ذریعې چې کلمه توحید طرفته اشاره کیږي او شیطان ته بدې ردې ویلې کیږي دویم نوم مسبحه یعنې تسبیح کولو والا.

## داشاره بالسبابه سنتیت

په تشهد کې اشاره بالسبابه مسنون کیدو باندې ائمه اربعه متفق دي، او ددې په سنیت باندې په کثرت سره روایات شاهد دي. البته چونکه دحنفیو په متون معتبرو کې داشاره بالسبابه نه په اثبات کې ذکر ملاویږي او نه په نفي کې، بیا په بعضې علاقو کې اشاره بالسبابه دروافضو اشعار هم ګرځیدلې وو نو بعضې متاخرینو دعفوي په تردید کې اشاره بالسبابه لره غیر مسنون اوګرځوله حالانکه روایات دحدیث پیش نظر ددې په مسنون کیدو کې لږ شک هم نه کوي او امام محمد رحمه الله په "مؤطا" کې ددې تصریح کړي ده چې مونږ داشاره بالسبابه په باره کې دحضور ﷺ عمل لره اخلو او همدغه قول دامام ابوحنیفه رحمه الله هم دي.

**داشاره بالسبابه طریقه**: دباب په حدیثونو کې داشاره بالسبابه دري طریقې موجودې دي.

---

(۱) ابن ماجة كتاب الصلوة صـ ۶۶ باب الاشارة في التشهد، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۴۲ باب الاشارة في التشهد، نسائي كتاب السهو ج۱صـ ۱۸۷ باب الاشارة بالاصابع في التشهد. مؤطا امام محمد ج۱صـ ۱۰۶ باب العبث بالحصى في الصلوة.

(۱) دعبدالله بن زبير رضي الله عنه دحديث مطابق دري واړه ګوتې به بندي کړي شي او دشهادت ګوتې لره به په وسطى يعنې مينځنې ګوتې باندې دپاسه کيخودلې شي او اشاره به او کړې شي.
(۲) دابن عمر رضي الله عنه دحديث مطابق خنصر، بنصر، او وسطى لره به بنده کړى شي، او دګوتې سر به دسبابه په ويخ کې کيخودلې شي او سبابه سره دې اشاره وکړي.
(۳) دوائل بن حجر رضي الله عنه دحديث مطابق خنصر، بنصر لره به بنده کړې شي او ابهام او وسطى نه به حلقه جوړه کړي شي او سبابه سره دې اشاره اوکړي زمونږ په نزد ترجيح هم دې آخري سورت لره حاصله ده او باقي دوه صورتونه هم جائز دي.

دشافعيه په نزد داده چې دتشهد په ابتداء کې دې حلقه جوړه کړې شي او "أشهد" په وخت دې ګوته اوچته کړي او "لااله" په وخت دې لاندې کړي زمونږ په نزد دې اول کولاو کړي او د "لااله" په وخت دې دشهادت ګوته اوچته کړي او "لااله" باندې دې لاندې کړي.

## بَابٌ فِي الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

## په نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندې د درود باب

۳۶۲ {عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي لَيْلَى قَالَ لَقِيَنِي كَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ أَلَا أُهْدِي لَكَ هَدِيَّةً أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ عَلَيْنَا فَقُلْنَا يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ عَلِمْنَا كَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْكَ فَكَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْكَ قَالَ قُولُوا. اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ. اَللّٰهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: عبدالرحمن ابن ابي ليلى ويلي دي چې زما سره حضرت کعب بن عجره رضي الله عنه مخامخ شو نو هغه وويل چې ايا زه تاته يوه خاص قسم تحفه درنکړم په تحقيق نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته تشريف راوړ نو مونږ عرض وکړ او مو ويل چې اي دالله تعالى رسوله مونږ ته معلومه ده او پوه يو چې په تا څنګه سلام ووايو خو ولې په تا څنګه درود ووايو رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې داسې ووايئ: اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَى مُحَمَّدٍ وَعَلَى آلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيمَ إِنَّكَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ.

---

(۱) بخاري كتاب الدعوات ج۲ص۹۵۰باب الصلوة على النبي صلى الله عليه وسلم مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۵باب الصلوة على النبي صلى الله عليه وسلم

اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ . اى الله په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او په آل دده رحمت نازل کړي لکه چې تا رحمت نازل کړي دي په ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ باندي بې شکه چې ته ستائلي شوي او د لويې والا ذات يې اي الله تعالى برکت نازل کړي په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندي او په آل د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندي لکه چې تا برکت نازل کړي دي په ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ بې شکه ته ستائلي شوي لويې والا ذات يې . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

۲۶۷ {وَ عَنْه قَالَ لَقِيَنِي کَعْبُ بْنُ عُجْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ اَلَا اُهْدِي لَکَ هَدِيَةً سَمِعْتُهَا مِنَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْتُ بَلٰى فَاَهْدِهَا لِي فَقَالَ سَأَلْنَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا يَا رَسُولُ الله کَيْفَ الصَّلَاةُ عَلَيْکُمْ اَهْلَ الْبَيْتِ فَاِنَّ اللهَ قَدْ عَلَّمَنَا کَيْفَ نُسَلِّمُ عَلَيْکَ قَالَ قُولُوا : اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّيْتَ عَلٰی اِبْرَاهِيمَ وَ عَلٰی آلِ اِبْرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ . اَللّٰهُمَّ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا بَارَکْتَ عَلٰی اِبْرَاهِيمَ وَ عَلٰی اِبْرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَجِيدٌ رواه البخاري .[1]

**ترجمه** :عبدالرحمن بن ابي ليلى ويلي دي چې څما سره کعب بن عجره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مخامخ شو نو وي ويل چې ايا زه تاته يوه خاص قسم تحفه درنکړم چې هغه مي د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دهنو ما وويل چې ولي نه هغه ماته راکړه نو کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه پوښتنه وکړه نو ومو ويل چې اي دالله تعالى رسوله په تاسو اهل بيت باندي څنګه درود ووايو او بې شکه الله جل شانه په تحقيق ښودنه کړي مونږ ته چې څنګه سلام ووايو موږ په تا باندي نو وي فرمائيل چې ووائي :اي الله په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په آل باندي درود نازل کړي لکه څنګه چې تا په ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ او د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په آل باندي درود نازل کړي دي بې شکه ته ستائلي شوي لويې والا ذات يې . اي الله په محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په آل باندي برکت نازل کړي لکه چې تا په ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ او د ابراهيم عَلَيْهِ السَّلَامُ په آل باندي برکت نازل کړي دي بې شکه ته ستائلي شوي لويې والا ذات يې . د دي حديث روايت بخاري کړي دي .

۲۶۸ {وَعَنْ نُعَيْمِ الْمُجْمِرِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالُوا يَا رَسُولُ الله کَيْفَ نُصَلِّي عَلَيْکَ قَالَ قُولُوا : اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَ عَلٰی آلِ مُحَمَّدٍ وَ بَارِکْ عَلٰی مُحَمَّدٍ وَعلي آلِ مُحَمَّدٍ کَمَا صَلَّيْتَ وَ بَارَکْتَ عَلٰی

---

(1) بخاري کتاب الانبياء ج۱صـــ ۴۷۷ باب يزفون النسلان في المشي .

اِبْرَاهِيمَ وَعَلٰى آلِ اِبْرَاهِيمَ اِنَّکَ حَمِيدٌ مَّجِيدٌ رواه ابو العباس السراج و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: نُعيم مجمر د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت کړي دي چې صحابه کرامو عرض وکړ چې اي دالله تعالى رسوله په تا باندي څنګه درود ووايو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمائل چې ووايې اي الله په محمد صلى الله عليه وسلم اودمحمد صلى الله عليه وسلم په آل باندي درود نازل کړي اوپه محمد صلى الله عليه وسلم او د محمد صلى الله عليه وسلم په ال باندي برکت نازل کړ لکه چې تا په ابراهيم عليه السلام او د ابراهيم عليه السلام په آل برکت نازل کړي دي بې شکه ته ستائلي شوي لوېې والا ذات يې. د دې حديث روايت ابوالعباس السراج کړي دي او اسناد يې صحيح دي.

## په قعده کې د درود شريف حکم

(۱) دامام شافعي رحمه الله په نزد فرض دې .(۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله، امام مالک رحمه الله، امام احمد رحمه الله او دجمهورو په نزد سنت دې.

عام حکم: په ټول عمر کې يو پيره لوستل بالاتفاق فرض دي او دحضور صلى الله عليه وسلم مبارک نوم ذکر چې کوم ځاي کې هم راشي نو يو پيره خو واجب دي چې درود اوايي او که په يو مجلس کې باربار دمبارک نوم ذکر اوشي نوبيا په دې کې اقوال دي:

۱... امام طحاوي رحمه الله فرمايي چې څومره پيره چې نوم اخيستلې کيږي درود ويل واجب دي روايات نه ددې تائيد کيږي قال عليه الصلاة والسلام: رغم انف رجل ذکرت عنده فلم يصل علي

۲... شمس الأئمه کرخي رحمه الله فرمايي چې يو پيره ويل واجب دي او ددېنه زيات سنت او مستحب دي په دين کې دحرج نه کيدو او دعام دلائلو نه يي تائيد کيږي.

په عام حالاتو کې درود او سلام په کثرت سره وِرد کول مستحب دي ، د درود او سلام مختلفې صيغې واردې شوي دي ، داکثرو علماؤ خيال دې چې په دې ټولو کې درود ابراهيمي والا صيغې دټولو نه افضل دي.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي التَّسْلِيمِ

## باب دې په بيان د هغه حديثونو کې چې د سلام په باره کې راغلي دي:

}۴۶۹ {عَنْ عَامِرِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ اَبِيهِ قَالَ كُنْتُ اَرٰى رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم يُسَلِّمُ عَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ

---

(۱) عمل اليوم والليلة للامام والنسائي مع ترجمه نبوي ليل ونهار ج۱صـ ۵۲ برقم ۴۷

يَسَارِهٖ حَتّٰى أَرٰى بَيَاضَ خَدِّهٖ رواه مسلم .[۱]

**ترجمه** :د عامر بن سعد نه روايت دي چې څما پلار ويل چې ما رسول الله ﷺ ليدلي دي چې ښي طرف او ګس طرف ته يې سلام ګرځاوه تر دي پوري چې ما د رسول الله ﷺ د مبارک مخ سپينوالي ليده . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

۴۸۰} وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ يُسَلِّمُ عَنْ يَمِيْنِهٖ وَعَنْ يَسَارِهٖ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ حَتّٰى أَرٰى بَيَاضَ خَدِّهٖ رواه الخمسة و صححه الترمذي .[۲]

**ترجمه** :د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم ﷺ خپل ښي او چپ طرف ته سلام ګرځاوه السلام عليکم ورحمة الله . السلام عليکم ورحمة الله تر دي پوري چې ما د رسول کريم ﷺ د مبارک مخ سپينوالي ليده . د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي او ترمذي صحيح ګڼړلي دي .

## دسلام متعلق دري اهم مسائل

اولني مسئله : خروج من الصلاة لپاره لفظ "السلام" ويلو حکم .

(۱) دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد لفظ "السلام عليکم" ويل او دمونځ نه وتل فرض دي ورنه مونځ يي نه کيږي .

(۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله او دصاحبينو رحمه الله په نزد لفظ "السلام" واجب دې ، که يو بل داسي منافي دصلاة عمل سره ووځي نو دې سره خو به فرض ادا شي ليکن مونځ به واجب الاعاده وي .

**دائمه ثلاثه رحمه الله دليل**: حديث چې څو پيره تير شو " وتحليلها التسليم " دمونځ نه دوتلو طريقه يي سلام ښودلې ده .

**داحنافو دليل**:

۱...دعلي رضي الله عنه حديث : "إِذَا جَلَسَ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ ثُمَّ اَحْدَثَ فَقَدْ تَمَّتْ صَلَاتُهٗ" .

۲...دابن مسعود رضي الله عنه حديث : "اذا قلت هذا أو فعلت هذا فقد تمت صلاتک" .

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۱۶ باب السلام للتحليل من الصلوة ....الخ .

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۵ باب ماجاء في التسليم في الصلوة ، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۴۳ باب في السلام ، نسائي کتاب السهو ج۱ص ۱۹۴ باب کيف السلام علي اليمين ، ابن ماجة کتاب الصلوة ص ۶۶ باب التسليم ، مسند احمد ج۱ص ۳۹۰ .

**ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب** : (۱) په حدیث مذکور کې د مونځ نه د وتلو مختلفې طریقو نه کامل او اکمل طریقه بیان کړې شوې ده .(۲) د فرضیت ثبوت کتاب الله باندې زیاتوالې دې کوم چې خبر واحد سره نشي کیدې لهذا د دېنه وجوب ثابتول مناسب دي.

## دویمه مسئله : دسلام اړولو کیفیت

(۱) د امام مالک رحمه الله په نزد امام او منفرد صرف یو پیره خپلې مخې ته سر او نیت کړي او سلام دې وکړي او د هغې نه پس دې لږ چپ طرفته او ګوري.

(۲) امام ابو حنیفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد هر مونځ کونکي باندې ښي او چپ طرفته یعني دوه پیرې سلام ویل لازم دي.

**دامام مالک رحمه الله دلیل** : دعائشې رضي الله عنها حدیث : "ان رسول الله صلی الله علیه وسلم کان یسلم في الصلوٰة تسلیمة واحدة تلقاء وجهه ثم یمیل الی شق الایمن شیئا" . (ترمذي شریف)

**دجمهورو دلیل**: دباب دواړه حدیثونه دکوم الفاظ چې تقریبا یو شان دي یعني : "کان یسلم عن یمینه وعن یساره" په حدیث کې ښي او چپ طرفته دسلام اړولو ذکر دې .

**امام مالک رحمه الله ته جواب** :

۱... تسلیمتین والا حدیث تقریبا دشل صحابه کرامو نه مروي دی او دعائشې رضي الله عنها حدیث مذکور سند کمزور دې .

۲... حضور صلی الله علیه وسلم به اولنې سلام په نسبت ددویم سلام په اوچت آواز سره ویلو دې لره نقل کول مقصود دي .

۳... تسلیمة واحدة صلاة اللیل باندې محمول دې او تسلیمتین والا احادیث فرائض باندې محمول دي کوم چې به حضور صلی الله علیه وسلم تولو سره ادا فرمایلو .

## دریمه مسئله : دسلام په وخت دچا نیت اوکړي؟

که امام وي نو ښي او چپ طرفته سلام اړولو په وخت دفرښتو، او هغې طرفته دمقتدیانو او دنیک عمله پیریانو دسلام نیت دې اوکړي او که مقتدي دې نو که امام مخې طرفته وي نو ښي او چپ دواړو طرفته ورنه چې کوم طرفته هغه وي هغه طرفته دې دفرښتو ، مقتدي او دنیک عمله پیریانو نیت دې اوکړي .

# بَابُ الْاِنْحِرَافِ بَعْدَ السَّلَامِ

## د سلام نه پس مقتديانو طرف ته د راګرځيدو باب :

}۴۷۱{ عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدَبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ رواه البخاري .(۱)

**ترجمه** : حضرت سمره ابن جُندُب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به کله مونځ وکړ نو مونږ طرف ته به يې مخ مبارک متوجه کړ . د دي حديث روايت بخاري کړي دی .

}۴۷۲{ وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنَّا إِذَا صَلَّيْنَا خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَحْبَبْنَا أَنْ نَكُونَ عَنْ يَمِينِهِ فَيُقْبِلُ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ رواه مسلم و ابوداود .(۲)

**ترجمه** :د حضرت براء ابن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې کله به مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پسې مونځ کاوه نو مونږ به دا خبره خوښه وله چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښي طرف ته ؤدريږو چې مونږ طرف ته د مانځه نه روسته مخ مبارک متوجه کړي . د دي حديث روايت مسلم او ابوداؤد کړي دي .

}۴۷۳{ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَنْصَرِفُ عَنْ يَمِينِهِ رواه مسلم .(۳)

**ترجمه** : حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې دير ځله ما رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ښي طرف ته په راګرځيدو ليدلي دي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

## دوو حديثونو په مينځ کې تطبيق:

اولني حديث په رڼا کې علماؤ فجر او عصر نه پس امام مقتديانو طرفته اوړيدل او ناستې لره يي مستحب ليکلي دي (حاشيه مراقي الفلاح ، ص: ۳۱۴) حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د مونځ نه پس اکثر چپ طرفته تشريف وړلو كما في حديث انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، لهذا دا بهتره ده او کله به يي ښي طرفته هم تشريف وړلو كما في حديث ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ، نو ځکه ديو طرفته اوچتيدو باندې اصرار او بل طرفته اوچتيدو لره غلط ګڼل پخپله غلط دي.

---

(۱) البخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۱۷ باب يستقبل الامام الناس اذا سلم .

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۷ باب استحباب اليمين،ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۹۰ باب الامام ينحرف بعد التسليم .

(۳) مسلم كتاب المسافرين ج۱ص ۲۴۷ باب جواز الانصراف من الصلوة عن اليمين والشمال.

# بَابُ فِي الذِّكْرِ بَعْدَ الصَّلَاةِ

## د مانځه نه وروسته د ذکر بيان :

} ۴۷۴ {عَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَقُولُ فِي دُبُرِ صَلَاتِهِ إِذَا سَلَّمَ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اَللّٰهُمَّ لَا مَانِعَ لِمَا أَعْطَيْتَ وَلَا مُعْطِيَ لِمَا مَنَعْتَ وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** :د حضرت مُغيره ابن شعبه رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د خپل مانځه د سلام پسې دغه دعاء ويله :لا اله الا الله وحده لا شريک له له الملک وله الحمد وهو على کل شئ قدير اللهم لا مانع لما اعطيت ولا معطي لما منعت ولا ينفع ذا الجد منک الجد. يعني معنیٰ دا چې دالله جل شانه نه په غير بل هيڅوک د عبادت مستحق نشته الله جل شانه ايکي يو دي د ده سره څوک شريک نشته همدغه الله جل شانه په هر شي باندې قدرت والادي چې اراده يې وفرمايي اي الله نشته هيڅوک منع کوونکي د هغه شي چې ته يې ورعطاء کوي او نشته څوک ورکوونکي د يو شي چې ته يې منع کوي او هيڅ بختوالا ته د ده بخت نفع نه شي رسولي . د دې حديث روايت شيخينو کړي دي .

} ۴۷۵ {وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا انْصَرَفَ مِنْ صَلَاتِهِ اِسْتَغْفَرَ ثَلَاثًا وَقَالَ اَللّٰهُمَّ أَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ رواه الجماعة الا البخاري.(۲)

**ترجمه** :د حضرت ثوبان رضي الله عنه نه روايت دي هغه ويلي دي چې کله به رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل مانځه نه سلام ګرځاوه درې ځلې به يې استغفار وايه او اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت ذا الجلال والاکرام به يې وايه . معنى دا چې اي الله ته سلامتيا والا يې او سلامتيا هم ستا نه ده . د برکت، لوئې او عزت والا ذات يې اي ربه !.

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۱۱۷ باب الذکر بعد الصلوة ، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۱۸ باب الذکر بعد الصلوة وبيان صفته .

(۲) مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۱۸ باب استحباب الذکر بعد الصلوة وبيان صفته ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۶۶ باب ما يقول اذا سلم،ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۲۱۲ باب ما يقول الرجل اذا سلم ، نسائي کتاب السهو ج۱ص ۱۹۶ باب الاستغفار بعد التسليم ، ابن ماجة کتاب الصلوة ص ۶۷ باب ما يقال بعد التسليم ، مسند احمد ج ۵ ص ۲۷۵.

۴۷٦ {وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمْ يَقْعُدْ إِلَّا مِقْدَارَ مَا يَقُولُ اَللّٰهُمَّ اَنْتَ السَّلَامُ وَمِنْكَ السَّلَامُ تَبَارَكْتَ ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فرمائلي دي چې نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د سلام گرځولو نه روسته د اللهم انت السلام ومنک السلام تبارکت ذا الجلال والاکرام د ويلو په اندازه كيناسته. دا حديث مسلم روايت كړي دي.

۴۷۷ {وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عُجْرَةَ رضي الله تعالى عنه عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُعَقِّبَاتٌ لَا يَخِيبُ قَائِلُهُنَّ اَوْ فَاعِلُهُنَّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ تَسْبِيحَةً وَثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ تَحْمِيدَةً وَاَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ تَكْبِيرَةً رواه مسلم.[2]

**ترجمه** :د حضرت كعب بن عجره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي چې رسول اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې د مانځه نه روسته يو څو كلمي دي چې د هر فرض مانځه نه پس د هغې ويونكي او يا د هغې كوونكي د راوي شک وي نه ناكاميږي (۳۳) ځله سبحان الله (۳۳) ځله الحمدلله او (۳۴) ځله الله اكبر د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

۴۷۸ {وعَنْ اَبِي هريرةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ سَبَّحَ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَحَمِدَ اللهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ وَكَبَّرَ اللهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ فَتِلْكَ تِسْعَةٌ وَتِسْعُونَ وَقَالَ تَمَامَ الْمِائَةِ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ غُفِرَتْ خَطَايَاهُ وَاِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ رواه مسلم.[3]

**ترجمه** :د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي چې څوک د هر مانځه نه پس د دري ديرش ځله سبحان الله او دري ديرش ځله الحمدلله او دري ديرش ځله الله اكبر ووايي چې دا يو كم سل ځله شو او په سلم ځل باندي لا اله الا الله وحده لا شريک له

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۱۸ باب استحباب الذكر بعد الصلوة وبيان صفته.
(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۱۹ باب استحباب الذكر بعد الصلوة وبيان صفته.
(۳) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۱۹ باب استحباب الذكر بعد الصلوة وبيان صفته.

له الملک وله الحمد وهو علي کل شئ قدير ولولي وبه بخښلي شي ټول ګناهونه د ده اګر چې وي ګناهونه د ده په شان د زګ د درياب . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

۴۷۹ {وَعَنْهُ قَالَ قُلْتُ لِاَبِيْ سَعِيْدٍ هَلْ حَفِظْتَ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا يَقُوْلُهُ بَعْدَ مَا سَلَّمَ قَالَ نَعَمْ كَانَ يَقُوْلُ : سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَ سَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ وَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ رواه ابو يعلي و قال الهيثمي رجاله ثقات .[1]

**ترجمه** : او د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي هغه ويلي دي چې ما ابي سعيد ته وويل چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دي څه ياد کړي دي چې هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سلام ګرځولو نه روسته ويل ابوسعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې هو رسول کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وه چې ويل به يې سبحان ربک رب العزة عما يصفون وسلام على المرسلين والحمدلله رب العالمين . د دي حديث روايت ابو يعلي کړي او الهيثمي ويلي دي چې رجال يې ثقه دي .

۴۸۰ {وَعَنِ الْحَسَنِ بْنِ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ فِيْ دُبُرِ الصَّلَاةِ الْمَكْتُوْبَةِ كَانَ فِيْ ذِمَّةِ اللهِ إِلَى الصَّلَاةِ الْأُخْرٰى رواه الطبراني في الكبير و قال الهيثمي اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : او حضرت حسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي دي چا چې د فرض مانځه نه روسته ايت الکرسي ولوستله دغه کس تر بل مانځه پورې د الله جل شانه په ذمه وارئ کې شو . د دي حديث روايت په کبير کې طبراني کړي او الهيثمي ويلي دي چې اسناد يې حسن دي .

۴۸۱ {وَعَنْ اَبِيْ اُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَرَأَ آيَةَ الْكُرْسِيِّ دُبُرَ كُلِّ صَلَاةٍ مَكْتُوْبَةٍ لَمْ يَمْنَعْهُ مِنْ دُخُوْلِ الْجَنَّةِ إِلَّا الْمَوْتُ رواه النسائي و صححه ابن حبان .[3]

**ترجمه** : حضرت ابي امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائيلي دي چې څوک

---

(۱) مجمع الزوائد ج۲ صـ ۱۴۸ نقلا عن ابي يعلى .
(۲) المعجم الکبير للطبراني ج۳ صـ ۸۲ رقم ۲۷۳۳ ، مجمع الزوائد ج۲ صـ ۱۴۸ .
(۳) عمل اليوم والليلة للنسائي مع ترجمه نوي ليل ونهار صـ ۷۸ برقم ۱۰۰ .

د هر فرض مانځه نه روسته ايت الکرسي ولولي منع به نه کړي ده لره هيڅ يو شي د جنت د داخليدو نه په غير د مرګ نه. د دي حديث روايت نسائي کړي دي او ابن حبان صحيح ګڼړلي دي.

# بَابُ مَا جَاءَ فِي الدُّعَاءِ بَعْدَ الْمَكْتُوبَةِ

## د فرض مانځه نه روسته د دعاء باب

۴۸۲ {عن اَبِي اُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قِيلَ يَا رَسُولَ اللهِ اَيُّ الدُّعَاءِ اَسْمَعُ قَالَ جَوْفَ اللَّيْلِ الْآخِرِ وَ دُبُرَ الصَّلَوَاتِ الْمَكْتُوبَاتِ رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن .(۱)

**ترجمه** :حضرت ابو امامه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته وويل شو چې اي د الله جل شانه رسوله کومه يوه دعاء ډيره د قبليدو وړ ده رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمائل چې د اخري شپې په نيمايي برخه کې او د فرض مانځه نه روسته. د دي حديث روايت ترمذي کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث حسن دي.

# بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ فِي الدُّعَاءِ

## په دعاء کې د لاسونو اوچتولو باب

۴۸۳ {عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ اِنَّهَا رَأَتِ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُو رَافِعًا يَدَيْهِ يَقُولُ اَللّٰهُمَّ اِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ فَلَا تُعَاقِبْنِي اَيُّمَا رَجُلٌ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ آذَيْتُهُ اَوْ شَتَمْتُهُ فَلَا تُعَاقِبْنِي فِيهِ رواه البخاري في الادب المفرد و قال الحافظ في الفتح هو صحيح الاسناد.(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې هغي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسي حال کې ليدلي دي چې لاسونه يې اوچت کړي او دعا يې کوله فرمائل يې چې اى الله بي شکه چې زه بشر يم نو ما او مه نيسي. د مؤمنانو کوم يو سړي ته چې ما ضرر رسولي دي او يا مي ورته کنځل کړي دي نو ما او ه نه نيسي په هغي کې. د دي حديث روايت په ادب المفرد کې بخاري نقل کړي او حافظ ابن حجر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په فتح الباري کې ويلي دي چې د دي حديث اسناد صحيح دي.

---

(۱) ترمذي ابواب الدعوات ج۲ص ۱۸۷ باب

(۲) ادب المفرد للبخاري ص ۸۹ باب رفع الايدي في الدعاء ، فتح الباري كتاب الدعوات ج۱۱ص ۱۴۲ باب رفع الايدي في الدعاء .

}۲۸۴ {و عنها قالت رأيتُ رسُولَ الله ﷺ رافعًا يديه حتّٰى بَدَا ضَبعُه يدعُو رواه البخاري في جزء رفع اليدين و صححه ابن حجر .(۱)

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې ما رسول الله ﷺ په داسي حال کې ليدلي دي چې اوچتوونکي ؤ لاسونو خپلو لره تر دي پوري چې د هغه مبارک څنګل ښکاره کيده.
د دي حديث روايت بخاري د رفع اليدين په جزکې کړي دي او ابن حجر صحيح ګڼرلي دي:

}۲۸۵ {وَ عَنْ سَلْمَانَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله ﷺ اِنَّ رَبَّكُمْ حَيٌّ كَرِيمٌ يَسْتَحْيِ مِنْ عَبْدِهٖ اِذَا رَفَعَ يَدَيهِ اَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا رواه ابو داود وابن ماجه والترمذي و حسنه و قال الحافظ في الفتح (۱۱/۱۲۱) سنده جيد .(۲)

**ترجمه** :حضرت سلمان رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم ﷺ فرمائلي دي چې بي شکه ستاسي پروردګار حيا کولو والا او معافي کولو والا ذات دي الله جل شانه ته د خپل بنده نه حيا ورځي چې کله بنده خپل دواړه لاسونه اوچت کړي او خالي يې راواپس کړي ، د دي حديث روايت ابوداؤد ابن ماجه او ترمذي کړي دي او حسن يې ګڼرلي دي او حافظ په فتح الباري کې ويلي دي چې سند يې جيد دي.

**مسئلة الباب** : ددعا لپاره لاس اوچتول مستحب دي ځکه چې په دې کې دعاجزئ اظهار دې او رفع يدين ددعا دآدابو نه دي دلته دوه جدا جدا خبري دي :
(۱) دفرض مونځونو نه پس ددعا ثبوت .(۲) نفس دعا غوښتلو آداب.
دتير شوي باب دحديثو نه ثابته شوه چې دفرض مونځونو نه پس دعا قبليږي نو اوس چې کله بنده دعا کوي نو دير په آدابو سره به دعا غواړي يعني لاس په اوچتولو سره ، په اجتماعي شکل ددعا دقبليدو زيات اميد دې ليکن دې لره دې ضروري اونه ګڼي .

(۱) جز رفع يدين للبخاري مترجم صـــ ۶۲ ، فتح الباري کتاب الدعوات ج۱۱صـــ ۱۴۲ باب رفع الايدي .
(۲) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۰۹ باب الدعاء ، ابن ماجة ابواب الدعاء صـــ ۲۸۴ باب رفع اليدين في الدعاء ، ترمـذي ابـواب الدعوات ج۲صـــ ۱۹۶ باب فتح الباري ج۱۱ صـــ ۱۲۱ في الدعاء .

# بَابٌ فِي صَلَاةِ الْجَمَاعَةِ

## په جماعت سره د مونځ کولو باب

}۴۸۶ {عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ هَمَمْتُ أَنْ آمُرَ الْمُؤَذِّنَ فَيُؤَذِّنَ ثُمَّ آمُرَ رَجُلًا فَيُصَلِّيَ بِالنَّاسِ ثُمَّ انْطَلِقَ بِرِجَالٍ مَعَهُمْ حُزَمُ الْحَطَبِ إِلَى قَوْمٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الصَّلَاةِ فَأُحَرِّقُ عَلَيْهِمْ بُيُوتَهُمْ بِالنَّارِ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمائلي دي :چې ما اراده کړي ده چې مؤذن ته امر وکړم چې اذان وکړي بيا يو کس ته امر وکړم چې خلکو ته مونځ وکړي بيا د ځان سره داسي کسان چې د هغو سره د لرګو ګيډي وي يو قوم ته بوځم چې د جماعت د مانځه نه مخالفت کوي نو اوه سيزم کړونه د هغوي په اور باندي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

}۴۸۷ {وَعَنْهُ قَالَ أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلٌ أَعْمٰى فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ لَيْسَ لِي قَائِدٌ يَقُودُنِي إِلَى الْمَسْجِدِ فَسَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُرَخِّصَ لَهُ فَيُصَلِّيَ فِي بَيْتِهِ فَرَخَّصَ لَهُ فَلَمَّا وَلّٰى دَعَاهُ فَقَالَ هَلْ تَسْمَعُ النِّدَاءَ بِالصَّلَاةِ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأَجِبْ رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته يو ړوند سړي راغي نو وي ويل چې اي د الله جل شانه رسوله ما د پاره څوک راوستونکي نشته چې مسجد ته مي راولي نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې وغوښتل چې ده ته رخصت ورکړي چې په خپل کور کې مونځ کوي نو ده ته يې رخصت ورکړ کله چې يې واپسي وکړه نو نبي عَلَيْهِ السَّلَام واپس راوغوښته نو ورته وي ويل چې ايا ته د مانځه اذان اوري هغه وويل هو نبي عَلَيْهِ السَّلَام وفرمائل چې ته اذان قبول کړه . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

}۴۸۸ {وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَلْقَى اللهَ غَدًا مُسْلِمًا فَلْيُحَافِظْ عَلَى هٰؤُلَاءِ الصَّلَوَاتِ حَيْثُ يُنَادِي بِهِنَّ فَإِنَّ اللهَ شَرَعَ لِنَبِيِّكُمْ سُنَنَ الْهُدٰى وَإِنَّهُنَّ مِنْ سُنَنِ الْهُدٰى وَلَوْ أَنَّكُمْ

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۸۹ باب وجوب صلوة الجماعة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۳۲ باب فضل صلوة الجماعة ...الخ .

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۳۲ باب فضل صلوة الجماعة .

صَلَّيْتُمْ فِي بُيُوتِكُمْ كَمَا يُصَلِّي هٰذَا الْمُتَخَلِّفُ فِي بَيْتِهِ لَتَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ وَلَوْ تَرَكْتُمْ سُنَّةَ نَبِيِّكُمْ لَضَلَلْتُمْ وَمَا مِنْ رَجُلٍ يَتَطَهَّرُ فَيُحْسِنِ الطُّهُورَ ثُمَّ يَعْمِدُ إِلَى مَسْجِدٍ مِنْ هٰذِهِ الْمَسَاجِدِ إِلَّا كَتَبَ اللهُ لَهُ بِكُلِّ خُطْوَةٍ يَخْطُوهَا حَسَنَةً وَيَرْفَعُهُ بِهَا دَرَجَةً وَيَحُطُّ عَنْهُ بِهَا سَيِّئَةً وَلَقَدْ رَأَيْتُنَا وَمَا يَتَخَلَّفُ عَنْهَا إِلَّا مُنَافِقٌ مَعْلُومُ النِّفَاقِ وَلَقَدْ كَانَ الرَّجُلُ يُؤْتٰى بِهِ يُهَادٰى بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ حَتّٰى يُقَامَ فِي الصَّفِّ رواه مسلم(۱)

**ترجمه**: حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې څوک چې په دي باندي خوشحالېږي چې الله جل شانه سره د مسلمانۍ په حالت کې ملاقي شي نو د دغي مونځونو پابندي دي کوي کله چې د هغي د پاره اواز او اذان کولي شي ځکه چې الله جل شانه ستاسي د نبي د پاره د هدايت لاري ښکاره کړي دي او يقينًا دغه مونځونه د هدايت د لارو نه دي او که چرته تاسو په خپلو کورونو کې مونځونه کوئ لکه چې دا مخالفت کوونکي په خپل کور کې مونځ کوي نو تاسي به د خپل نبي طريقه پرېښي وي او که چرته تاسو د خپل نبي طريقه پرېږدئ نو خامخا ګمراه به شئ او هيڅ يو کس نشته چې په ښه طريقي سره ځان پاک کړي بيا د دغه مسجدونو نه يو مسجد نه اراده وکړي مګر وبه ليکي الله جل شانه په هر يو قدم باندي ده لره يوه نيکي او اوچته به کړي ده لره په هغي باندي يوه درجه او لري به کړي ده لره په هغي باندي يوه ګناه په تحقيق سره ما يو جماعت د خپلو صحابه کرامو لره ليدلي دي چې د دغه جماعت نه روسته کېږي هغه څوک چې معلوم وي نفاق د هغه او په تحقيق سره ؤ يو سړي چې راوستي شو هغه په منځ د دوه کسانو کې تر دي چې هغه په صف کې اودرولي شو. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

}۲۸۹{ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ تَفْضُلُ صَلَاةَ الْفَذِّ بِسَبْعٍ وَعِشْرِينَ دَرَجَةً رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه**: د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي د جماعت مونځ په يواځې مانځه اوه ويشت درجي فضيلت لري. د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

}۲۹۰{ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلَاةُ الرَّجُلِ مَعَ الرَّجُلِ أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَحْدَهُ وَصَلَاتُهُ مَعَ الرَّجُلَيْنِ أَزْكٰى مِنْ صَلَاتِهِ مَعَ الرَّجُلِ وَمَا كَثُرَ فَهُوَ أَحَبُّ إِلَى اللهِ رواه

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ ص ۲۳۲ باب فضل صلوة الجماعة .

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ ص ۸۹ باب فضل صلوة الجماعة، مسلم كتاب المساجد ج۱ ص ۲۳۱ باب فضل صلوة الجماعة .

ابوداود و اسناده صحيح .[۱]

**ترجمه**: د حضرت ابي بن كعب رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شكه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې د يو كس مونځ د بل كس سره يعني د دوه ؤ كسانو مونځ په جماعت سره د يو كس د مانځه نه افضل دي او د يو كس مونځ د دوه ؤ كسانو د مانځه سره بهتر دي د يو كس د مانځه نه د يو كس سره او څومره چې زياتيږي نو هغه الله جل شانه ته ډير محبوب دي . د دي حديث روايت ابوداؤد كړي او اسناد يې صحيح دي .

}۴۱۱{ و عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَضْلُ صَلَاةِ الرَّجُلِ فِي الْجَمَاعَةِ عَلَى صَلَاتِهِ وَحْدَهُ بِضْعٌ وَعِشْرُونَ دَرَجَةً رواه احمد و اسناده صحيح .[۲]

**ترجمه** :حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې په جماعت سره د يو سړي مونځ كول د يو كس په يواځې مونځ كولو باندي څه د پاسه شل درجې فضيلت لري . د دي حديث روايت احمد كړي او اسناد يې صحيح دي .

}۴۱۲{ وَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ تَفْضُلُ صَلَاةُ الْجَمَاعَةِ عَلَى صَلَاةِ الْفَذِّ وَ صَلَاةِ الرَّجُلِ وَحْدَهُ خَمْسًا وَعِشْرِينَ صَلَاةً رواه البزار و اسناده صحيح .[۳]

**ترجمه** :حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي يواځې مانځه نه په جماعت سره مونځ او د سړي ديواځې مونځ كولو نه پنځه ويشت درجې بهتر دي اويا په جماعت سره مونځ په يواځې مانځه باندي او د يو سړي په يواځې مانځه باندي د پنځه ويشتو مونځونو نه بهتر دي . د دي حديث روايت بزار كړي او اسناد يې صحيح دي.

}۴۱۳{ و عن عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللهَ تَبَارَكَ وَ تَعَالَى لَيَعْجَبُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْجَمْعِ رواه احمد و اسناده حسن .[۴]

**ترجمه**: او حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه ويلي دي چې ما د رسول كريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي چې فرمائل يې بې شكه الله تبارك وتعالى خامخا په جماعت سره مونځ خوښوي . د دي

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۸۲ باب في فضل صلوة الجماعة .

(۲) مسند احمد ج۱صـــ ۳۸۶.

(۳) كشف الاستار عن زوائد البزار كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۲۷ رقم ۴۵۹ .

(۴) مسند احمد ج۲صـــ ۵۰ .

حديث روايت احمد کړي او اسناد يې حسن دي .

۲۹۲ {و عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ لَيَعْجَبُ مِنَ الصَّلَاةِ فِي الْجَمْعِ رواه الطبراني و اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** :او حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائل به يې بې شکه الله عزوجل په جماعت سره مونځ خامخا خوښوي . د دي حديث روايت طبراني کړي دي او اسناد يې حسن دي .

## په جماعت سره دمونځ حکم او تطبيق بين المذاهب

(۱) داهل ظواهرو په نزد دمونځ صحيح کيدو لپاره شرط دې ، وهو رواية عن الامام أحمد .

(۲) امام احمد رحمه الله په نزد فرض عين دې .(۳) دامام شافعي رحمه الله په نزد فرض عين دې او دير قول مطابق سنت دې .(۴) امام ابوحنيفه رحمه الله په نزد او دامام مالک رحمه الله په نزد سنت مؤکده قريب من الواجب دې .

حضرت علامه محمد انور شاه کشميري رحمه الله فرمايي چې اختلاف په حقيقت کې دتعبير اختلاف دې . دمآل په اعتبار سره دير فرق نشته ، ځکه چې په رواياتو کې دجماعت دير زيات تاکيد او دجماعت پريخودلو والا لپاره وعيد راغلې دی لکه دحضرت ابوهريره رضي الله عنه په حديث کې دي چې حضور صلى الله عليه وسلم په جماعت کې دنه حاضر کيدو والا دکورونو سوزولو اراده اوفرمايله ، همدارنګه ديو حديث مطابق داذان په اوريدلو سره بينا کس ته هم جومات ته دراتلو حکم ورکړ، او دويم طرفته دمعمولي عذر په بناء باندې دترک جماعت اجازت معلوميږي. لکه څنګه چې (په راتلونکي باب کې ) دابن عمر رضي الله عنه دحديث مطابق د ډوډۍ په موجودتيا کې ( چې کله د ډوډۍ دخوړلو تقاضا هم وي) اول يې دډوډۍ دخوړلو اجازت ورکړ، دغه شان چې کله به باران وو ،تيزه هوا به چليده نو فرمايل به يې چې په کور کې مونځ کوئ.

نو کوم حضراتو چې سخت تاکيد والا حديثونو ته اوکتل هغوي جماعت لره شرط يا فرض عين ، وکفايه او ګرزولو او چاچې فقط سهولتونو والا حديثونو ته اوکتل نو هغوي سنت اوګرزوو ، او چاچې ددواړه قسمو حديثو لحاظ اوکړو نو هغوي واجب يا سنت مؤکده اوګرزوو.

(۱) مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۲صـــ ۳۹ باب الصلوة الجماعة للّٰه عن الطبراني في الكبير .

## تطبيق بين الاحاديث:

دجماعت دفضيلت مطابق حديثونه مختلف دي په بعضو کې دجماعت مونځ دانفرادي مونځ نه اوه ويشت (۲۷) درجه فضل ښودلې شوې او په بعضو کې پنځه ويشت (۲۵) درجه او په بعضو کې شل (۲۰) نه بره درجې ښودلې شوي دي. تطبيق يې داسې دی چې دثواب قلت او کثرت مدار نيت، خضوع او خشوع او تعدادِ جماعت باندې دي.

# بَابُ تَرْكِ الْجَمَاعَةِ لِعُذْرٍ
## د عذر له امله د جماعت د پريښودو باب

۴۱۵ {عن نَافِعٍ اَنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَذَّنَ بِالصَّلَاةِ فِي لَيلَة ذَاتَ بَرْدٍ وَ رِيحٍ ثُمَّ قَالَ اَلاَ صَلُّوا فِي الرِّحَالِ ثُمَّ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَأْمُرُ الْمُؤَذِّنَ اِذَا كَانَتْ لَيلَة ذَاتَ بَرْدٍ وَ مَطَرٍ يَقُولُ اَلاَ صَلُّوا فِي الرِّحَالِ رواه الشيخان. (۱)

**ترجمه**: د نافع رحمه الله نه روايت دي چې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه د يو ي سختي يخي او تيز باد والا شپه کې د مانځه د پاره اذان وکړ بيا يې وويل خبردار په خپلو خپلو ځايونو کې مونځ ادا کړئ بيا يې وويل چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم به د سختې يخنۍ او د باران په شپه مؤذن ته فرمائل چې داسې ووايي چې: خبردار په خپلو خپلو ځايونو کې مونځ ادا کړئ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

۴۱۶ {وَ عَنْهُ قَالَ. قَالَ رَسُولُ اللهِ اِذَا وُضِعَ عَشَاءُ اَحَدِكُمْ وَ اُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَاُوا بِالْعَشَاءِ وَلاَ يَعْجَلْ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ وَ كَانَ ابْنُ عُمَرَ يوضَعُ لَه الطَّعَامُ وَ تُقَامُ الصَّلَاةُ فَلاَ يَأْتِيهَا حَتَّى يَفْرُغَ وَ اَنَّه لَيَسْمَعُ قِرَاءَةَ الْاِمَامِ رواه الشيخان. (۲)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما وايي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې کله يو ستاسې نه دوډۍ کېښودل شي او مونځ ودرول شي نو مخکې په دوډۍ شروع وکړئ جلتي مه

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۲ باب الرخصة في المطر والعلة ...الخ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۳ باب الصلوة في الرحال في المطر.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۲ باب اذا حضر الصلوة واقيمت الصلوة، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۸ باب كراهة الصلوة بحضرة الطعام ...الخ.

کوئ تر څو چې د دوديۍ نه فارغ شئ او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته به روټۍ کېښودې شوه او مونځ به ودرولې شو نو ما نځه ته به نه تلو تر څو به د روټۍ نه فارغ شوې نه وُ او هغه به د امام قراءت اوريده. د دې حديث شيخينو کړې دې.

۲۹۷ {وَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَا صَلَاةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا وَهُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ} رواه مسلم.(۱)

**ترجمه**: حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې ما د رسول کريم صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائل يې د طعام په موجودتيا کې چې وږه ديره وي مونځ نه کيږي او نه د تش او دک اودس ماتې د غلبې په وخت کې مونځ کيږي.

۲۹۸ {وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَرْقَمَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَذْهَبَ إِلَى الْخَلَاءِ وَ أُقِيْمَتِ الصَّلَاةُ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ} رواه الاربعة و صححه الترمذي.(۲)

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن ارقم رضي الله عنه ويلي دي چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمائل يې کله چې يو ستاسې بيت الخلاء ته د ورتلو اراده وکړي او مونځ اودرول شوي وي نو اول دې ځان د بيت الخلاء نه فارغ کړي. د دې حديث روايت څلورو محدثينو کړې دې او ترمذي صحيح ګنړلې دې.

۲۹۹ {وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ سَمِعَ النِّدَاءَ فَلَمْ يَأْتِهِ فَلَا صَلَاةَ إِلَّا مِنْ عُذْرٍ} رواه ابن ماجه وابن حبان والدارقطني والحاكم و اسناده صحيح.(۳)

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چې څوک اذان واوري او جماعت ته حاضر نشي نو مونځ يې نه قبليږي مګر د عذر د وجهې نه. د دې حديث روايت ابن ماجه، ابن حبان، دار قطني او حاکم کړې دې او اسناد يې صحيح دې.

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۸ باب كراهة الصلوة بحضرة الطعام ...الخ.

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ص۱۲ باب ايصلي الرجل وهو حاقن، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱ص ۱۳۷ باب العذر في ترک الجماعة، ترمذي ابواب الطهارة ج۱ص ۳۴ باب ما جاء اذا اقيمت الصلوة ووجد احدكم الخلاء ...الخ، ابن ماجة كتاب الطهارة ص ۴۸ باب ما جاء في النهي للحاقن ان يصلي.

(۳) ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۵۸ باب التغليظ في التخلف عن الجماعة، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۳ص ۲۵۳ رقم ۲۰۶۱، مستدرک حاكم كتاب الصلوة ج۱ص ۲۴۵ باب من سمع النداء فلم يجب ...الخ، دار قطني كتاب الصلوة ج۱ص ۴۲۰ باب الحث لجار المسجد على الصلوة فيه ...الخ.

**د کلماتو تشریح :**

**"مدافعة الأخبثين"** : (۱) که د مونځ نه مخکې سخت حاجت ( ورې بولې او غټې بولې) راپیښ شي نو اول دې دهغې نه فراغت حاصل کړي ، نو که ددې دبرداشت په حالت کې مونځ اوکړي نو مونځ به يې مکروه وي .(۲) که په وخت د مونځ حاجت ورته پيښ شو نو که په سکون سره مونځ پوره کولې شي نو صحيح ده ورنه مونځ دې مات کړي او اول دې دحاجت نه فارغه شي ، بيا دې مونځ دسر نه اوکړي .

# بَابُ تَسْوِيَةِ الصُّفُوفِ

## د صفونو د برابرولو باب :

)۵۰۰ {عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَأَقْبَلَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِوَجْهِهِ فَقَالَ أَقِيمُوا صُفُوفَكُمْ وَتَرَاصُّوا فَإِنِّي أَرَاكُمْ مِنْ وَرَاءِ ظَهْرِي رواه البخاري وَفِي رِوَايَةٍ له وَكَانَ أَحَدُنَا يُلْزِقُ مَنْكِبَهُ بِمَنْكِبِ صَاحِبِهِ وَقَدَمَهُ بقدمه .(۱)

**ترجمه** :حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې د مانځه د پاره اقامت وشو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ طرف ته خپل مبارک مخ متوجه کړنو وي فرمائل چې خپل صفونه نيغ کړئ او يو بل ته سره نزدې شئ بې شکه چې زه تاسې د خپلې شانه روسته وينم . د دې حديث روايت بخاري کړي دي او د بخاري په يو بل روايت کې دي چې يو زمونږ نه به خپله اوږه د ملگري د اوږې سره او قدم به يې د ملگري د قدم سره پيوسته کاوه .

)۵۰۱ {وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْسَحُ مَنَاكِبَنَا فِي الصَّلَاةِ يَقُولُ اِسْتَوُوا وَلَا تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ لِيَلِنِي مِنْكُمْ أُولُو الْأَحْلَامِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ قَالَ أَبُو مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَأَنْتُمُ الْيَوْمَ أَشَدُّ اخْتِلَافًا رواه مسلم .(۲)

**ترجمه** :او حضرت ابو مسعود انصاري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مانځه کې څمونږ اوږې مسح کولې او فرمائل به يې چې برابر شئ اختلاف مه کوئ او که نه نو زړونه به مو مختلف شي او ماته دې د ستاسو نه هغه خلک نزدې وي چې پوه ، عاقل او هوښيار وي بيا دې هغه وي چې

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص۱۰۰ باب اقبال الامام على الناس عند تسوية الصفوف .

(۲) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص۱۸۱ باب تسوية الصفوف واقامتها ....الخ .

هغوي ته نزدې وي او بيا دې هغه وي چې هغوي ته نزدې وي حضرت ابو مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې تاسې نن ورځې د اختلاف له حيثيته ډير سخت ياستې . د دې حديث روايت مسلم کړې دې.

۵۰۲ ﴿وَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رُصُّوا صُفُوْفَكُمْ وَ قَارِبُوْا بَيْنَهَا وَ حَاذُوْا بِالْاَعْنَاقِ فَوَ الَّذِيْ نَفْسِيْ بِيَدِهٖ اِنِّيْ لَاَرَى الشَّيْطَانَ يَدْخُلُ مِنْ خِلَلِ الصَّفِّ كَاَنَّهَا الْحَذَفُ رواه ابوداود و صححه ابن حبان .(۱)

**ترجمه**: دانس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي خپل صفونه سره پيوسته او ملاؤ کړې او نزدې يې کړئ او څټونه سره برابر کړئ پس قسم دې په هغه ذات چې ځما روح د هغه په يد بلا کيف کې دې چې بې شکه زه شيطان وينم چې د صف په منځ کې ننوځي ګويا کې دا د ګډې وړوکي بچي دي. د دې حديث روايت ابوداؤد کړې او ابن حبان صحيح ګڼلي دي.

۵۰۳ ﴿وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَقِيْمُوا الصُّفُوْفَ وَ حَاذُوْا بَيْنَ الْمَنَاكِبِ وَ سُدُّوا الْخَلَلَ لِيْنُوْا بِاَيْدِيْ اِخْوَانِكُمْ وَ لَا تَذَرُوْا فُرُجَاتٍ لِلشَّيْطَانِ وَ مَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ وَمَنْ قَطَعَ صَفًّا قَطَعَهُ اللهُ رواه ابوداود و صححه ابن خزيمة والحاكم .(۲)

**ترجمه**: د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي صفونه نيغ کړئ او اوږې برابرې کړئ او خالي ځايونه بند کړئ د خپلو وروڼو د لاسونو سره نرمي وکړئ او د شيطان د پاره خالي ځايونه مه پرېږدئ او څوک چې صف پيوسته کړي الله جل شانه به هغه لره پيوسته کړي او څوک چې صف کټ او پرې کړي الله جل شانه به هغو لره کټ او پرې کړي. د دې حديث روايت ابوداؤد کړې او ابن خزيمه او حاکم صحيح ګڼلې دې.

## په مونځ کې د صف جوړولو اهميت

څرنګه چې مونځ د نورو ټولو عبادتونو په نسبت د انسان د انتهايي خشوع او عاجزئ او د الله جل شانه د پوره او يو مکمل تعظيم والا عبادت دې نو د داسې يو عظيم الشان عبادت د اداء کولو د پاره يو خاص نظم او بهتر ترتيب پکارؤ چې هغه حضرت رسول اکرم صلى الله عليه وسلم امت ته په يو داسې حسين او بهتر شکل سره تعليم ورکړ چې د هغې نه بل داسې بهتر صورت نشي کيدې او د دې

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱صــ ۹۷ باب تسوية الصفوف ، صحيح ابن حبان ج۱صــ ۲۹۹ برقم ۲۱۶۳.

(۲) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱صــ ۹۷ باب تسوية الصفوف ، صحيح ابن خزيمة ج۳ صــ ۲۳ رقم ۱۵۴۹ ، مستدرک حاکم کتاب الصلوٰة ج۱صــ ۲۱۲ من وصل صفا ...الخ .

صورت د تکمیل او تعمیل د پاره حضرت رسول اکرم ﷺ تاکید وفرمایه چې صف نیغ کړي د صف په منځ کې فرجي بندي کړي اول مخکې صف پوره کړئ یو بل ته سره نزدي شي او څټونه سره برابر کړئ دا ټولي خبري رسول اکرم ﷺ دي د پاره وفرمایلي چې د جماعت د مانځه تکمیل پري وشي.

**د صفونو په برابرولو کې مذهبي اختلاف** :د صفونو په برابرولو کې د څلورو مذاهبو ترمنځ اختلاف دي:

(۱) **مذهب د جمهورو** :جمهور علماء وايي چې د صفونو برابرول سنت مؤکد او یا واجب دي د دوي په مذهب باندي که صفونه نیغ او برابر نشي هم مونځ کیږي ځکه چې د صفونو برابرول د مانځه په اقامت او حقیقت کې داخل نه دي.

(۲) مذهب د علامه ابن حزم ظاهري دي :د ده په نزد د صف برابرول فرض دي که څوک صف برابر نه کړي د ده مونځ فاسد او بلکه باطل دي.

(۳) مذهب :د امام احمد رحمه الله دي :د امام احمد رحمه الله په نزد د صف برابرول واجب دي.

(۴) مذهب:د دریو ائمه وُ دي :امام ابو حنیفه رحمه الله ، امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله وايي چې د صفونو برابرول سنت دي.

جمهورو علماؤ د صف د برابرولو دوُجوب په برخه کې ویلي دي چې رسول الله ﷺ اګر چې د صف د برابرولو په برخه کې زیات تاکید فرمایلي لکه چې د دي باب د ټولو احادیثو همدغه مطلب او مرام دي خو ولي هیڅ یو داسي روایت نه دي ثابت شوي چې د صف د نه برابرولو په وجه د مانځه د باطلیدو او یا د مانځه د اعادي حکم پکې شوي وي.

**د صف د برابرولو د فرضیت دلیل** :ابن حزم ظاهري د صف د برابرولو په فرضیت باندي د نعمان بن بشیر رضي الله عنه په روایت باندي استدلال کړي ( **عن النعمان بن بشير قال كان رسول الله ﷺ يسوي صفوفنا فخرج يومًا فرأى رجلا خارجًا صدره عن القوم فقال لتسوُّن صفوفكم او ليخالفنَّ الله بين وجوهكم** )(۱) معنی دا چې د حضرت نعمان بن بشیر رضي الله عنه نه روایت دي ویلي یې دي چې رسول الله ﷺ به څمونږ صفونه برابرول نو یوه ورځ راووانه یو سړي یې ولیده چې سینه یې د قوم یعنې د نورو خلکو نه بهر وُتي وه نو رسول الله ﷺ وفرمایل چې

(۱) ترمذي ج۱ص ۵۳.

خامخا به تاسي خپل صفونه برابروئ او یا به مخالف او متغیر کړي الله جل شانه مخونه ستاسي.

او امام ترمذي رحمه الله دا هم لیکلي دي چې (وقد رُوي عن النبي صلی الله علیه وسلم انه قال من تمام الصلوٰة اقامة الصف) (۱) معنی دا چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم نه روایت شوي دي چې هغه صلی الله علیه وسلم ویلي دي چې د مانځه د پوره کولو او د تکمیلولو د جملي نه د صف برابرول دي.

جمهورو علماؤ د دي نه جواب کړي دي چې د دغه روایتونو نه د صف د برابرولو فرضیت نه ثابتیږي پاتي شو د صف د برابرولو اهتمام د صف برابرول خو زمونږ په نزد باندي هم مسلمه او مهتم بالشان دي. د حضرت نعمان بن بشیر رضي الله عنه په روایت کې د لیخالفن الله بین وجوهکم په الفاظو کې توجیه او معنی د دي دوه معنی ګاني کیدي شي:

(۱) دا چې د دي نه مراد په زړونو کې په کثرت سره د بغض او حسد پیدا کیدل دي.

(۲) دویم دا چې ستاسي شکلونه به بدل کړي شي یعني مسخ به شئ. په دي باره کې یو اعتراض شوي دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په امت کې مسخ نشته نو دلته به د مسخ معنی څه وي د حدیث شارحینو جواب کړي دي چې مسخ په دوه قسمه ده یو کلي مسخه ده او بله جزئي مسخ ده د رسول الله صلی الله علیه وسلم په امت کې کلي مسخ نشته ځکه چې د رسول کریم صلی الله علیه وسلم په دعاء سره معاف شوي ده او جزء ي مسخ شته او ثابته ده لکه چې د امام ترمذي رحمه الله یو روایت دي (عن عمران بن حصین ان رسول الله صلی الله علیه وسلم قال في هذه الامة خسف ومسخ وقذف فقال رجل من المسلمین یا رسول الله ومتی ذلک قال اذا ظهر القیان والمعازف الخ). (۲)

معنی دا چې د حضرت عمران بن حصین رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي چې په دي امت کې په زمکه دوبیدل، د شکلونو بدلیدل یعني مسخ او د کاڼړو وریدل شته یو سړي د مسلمانانو نه وویل چې اي دالله جل شانه رسوله دا به کله وي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمائل چې کله ډماني بنځي او د سرود الات ښکاره شي.

**د صف برابرول د امام ذمه واري ده**: صاحب د عرف الشذي د اقامة الصفوف د باب لاندي لیکلي دي چې تسویة الصفوف واجبة علی الامام کما في در المختار وترکها مکروه تحریمًا. یعني د

---

(۱) ترمذي ج۱ص ۵۳.

(۲) ترمذي ج۲ص ۴۵.

صفونو برابرول په امام باندي واجب او د صفونو د برابرولو پرېښودل مکروه تحریمي دي . او حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه به د صف د برابرولو د پاره ذمه واري اخستي وه او ویل به یې چې برابر شئ او عمر رضي الله عنه (کان یوکل رجلا باقامة الصفوف ولا یکبر حتی یخبر ان الصفوف قد استوت . وکان علي یقول تقدم یا فلان تأخر یا فلان . ) (۱)

یعني: حضرت عمر رضي الله عنه به د صفونو په برابرولو باندي سړي مقرراوه او تر هغي پوري به یې تکبیر نه کاوه تر څو پوري به چې ورته خبر نه وُو کړي شوي چې صفونه برابر شوي دي .

او حضرت علي رضي الله عنه به ویل چې اي فلانیه مخکې شه او اي فلانیه روسته شه او د (۵۰۲) روایت چې د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت شوي په هغي کې د (وقاربوا بینها) الفاظ راغلي دي د هغي مطلب دا دي چې د دوه وُ صفونو تر منځ دومره فاصله نه وي چې بل صف پکې اودریدې شي او د (حاذوا بالاعناق) نه مطلب دا دي چې په لوړه او جوړه ځمکه مه اودریږئ بلکه په هواره ځمکه اودریږئ چې څټونه مو سره برابر شي . (۲)

# بابُ إِتْمَامِ الصَّفِّ الْأَوَّلِ

## د اول صف د پوره کولو باب

۵۰۳ {عن أنس رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ أَتِمُّوا الصَّفَّ الْمُقَدَّمَ ثُمَّ الَّذِي يَلِيه فَمَا كَانَ مِنْ نَقْصٍ فَلْيَكُنْ فِي الصَّفِّ الْمُؤَخَّرِ رواه ابوداود واسناده حسن . (۳)

**ترجمه** :د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول کریم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي چې مخکني صف پوره کړي بیا هغه صف پوره کړئ چې اول صف ته نزدي وي نو څه نقصان چې وي نو په اخرني صف کې دي وي . د دي حدیث روایت ابوداؤد کړي او اسناد یې حسن دي .

(۱) ترمذي ج۱ص ۵۳

(۲) عرف الشذي د اقامة الصفوف باب .

(۳) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۹۸ باب تسوية الصفوف.

# بَابُ مَوْقِفِ الْإِمَامِ وَالْمَأْمُومِ

## د امام او مقتدي داوډريدو په ځاى کې باب

}٥٠٥{ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ جَدَّتَهُ مُلَيْكَةَ دَعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِطَعَامٍ صَنَعَتْهُ فَأَكَلَ مِنْهُ ثُمَّ قَالَ قُومُوا فَلِأُصَلِّيَ لَكُمْ قَالَ أَنَسٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقُمْتُ إِلَى حَصِيرٍ لَنَا قَدِ اسْوَدَّ مِنْ طُولِ مَا لُبِسَ فَنَضَحْتُهُ بِالْمَاءِ فَقَامَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ صَفَفْتُ أَنَا وَالْيَتِيمُ وَرَاءَهُ وَ الْعَجُوزُ مِنْ وَرَائِنَا فَصَلَّى لَنَا رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ انْصَرَفَ , رواه الجماعة الا ابن ماجه .(١)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي چې ځما نيا مليکه چې کوم طعام د رسول الله صلى الله عليه وسلم د خوراک د پاره تيار کړي ؤ هغه ته يې دعوت ورکړ نو هغه يې ؤخوړ بيا يې وفرمائل چې پاځئ چې زه تاسي ته مونځ وکړم حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې زه د يو پوزکي راوړلو ته ورپاځيدم چې هغه د زيات استعمال په وجه تور شوي ؤ نو ما هغه په اوبو اوه مينځه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ؤدريده او ما او يوه يتيم د هغه نه روسته صف جوړ کړ او بوډۍ ښځو ځمونږ نه روسته نو مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم دوه رکعته مونځ وکړ بيا هغه تشريف ويوړ . د دې حديث روايت د ابن ماجه نه په غير د محدثينو يو جماعت کړي .

}٥٠٦{ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَ بِيَدِي فَأَدَارَنِي حَتَّى أَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ ثُمَّ جَاءَ جَبَّارُ بْنُ صَخْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَامَ عَنْ يَسَارِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخَذَ بِأَيْدِينَا جَمِيعًا فَدَفَعَنَا حَتَّى أَقَامَنَا خَلْفَهُ رواه مسلم .(٢)

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه ويلي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم پاځيده نو زه يې چپ طرف ته ؤدريدم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم زه د لاس نه ونيوم نو زه يې پوزه راوړولم تر دې چې ښي طرف ته يې ؤدرولم بيا حضرت جبار بن صخر رضي الله عنه راغي او د رسول الله صلى الله عليه وسلم چپ طرف ته ؤدريده

---

(١) بخاري باب الاذان ج١ص١١٩ باب وضوء الصبيان ومتى يجب عليهم الغسل ...، مسلم كتاب المساجد ج١ص٢٣٤ باب جواز الجماعة في النافلة ، نسائي كتاب المساجد ج١ص١٢٩ باب جواز الجماعة في النافلة، نسائي كتاب المساجد ج١ص١٢٩ باب اذا كانوا ثلاثة وامرأة،ترمذي ابواب الصلوة ج١ص ٥٥ باب ماجاء في الرجل يصلي ومعه رجال ونساء ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ص٩٠ باب اذا كانوا ثلاثة كيف يقومون ، مسند احمد ج٣ص١٤٢.

(٢) مسلم في ،حاديث المتفرقة ج٢ص٢١٧ باب حديث جابر الطويل وقصة ابي اليسر .

نو رسول الله ﷺ مونږ د واړه د لاسونو نه ونيولو راوي ګرځولو تر دي پوري چې د خپل ځان نه يې روسته ؤدرولو . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

}۵۰۷ {عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ لِيَلِيَنِي مِنْكُمْ أُولُو الأَحْلَامِ وَالنُّهَى ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُم ثُمَّ الَّذِينَ يَلُونَهُمْ وَلاَ تَخْتَلِفُوا فَتَخْتَلِفَ قُلُوبُكُمْ وَ إِيَّاكُمْ وَ هَيْشَاتِ الأَسْوَاقِ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** :د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول کريم ﷺ فرمائلي دي چې هغه خلک دي ماته نزدي ؤدريږي چې په تاسو کې د عقل او پوهي والا وي بيا دي وريسي هغه خلک ؤدريږي چې هغو ته نزدي وي بيا دي د دوي پسي هغه خلک ؤدريږي چې دوي ته نزدي وي او تاسو اختلاف مه کوئ که نه نو ستاسو زړونه به مختلف شي او د بازار د شوروشغب نه ځانونه اوساتئ. د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

}۵۰۸ {وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بِتُّ عِنْدَ خَالَتِي مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَقَامَ رَسُولُ اللهِ ﷺ مِنَ اللَّيْلِ فَأَطْلَقَ الْقِرْبَةَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ أَوْكَأَ الْقِرْبَةَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الصَّلاَةِ فَقُمْتُ فَتَوَضَّأْتُ كَمَا تَوَضَّأَ ثُمَّ جِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَأَخَذَنِي بِيَمِينِهِ فَأَدَارَنِي مِنْ وَرَائِهِ فَأَقَامَنِي عَنْ يَمِينِهِ فَصَلَّيْتُ مَعَهُ رواه الجماعة .(۲)

**ترجمه** : حضرت عبدالله ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي ما د خپلي ترور د حضرت ميموني رضي الله عنها کره شپه وکړه نو رسول الله ﷺ د شپي پاځيده د اوبو مشک يې پرانست نو اودس يې وکړ بيا يې په تسمه باندي مشک ؤتاړه بيا مانځه ته اؤدريده نو زه پاځيدم اودس مي وکړ څنګه چې رسول الله ﷺ اودس کړي ؤ نو بيا راغلم د هغه چپ طرف ته ؤدريدم نو هغه زه په خپل مبارک ښي لاس ونيوم او روسته طرف ته يې راواړولم او په ښي طرف کې يې ؤدرولم نو د هغه سره مي مونځ وکړ . د دي حديث روايت جماعت کړي دي.

---

(۱) مسلم کتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۱ باب تسوية الصفوف واقامتها...الخ .

(۲) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۹۰ باب الرجلين يؤم احدهما صاحبه ...مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱ص۲۶۱ باب صلوة النبي ﷺ ودعائه بالليل،بخاري کتاب الاذان ج۱ص۹۷ باب اذا لم ينو الامام ان يؤم...،ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۵۵ باب ماجاء في الرجل يصلي ومعه رجل،نسائي کتاب الامامة والجماعة ج۱ص۱۳۵ باب الجماعة اذا کانوا اثنين،ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها ص۹۸ باب ماجاء في کم يصلي بالليل،مسند احمد ج۱ص ۲۱۵.

# ﴿بَابُ قِيَامِ الْإِمَامِ بَيْنَ الْإِثْنَيْنِ﴾

## د دوؤ كسانو تر منځ د امام دؤدريدو باب

﴿۵۰۹﴾ عَنْ عَلْقَمَةَ الْأَسْوَدِ أَنَّهُمَا دَخَلَا عَلَى عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ أَصَلَّى مَنْ خَلْفَكُمْ قَالَا نَعَمْ فَقَامَ بَيْنَهُمَا وَ جَعَلَ أَحَدَهُمَا عَنْ يَمِينِهِ وَ الْآخَرُ عَنْ شِمَالِهِ ثُمَّ رَكَعْنَا فَوَضَعْنَا أَيْدِيَنَا عَلَى رُكَبِنَا فَضَرَبَ أَيْدِيَنَا ثُمَّ طَبَّقَ بَيْنَ يَدَيْهِ ثُمَّ جَعَلَهُمَا بَيْنَ فَخِذَيْهِ فَلَمَّا صَلَّى قَالَ هٰكَذَا فَعَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : د علقمه نو اسود نه روايت دي چې دوي دواړه حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه كره ورغلل نو عبدالله رضي الله عنه وويل چې آيا ستاسي نه روسته خلكو مونځ كړي هغوي ووېل چې هو نو عبدالله رضي الله عنه د دوي دواړو تر منځ ؤدريده يوئي خپل ښي طرف ته او بل ئي خپل چپ طرف ته ؤدرول بيا مونږ ركوع وكړه او لاسونه مو په زنګنونو كېښودل نو هغه زمونږ لاسونه ووهل بيا ئي دواړه لاسونه سره يو ځاي كړ او د دواړو ورنونو تر منځ كېښودل نو كله ئي چې مونځ وكړ وي ويل چې همدغسي رسول الله كړي ؤ . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

﴿۵۱۰﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ الْأَسْوَدِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ اسْتَأْذَنَ عَلْقَمَةُ وَالْأَسْوَدُ عَلَى عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ قَدْ كُنَّا أَطَلْنَا الْقُعُودَ عَلَى بَابِهِ فَخَرَجَتِ الْجَارِيَةُ فَاسْتَأْذَنَتْ لَهُمَا فَأَذِنَ ثُمَّ قَامَ فَصَلَّى بَيْنِي وَ بَيْنَهُ ثُمَّ قَالَ هٰكَذَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْعَلُ رواه ابوداود و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : د عبدالرحمن بن الاسود نه روايت دي هغه د خپل پلار نه روايت كړي هغه ويلي دي چې علقمه او اسود دواړو د عبدالله رضي الله عنه نه اجازت وغوښته او بي شكه چې د هغه په دروازه اوږده كيناستو نو يوه وينځه راؤوتله هغي دواړو ته د اجازي خبر وركړ نو اذان ئي وكړ بيا ؤدريد نو ځما او د هغه تر منځ ئي مونځ وكړ بيا ئي ووېل همدغسي ما رسول الله صلى الله عليه وسلم ليدلي چې دغسي كار ئي كاوه . د دي حديث روايت ابوداؤد كړي او اسناد ئي حسن دي .

**مسئلة الباب** : مقتدي كه يو وي نو دامام ښي طرفته دې اودرېږي ، او كه دوه يا ددېنه زيات وي نو دامام نه وروسته دې صف بندي اوكړي لكه څنګه چې د مخكې باب په حديثونو كې بيان شو .

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج ۱صـــ ۲۰۲ باب الندب الى وضع الايدي على الركب في الركوع . . . الخ .
(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۹۰ باب اذا كانوا ثلاثة كيف يقومون .

تطبيق بين الأحاديث : دتېرشوي دباب دحديثونونه دا معلومېږي چې دوه يا ددېنه زيات مقتديان وي هغه دې دامام نه شاته صف بندي اوکړي ليکن دباب دابن مسعود رضي الله عنه حديث مطابق دوه مقتديان هم دامام سره په يو صف کې اودرېدلې شي نو په احاديثو کې تعارض لازم راغې.
ددې حل دادې چې دعموم په درجه کې ددوو مقتديانو دامام سره اودرېدل منسوخ شوي حديث دابن مسعود رضي الله عنه خو په حالت دعذر او په تنګئ باندې محمول دې چې کله ځاي تنګ وي.

# ﴿ بَابُ مَنْ اَحَقُّ بِالْاِمَامَةِ ﴾

## باب دې په بيان ددې خبره کې چې دامامت زيات حقدار څوک دي

﴿۵۱۱﴾ عَنْ اَبِي مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَؤُمُّ الْقَوْمَ اَقْرَأُهُمْ لِكِتَابِ اللهِ تَعَالٰى فَاِنْ كَانُوْا فِي الْقِرَاءَةِ سَوَاءً فَاَعْلَمُهُمْ بِالسُّنَّةِ فَاِنْ كَانُوْا فِي السُّنَّةِ سَوَاءً فَاَقْدَمُهُمْ هِجْرَةً فَاِنْ كَانُوْا فِي الْهِجْرَةِ سَوَاءً فَاَقْدَمُهُمْ سِنًّا وَلَا يَؤُمَّنَّ الرَّجُلُ فِي سُلْطَانِهٖ وَلَا يَقْعُدُ فِي بَيْتِهٖ عَلٰى تَكْرِمَتِهٖ اِلَّا بِاِذْنِهٖ

رواه مسلم (۱).

**ترجمه** : حضرت ابو مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د الله جل شانه د کتاب ښه قاري دي قوم ته امامت وکړي که په قرأت کې سره برابر وي نو بيا په دوي کې چې په سنتو ښه پوه وي که دوي د سنتو په علم کې سره برابر وي نو بيا چې څوک په هجرت کې مقدم وي او که په هجرت کې سره برابر وي نو بيا مشر د امامت حق دار دي او سړي دې د چا په سلطنت (په ځاي او محل کې امامت نه کوي او د ده په کور کې دې د ده د عزت په ځاي باندې نه کيني مګر د ده په اذن سره د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۵۱۲﴾ وَ عَنْ اَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِي رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم اِذَا كَانُوْا ثَلَاثَةً فَلْيَؤُمَّهُمْ اَحَدُهُمْ وَاَحَقُّهُمْ بِالْاِمَامَةِ اَقْرَأُهُمْ رواه احمد و مسلم والنسائي. (۲)

**ترجمه** : حضرت ابو سعيد رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې دوي درې کسان وي نو يوذ هغو نه دې دوي ته امامت وکړي او په امامت سره ښه حق دار د دوي ښه قاري

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱صـــ ۲۳۶ باب من احق بالامامة.

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱صـــ ۲۳۶ باب من احق بالامامة، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱صـــ ۱۲۶ باب اجتماع القوم في موضع هم فيه، مسند احمد ج۳ صـــ ۲۴.

د دوي دي . د دي حديث روايت احمد ، مسلم او نسائي کړي دي.

**دمسئلي تشريح :**

که په يو جومات کې امام متعين وي يا دچا په يو ځاي کې جماعت کيږي نو دټولو اتفاق دی چې هغه متعين امام يا کور والا (خو په شرط ددې چې دامامت اهل وي) دامامت کولو حقدار دی، او که په يو جومات کې يو متعين امام موجود نه وي او په حاضرينو کې ډير خلک دامامت قابله وي نو په دې کې بيا اختلاف دی چې کوم يو زيات حقدار دی ؟

(۱) امام احمد رَحِمَهُ اللهُ، شافعي رَحِمَهُ اللهُ (دراجح قول مطابق ) او دامام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد اقرأ (ډير ښه قرآن لوستونکی) زيات حقدار دی .(۲) جمهور علماء ، امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ ، مالک رَحِمَهُ اللهُ او محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد اعلم بالسنة زيات حقدار دی .

**دامام احمد و شافعي و ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ دليل :**

۱... حديث دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ "**يَؤُمُّ الْقَوْمَ أَقْرَأُهُمْ لِكِتَابِ الله**....." الخ .

۲... حديث دابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ "**أَحَقُّهُمْ بِالْإِمَامَةِ أَقْرَأُهُمْ**" .

**د جمهورو دليل :** دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پخپل مرض وفات کې حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لره امام مقرر ول حالانکه هغه وخت په خلکو کې أبي بن کعب هم موجود وو دکوم متعلق چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد فرمايلو : "**أقرأهم أُبي بن كعب**" ليکن دصديق اکبر انتخاب يې ځکه او فرمايلو چې هغه أعلم وأفقه وو .

**فريق اول ته جواب :** ۱. د "اقرأ" امامت لره په ابتدا کې ترجيح ورکړې شوې وه ترڅو چې خلک زيات تر زيات قرآن مجيد ياد کړي او ځان پرې پوهه کړي بيا چې کله مقصود حاصل شو نو اوس دترجيح والا خبره نشته لهذا په مرض وفات کې دآخري عمل په طور باندې أعلم وأفقه لره يې مخکې کړو .۲. په حديث کې "**أقرأ**" نه هم أعلم مراد دی ځکه چې په هغه وخت کې أقرأ دټولو نه زيات علم درلودلو .

# ﴿بابُ إمَامَةِ النِّسَاءِ﴾

## د ښځو د امامت باب

﴿۵۱۳﴾ عَنْ أُمِّ وَرَقَةَ الْأَنْصَارِيَةِ رضي الله عنها أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم كَانَ يَقُولُ انْطَلِقُوا بِنَا إِلَى الشَّهِيدَةِ فَنَزُورُهَا وَ أَمَرَ أَنْ يُؤَذَّنَ لَهَا وَ يُقَامَ وَ تَؤُمَّ أَهْلَ دَارِهَا فِي الْفَرَائِضِ رواه الحاكم و اسناده حسن واخرجه ابوداود ولم يذكر في الفرائض. [1]

**ترجمه** : د حضرت ام ورقة الانصاريه رضي الله عنها نه روايت دي چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم به فرمايل چې موږ شهيدې ته بوځئ چې موږ د هغې ملاقات وکړو او رسول الله صلى الله عليه وسلم هغې ته د اذان او اقامت اجازت ورکړې وُ او هغې خپل خاندان ته په فرائضو کې امامت کاوه . د دې حديث روايت حاکم کړې دې او اسناد ئې حسن دې او دا حديث ابوداؤد خارج کړې دې او د في الفرائض الفاظ ئې نه دې ذکر کړې.

﴿۵۱۴﴾ وَعَنْ رَيْطَةَ الْحَنَفِيَةِ أَنَّ عَائِشَةَ رضي الله عنها أَمَّتْهُنَّ وَ قَامَتْ بَيْنَهُنَّ فِي صَلَاةٍ مَكْتُوبَةٍ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح. [2]

**ترجمه**: د ريطه حنفيه نه روايت دې چې عائشې رضي الله عنها ښځو ته مونځ وکړو او په فرض مانځه کې د ښځو په منځ کې وُدريدله . د دې حديث روايت عبدالرزاق کړې دې او اسناد ئې صحيح دې.

﴿۵۱۵﴾ وَعَنْ حُجَيْرَةَ بِنْتِ حُصَيْنٍ قَالَتْ أَمَّتْنَا أُمُّ سَلَمَةَ رضي الله عنها فِي صَلَاةِ الْعَصْرِ فَقَامَتْ بَيْنَنَا رواه عبدالرزاق و اسناده صحيح. [3]

**ترجمه** : او حُجَيره بنت حصين ويلي دي چې موږ ته ام سلمى رضي الله عنها د مازيګر په مانځه کې امامت وکړ نو زموږ په منځ کې وُدريده . د دې حديث روايت عبدالرزاق کړې دې او اسناد ئې صحيح دې.

د خالصو ښځو په جماعت سره په مونځ کولو کې چې نارينه ورسره نه وي اختلاف دې.

---

(۱) مستدرك حاكم كتاب الصلوة ج۱ص۲۰۳ باب امامة المرأة النساء في الفرائض ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۸۷ باب امامة النساء .

(۲) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۳ صـــ ۱۴۱ باب المرأة تؤم النساء برقم ۵۰۸۶.

(۳) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۴۰ باب المرأة تؤم النساء رقم ۵۰۸۲.

## دښځو ځانله (چې نارينه ورسره نه وي) په جماعت سره دمونځ کولو حکم

(۱) د خالصو ښځو مونځ په جماعت برابره خبره ده چې فرض وي او که نفل وي، د امام مالک رَحِمَهُ الله او د ځينو احنافو په نزد مکروه تحريمي دي لکه درمختار او د احنافو د نورو متونو صاحبانو په تحريمي کراهت تصريح کړي.
(۲) د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نزد باندي محض د ښځو مونځ په جماعت سره مستحب دي.
(۳) محقق ابن الهمام رَحِمَهُ الله د عيني صاحب محض د ښځو مونځ په جماعت سره مکروه تنزيهي او خلاف اولی ګڼرلي دي.

**حنفيه رَحِمَهُ الله او د مالکيو رَحِمَهُ الله استدلال:**

دښځو ځانله په جماعت کې دا کراهت لازميږي که ددوي امام مخې ته ولاړ وي نو دکشف مراة زياتوالی به لازم راشي او که دصف په مينځ کې ولاړ وي نو دامام دوړاندې نه اودريدلو کراهت به لازم راشي.

**دباب داحاديثو تاويل:**

۱... دښځو دجماعت والا حديثونه منسوخ دي او ناسخ هغه مشهور حديث دې دکوم الفاظ چې دادي: "**صلاة المرأة في بيتها أفضل من صلاتها في حجرتها، وصلاتها في مخدعها أفضل من صلاتها في بيتها**" ظاهره خبره ده چې مخدع دير مختصر ځاي وي او جماعت لپاره پراخه ځاي پکار دي. (الدر المنصور: ۱۱۷/۲)
۲... که ښځې دکور نه بهر ته ووځي او جماعت اوکړي بيا خو مکروه دې او که په کور کې دننه جماعت جائز ليکن خلاف اولی دې.

## ﴿بَابُ إِمَامَةِ الْأَعْمٰى﴾

### دړانده د امامت باب

﴿۵۱۶﴾ عَنْ مَحْمُوْدِ بْنِ الرَّبِيْعِ أَنَّ عِتْبَانَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَؤُمُّ قَوْمَهُ وَهُوَ أَعْمٰى وَأَنَّهُ قَالَ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّهَا تَكُوْنُ الظُّلْمَةُ وَالسَّيْلُ وَإِنَّا رَجُلٌ ضَرِيْرُ الْبَصَرِ فَصَلِّ يَا رَسُوْلَ اللهِ فِيْ بَيْتِيْ مَكَانًا أَتَّخِذُهُ مُصَلًّى فَجَاءَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَيْنَ تُحِبُّ أَنْ أُصَلِّيَ فَأَشَارَ إِلٰى مَكَانٍ فِي الْبَيْتِ فَصَلّٰى فِيْهِ

رَسُولُ اللہ رواہ البخاري. [1]

**ترجمه** : د محمود ابن ربیع نه روایت دي چې عتبان ابن مالک رضي الله عنه د خپل قوم خلکو ته امامت کاوه او حال دا چې هغه ړوند و حضرت عتبان رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وویل چې ای د الله جل شانه رسوله تیاره وه او په لاره کې اوبه وي او زه ړوند یم نو ای د الله جل شانه رسوله ځما د کور په یوه ځای کې مونځ وکړه چې هغه زه د خپل مانځه د پاره مقرر کړم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم راغي پس وې ویل چې کوم ځای دې خوښ دي چې مونځ پکې وکړم نو په کور کې ئې یو ځای ته اشاره وکړه نو په هغه ځای کې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ وکړ . د دې حدیث روایت بخاري کړي دي .

**﴿۵۱۷﴾** وَعَنْ اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَخْلَفَ ابْنَ اُمِّ مَكْتُومٍ يَؤُمُّ النَّاسَ وَهُوَ اَعْمٰى رواہ ابوداود و اسنادہ حسن . [2]

**ترجمه** : د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت دي چې بې شکه نبي کریم صلى الله عليه وسلم ابن ام مکتوم رضي الله عنه د خلکو د مانځه د پاره قائم مقام او خلیفه مقرر کړ او حال دا چې هغه ړوند و . د دې حدیث روایت ابو دؤاد کړي او اسناد ئې حسن دي .

**﴿۵۱۸﴾** وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِسْتَخْلَفَ ابْنَ اُمِّ مَكْتُومٍ على المدينة يصلي بِالنَّاسِ رواہ البیهقي في المعرفة و اسنادہ حسن [3] .

**ترجمه** : او د حضرت عائشې رضي الله عنها نه روایت دي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم حضرت ابن ام مکتوم په مدینه منوره کې د خلکو د مانځه د پاره نائب مقرر کړ . د دې حدیث روایت په معرفت کې بیهقي کړي دي او اسناد ئې حسن دي .

**مسئلة الباب** : نابینا که د نجاست نه پرهیز کوي او زان تري ساتي او اودس په طهارت کامله طریقې سره کوي او د مونځ واجباتو او د نورو مسائلو پوره خیال ساتي نو دده امامت بغیر د شبهې نه جائز دې بلکې امام غزالي رحمه الله د اعمی (ړوند) امامت افضل ګرزولې دې ځکه چې په ړوند کې خشوع او خضوع زیاته وي .

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۹۲ باب الرخصة في المطر والعلة ان يصلي في رحله .

(۲) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱ص ۸۸ باب امامة الاعمیٰ .

(۳) معرفة السنن والآثار کتاب الصلوٰة ج۴ص ۱۶۲ رقم الحدیث ۵۷۶۸ ، صحیح ابن حبان ج۴ص ۲۸۷ رقم ۲۱۳۱ وایضًا سنن الکبریٰ للبیهقي کتاب الصلوٰة ج۳ص ۸۸ باب امامة الاعمیٰ عن انس رضي الله عنه .

# ﴿بابُ إِمَامَةِ الْعَبْدِ﴾
## د مريځ د امامت باب

﴿۵۱۹﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَمَّا قَدِمَ الْمُهَاجِرُونَ الْأَوَّلُونَ الْعَصْبَةَ مَوْضِعًا بِقُبَاءٍ قَبْلَ مَقْدَمِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَؤُمُّهُمْ سَالِمٌ مَوْلَى أَبِي حُذَيْفَةَ وَكَانَ أَكْثَرَهُمْ قُرْآنًا رواه البخاري.

**تخريج**: بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ۹۶ باب امامة العبد والمولى.

**ترجمه**: حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي كله چې اولني مهاجرين د رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت نه مخکې عصبه نومي ځاي ته چې د قباء سره د ځاي نوم دي راغله دوي ته سالم د ابي حذيفه رضي الله عنه مولى امامت کاوه او سالم په هغو کې قرآن زيات ويلي وُ د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۵۲۰﴾ وَ عَنْ أَبِي مُلَيْكَةَ أَنَّهُمْ كَانُوا يَأْتُونَ عَائِشَةَ أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ بِأَعْلَى الْوَادِي هُوَ وَ عُبَيْدُ بْنُ عُمَيْرٍ وَالْمِسْوَرُ بْنُ مَخْرَمَةَ وَنَاسٌ كَثِيرٌ فَيَؤُمُّهُمْ أَبُو عَمْرٍو مَوْلَى عَائِشَةَ وَ أَبُو عَمْرٍو غُلَامُهَا حِينَئِذٍ لَمْ يُعْتَقْ قَالَ وَ كَانَ إِمَامَ بَنِي مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي بَكْرٍ وَ عُرْوَةَ رواه الشافعي في مسنده والبيهقي في معرفة السنن والآثار واسناده حسن.

**تخريج**: مسند شافعي باب السبع في الجماعة واحكام الامامة ج۱ صـ۱۰۶ رقم ۳۱۴. معرفة السنن والآثار كتاب الصلوٰة ج۴ صـ۱۶۳ رقم الحديث ۵۷۶۹-۷۰. سنن الكبرىٰ للبيهقي كتاب الصلوٰة ج۳ صـ۸۸ باب امامة العبيد.

**ترجمه**: او د ابن ابي مليکه نه روايت دي چې هغو د ام المؤمنين حضرت عائشې رضي الله عنها په خدمت کې د کلي په برنۍ برخه کې حاضر شو او هغه او عبيد بن عمير او مسعود بن مخرمه او نور دير کسانو ته د حضرت عائشې رضي الله عنها مولى او ازاد کرده شده شو ابوعمرو امامت کاو چې ابوعمرو په دغه وخت کې د حضرت عائشې غلام وُ او په دغه وخت کې نه ر ازاد شوي ابن ابي مليکه ويلي دي چې هغه د محمد بن ابي بکر او عروه امام وُ. د دي حديث روايت امام شافعي رحمه الله په خپل مسند کې کړي دي او بيهقي په معرفة السنن والاثار کې کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

**مسئلة الباب**: د عبد او مرئي د امامت په باره کې امام نيموي رحمه الله په خپل کتاب اثار السنن کې دوه روايتونه ذکر کړي دي چې د دي باب اول (۵۱۹) حديث د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت شوي دي چې په دي حديث کې د ابي حذيفه رضي الله عنه د مولى سالم رحمه الله د امامت واقعه

بيان شوي ده چې په دغه وخت کې دا غلام او مرئي ؤ او دغسې . د دې باب دويم (۵۲۰) حديث دې چې هغه د ابن مليکه نه روايت شوي دې چې په دې حديث کې د حضرت عائشې رضي الله عنها د مولي او ازاد شده ابوعمرو د امامت واقعه بيان شوي چې ابوعمرو د خپلې غلامۍ په حالت کې عبيد بن عمر . المسود ابن مخرمه او نورو ډيرو کسانو ته امامت کړي دې . او فقهاؤ د غلام او مرئي اګر چې ازاد شوي هم وي د دې وجهې نه مکروه تنزيهي ګڼړلي دې چې غلامان اکثره د خپل مولی په خدمت کې مشغول وي او دوي ته د مانځه په احکامو د علم حاصلولو فرصت نه وي او د جاهلانو مرئيونو مثال د باندچيانو او اعرابيانو په شان دې چې د دوي پسې د جهالت د وجهې نه مونځ کول مکروه دي.

## ﴿ بَابُ مَا جَاءَ فِي إِمَامَةِ الْجَالِسِ ﴾

**باب دې په بيان د هغه روايتونو کې کوم چې د ناست کس د امامت په برخه کې راغلي دي**

**(۵۲۱)** عَنْ أَنَسِ بنِ مَالِكٍ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم رَكِبَ فَرَسًا فَصُرِعَ عَنه فَجُحِشَ شِقُّه الأَيمَنُ فَصَلَّى صَلَاةً مِنَ الصَّلَوَاتِ وَهوَ قَاعِدٌ فَصَلَّينَا وَرَاءَه قُعُودًا فَلَمَّا انصَرَفَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الإِمَامُ لِيُؤتَمَّ بِه فَإِذَا صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا فَإِذَا رَكَعَ فَارْكَعُوا وَإِذَا رَفَعَ فَارْفَعُوا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه فَقُولُوا رَبَّنَا وَلَكَ الحَمدُ وَ إِذَا صَلَّى قَائِمًا فَصَلُّوا قِيَامًا وَ إِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا أَجمَعُونَ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دې چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم په اس باندې سور شوي ؤ نو تري راپريوت پس ښي طرف ئې زخمي شو نو يو مونځ ئې په ناسته وکړ نو مونږ هم ورپسې په ناسته مونځ وکړ نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مانځه نه فارغ شو وې فرمايل بې شکه امام د دې د پاره ټاکل شوي دې چې اقتداء ورپسې وکړې شي نو کله چې امام په ولاړه مونځ کوي نو تاسې هم په ولاړه مونځ کوئ او کله چې امام سمع الله لمن حمده وائي نو تاسو ربنا ولك الحمد وائې او کله چې امام په ولاړه مونځ کوي نو تاسې هم په ولاړه مونځ کوئ او کله چې امام په ناسته مونځ کوي نو تاسو هم ټول په ناسته مونځ کوئ . د دې حديث روايت شيخينو کړي دې.

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۶ باب انما جعل الامام ليؤتم به ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۶ باب ائتمام المأموم بالامام .

﴿٥٢٢﴾ وَعَن عَائِشَةَ أُمِّ المُؤمِنِينَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا إِنَّهَا قَالَت صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ شَاكٍ فَصَلَّى جَالِسًا وَصَلَّى وَرَاءَهُ قَومٌ قِيَامًا فَأَشَارَ إِلَيهِم أَن اجلِسُوا فَلَمَّا انصَرَفَ قَالَ إِنَّمَا جُعِلَ الإِمَامُ لِيُؤتَمَّ بِهِ فَإِذَا رَكَعَ فَاركَعُوا وَإِذَا رَفَعَ فَارفَعُوا وَإِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَهُ فَقُولُوا رَبَّنَا وَلَكَ الحَمدُ وَإِذَا صَلَّى جَالِسًا فَصَلُّوا جُلُوسًا رواه الشيخان. [1]

**ترجمه**: او ام المؤمنين حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د بيمارۍ او مريضتيا په حالت كې مونځ كاوه نو په ناسته ئي مونځ وكړ او قوم وروسي په ولاړه مونځ وكړ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغوی ته اشاره وكړه چې كينئ نو كله چې د مانځه نه فارغ شو وي فرمايل چې بې شكه امام د دې د پاره ټاكلى شوى دى چې د ده پسې اقتداء وكړې شي نو كله چې امام ركوع كوي نو تاسو هم ركوع كوئ او كله چې د ركوع نه سر اوچتوي نو تاسو هم د ركوع نه سر اوچت كړئ او كله چې امام سمع الله لمن حمده وائي نو تاسو ربنا ولك الحمد ووائي او كله چې امام په ناسته مونځ كوي نو تاسو هم په ناسته مونځ كوئ . د دې حديث روايت شيخينو كړى دى.

﴿٥٢٣﴾ وَعَن عُبَيدِ اللهِ بنِ عَبدِ اللهِ بنِ عُتبَةَ قَالَ دَخَلتُ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلتُ أَلَا تُحَدِّثِينِي عَن مَرَضِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَت بَلَى ثَقُلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ فَقُلنَا لَا يَا رَسُولَ اللهِ وَهُم يَنتَظِرُونَكَ قَالَ ضَعُوا لِي مَاءً فِي المِخضَبِ قَالَت فَفَعَلنَا فَاغتَسَلَ فَذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغمِيَ عَلَيهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلنَا لَا هُم يَنتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ ضَعُوا لِي مَاءً فِي المِخضَبِ قَالَت فَقَعَدَ فَاغتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغمِيَ عَلَيهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ قُلنَا لَا هُم يَنتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ فَقَالَ ضَعُوا لِي مَاءً فِي المِخضَبِ فَقَعَدَ فَاغتَسَلَ ثُمَّ ذَهَبَ لِيَنُوءَ فَأُغمِيَ عَلَيهِ ثُمَّ أَفَاقَ فَقَالَ أَصَلَّى النَّاسُ فَقُلنَا لَا هُم يَنتَظِرُونَكَ يَا رَسُولَ اللهِ وَالنَّاسُ عُكُوفٌ فِي المَسجِدِ يَنتَظِرُونَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لِصَلَاةِ العِشَاءِ الآخِرَةِ فَأَرسَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِلَى أَبِي بَكرٍ بِأَن يُصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَأَتَاهُ الرَّسُولُ فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَأمُرُكَ أَن تُصَلِّيَ بِالنَّاسِ فَقَالَ أَبُو بَكرٍ وَكَانَ رَجُلًا رَقِيقًا يَا عُمَرُ صَلِّ بِالنَّاسِ فَقَالَ عُمَرُ أَنتَ أَحَقُّ بِذٰلِكَ فَصَلَّى أَبُو بَكرٍ تِلكَ الأَيَّامَ ثُمَّ أَنَّ النَّبِيَّ

---

(١) بخاري كتاب الاذان ج١ صـ ٩٥ باب انما جعل الامام ليؤتم به ، مسلم كتاب الصلوة ج١ صـ ١٧٧ باب ائتمام المأموم بالامام .

صلی الله علیه وسلم وَجَدَ مِنْ نَفْسِه خِفَّةً فَخَرَجَ بَيْنَ رَجُلَيْنِ أَحَدُهُمَا الْعَبَّاسُ لِصَلَاةِ الظُّهْرِ وَ أَبُوْبَكْرٍ يُصَلِّي بِالنَّاسِ فَلَمَّا رَآهُ أَبُوْبَكْرٍ ذَهَبَ لِيَتَأَخَّرَ فَأَوْمَأَ إِلَيْهِ النَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم بِأَنْ لَا يَتَأَخَّرَ قَالَ أَجْلِسَانِي إِلَى جَنْبِه فَاَجْلَسَاهُ إِلَى جَنْبِ أَبِي بَكْرٍ قَالَ فَجَعَلَ أَبُوْبَكْرٍ يُصَلِّي وَ هُوَ قَائِمٌ بِصَلَاةِ النَّبِيِّ صلی الله علیه وسلم وَالنَّاسُ بِصَلَاةِ أَبِي بَكْرٍ وَالنَّبِيُّ صلی الله علیه وسلم قَاعِدٌ قَالَ عُبَيْدُ اللهِ فَدَخَلْتُ عَلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ فَقُلْتُ لَه أَلَا أَعْرِضُ عَلَيْكَ مَا حَدَّثَتْنِي عَائِشَةُ عَنْ مَرَضِ رَسُوْلِ اللهِ صلی الله علیه وسلم قَالَ هَاتِ فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَدِيْثَهَا فَمَا أَنْكَرَ مِنْهُ شَيْئًا غَيْرَ أَنَّهُ قَالَ أَسَمَّتْ لَكَ الرَّجُلَ الَّذِي كَانَ مَعَ الْعَبَّاسِ قُلْتُ لَا قَالَ هُوَ عَلِيٌّ رواه الشيخان . [1]

**ترجمه** : او د عبيد الله بن عبدالله بن عتبه ويلي دي چې زه د حضرت عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر شوم نو عرض وکړ چې آيا ته ماته د حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د مرض فوت په باره کې څه بيان نه کوې حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل چې هو ولې نه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم بيماري سخته شوه وي فرمايل آيا خلکو مونځ کړي مونږ وويل چې نه اي د الله جل شانه رسوله صلی الله علیه وسلم او هغو ستا انتظار کوي وي فرمايل چې ماته په لوټه کې اوبه واچوئ حضرت عائشې رضي الله عنها وفرمايل چې مونږ ورته په لوټه کې اوبه واچولې نو هغه غسل وکړ غوښتل ئې چې په سختئ سره پاڅيږي چې بې هوشي پرې راغله بيا راپيدار شو نو وي فرمايل چې آيا خلکو مونځ کړي مونږ وويل چې نه ستاسو انتظار کوي اي د الله جل شانه رسوله وي فرمايل چې ماته په کوزه کې اوبه واچوئ حضرت عائشې فرمايلي دي نو کيناست غسل ئې وکړ بيا په سختئ سره پاڅيده نو بې هوشي پرې راغله بيا راپيدار شو نو وي فرمايل چې ماته په لوټه کې اوبه واچوئ نو کيناست او غسل ئې وکړ غوښتل ئې چې پاڅيږي نو بې هوشي پرې راغله بيا بيدار شو نو وي فرمايل چې آيا خلکو مونځ کړي مونږ وويل چې نه خلک ستاسو انتظار کوي اي د الله جل جلاله رسوله خلک په مسجد کې ناست وُ د ماسختن د مانځه د پاره ئې د رسول الله صلی الله علیه وسلم انتظار کاوه . بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم ابوبکر صديق رضي الله عنه ته پيغام وليږه چې خلکو ته مونځ وکړي ابوبکر صديق رضي الله عنه ته د رسول الله صلی الله علیه وسلم قاصد ورغي او ورته وي ويل چې بې شکه رسول الله صلی الله علیه وسلم تاته امر کړي دي چې خلکو ته مونځ وکړه نو ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل او هغه نرم دله سړي وُ چې

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صــ ۹۵ باب انما جعل الامام ليؤتم به ، مسلم كتاب الصلوة ج۱صــ ۱۷۷ باب استخلاف الامام اذا عرض له عذرا . . . الخ .

اي عمره خلکو ته مونځ وکړه نو حضرت عمر رضي الله عنه هغه ته وويل چې ته د دي زيات حقدار ئې ابوبکر صديق رضي الله عنه خلکو ته په دغه ورځو کې مونځ وکړ بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خپل مبارک نفس او ځان کې لږ شه صحت او روغتيا ؤمندله نو د دوه ؤ کسانو تر منځ ئې د ماسپښين مانځه ته تشريف راوړ او يو په دوني کې ابن عباس رضي الله عنه ؤ او ابوبکر صديق رضي الله عنه خلکو ته مونځ کاوه ابوبکر صديق رضي الله عنه رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وليده نو روسته شو نو هغه ته نبي کريم صلى الله عليه وسلم اشاره وکړه چې مه روسته کيږه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ما د هغه: خوا سره کينوئ نو رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ئې د ابوبکر صديق رضي الله عنه خوا ته کيناوه راوي ويلي دي چې ابوبکر صديق رضي الله عنه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په اقتداء کې مونځ شروع کړ په داسي حال کې چې ابوبکر صديق رضي الله عنه ولاړ ؤ او خلکو د ابوبکر صديق رضي الله عنه په اقتداء کې مونځ شروع کړ خو ولي نبي کريم صلى الله عليه وسلم ناست ؤ عبيدالله وائي چې عبدالله بن عباس رضي الله عنه ته ورغلم نو ما هغه ته وويل چې آيا پيش نه کړم هغه حديث چې ماته حضرت عائشي رضي الله عنها د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بيمارئ په باره کې بيان کړي دي هغه وويل چې راوړه نو ماهغه ته د حضرت عائشي رضي الله عنها حديث پيش کړ نو ابن عباس رضي الله عنه د هيڅ يو شي نه انکار نه دي کړي غير د دي خبري نه چې ابن عباس رضي الله عنه وويل چې آيا ام المؤمنين تاته: هغه کس نوم واخست کوم چې د ابن عباس سره ؤ عبيدالله وائي چې ما ورته وويل چې نه عبدالله بن عباس رضي الله عنه وويل چې هغه حضرت علي رضي الله عنه ؤ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

## چې امام ناست وي نو مقتدي دې څه اوکړي ؟

(۱) دامام مالک رحمه الله په نزد په ناسته مونځ کول بالکل صحيح نه دي که قائما مونځ کونکې ملاو نه شي نو غير معذور دې خپل خپل مونځ دې اوکړي.

(۲) د امام احمد رحمه الله په نزد که دابتدا نه په ناسته مونځ اوکړي نو مقتدي دې هم کيني او که په منځ دمونځ کې امام کيني نو مقتدي باندې ناسته لازم نه ده.

(۳) دجمهورو په نزد امام که په حالت دعذر کيني او مونځ اوکړي نو مقتدي دي په ولاړه مونځ اوکړي.

**دامام مالک رحمه الله دليل**: حديث "لا يؤمن رجل بعدي جالسًا". (دار قطني)

**امام احمد رحمه الله دليل**: دانس رضي الله عنه او دعائشي رضي الله عنها حديث " واذا صلي جالسًا فصلوا جلوسًا".

**دجمهورو دليل**: مرض الوفات واقعه کوم کې چې حضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ناسته مونځ کولو او خلک دحضور صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په اقتداء کې په ولاړه مونځ ادا کړو. "**فجعل ابو بکر يصلي وهو قائم بصلوة النبي صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ والناس بصلوة ابي بکر والنبي صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قاعد**" ددې واقعې نه دوه خبرې معلومې شوي: (۱) دولاړ اقتدا دناست پسې صحيح ده کما زعم الامام مالک رَحِمَهُ اللهُ. (۲) مقتدي به بغير دعذر نه نه کيني.

**دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ ددليل جواب**: ۱. دمرض الوفات واقعه دآخري زمانې ده ځکه به هغه حجت وي.

۲. ددار قطني والا حديث په سند کې جابر جعفي دې کوم ته چې کذاب او وضاع ويلې شوې دی.

**دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ ددليل جواب**: "**واذا صلى جالسا فصلوا جلوسا**" والا واقعه د پنځم هجري ده لهذا دمرض الوفات والا واقعه به ددې لپاره ناسخه وي.

# بَابُ صَلَاةِ الْمُفْتَرِضِ خَلْفَ الْمُتَنَفِّلِ

## باب دې د فرض مونځ کوونکي د نفل مونځ کوونکي پسې

**﴿۵۲۲﴾ عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ الآخِرَةَ ثُمَّ يَرْجِعُ إِلَى قَوْمِه فَيُصَلِّي بِهِمْ تِلْكَ الصَّلَاةَ رواه الشَّيخَانِ وَزَادَ عبد الرزاق والشافعي والطحاوي والدارقطني والبيهقي في رواية هي لَه تَطَوُّعٌ وَلَهُمْ فَرِيضَةٌ وَفِي هٰذِهِ الزِّيَادَةِ كَلَامٌ.**[1]

**ترجمه**: د حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې معاذ بن جبل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د رسول اکرم صَلَّی اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ماسختن مونځ اداء کړ بيا واپس خپل قوم ته راغې او همغه مونځ ئې خپل قوم ته هم وکړو. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې او عبد الرزاق، شافعي رَحِمَهُ اللهُ، طحاوي رَحِمَهُ اللهُ، دار

---

(۱) مسلم کتاب الصلوة ج۱ص۱۸۷ باب القراءة في العشاء، بخاري کتاب الاذان ج۱ص۹۷ باب اذا طوّل الامام ...الخ، مصنف عبدالرزاق کتاب الصلوة ج۲ص۸ باب لا تکون صلوة واحدة لشئي رقم ص ۲۲۶۵، مسند شافعي کتاب الصلوة ج۱ص۱۰۲ باب السابع في الجماعة واحكام الامامة رقم ۳۰۲، طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص۲۷۹ باب الرجل يصلي الفريضة خلف من يصلي تطوعا، دار قطني کتاب الصلوة ج۱ص۲۷۴ باب ذکر صلوة المفترض خلف المتنفل، سنن الکبری للبيهقي کتاب الصلوة ج۳ ص ۸۵ باب الفريضة خلف من يصلي النافلة.

قطني او بيهقي رحمهم الله تعالى په يو روايت کې دا زياتوالي کړي دي چې دغه مونځ د ده د پاره نفل وُ او د قوم فرضي مونځ وُ او په دې زيادت کې خبري دي.

**مسئلة الباب** : دفرض مونځ کونکي دنفل کونکي پسې اقتدا کول

(۱) دامام شافعي رحمه الله او داهل ظواهرو په نزد "صلاة المفترض خلف المتنفل" جائز دي.

(۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله مالک او احمد رحمه الله په نزد (دمشهور قول مطابق) دا جائز نه دي.

**امام شافعي رحمه الله او داهل ظواهرو دليل** :حديث دمعاذ رضي الله عنه دکوم په آخر کې چې "هي له تطوع ولهم فريضة" يعني ددې اضافه هم ده چې حضرت معاذ رضي الله عنه به نفل کول او دده قوم به دده شاته فرض کول.

**دجمهور دطرف نه جواب :**

۱... "هي له تطوع" دراوي خپل گمان دی لهذا ممکنه ده چې حضرت معاذ رضي الله عنه دحضور صلى الله عليه وسلم شاته نفل کول او خپل قوم ته يې فرض کول "اذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال".

۲... بالفرض که دا کلام که دحضرت معاذ رضي الله عنه وي نو دا په ابتدا کې ددوي رايه وه چې شايد چې په داسې کولو سره مونځ کيږي ليکن حضور صلى الله عليه وسلم دده دخيال ترديد او فرمايلو او حکم يې وکړ "يا معاذ اما أن تصلي معي واما أن تخفف عن قومک" يعني يا خو ماسره مونځ کوه يا دويم صورت داچې خپل قوم ته مونځ کوه ، ليکن خفيف او مختصر ، په دې حديث کې گويا حضور صلى الله عليه وسلم په دواړه ځايونو کې دمونځ کولو نه منع او فرمايلو فکيف الاستدلال ؟. (الدر المنضود ، باختصار)

## بَابُ صَلَاةِ الْمُتَوَضِّيْ خَلفَ الْمُتَيَمِّمِ

### د تيمم وهونکي پسې د اودس لرونکي د مانځه باب

﴿۵۲۵﴾ عَن عَمرِو بنِ العَاصِ رضي الله عنه قَالَ اِحتَلَمتُ فِي لَيلَة بَارِدَة فِي غَزوَة ذَاتِ السَّلَاسِلِ فَاشفَقتُ أَن اَغتَسِلَ فَأَهلِك فَتَيَمَّمتُ ثُمَّ صَلَّيتُ بِأَصحَابِي الصُّبحَ فَذَكَرُوا ذٰلِك لِرَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَقَالَ يَا عَمرُو صَلَّيتَ بِأَصحَابِك وَأَنتَ جُنُبٌ فَأَخبَرتُه بِالَّذِي مَنَعَنِي مِنَ الاِغتِسَالِ وَقُلتُ إِنِّي سَمِعتُ الله يَقُولُ وَلَا تَقتُلُوا اَنفُسَكم اِنَّ الله كَانَ بِكم رَحِيمًا فَضَحِك رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم وَلَم يَقُل شَيئًا رواه

ابوداود والبخاري تعليقاً وآخرون وصححه الحاكم .(۱)

**ترجمه :** حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه ويلي دي چې د ذات السلاسل په غزا کې په يوه سخته يخه شپه کې ماته احتلام وشو نو زه وېرېدم که چرته غسل وکړم هلاک به شم نو ما تيمم وواهه او بيا مي خپلو ملګرو ته د سهر مونځ وکړو نو هغه خلکو دا خبره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ياده کړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عمروبن العاص ته وفرمايل چې اي عُمره ته جنب وې او ملګرو ته دې مونځ وکړو نو ما رسول اکرم صلى الله عليه وسلم په هغه څه خبر کړ چې زه ئې د غسل نه منع کړې وم او ما وويل چې ما اوريدلي دي چې الله فرمايلي دي چې خپل ځانونه مه وژنئ بې شکه چې الله جل شانه په تاسو باندې رحم کولو والا دی نو رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وخندل او څه ئې ونه وفرمايل . د دې حديث روايت ابوداؤد او بخاري تعليقا او نورو محدثينو هم نقل کړې او حاکم صحيح ګڼړلې دې .

**مسئلة الباب :** دا ودس لرونکي کس تيمم والا پسې اقتدا کولې شي يا نه ؟

جواب : په اتفاق دائمه اربعه رحمهم الله سره اقتدا کولې شي .

# بَابُ مَا اسْتَدَلَّ بِهٖ عَلٰى كَرَاهَةِ تَكْرَارِ الْجَمَاعَةِ فِيْ مَسْجِدٍ

## په جومات کې په دويم ځل د جماعت په مکروه والي باندې د استدلال باب

﴿۵۲۶﴾ عَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَقْبَلَ مِنْ نَوَاحِي الْمَدِيْنَةِ يُرِيْدُ الصَّلَاةَ فَوَجَدَ النَّاسَ قَدْ صَلَّوْا فَمَالَ اِلٰى مَنْزِلِهٖ فَجَمَعَ اَهْلَهٗ فَصَلّٰى بِهِمْ رواه الطبراني في الكبير والاوسط و قال الهيثمي رجاله ثقات .(۲)

**ترجمه :** د حضرت ابي بکرة رضي الله عنه نه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مديني منورې د اطراف نه تشريف راوړ غوښتل ئې چې مونځ اداء کړې . نو خلک ئې په داسې حالت کې ومندل چې مونځ ئې کړی وُ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم خپل کور ته تشريف ويوړ او هلته ئې خپل اهل را جمع کړ او مونځ ئې ورته کړو . د دې حديث روايت طبراني په کبير او اوسط کې کړې دی او هيثمي ويلي دي چې رجال ئې ثقه دي.

**مسئلة الباب :** د را روان باب تر لاندې يې اوګورئ.

---

(۱) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ص ۴۸ باب اذا خاف الجنب البرد ايتيمّم ، بخاري كتاب التيمم ج۱ص ۴۹ اذا خاف الجنب على نفسه المرض ....الخ ، مستدرك حاكم كتاب الطهارة ج۱ص ۱۷۷ باب عدم الغسل للجنابة في شدة البرد.

(۲) مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲ص۴۵ باب فيمن جاء الي المسجد فوجد الناس قد صلّوا نقلا عن الطبراني .

# بَابُ مَا جَاءَ فِي جَوَازِ تَكْرَارِ الْجَمَاعَةِ فِي مَسْجِدٍ

## په مسجد کې د جماعت د تکرار د جواز باب

﴿۵۲۷﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلاً قَدْ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَ قَدْ صَلَّى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصْحَابِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَتَصَدَّقُ عَلَى ذَا فَيُصَلِّي مَعَه فَقَامَ رَجُلٌ مِنَ الْقَوْمِ فَصَلَّى مَعَه رواه احمد و ابوداود والترمذي و حسنه والحاكم و قال صحيح على شرط مسلم .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه نه روايت چې يو سړي مسجد ته راننوته په داسې حال کې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلو اصحابو رضي الله عنهم ته مونځ کړي وُ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې څوک به په ده باندې صدقه وکړي چې د ده سره مونځ وکړي نو د خلکو نه يو کس پاڅيده او د هغه سره ئې مونځ وکړ . د دې حديث روايت ابوداؤد ، احمد ، او ترمذي کړې دې او حسن ئې ګنړلې دې او حاکم د دې حديث روايت کړې دې او ويلې ئې دي چې د مسلم په شرط باندې صحيح دې .

﴿۵۲۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا جَاءَ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ يُصَلِّي وَحْدَه فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَتَّجِرُ عَلَى هٰذَا فَيُصَلِّي مَعَه اخرجه الدارقطني و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : او د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دې چې يو سړي راغي او رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ اداکړي وُ نو سړي پاڅيده او يواځې مونځ ئې کاوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې څوک د ده سره د ګټې والا تجارت کوي چې د ده سره مونځ وکړي . دا حديث دارقطني خارج کړې او اسناد ئې صحيح دي .

### ددويم جماعت حکم

که په يو جومات کې امام متعين نه وي يا دلارې جومات وي نو په دې کې د جماعت تکرار جائز دې دغه شان دبنار په جومات کې هم د جماعت تکرار جائز دې ، دغه شان که د محلې جومات د کوم چې اما او مؤذن معين وي ليکن هلته غير د کوځې والاو مونځ کړې وي نو د کوځې والاو لپاره دويمه جمه جائز ده ، البته که د کوځې جومات دې کوم کې چې امام او مؤذن متعين دې او کوځې والاو يو

(۱) مسند احمد ج۳ص ۴۵ ، ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱ص ۸۵ باب في الجمع في المسجد مرتين ، ترمذي ابواب الصلوٰة ج۱ص ۵۳ باب ما جاء في الجماعة في مسجد قد صلّي فيه مرة ، مستدرك حاكم كتاب الصلوٰة ج۱ص ۲۰۹ باب اقامة الجماعة في المساجد مرتين .
(۲) دار قطني كتاب الصلوٰة ج۱ص ۲۷۶ باب اعادة الصّلاة في جماعة .

بیره جماعت او کړو نو اوس آیا دنورو لپاره دویم جماعت جائز دې یا نه؟ په دې کې اختلاف دې:

(۱) **مذهب:** امام ابو حنیفه رحمه الله ، امام شافعي رحمه الله ، امام مالک رحمه الله او جمهور علماء وائي چې د کوم مسجد د پاره مؤذن او امام منتخب او مقرر شوي وي او په هغه مسجد کې يو ځل د محلې خلکو په جماعت سره مونځ اداء کړي وي نو په هغه مسجد کې دوهم ځل په جماعت مونځ کول مکروه تحریمي دي.

(۲) **مذهب:** اهل ظواهر او امام احمد بن حنبل رحمه الله وائي چې په مسجد کې د جماعت تکرار جائز دي.

**دمجوزینو دلیل:** په دې باب کې د (۵۲۷ - ۵۲۸) حدیث پوري د اهل ظواهرو او د حنابله ؤ مذهب د جماعت د تکرار د جوازد دلیلونو بیان دي:

(۱) **دلیل:** د دې باب نه لاندې دوه روایتونه ذکر شوي دي او دا دواړه روایتونه د حنابله ؤ او د اهل ظواهرو د پاره مستدل دي چې د دې باب رومبنې حدیث د حضرت ابوسعید رضي الله عنه نه روایت شوي او دویم روایت د حضرت انس رضي الله عنه نه روایت شوي او په دې دواړو حدیثونو کې د دوهمې جمعې فتوی ورکړې شوې ده.

**د کراهت دلیلونه:** (۱) دلیل: ۵۲۶ حدیث چې حضرت ابي بکره رضي الله عنه ئي روایت کړي دي د دریواړو امامانو او د جمهورو مستدل دي او وېلې ئي دي چې که چرته دوهم ځل جماعت جائز وي نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مسجد نبوي صلی الله علیه وسلم کې بالکل دوهم ځل جماعت نه وي ترک کړې په کور کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم خپل اهل ته په جماعت سره مونځ کول او په مسجد کې دوهم ځل جماعت سره مونځ پرېښودل د دې خبرې پوخ دلیل دي چې په مسجد کې د جماعت تکرار تحریمي مکروه دي.

(۲) صلاة الخوف ددې نظیر دې ، هلته دومره دسختې وېرې دوجې نه هم دوه جماعتونه نه دي مشروع، معلومه شوه چې څه ضرر لازمیږي.

۳... دجماعت دتکرار دوجې نه په جوماتو کې دجماعت هغه اصل مقصد فوت کیږي چې خپل مابین کې داجتماعیت، اتفاق او دیک جهتې مظاهره ده .او دجماعت ثانیه دوجې نه تقلیل جماعت هم لازمیږي.

**دمجوزینو ددلیل جواب:** په اولنې حدیث کې په دویم ځل دمونځ لپاره، اوچتیدونکې کس حضرت سیدنا ابوبکر صدیق رضي الله عنه وو نو دهغه مونځ نفل وو او دبل فرض ، دغه شان جماعت بالاتفاق جائز دي دخرابۍ صورت دادې چې دواړه فرض کوي او په دویم حدیث کې دیو روایت مطابق دمسجد بني ثعلبه واقعه ده کوم چې دلارې جومات وو.

# بَابُ صَلَاةِ الْمُنْفَرِدِ خَلْفَ الصَّفِّ

## د صف نه روسته د يواځي مونځ كوونكي باب

﴿۵۲۹﴾ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ أَنَا وَيَتِيمٌ فِي بَيْتِنَا خَلْفَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَأُمِّي أُمُّ سُلَيْمٍ خَلْفَنَا رواه الشيخان.[1]

**ترجمه**: حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ويلي دي چې څمونږ په كور كې ما او يو يتيم د نبي كريم صلى الله عليه وسلم پسې مونځ وكړ او ځما مور ام سُليم زمونږ پسې يواځې وه. د دې حديث روايت شيخينو كړې دې.

﴿۵۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ انْتَهَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ رَاكِعٌ فَرَكَعَ قَبْلَ أَنْ يَصِلَ إِلَى الصَّفِّ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ زَادَكَ اللهُ حِرْصًا وَلَا تُعِدْ رواه البخاري.[2]

**ترجمه**: او د حضرت ابي بكرة رضي الله عنه نه روايت دې چې هغه نبي اكرم صلى الله عليه وسلم ته په داسې حال كې وورسيده چې هغه په ركوع كې ؤ نو صف ته د رسيدو نه مخكې ئې ركوع وكړه نو دا خبره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ياده كړې شوه نو وې فرمايل چې الله جل شانه دې ستا حرص د مانځه په باره كې زيات كړې بيا داسې ونه كړې. د دې حديث روايت بخاري كړې دې.

﴿۵۳۱﴾ وَعَنْ وَابِصَةَ بْنِ مَعْبَدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى رَجُلًا يُصَلِّي خَلْفَ الصَّفِّ وَحْدَهُ فَأَمَرَهُ أَنْ يُعِيدَ الصَّلَاةَ رواه الخمسة وحسنه الترمذي وصححه ابن حبان.[3]

**ترجمه**: د حضرت وابصه بن معبد رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم يو سړې وليده چې د صف نه روسته ئې يواځې مونځ كاوه نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته د مانځه په اعاده باندې امر وكړ. د دې حديث روايت د نسائي نه په غير پنځو محدثينو كړې دې او ترمذي حسن ګنړلې دې او ابن صحيح رحمه الله ګنړلې دې.

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ صـ۱۰۱ باب المرأة وحدها تكون صفًا، مسلم كتاب المساجد ج۱ صـ۲۳۴ باب جواز الجماعة النافلة ...الخ.

(۲) بخاري كتاب الاذان صـ۱۰۸ باب اذا ركع دون الصف.

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ۹۹ باب الرجل يصلي وحده خلف الصف، ترمذي ابواب الصلوة صـ۵۴ باب ماجاء في الصلوة خلف الصف وحده، ابن ماجة كتاب الصلوة صـ۷۲ باب صلوة الرجل خلف الصف وحده، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۴ صـ۳۱۱ رقم الحديث ۲۱۹۷، مسند احمد ج۴ صـ۲۲۸.

(۵۳۲) وَ عَن عَلِيِّ بنِ شَيبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رَأى رَجُلًا يُصَلِّي خَلفَ الصَّفِّ فَوَقَفَ حَتَّى انصَرَفَ الرَّجُلُ فَقَالَ لَه إستَقبِلْ صَلَاتَكَ فَلَا صَلَاةَ لِمُنفَرِدٍ خَلفَ الصَّفِّ رواه احمد وابن ماجه واسناده حسن.[1]

**ترجمه**: او د حضرت علي بن شيبان رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم يو كس وليده چې د صف نه روسته ئې مونځ كاوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته تر هغې پورې ودريده چې هغه كس د مانځه نه فارغ شو نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې مونځ دوباره بيا وكره د صف نه روسته د يواځي مونځكوونكي مونځ نه شته. د دې حديث روايت احمد رحمه الله او ابن ماجه كړې دې او اسناد ئې حسن دې.

## د صف نه وروسته يواځې مونځ كول

(۱) دامام احمد رحمه الله په نزد مونځ نه كيږي. (۲) امام ابوحنيفه رحمه الله، مالك رحمه الله، او شافعي رحمه الله په نزد مونځ يې صحيح كيږي البته د كراهت سره.

**دامام احمد رحمه الله دليل:**

۱... حديث دوابصه بن معبد رضي الله عنه: "فأمر أن يعيد الصلاة".

۲... حديث دعلي بن شيبان رضي الله عنه "إستَقبِلْ صَلَاتَكَ فَلَا صَلَاةَ لِمُنفَرِدٍ خَلفَ الصَّفِّ" ددواړو حديثونو مطابق حضور صلى الله عليه وسلم دخلف الصف يواځې مونځ كونكي لره داعادې حكم وركړ.

**دجمهورو دليل:**

۱... حديث دانس رضي الله عنه دكوم مطابق چې دده والده دحضور صلى الله عليه وسلم پسې شاته په صف كې ځانله ولاړه وه.

۲... دابوبكره رضي الله عنه حديث چې حضور صلى الله عليه وسلم ده ته دخلف الصف يواځې مونځ كولو دوجې نه دمونځ داعادې حكم نه بلكې دكراهت نه دبچ كيدو لپاره يې آئنده داسې دنه كونو اوفرمايل.

**دامام احمد رحمه الله ددليل جواب:**

۱...د ستاسو مستدل ددواړو حديثونو سند مجروح دې.

۲... متعارض حديثونو كې تطبيق داسې كيدې شي چې داعادې حكم استحبابا وې نه دا چې دفساد په بنا باندې.

---

(۱) مسند احمد ج۴ ص ۲۳، ابن ماجة كتاب الصلوة ص ۷۱ باب صلوة الرجل خلف الصف وحده.

# ﴿أَبْوَابُ مَا يَجُوزُ فِي الصَّلَاةِ وَمَا يُبَاحُ فِيهَا﴾

## ﴿بَابُ النَّهْيِ عَنْ تَسْوِيَةِ التُّرَابِ وَمَسْحِ الحِصَى فِي الصَّلَاةِ﴾

**په مانځه کې د ناروا او د مباحو شیانو بابونه**

**یعني په مانځه کې د خاوري د برابرولو او د ګیټکیو د لري کولو نه د نهي باب دي**

**﴿۵۲۳﴾ عَنْ مُعَيْقِيبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي الرَّجُلِ يُسَوِّي التُّرَابَ حَيْثُ يَسْجُدُ قَالَ إِنْ كُنْتَ فَاعِلًا فَوَاحِدَةً رواه الجماعة.**[1]

**ترجمه**: د حضرت معیقیب رضي الله عنه نه روایت دي چې په تحقیق رسول الله صلی الله علیه وسلم د یو کس په باره کې فرمایلي دي چې هغه د سجدي د ځاي خاوره برابروله نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې که ته ضرور دغه کار کوي نو یو ځل ئې وکړه. د دي حدیث روایت جماعت کړي دي.

**﴿۵۲۴﴾ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَامَ أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلَا يَمْسَحُ الحِصَا فَإِنَّ الرَّحْمَةَ تُوَاجِهُهُ رواه الاربعة واسناده حسن.**[2]

**ترجمه**: حضرت ابي ذر رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې یو کس د ستاسي نه په مانځه ودریږي نو حصی یعني ګیټکي دي نه لري کوي ځکه چې د الله جل شانه رحمت هغه طرف ته متوجه دي. د دي حدیث روایت څلورو محدثینو کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

**﴿۵۲۵﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَأَلْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ مَسْحِ الحِصَا فَقَالَ وَاحِدَةً وَلَأَنْ تُمْسِكَ عَنْهَا خَيْرٌ لَكَ مِنْ مِائَةِ نَاقَةٍ كُلُّهَا سُودُ الحِدَقِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة واسناده**

---

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۲ صـ ۱۶۱ باب مسح الحصى في الصّلوة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ صـ ۲۰۶ باب كراهة مسح الحصى ....الخ ، ترمذي ابواب الصّلوة ج۱ صـ ۸۷ باب ماجاء في كراهية مسح الحصى في الصّلوة ، نسائي كتاب السهو ج۱ صـ ۱۷۷ باب النهي عن مسح الحصى في الصلوة ، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱ صـ ۱۳۶ باب مسح الحصى في الصّلوة ، ابن ماجة كتاب الصلوة ج۱ صـ ۷۳ باب المسح الحصى في الصّلوة ، مسند احمد ج۳ صـ ۴۲۶ .

(۲) ترمذي ابواب الصّلوة ج۱ صـ ۸۷ باب ماجاء في كراهية مسح الحصى في الصّلوة ، نسائي كتاب السهو ج۱ صـ ۱۷۷ باب النهي عن مسح الحصى في الصّلوة ، ابوداود كتاب الصّلوة ج۱ صـ ۱۳۶ باب مسح الحصى في الصّلوة ، ابن ماجة كتاب الصّلوة ج۱ صـ ۷۳ باب المسح الحصى في الصّلوة .

صحيح.(۱)

**ترجمه :** د حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي ويلي ئي دي چې ما د نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه د ګيټكيو د لري كولو په باره كې پوښتنه وكړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم او فرمايل چې يو ځل او كه ديو ځل نه بند شي نو دا ستا د پاره د سلو تورو سترګو اوښانو نه بهتر دي. د دي حديث روايت ابي ابن ابي شيبة كړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

## ﴿ بَابٌ فِي النَّهيِ عَنِ التَّخَصُّرِ ﴾

## په ملا او يا په تشي باندي د لاس د ايښودلو باب

﴿۵۲۶﴾ عَن أَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ قَالَ نَهى رَسُولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَن يُصَلِّي الرَّجُلُ مُختَصِرًا رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه :** د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي ويلي ئي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم منع فرمايلي ده چې سړي مونځ كوي او لاس ئي په تشي او يا په ملا باندي ايښي وي. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

**داختصار في الصلاة مطلب :** دمنع كړې شوي اختصار في الصلاة دري تفسيرونه كړې شوي دي :

(۱) په تشي (چوختو) باندې لاس ايخودل، په دې كې ابليس لعين او ديهودو سره مشابهت دې او په مونځ كې عاجزي پكار ده او داسي او ريدل دمتكبرينو نښه ده. (۲) بغير د عذر نه په همسا تكيه لګول او اوريدل. (۳) په ركوع او سجده كې اختصار كول او داطمينان نه بغير مونځ كول.

## ﴿ بَابُ النَّهيِ عَنِ الاِلتِفَاتِ فِي الصَّلَاة ﴾

## په مانځه كې د كتلو نه د منعي باب

﴿۵۲۷﴾ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهَا قَالَت سَأَلتُ رَسُولَ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَنِ الاِلتِفَاتِ فِي الصَّلَاة فَقَالَ هُوَ

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوة ج ۲ص ۴۱۲ باب مسح الحصي وتسويته في الصلوة من رخص في ذلك .

(۲) البخاري كتاب التهجد ج ۱ص ۱۶۳ باب الخصر في الصلوة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۶ باب كراهية الاختصار في الصلوة .

إختلاس يختلسه الشيطان من صلاة العبد رواه البخاري .[1]

**ترجمه :** حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په مانځه کې د اخوا ديخوا کتلو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وفرمايل چې دا په جلتئ سره تښتول دي شيطان د بنده د مانځه نه په جلتئ سره تښتونه کوي . د دې حديث روايت بخاري کړې دې .

﴿۵۲۸﴾ وعن أنس رضي الله عنه قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إياك والإلتفات في الصلاة فإن الإلتفات في الصلاة هلكة فإن كان لا بد ففي التطوع لا في الفريضة رواه الترمذي و صححه .[2]

**ترجمه :** حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې په مانځه کې د اخوا ديخوا کتو نه ځان ؤساته بې شکه په مانځه کې يو خوا او بل خوا کتل مرګ دي نو که چرته يو خوا بل خوا کتل ضروري وي نو په نفلو کې دې په فرضو کې نه . د دې حديث روايت ترمذي کړې او اسناد ئې صحيح دې .

﴿۵۲۹﴾ وعن ابن عباس رضي الله عنه قال كان النبي صلى الله عليه وسلم يلحظ في الصلاة يمينا و شمالا ولا يلوي عنقه خلف ظهره رواه الترمذي و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه :** حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ويلي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم به په مانځه کې د سترګو په کونجونو کې ښي طرف ته او چپ طرف ته کتل او خپل څټ مبارک به ئې خپلې شا طرف ته نه اړاوه . د دې حديث روايت ترمذي کړې دې . او اسناد ئې صحيح دې .

**د کلماتو تشريح :**

" هو اختلاس يختلسه الشيطان " يعنې کوم کس چې په مونځ کې يو بل شي طرفته التفات کوي نو ګويا داسې اوګڼه چې شيطان د دې کس د مونځ خشوع ختمه کړه .

**په مونځ کې د التفات درې صورتونه دي :**

مخ دې واړولې شي نقط ، دا مکروه دي .(۲) سينه دې واړولې شي ، دا مفسد :صلاة دې داستقبال قبله دفوت کيدو د وجې نه .(۳) ګوشه چشم يعنې دسترګو په کونجونو کې کتل ، دا صرف خلاف اولى دې ، دخشوع منافي کيدو د وجې نه البته عند الضرورة مباح دې د حضور صلى الله عليه وسلم التفات

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱صــ ۱۰۴ باب الالتفات في الصلوة .

(۲) ترمذي ابواب ما يتعلق بالصلوة ج۱صــ ۱۳۰ باب ما ذكر في الالتفات في الصلوة .

(۳) ترمذي ابواب ما يتعلق بالصلوة ج۱صــ ۱۳۰ باب ما ذكر في الالتفات في الصلوة .

په داسې قسمه وو ...

## ﴿ بَابٌ فِي قَتْلِ الْأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ ﴾
## يعني په مانځه کې د مار او د لرم د وژلو باب

﴿۵۲۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اُقْتُلُوا الْأَسْوَدَيْنِ فِي الصَّلَاةِ الْحَيَّةَ وَالْعَقْرَبَ رواه الخمسة و صححه الترمذي.[1]

**ترجمه:** حضرت ابي هريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې اسودين يعني مار او لرم په مانځه کې وژنئ. د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي او ترمذي صحيح ګڼلي دي.

**مسئلة الباب:** په مانځه کې د مار او د لرم وژل هيڅ باک نلري لکه چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې مار او لرم په مانځه ووژنئ. او دا ځکه چې په دې کې ازاله د شغل د قلب ده د حضور د قلب نه نو د؛ داسي ده لکه د مونځ کوونکي په مخ کې چې تيريدونکي د تيريد و نه بند کړي شي. او بله دا چې دا حديث مطلق دي په دي کې د يو ځل ضرب او د ډيرو ضرباتو ترمنځ ئي هيڅ فرق نه دي کړي او د شمس الائمة السرخسي رحمه الله په نزد همدا خبره مختاره ده او ځينو ويلي دي چې که په يو ضرب باندي ئي قتل ممکن وُ نو ودي وژلي شي او که په ډيرو ضرباتو باندي ئي وژلي وي نو مونځ دي د سرنه راوګرځوي ځکه چې دا کثير عمل دي او په کثير عمل باندي مونځ فاسديږي خو ولي د دي په جواب کې ويلي شوي چې په دي باره کې ئي مونځ کوونکي ته رخصت ورکړي دي او د دي عمل مثال داسي دي لکه د بي اودسئ نه روسته مونځ کوونکي د اوداسه د پاره مشي او تګ کوي او يا د اوداسه د پاره د کوهي نه اوبه راوُباسي. او امام احمد رحمه الله او امام شافعي رحمه الله هم دا خبره کړي ده چې مار دي وُوژل شي چې په يو ضرب وي او که په ډيرو ضرباتو سره وي ويره او خوف ورنه وي او که خوف او ويره ورنه وي او دا ځکه چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه مرفوع حديث نقل شوي دي چې (اقتلوا الحية والعقرب ان كنتم في صلوتكم) او وجه ئي داده چې په دي سره زړه د مشغوليت نه فارغيږي.

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۸۹ باب ماجاء في قتل الاسودين في الصلوة، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۳۳ باب العمل في الصلوة، نسائي كتاب السهو ج۱ص۱۷۸ باب قتل الحية والعقرب في الصلوة، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص۸۹ باب ماجاء في قتل الحية والعقرب في الصلوة، مسند احمد ج ۲ص ۲۳۳.

# ﴿ بَابٌ فِي النَّهيِ عَنِ السَّدلِ ﴾

## په مانځه کې د سدل نه د منع باب

﴿۵۲۱﴾ عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ السَّدلِ فِي الصَّلَاة وَ أَن يغَطِّي الرَّجُلُ فَاه رواه ابوداود وابن حبان واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم په مانځه کې د سدل نه او په مانځه کې د خولې پټولو نه منع فرمايلې ده. د دې حديث روايت ابوداؤد او ابن حبان کړې دې او اسناد ئې حسن دي.

**دسدل تعريف** : د سدل مختلف تعريفونه شوي دي (۱) تعريف : امام خطابي رحمه الله ويلي دي چې ( هو ارسال الثوب حتى يصيب الارض ) يعني سدل د جامې زوړندول دي تر څو پورې چې ځمکې ته ورسيږي.

(۲) تعريف : په نهايه کې ئې ويلي دي : هو ان يلتحف ثوبه ويدخل يديه من داخل فيركع ويسجد وهو كذلك ) يعني : سدل ديته ويلې شي چې په جامه کې ځان تاو کړي او لاسونه پکې وردننه کړي او په همدغه حال کې پکې رکوع او سجده کوي او يهودو به دغسې عمل کاوه نو د دې نه منع کړې شو او داعمل په کميس کې کيدې شي او په نورو شيانو کې هم.

### دسدل حکم :

امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله سدل په مانځه او غير مانځه دواړو حالتونو کې مکروه ګڼړلي دي. او امام احمد رحمه الله فقط د مانځه په حالت کې مکروه ګڼړلي دي. جابر بن عبدالله رحمه الله ، محمد بن سيرين رحمه الله او عطاء ابن ابي رباح د سدل په باره کې پروا نکوي. او امام ابوداؤد د ابن جريج دلارې د حضرت عطاء د عمل روايت کړې دې چې عطاء رحمه الله به اکثر د سدل په حالت کې مونځ کاوه. امام بيهقي رحمه الله د دې په باره دا توجيه کړې چې امکان لري چې حضرت عطاء رحمه الله د سدل د منع والا حديث کړې وي.

" أن يغطي الرجل فاه " د مونځ په حالت کې تغطيه فم مکروه دي يعنې خوله پټول ، ددې حديث په بناء باندې او بله دا چې هغه د قرأت او داذکار نه مانع دې همدارنګه په دې کې تشبه بالمجوس هم

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۹۴ باب السدل في الصلوة ، صحيح ابن حبان ج۵ صـ ۲۵ رقم ۲۲۸۶.

دي ، البر المنضود ).

# ﴿بَابُ مَن يصَلِّي وَرَأسُه مَعقُوصٌ﴾

﴿۵۲۲﴾ عَن ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ أُمِرتُ أَن أَسجُدَ عَلَى سَبعَةِ أَعظُمٍ وَلَا أَكُفَّ شَعرًا وَلَا ثَوبًا رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي ماته امر شوي دي چې په اوو هډوكو باندي سجده وكړم او خپل ويښته او جامي راغونډي نه كړم . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

﴿۵۲۳﴾ وَعَن كُرَيبٍ عَن عَبدِ اللهِ بنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّه رَأَى عَبدَ اللهِ بنَ الحَارِثِ يصَلِّي وَرَأسُه مَعقُوصٌ مِن وَرَائِهِ فَقَامَ فَجَعَلَ يحُلُّه فَلَمَّا انصَرَفَ أَقبَلَ إِلَى ابنِ عَبَّاسٍ فَقَالَ مَالَكَ وَلِرَأسِي فَقَالَ إِنِّي سَمِعتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يقُولُ إِنَّمَا مَثَلُ هٰذَا مَثَلُ الَّذِي يصَلِّي وَهُوَ مَكتُوفٌ رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : د كريب نه روايت دي هغه د حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت كړي دي چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ عبد الله بن الحارث رَضِيَ اللهُ عَنهُ ليدلي ؤ چې مونځ ئي كاوه او د سر ويښته ئي روسته غوټه كړي ؤ نو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ پاڅيده او د هغه د ويښتو په سپړلو ئي شروع وكړه كله چې هغه د مانځه نه فارغ شو نو ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته ئي مخ راواړوه چې ستا څما د سر سره څه كار دي ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ورته وويل چې ما د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل ئي چې بې شكه د ده مثال د هغه چا په شان دي چې مونځ كوي او د ده په اوږو باندي څه شئ وي رواه مسلم .

## عقص في الصلاة

دعقص في الصلاة مطلب دا دي چې يو كس په ځاي ددې چې ويختان پخپل حالت پريږدي بلكې دسر شاته يې غوټه كړي لكه څنګه چې ښځي غوټه كوي دا دجمهور و علماؤ او د ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد مكروه دي او د امام مالك رَحِمَهُ اللهُ په نزد كراهت په هغه صورت كې دې چې عقص د مونځ نه مخكې د مونځ كولو په نيت سره او كړي او كه د مخكې نه وي نو بيا څه حرج نشته ليكن دا كراهت

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۱۳ باب لا يكف شعراً ، مسلم كتاب الصلوٰة ج۱ص ۱۹۳ باب اعضاء السجود والنهي عن كف الشعر .....الخ .

(۲) مسلم كتاب الصلوٰة ج۱ص ۱۹۳ باب اعضاء السجود والنهي عن كف الشعر ....الخ .

بالاتفاق د سړو په حق کې دي د ښځو په حق کې نه دي .

# ﴿ بَابُ التَّسْبِيحِ وَالتَّصفِيقِ ﴾

## په مانځه کې د تسبيح او د لاس پړ قولو باب :

﴿۵۲۴﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلتَّسْبِيحُ لِلرِّجَالِ وَالتَّصفِيقُ لِلنِّسَاءِ

رواه الجماعة و زاد مسلم و آخرون في الصلاة .[1]

**ترجمه** ، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې تسبيح د سړو د پاره دي او لاس پړقول د ښځو د پاره دي . د دي حديث روايت جماعت كړي دي او مسلم رحمه الله او نورو د في الصلوة لفظ زيات كړي دي .

﴿۵۲۵﴾ وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَهَبَ إِلَى بَنِي عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ لِيُصْلِحَ بَيْنَهُمْ فَحَانَتِ الصَّلَاةُ فَجَاءَ الْمُؤَذِّنُ إِلَى أَبِي بَكْرٍ فَقَالَ أَتُصَلِّي بِالنَّاسِ فَأُقِيمَ قَالَ نَعَمْ فَصَلَّى أَبُو بَكْرٍ فَجَاءَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالنَّاسُ فِي الصَّلَاةِ فَتَخَلَّصَ حَتَّى وَقَفَ فِي الصَّفِّ فَصَفَّقَ النَّاسُ وَكَانَ أَبُو بَكْرٍ لَا يَلْتَفِتُ فِي الصَّلَوةِ فَلَمَّا أَكْثَرَ النَّاسُ التَّصفِيقَ اِلْتَفَتَ فَرَأَى رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَشَارَ إِلَيْهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنِ امْكُثْ مَكَانَكَ فَرَفَعَ أَبُو بَكْرٍ يَدَيْهِ فَحَمِدَ اللهَ عَزَّوَجَلَّ عَلَى مَا أَمَرَهُ بِهِ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ ذٰلِكَ ثُمَّ اسْتَأْخَرَ أَبُو بَكْرٍ حَتَّى اسْتَوٰى فِي الصَّفِّ وَتَقَدَّمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى ثُمَّ انْصَرَفَ فَقَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَثْبُتَ إِذَا أَمَرْتُكَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ مَا كَانَ لِابْنِ أَبِي قُحَافَةَ أَنْ يُصَلِّيَ بَيْنَ يَدَيْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَالِي رَأَيْتُكُمْ أَكْثَرْتُمُ التَّصفِيقَ مَنْ نَابَهُ شَيْءٌ فِي صَلَاتِهِ فَلْيُسَبِّحْ فَإِنَّهُ إِذَا سَبَّحَ الْتَفَتَ إِلَيْهِ وَإِنَّمَا التَّصفِيقُ

---

(۱) مسلم كتاب الصّلوة ج۱ ص ۱۸۰ باب تسبيح الرجل وتصفيق المرأة ...الخ ، بخاري كتاب التهجد ج۱ ص ۱۶۰ باب التصفيق للنساء ، ترمذي ابواب الصّلوة ج۱ ص ۸۵ باب ماجاء ان التسبيح للرجال والتصفيق للنساء ، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱ ص ۱۳۵ باب التصفيق في الصّلوة ، نسائي كتاب السّهو ج۱ ص ۱۸۸ باب التسبيح في الصّلوة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ج۱ ص ۷۳ باب التسبيح للرجال في الصّلوة ...الخ ، مسند احمد ج۲ ص ۲۶۱ .

لِلنِّسَاءِ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : او د سهل بن سعد نِ الساعدي رضي الله عنه نه روایت دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم بني عمرو ابن عوف ته د دوي تر منځ د صلحي د پاره تشریف ویوړ نو د مانځه وخت نزدي شو نو ابي بکر ته مؤذن راغي نو ورته وي ویل چې آیا ته خلکو ته مونځ کوي چې زه اقامت وکړم هغه وویل چې هو نو ابوبکر صدیق رضي الله عنه مونځ شروع کړو او خلک هم په مانځه کې وُ نو رسول الله صلی الله علیه وسلم تشریف راوړ نو وي چول صفونه تر دي پوري چې د صفونو په چاودونو کې اول صف ته اورسیده او په اول صف کې اودریده نو خلکو لاسونه وُټقول او ابوبکر صدیق رضي الله عنه بل هیڅ طرف ته توجه او نظر نه کاوه او په خشوع سره ئي خپل مونځ ادا کاوه نو کله چې خلکو د لاسونو پړقول زیات کړل نو ابوبکر صدیق رضي الله عنه نظر واچاوه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم ئي ولیده نو ابوبکر صدیق رضي الله عنه ته رسول الله صلی الله علیه وسلم اشاره وفرمایله چې په خپل ځاي اوسه نو ابوبکر صدیق رضي الله عنه دواړه لاسونه اوچت کړل او د الله جل شانه حمد او شکریه ئي په هغه څه باندي اداء کړه په کوم شئ چې ده ته رسول الله صلی الله علیه وسلم امر کړي وُ د دي وجهي نه بیا ابوبکر صدیق رضي الله عنه راروسته شو تر دي پوري چې په صف کې برابر وُدریده او نبي کریم صلی الله علیه وسلم مخکې شو نو مونځ ئي وفرمایه بیا چې د مانځه نه فارغ شو نو وي فرمایل چې اي ابابکره په خپل ځاي باندي د پاتي کیدو نه څه شي منع کړي کله چې درته ما امر وکړو ابوبکر صدیق رضي الله عنه وویل چې د ابي قحافه د ځوي ذ پاره څه مناسب دي چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخکې مونځ وکړي نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل څه وجه ده چې ما تاسي دیر په لاسونو پړقوونکي ولیدئ د چا په مانځه کې چې څه پیدا شي نو هغه دي تسبیح ووائي بي شکه چې هغه تسبیح ووائي نو امام هغه طرف ته متوجه شي او په تحقیق تصفیق او لاس پړقول د ښځو د پاره دي . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي .

## دکلماتو تشریح :

"التفیق والتصفیح" په مونځ کې دلاس پړقولو دوه طریقي دي :

(۱) دښي لاس دوه ګوتي د چپ لاس په ورغوي باندې ووهلې شي .

دیو لاس دورغوي شا دبل لاس دورغوي په دننه حصه باندې ووهلې شي .

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۴ باب من دخل ليؤم الناس فجاء الامام الاول ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۹ باب تقديم الجماعة من يصلي بهم اذا تاخر الامام ...الخ .

**تصفيق مذموم** : دادې چې ديو لاس دورغوي دننه حصه دبل لاس دورغوي دننه حصه باندې ووهلې شي چې ددې دوجې نه آواز په زور سره پيدا کيږي . دادلهو لعب قبيلې نه دې او اولنې تصفيق دتنبيه لپاره دې .

## په مونځ کې چې کله خبره راشي نو مقتدي دې څه اوکړي ؟

(۱) دجمهورو په نزد که امام ته په مونځ کې څه سهوه راشي نو که دده نه وروسته سړي وي نو هغه دې سبحان الله په ذريعې سره امام لره متوجه کړي او که مقتدي ښځه ده نو هغه دې دلاس په پړقولو سره متوجه کړي .

(۲) امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي که لقمه ورکونکې سړې وي يا ښځه دواړه به تسبيح وايي .

**دجمهورو دليل** :حديث "التسبيح للرجال والتصفيق للنساء" .

دامام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ تاويل : دجمهورو خلاف دحديث مطلب دادې چې دمونځ نه بهر تسبيح مردانه فعل دې او تصفيق زنانه فعل دې .

**جواب** : دباب دويم حديث " مَن نَابَه شَيءٌ فِي صَلَاتِهٖ فَلیسَبِّحْ فَإنَّه إذَا سَبَّحَ التَفَتَ إلَيه وَ إنَّمَا التَّصفِيقُ لِلنِّسَاءِ" نه دجمهوروالا دمطلب تائيد کيږي ځکه چې په دې کې صراحة په مونځ کې دننه سړو لره تسبيح او ښځو لره تصفيق (لاس پړقول) حکم دې . (الدر المنضود)

# ﴿بَابُ النَّهيِ عَنِ الكَلَامِ فِي الصَّلَاةِ﴾

## په مانځه کې دخبرو نه دمنع باب :

﴿۵۲۶﴾ عَن زَيدِ بنِ أرقَمَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ قَالَ كُنَّا نَتَكَلَّمُ فِي الصَّلَاةِ يُكَلِّمُ الرَّجُلُ صَاحِبَه وَ هوَ إلَى جَنبِهٖ فِي الصَّلَاةِ حَتّٰى نَزَلَت وَ قُومُوا لِلّٰهِ قَانِتِينَ فَأمَرَنَا بِالسُّكوتِ رواه الجماعة الا ابن ماجه و زاد مسلم وابوداود و نهينا عن الكلام .[1]

**ترجمه** : حضرت زيد ابن ارقم رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ وايي دي چې مونږ به په مانځه کې خبرې کولې يو سړي به په مانځه کې د خپل ملګري سره په داسې حال خبري کولي چې د ده په خوا کې به په مانځه کې ؤ دا

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۱ص ۱۶۰باب ما ينهى من الكلام في الصلوة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۴ باب تحريم الكلام في الصلوة ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۲ باب في نسخ الكلام في الصلوة ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۳۷ باب النهي عن الكلام في الصلوة ، نسائي كتاب السهو ج۱ص ۱۸۱ باب الكلام في الصلوة ، مسند احمد ج۴ ص ۳۶۸.

کار ترهغې پورې وُ ترڅو چې د ( وقوموا لله قانتين ) ایت نازل شو نو مونږ ته په سکوت او چپ کیدو باندې امر وکړې شو . د دې حدیث روایت یو جماعت کړې دې خو ولې ابن ماجه نه دې روایت کړې او مسلم او ابوداؤد دا الفاظ زیات کړې دې چې (ونهينا عن الكلام ) یعني او منع کړې شو مونږ د خبرو نه .

﴿۵۲۷﴾ عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَهوَ فِي الصَّلَاةِ فَيَرُدُّ عَلَينَا فَلَمَّا رَجَعنَا مِن عِندِ النَّجَاشِي سَلَّمنَا عَلَيهِ فَلَم يَرُدَّ عَلَينَا فَقُلنَا يَا رَسُولَ الله كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيكَ فِي الصَّلَاةِ فَتَرُدُّ عَلَينَا فَقَالَ إِنَّ فِي الصَّلَاةِ شُغلًا رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې مونږ به په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ باندې په داسې حال کې سلام اچاوه چې هغه به په مانځه کې وُ نو هغه به مونږ ته د سلام جواب راکړ نو کله چې مونږ د نجاشي نه راواپس شو نو مونږ په نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ باندې سلام واچاوه نو مونږ ته ئې د سلام جواب رانکړ نو مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته وویل چې اې د الله جل شانه رسوله مونږ به په تاسو باندې سلام اچاوه او تاسو به مونږ ته د سلام جواب راکاوه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې بې شکه په مانځه کې مشغولیت دې . د دې حدیث روایت شیخینو کړې دې .

﴿۵۲۸﴾ وَعَنهُ قَالَ كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَى رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي الصَّلَاةِ قَبلَ أَن نَأتِيَ أَرضَ حَبشَةَ فَيَرُدُّ عَلَينَا فَلَمَّا رَجَعنَا سَلَّمتُ عَلَيهِ وَهوَ يُصَلِّي فَلَم يَرُدَّ عَلَيَّ فَأَخَذَنِي مَا قَرُبَ وَمَا بَعُدَ فَجَلَستُ حَتَّى قَضَى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ الصَّلَاةَ فَقُلتُ لَهُ يَا رَسُولَ الله قَد سَلَّمتُ عَلَيكَ وَأَنتَ تُصَلِّي فَلَم تَرُدَّ عَلَى السَّلَامَ فَقَالَ إِنَّ اللهَ قَد يُحدِثُ مِن أَمرِهِ مَا يَشَاءُ وَإِنَّ مِمَّا أَحدَثَ لَا تَكَلَّمُوا فِي الصَّلَاةِ رواه الحميدي في مسنده وابوداود والنسائي وآخرون واسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : او د حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روایت دې ویلي ئې دې چې مونږ به په رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ باندې په مانځه کې حبشې ته زمونږ د تلو نه مخکې سلام اچاوه او رسول اکرم

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۱ص ۱۶۰ باب ما ينهى من الكلام في الصلوة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۴ باب تحريم الكلام في الصلوة .....الخ .

(۲) مسند حميدي ج۱ص۵۲ رقم الحديث ۹۴ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۳۳ باب رد السلام في الصلوة ، نسائي كتاب السهو ج۱ص ۱۸۱ باب الكلام في الصلوة .

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به مونږ ته د سلام جواب راكاوه نو كله چې مونږ د حبشې نه راواپس شو نو ما په رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې په داسې حال كې سلام واچاوه چې هغه په مانځه كې ؤ نو ماته ئې د سلام جواب رانه كړ نو د لرې او نزدې فكرونو راگير كړم چې په كومه يوه خبره باندې هغه زمانه ناراضه شوې دې نو زه كيناستم چې رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مانځه نه فارغ شو نو ما ورته وويل چې اې د الله جل شانه رسوله په تحقيق ما په تاسو باندې سلام واچاوه تاسو مونځ كاوه نو تاسو ماته د سلام جواب رانكړ نو رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې په تحقيق خامخا الله جل شانه چې څه وغواړي نوي نوي حكمونه نازلوي او د هغه نوي حكمونو نه ئې چې كوم نوي حكم نازل فرمايلې دې هغه دا دې چې په مانځه كې خبرې مه كوئ. د دې حديث روايت حميدي په خپل مسند كې او ابوداؤد او نسائي او نورو محدثينو كړې دې او اسناد ئې صحيح دې.

﴿۵۲۹﴾ وَ عَن مُعَاوِيَةَ بنِ الحَكَمِ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ بَينَا اَنَا اُصَلِّي مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذ عَطَسَ رَجُلٌ مِنَ القَومِ فَقُلتُ يرحَمُكَ الله فَرَمَانِي القَومُ بِأَبصَارِهِم فَقُلتُ وَاثُكلَ اُمِّيَاه مَا شَأنُكم تَنظُرُونَ اِلَيَّ فَجَعَلُوا يَضرِبُونَ بِأَيدِيهِم عَلَى اَفخَاذِهِم فَلَمَّا رَأَيتُهُم يُصَمِّتُونَنِي لَكِنِّي سَكَتُّ فَلَمَّا صَلَّى رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَبِأَبِي هُوَ وَ اُمِّي مَا رَأَيتُ مُعَلِّمًا قَبلَه وَلَا بَعدَه اَحسَنَ تَعلِيمًا مِنه فَوَ الله مَا كَهَرَنِي وَلَا ضَرَبَنِي وَلَا شَتَمَنِي قَالَ اِنَّ هٰذِهِ الصَّلَاةَ لَا يَصلُحُ فِيهَا شَيءٌ مِن كَلَامِ النَّاسِ اِنَّمَا هِيَ التَّسبِيحُ وَالتَّكبِيرُ وَقِرَاءَةُ القُرآنِ اَو كَمَا قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُلتُ يَا رَسُولَ الله اِنِّي حَدِيثُ عَهدٍ بِجَاهِلِيَّةٍ وَقَد جَاءَ الله بِالِاسلَامِ وَاِنَّ مِنَّا رِجَالًا يَأتُونَ الكُهَّانَ قَالَ فَلَا تَأتِهِم قَالَ وَمِنَّا رِجَالٌ يَتَطَيَّرُونَ قَالَ ذَاكَ شَيءٌ يَجِدُونَه فِي صُدُورِهِم فَلَا يَصُدَّنَّهُم قَالَ قُلتُ وَمِنَّا رِجَالٌ يَخُطُّونَ قَالَ كَانَ نَبِيٌّ مِنَ الاَنبِيَاءِ يَخُطُّ فَمَن وَافَقَ خَطَّه فَذَاكَ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: د حضرت معاويه ابن حكم سلمي رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دې هغه ويلي دي چې ما د نبي كريم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره مونځ كاوه چې د قوم د خلكو نه يو سړي اټروشي او انكشي وكړ نو ما په جواب كې ورته وويلي چې الله جل شانه دې په تا باندې رحم وكړي نو قوم زه په خپلو ستركو ووېشتم نو ما وويل چې ميانډې دې ئې شي څه وجه ده چې ماته گورئ دوي شروع وكړه او خپل پټونه او ورنونه ئې په دواړو لاسونو باندې وهل كله چې ما وكتل چې دوي ما چپكوي خو ولې زه چپ شوم

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ صـ ۲۰۳ باب تحريم الكلام في الصلوة.

نو کله چې رسول الله ﷺ مونځ وکړ زما مور او پلار د هغه نه قربان شه مانه د ده نه مخکې او نه د ده نه روسته څوک داسي استاذ او معلم ليدلي دي چې د ده نه په تعليم او تربيه کې ښه او بهتر وي قسم مي دي په الله جل شانه وي چې نه ئي زه رټلي يم او نه ئي زه وهلي يم او نه ئي ماته کنځل کړي دي رسول الله ﷺ وفرمايل چې بې شکه دا مونځ د هيڅ يو شئ صلاحيت نه لري چې په دي کې د خلکو سره خبري وشي په تحقيق په دي مانځه کې تسبيح دي . تکبير دي او د قرآن کريم قرآت دي يا لکه چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي ما وويل چې اې د الله جل شانه رسوله څما وخت او زمانه د جاهليت د زماني سره نزدې او نوي ده يعني زما لږ وخت کيږي چې مسلمان شوي يم په مونږ کې څه داسي خلک دي چې کاهنانو ته ورځي يعني د غيبونه خبرو کولو والا ته ورځي هغه وفرمايل چې ته هغو ته مه ورځه حضرت معاويه رضي الله عنه ويلي دي چې په مونږ کې څه داسي خلک دي چې بد فالي نيسي رسول الله ﷺ وفرمايل چې دا يو داسي شئ دي چې په خپلو سينو او زړونو کې ئي مدرک کوي دغه وسوسه هغو ته هيڅ ضرر نشي رسولي حضرت معاويه رضي الله عنه ويلي دي ما وويل چې په مونږ کې داسي خلک شته چې خطونه او کرهي راکالأي نو نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د انبياؤ نه يو نبي داسي ؤ چې خطونه به ئي راهکل چې د چا د خط سره به موافق او برابر شو نو هغه به صحيح ؤ . دا حديث مسلم روايت کړي دي .

## په مونځ کې دخبرې اترې کولو حکم

په دې باندې خو ټول ائمه متفق دي چې ابتداء هر قسم کلام په مونځ کې د دنه جائز وو ، البته وروسته بيا منسوخ شو ، ليکن د دې "ملسوخ کلام" په تفصيل کې اختلاف دې :

(۱) امام ابو حنيفه رحمه الله او امام احمد رحمه الله په نزد کلام في الصلاة مطلقا لږ وي او که ډير عمدا وي او که نسيانا ټول منسوخ دي ، او اوس ناجائز او مفسد صلاة دې .

(۲) امام شافعي رحمه الله فرمايي که کلام نسيانا وي نو د دې گنجائش شته دې او هغه جائز دې .

(۳) امام مالک رحمه الله فرمايي که کلام قليل قصدا دمونځ داصلاح لپاره وي نو جائز دې او که همداسي نسيانا وي نو جائز نه دي .

### دامام ابو حنيفه رحمه الله او داحمد رحمه الله دليل :

ددوارو حضراتو په حق کې ډير زيات دليلونه دي ، اجمالا دباب دلائل ملاحظه کړئ :

۱... دزيد بن ارقم رضي الله عنه حديث : "نزلت ( وقوموا لله قانتين) فأمرنا بالسكوت ونهينا عن الكلام" مطلقا په مونځ کې دخبرو نه منع کړې شوي ده .

۲.... دابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث ، (۱) "فَلَمَّا رَجَعنَا مِن عِندِ النَّجَاشِي سَلَّمنَا عَلَيه فَلَم يَرُدَّ عَلَينَا فَقُلنَا يَارَسُولَ الله كُنَّا نُسَلِّمُ عَلَيكَ فِي الصَّلَاة فَتَرُدُّ عَلَينَا فَقَالَ إِنَّ فِي الصَّلَاة شُغلًا".

(۲) "إِنَّ اللهَ قَد يُحدِثُ مِن أَمرِهِ مَا يَشَاءُ وَإِنَّ مِمَّا أَحدَثَ لَا تَكَلَّمُوا فِي الصَّلَاة" مطلقا دكلام نه دممانعت والا دا واقعه دحبشي دهجرت نه په واپسئ باندې په مدينه منوره کې مخې ته راغلي وه.

۳.... دمعاويه بن حكم حديث ، "إِنَّ هٰذِهِ الصَّلَاة لَا يَصلُحُ فِيهَا شَيءٌ مِن كَلَامِ النَّاسِ" دحديث الفاظ ډير په وضاحت سره وايي چې اوس دهيڅ قسمه كلام گنجائش نشته . (امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ومالک رَحِمَهُ اللهُ دليل او د جمهورو طرفنه ددې جواب دراروان باب تر لاندې اوګورئ)

## ﴿بَابُ مَا استَدَلَّ بِهِ عَلَى أَنَّ كَلَامَ السَّاهِي وَكَلَامَ مَن ظَنَّ التَّمَامَ لَا يُبطِلُ الصَّلَاة﴾

**دا باب دې په بيان د هغه احاديثو کې چې په هغې باندې دليل نيولی شوي دې چې د سهوه كوونكي خبرې او كلام او د هغه چا خبرې چې د هغې په خپل مانځه باندې د پوره والي يقين وي موقع نه باطلوي**

﴿۵۵۰﴾ عَن أَبِي هُرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِحدَى صَلَاتَي العَشِيِّ قَالَ ابنِ سِيرِينَ قَد سَمَّاهَا أَبُوهُرَيرَة وَلٰكِن نَسِيتُ أَنَا صَلَّى بِنَا رَكعَتَينِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ إِلَى خَشَبَةٍ مَعرُوضَةٍ فِي المَسجِدِ فَاتَّكَأَ عَلَيهَا كَأَنَّه غَضبَانُ وَوَضَعَ يَدَهُ اليُمنٰى عَلَى اليُسرٰى وَشَبَّكَ بَينَ أَصَابِعِه وَوَضَعَ خَدَّهُ الأَيمَنِ عَلَى ظَهرِ كَفِّهِ اليُسرٰى وَخَرَجَتِ السُّرعَانُ مِن أَبوَابِ المَسجِدِ فَقَالُوا قُصِرَتِ الصَّلَاة وَفِي القَومِ أَبُوبَكرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا فَهَابَا أَن يُكَلِّمَاه وَفِي القَومِ رَجُلٌ فِي يَدَيه طُولٌ يُقَالُ لَه ذُو اليَدَينِ قَالَ يَارَسُولَ الله أَنَسِيتَ أَم قُصِرَتِ الصَّلَاة قَالَ لَم أَنسَ وَلَم تُقصَر فَقَالَ أَكَمَا يَقُولُ ذُو اليَدَينِ فَقَالُوا نَعَم فَتَقَدَّمَ فَصَلّٰى مَا تَرَكَ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثلَ سُجُودِهِ أَو أَطوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاسَه وَكَبَّرَ ثُمَّ كَبَّرَ وَسَجَدَ مِثلَ سُجُودِهِ أَو أَطوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رَاسَه وَكَبَّرَ فَرُبَّمَا سَأَلُوه ثُمَّ سَلَّمَ فَيَقُولُ نُبِّئتُ أَنَّ عِمرَانَ بنِ حُصَينٍ قَالَ ثُمَّ سَلَّمَ رواه الشيخان.[1]

قَالَ النِّيمَوِي إِنَّ هٰذِهِ الرِّوَايَة وَإِن كَانَت فِي الصَّحِيحَينِ لٰكِنَّهَا مُضطَرِبَةٌ بِوُجُوه وَفِي البَابِ أَحَادِيثُ أُخرىٰ كُلُّهَا لَا تَخلُو عَن نَظَرٍ.

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۱۳ فصل من صلّى خمسا او نحوه فليسجد سجدتين ...الخ ، بخاري كتاب الصّلوة ج۱ص۶۹ باب تشبيك الاصابع في المسجد وغيره.

**ترجمه :** حضرت ابو هریره رضي الله عنه ویلي دي چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې د یو د دوه ؤ مونځونو نه یو مونځ وکړ ابن سیرین رحمه الله ویلي دي چې ماته حضرت ابو هریره رضي الله عنه د دغه وخت د مانځه نوم ښودلی ؤ خو ولي ځما نه هیر شوي دي مونږ ته ئي دوه رکعته وکړل بیا ئي سلام وګرځاوه بیا په مسجد کې یو پروت لرګي ته ؤدریده هغي ته ئي تکیه وکړه ګویا کې هغه په غصه ؤ او هي مبارک لاس ئي په چپ لاس باندي ایښي ؤ او د یو لاس مبارک ګوتي ئي ذ بل لاس په ګوتو کې ورکړي وي او د مبارک مخ خي طرف ئي د چپ لاس په شا باندي ایخي ؤ او د مسجد د دروازو نه په جلتئ سره ؤوات نو صحابه کرامو وویل چې مونځ لنډ شو او په خلکو کې حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه او عمر فاروق رضي الله عنه موجود ؤ او دا دواړه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د خبرو کولو نه وه یریدل او په خلکو کې یو سړي چې د هغه په لاسونو کې څه قدر اوږدوالي ؤ چې هغه ته ذوالیدین ویلي شو وویل چې یا رسول الله آیا ستاسي نه هیر شوي او که مونځ لنډ شوي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې نه ځما نه هیر شوي دي او نه مونځ لنډ شوي دي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم نورو خلکو ته وفرمایل چې خبره همداسي ده لکه چې ذوالیدین ئي وائي نو خلکو وویل چې هو نو مخکې شو پاتي مونځ ئي ادا کړو بیا ئي سلام وګرځاوه بیا ئي تکبیرووایه بیا ئي د خپلو نورو سجدو په شان سجده وکړه او یا ئي د هغي نه اوږده سجده وکړه بیا ئي سر مبارک را اوچت کړ او تکبیر ئي ووایه بیا ئي تکبیر ووایه او د خپلو نورو سجدو په شان ئي سجده وکړه او یا ئي د هغي نه اوږده سجده وکړه بیا ئي سر مبارک را اوچت کړ او تکبیر ئي ووایه په زیاتره وختونو کې به خلکو د ابن سیرین رحمه الله پوښتنه کوله بیا ئي سلام وګرځاوه نو ابن سیرین رحمه الله وائي چې ماته خبر راکړي شوي چې عمران بن حسین رضي الله عنه ویلي دي چې بیا ئي سلام وګرځاوه . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي .

نیموي رحمه الله ویلي دي چې دغه روایت اګر چې صحیحینو روایت کړي دي، خو ولي دا په ډیرو وجوهو سره مضطرب دي او په باب کې نور احادیث هم شته خو ولي هغه ټول د نظر او کلام نه خالي نه دي.

## په مسئلة الباب کې د امام شافعي رحمه الله دلیل:

۱... حدیث د ذوالیدین په کوم کې چې ډیر کلام موندلې شوې دې لیکن حضور صلى الله عليه وسلم د مونځ اعاده نه ده کړي بلکې په همدې مونځ یي بناء کړي او باقي مونځ یي پوره کړې معلومه شوه چې نسیانا کلام مفسد د صلاة نه دې.

۲... قیاس: څنګه چې روژه خوراک څښاک سره نه فاسدیږي مونځ هم نه دي فاسدیدل پکار .

**دامام مالک رَحِمَهُ الله دليل:** نفس حديث دذواليدين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، البته هغه دې لره كلام قليل او اصلاح باندې محمولوي .

**حديث دذواليدين توجيه عندالحنابله :**

حديث دذواليدين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ظاهره دحنفيه او دحنابله ددواړو خلاف دې ليكن حنابلو دكلام في الصلاة ديو خاص شكل استثناء كړي ده لهذا هغه داشكال نه بچ شو، هغه شكل دادې كه يو كس كه هغه امام وي يا مقتدي په مونځ كې دې خبري اوكړي په داسي حال كې چې دا مونځ كونكې دا اوګڼي چې زما لمونځ پوره شوي دى كه هغه په واقع كې پوره شوې هم نه وي نو دا صورت جائز دې او دلته په دې قصه كې همداسې شوي ده . ځكه چې دا خو ظاهره ده چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همدا ګمان كولو چې ما مونځ پوره كړو ځكه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايل : " لم انس ولم تقصر " ليكن ذواليدين هم دا ګمان كولو چې مونځ پوره شو او په همدې ګمان يې دا وويل .

په اصل كې هغه دا ګمان كولو چې روزانه دنزول وحي په احكاماتو كې كمې او زياتې كيږي نو په ظاهره په مونځ كې قصر شوي دى او ځلور ركعتيز دوه شو خو بيا هم احتياطا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه يې پوښتنه اوكړه چې تاسو ته خو به نسيان نه دې شوې .

اوس پاتې احناف ، نو دهغه په نزد دكلام في الصلاة هيڅ صورت مستثنى نشته .

**دحنفيه توجيه او تقرير :**

هغه ددې جواب وركړې چې دا واقعه دكلام في الصلاة دنسخ نه مخكې وه ، دكلام في الصلاة نسخ ددې واقعې نه پس مدينه منوره كې شوې وه دنسخ څو قرائن دادي :

١... حضرت ذواليدين رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په غزوه بدر كې شهيد شوې وو لهذا دا واقعه به له دېنه مخكې وي .

٢... په دې كې مذكور دي چې " ثم قام الي خشبة في مقدم المسجد فوضع يده عليها ." ددې خشبي نه مراد استوانه حنانه دې كوم چې په دويمه هجري كې دمنبر نبوي دجوړولو نه پس په غزوه بدر نه مخكې دفن كړې شوې وو .

٣... په دې واقعه كې ډير داسې امور صادر شوي كوم چې دشوافعو په نزد هم مفسد صلاة دي لكه دمصلى نه لرې كيدل او منبر باندې ختل او كوزيدل كوم چې عمل كثير دې ، همدارنګه دجهت دقبلې نه اوړيدل او په بعضې روايتونو كې دي چې په حجره مباركه كې تشريف وړې وو لهذا معلومه شوه چې دا واقعه دهغه زمانې وه كوم وخت كې چې په مونځ كې ډير ګنجائش وو او عمل كثير او كلام وغيره ټول جائز وو .

**الزامي جواب** : دا حديث دچا هم موافق نه دې نه دشافعيو او نه دمالكيو ، ځكه چې شافعيه نسيانا دكلام دجواز قائله دي دا كلام نسيانا چرته وو دا خو عمده وو كما هو ظاهر ، او دمالكيو هم خلاف دې ځكه چې دذواليدين كلام ګويا چې داصلاح لمونځ په اراده سره وو ليكن " سرعان الناس" كلام " قصرت الصلاة " خو په دې غرض سره نه وو .

## ﴿بَابُ مَا اسْتُدِلَّ بِه عَلٰى جَوَازِ رَدِّ السَّلاَمِ بِالْاِشَارَةِ فِي الصَّلاَةِ﴾

## دا باب دې په بيان د هغه روايتونو كې چې په هغې سره په مانځه كې په اشاره سره د جواب وركولو په جواز باندې دليل نيولي شوي دي

﴿۵۵۱﴾ عَنْ اَبِي الزُّبَيْرِ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَرْسَلَنِي رَسُولُ الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ مُنْطَلِقٌ اِلٰى بَنِي الْمُصْطَلِقِ فَاَتَيْتُه وَهُوَ يُصَلِّي عَلٰى بَعِيْرِه فَكَلَّمْتُه فَقَالَ لِي بِيَدِه هٰكَذَا وَ اَوْمَأَ زُهَيْر بِيَدِه ثُمَّ كَلَّمْتُه فَقَالَ لِي هٰكَذَا وَ اَوْمَأَ زُهَيْرٌ اَيْضًا بِيَدِه نَحْوَ الْاَرْضِ وَ اَنَا اَسْمَعُه يَقْرَأُ يُوْمِي بِرَأْسِه فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ مَا فَعَلْتَ فِي الَّذِي اَرْسَلْتُكَ لَه فَاِنَّه لَمْ يَمْنَعْنِي اَنْ اُكَلِّمَكَ اِلَّا اَنِّي كُنْتُ اُصَلِّي رواه مسلم .(1) .

**ترجمه** : د ابو الزبير نه روايت دي چې حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه ويلي دي چې ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم پيغام راوليږلو په داسې حال چې هغه بني مصطلق ته روان ؤ نو زه ورغلم هغه په اوښ باندې مونځ كاوه نو ما د هغه سره خبرې وكړې نو ماته هغه د لاس په اشاره داسې ووېل او زهير په خپل لاس باندې اشاره وكړه بيا مې ورسره خبرې وكړې او ماته ئې داسې ووېل او زهير بيا هم په لاس سره ځمكې طرف ته اشاره وكړه او هغه چې قرأت كاوه ما اوريده او هغه په خپل سر مبارك باندې اشاره فرمايله نو كله چې د مانځه نه فارغ شو وې فرمايل د كوم كار د پاره چې ما ليږلي وې څه دې وكړل نو بې شكه شان د خبرې دا دې نه اُوم منع كړې زه چې تاسې سره خبرې وكړم مګر دې خبرې چې زه په مانځه كې اُوم . د دې حديث روايت مسلم كړې دې .

﴿۵۵۲﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قُلْتُ لِبِلاَلٍ كَيْفَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَرُدُّ عَلَيْهِمْ حِيْنَ كَانُوْا يُسَلِّمُوْنَ عَلَيْهِ وَهُوَ فِي الصَّلاَةِ قَالَ كَانَ يُشِيْرُ بِيَدِه رواه الترمذي و ابوداود و اسناده صحيح .(2)

---

(1) مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۰۴ باب تحريم الكلام في الصلوة ...الخ .

(2) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـــ ۸۵ باب ماجآء في الاشارة في الصلوة، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۳۳ باب رد السلام في الصلوة .

**ترجمه** : حضرت ابن عمر ویلي دي چې ما حضرت بلال رضي الله عنه ته وویل چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به په مانځه کې مسلمانانو ته څنګه د سلام جواب ورکاوه چې کله به مسلمانانو په ده باندي سلام واچاوه حضرت بلال رضي الله عنه وویل چې په مبارک لاس به ئې اشاره کوله د دي حدیث روایت ترمذي او ابوداؤد کړي او اسناد ئې صحیح دي.

**﴿۵۵۳﴾** وَ عَنْه عَنْ صُهيبٍ رضي الله عنه قَالَ مَرَرْتُ بِرَسُولِ الله صلی الله علیه وسلم وَهوَ يصَلِّي فَسَلَّمْتُ عَلَيه فَرَدَّ علی إشَارَة وَ قَالَ لاَ أعْلَمُ إلَّا أنَّه قَالَ إشَارَة بِإصْبَعِه رواه الثلاثة و حسنه الترمذي.[1]

**ترجمه** : او د ابن عمر رضي الله عنه نه روایت دي چې حضرت صهیب رضي الله عنه ویلي دي چې زه په رسول الله صلی الله علیه وسلم باندي تیر شوم او هغه مونځ کاوه نو ما په هغه سلام واچوه نو هغه ماته په اشاره سره د سلام جواب راکړ حضرت ابن عمر رضي الله عنه ویلي چې زه په هم دي پوه یم چې هغه په مبارکي ګوتي سره اشاره وفرمایله.

**﴿۵۵۴﴾** وَ عَنْه قَالَ دَخَلَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم مَسْجِدَ بَنِي عَمرِو بْنِ عَوفٍ وَهوَ مَسْجِدُ قُبَا لِيصَلِّي فِيه فَدَخَلَ مَعَه رِجَالٌ مِنَ الْأنْصَارِ يسَلِّمُونَ عَلَيه وَ دَخَلَ مَعَهمْ صُهيبٌ فَسَألْتُه كَيفَ كَانَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم يصْنَعُ إذَا سَلَّمَ عَلَيهمْ وَهوَ فِي الصَّلاَة قَالَ كَانَ يشِيرُ بِيدِه. اخرجه الحاكم في المستدرك و قال علی شرطهما.[2]

**ترجمه** : او حضرت ابن عمر رضي الله عنه ویلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د بني عمرو بن عوف مسجد یعني مسجد قبا ته د مانځه د پاره داخل شو نو د هغه سره د انصارو کسان هم ننوتل هغه ته ئې سلام واچوه او د هغو سره حضرت صهیب رضي الله عنه هم ننوتي وُ ما د صهیب رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله په مانځه کې وُ او چا به پري سلام و:چاوه څه به ئې کول حضرت صهیب رضي الله عنه وویل چې په مبارک لاس به ئې اشاره فرمایله. دا حدیث حاکم په مستدرک کې خارج کړي دي او ویلي ئې دي چې دا حدیث د مسلم او بخاري په شرط باندي دي.

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۱۳۳ باب رد السلام في الصلوة، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۸۵ باب ماجآء في الاشارة في الصلوة، نسائي کتاب السهو ج۱ص ۱۷۷ باب رد السلام بالاشارة في الصلوة.

(۲) مستدرك حاكم كتاب الهجرة ج۳ص۱۲ باب استقبال الانصار لرسول الله صلی الله علیه وسلم واصحابه ...الخ.

(۵۵۵) وَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُشِيْرُ فِي الصَّلَاةِ رواه الجماعة ابوداود و آخرون و اسناده صحيح.[۱]

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم به په مانځه کې اشاره کوله. د دي حديث روايت ابوداؤد او نورو محدثينو کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

**مسئلة الباب** : په اشاره سره په مانځه کې د سلام د جواب ورکولو په باره کې پنځه احاديث ذکر شوي دي او په دي باره کې د ټولو علماؤ اتفاق دي چې په اشاره سره د سلام په جواب باند مونځ نه فاسديږي خو ولې په کراهت او عدم کراهت کې اختلاف دي.

**مذهبي اختلاف** : د امام مالک رحمه الله او امام احمد بن حنبل رحمه الله په نزد په يو روايت کې په اشاره د سلام جواب په غير کراهته جائز دي او د امام شافعي رحمه الله په نزد مستحب دي.

(۲) مذهب : د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد په مانځه کې به اشاره سره د سلام جواب مکروه دي او په يو روايت کې امام مالک رحمه الله او په يو روايت امام احمد رحمه الله هم د دي کراهت قائل دي او مراقي الفلاح په اشاره سلام د مانځه په مکروهاتو کې شمار کړي دي او په لسان سره د سلام جواب ورکول په مانځه کې منع دي ځکه چې په لسان سره نطق کول داد کلام الناس نه دي او په کلام الناس سره مونځ فاسديږي.

**د جواز ورکوونکو دليلونه** : د دي باب (۵۵۱ نه تر ۵۵۵) شماري پورې پنځه واړه روايتونه د جواز ورکوونکو د پاره مستدل دي. د دي باب اولني ۵۵۱ روايت چې ابو زبير د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت کړي په هغي کې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مانځه په حالت کې په اشاري سره د سلام جواب ورکول ذکر کړي شوي دي. او په (۵۵۲) حديث کې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د حضرت بلال رضي الله عنه نه په اشاره سره د سلام د جواب په باره کې فتوى وغوخته په جواب کې ئي ورته وويل چې :

(كان يشير بيده) يعني نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سلام جواب په اشاره سره ورکاوه. (د امام ابو حنيفه رحمه الله دليل او د ائمه ثلاثه رحمه الله جواب را روان باب تر لاندې يې او ګورئ)

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج ۱ ص ۱۳۶ باب الاشارة في الصلوة.

# ﴿بَابُ مَا اسْتُدِلَّ بِهِ عَلَى نَسْخِ رَدِّ السَّلَامِ بِالْإِشَارَةِ فِي الصَّلَاةِ﴾

## باب دې په بيان د هغه احاديثو کې چې په هغې سره په مانځه کې په اشاره سره د سلام د جواب د ورکولو په نسخه باندې دليل نيولې شوې دې :

﴿۵۵۶﴾ عَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كُنْتُ أُسَلِّمُ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ فِي الصَّلَاةِ فَيَرُدُّ عَلَيَّ فَلَمَّا رَجَعْنَا سَلَّمْتُ عَلَيْهِ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيَّ وَقَالَ إِنَّ فِي الصَّلَاةِ شُغْلاً رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله رضي الله عنه ويلي دي چې ما به نبي کريم صلى الله عليه وسلم باندي سلام واچاوه په داسي حال کې چې هغه په مانځه ؤ نو ماته به ئي د سلام جواب راکړ خو کله چې مونږ د حبشي نه واپس راغلو ما په هغه باندي سلام واچاوه خو جواب ئي رانه کړ او وي فرمايل چې بې شکه په مانځه کې مشغوليت او مصروفيت دي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۵۵۷﴾ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَالِي أَرَاكُمْ رَافِعِي أَيْدِيكُمْ كَأَنَّهَا أَذْنَابُ خَيْلٍ شُمُسٍ أُسْكُنُوا فِي الصَّلَاةِ رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ته تشريف راوړ نو وي فرمايل چې څه وجه ده چې زه تاسي په داسي حال کې ګورم چې لکه د سرکشه اسونو د لکيو په شان مو لاسونه اوچت کړي دي په مانځه کې ارام اوسئ. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

### مسئلة الباب کې دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل :

د دي باب اولني حديث چې حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه روايت کړي دي هغه ويلي دي چې ما به کله په مانځه کې په رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي سلام واچاوه نو هغه به ماته جواب راکاوه خو ولي د حبشي د هجرت نه روسته ئي ماته د سلام جواب نه دي راکړي او فرمئيلي ئي دي چې بې شکه په مانځه کې مشغوليت او مصروفيت دي نو دا حديث د دي خبري پوخ دليل دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د سلام جواب په هغه وخت کې ورکاوه چې په مانځه خبري اتري ممنوع شوي نه وي نو کله چې په مانځه کې خبري کول ممنوع شوي نو سلام او د سلام جواب په لسان او په اشاره سره هم ممنوع شو .

---

(۱) بخاري کتاب التهجد والنوافل ج۱ص۱۶۲باب لايرد السلام في الصلوة ،مسلم کتاب المساجد ج۱صــ۲۰۴باب تحريم الکلام في الصلوة .
(۲) مسلم کتاب الصلوة ج۱صــ ۱۸۱ باب الامر بالسکون في الصلوة .

**دليل** :د حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه (۵۵۷) حديث هم د احنافو حضراتو مستدل دي په دي حديث شريف کې د اشاري نه ممانعت راغلي او د بدن د اطرافو په سکون او ازام سره پري حکم شوي دي او دغسي په حديث مبارک کې د خيل شمس الفاظ ذکر شوي چې د دي معني هغه اس ته ويلي شي چې د نارامئ په وجه بي واره سا اوباسي او که چرته سري د اشاري په وجه د کثير عمل مرتکب شي نو د احنافو په دي باندي فتوي کړي ده چې مونځ ئې فاسديږي .

**ائمه ثلاثه رحمهم الله د دليل رد** :

۱... داسلام په ابتداء کې هر قسمه سلام او دهغي جواب په مونځ کې جائز وو ليکن روسته بيا منسوخ شو کما في حديث ابن مسعود رضي الله عنه.

۲... حضرت بلال رضي الله عنه او صهيب رضي الله عنه وغير لره اشاري سره دسلام جواب ورکول هم دهغې زمانې سره متعلق وو .

۳... دجابر رضي الله عنه په حديث کې دلاس اشاره کلام او سلام نه دممانعت لپاره وه نه دسلام جواب .

## ﴿بَابُ الْفَتْحِ عَلَى الْإِمَامِ﴾

## امام ته د فتح ورکولو باب

﴿۵۵۸﴾ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم صَلّٰى صَلَاةً فَقَرَأَ فِيهَا فَلُبِسَ عَلَيْهِ فَلَمَّا انْصَرَفَ قَالَ لِأُبَيٍّ أَصَلَّيْتَ مَعَنَا قَالَ نَعَمْ قَالَ فَمَا مَنَعَكَ رواه ابوداود والطبراني وَ زَادَ أَنْ تَفْتَحَ عَلَيَّ واسناده حسن .[1]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونځ اداء کړ نو په هغې کې ئې قرأت وکړ نو په نبي اکرم صلى الله عليه وسلم قرأت ګډوډ شو نو کله چې د مانځه نه فارغ شو نو حضرت أبي رضي الله عنه ته ئې وفرمايل آيا تا مونږ سره مونځ وکړ هغه وويل چې هو هغه وفرمايل چې ته څه شي منع کړي .رواه ابوداؤد والطبراني وزاد ان تفتح علي واسناده صحيح د دي حديث روايت ابوداؤد او طبراني کړي او دا خبره ئې زياته کړي ده ته څه شي منع کړي وي چې ماته دي فتح راکړي وي .

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـ ۱۳۱ باب الفتح على الامام ، مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۲صـ ۷۰ باب تلقين الامام نقلا عن الطبراني في الکبير .

# ﴿بَابٌ فِي الْحَدَثِ فِي الصَّلَاةِ﴾

## په مانځه کې د بې اودسه کيدو باب

﴿٥٥٩﴾ عَنْ عَلِيِّ بْنِ طَلْقٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا فَسَا أَحَدُكُمْ فِي الصَّلَاةِ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ وَلْيُعِدْ صَلَاتَهُ رواه الثلاثة و حسنه الترمذي و ضعفه ابن القطان .[1]

**ترجمه :** حضرت علي ابن طلق رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې يو ستاسي نه په مانځه کې بې اوازه هوا خارج شي نو د مانځه نه دې وګرځي اودس دې وکړي او مونځ دې راوګرځوي د دې حديث روايت دريو محدثينو کړي دي او ترمذي حسن ګڼړلي دي او ابن قطان ضعيف ګڼړلي دي .

﴿٥٦٠﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَصَابَهُ قَيْءٌ أَوْ رُعَافٌ أَوْ قَلَسٌ أَوْ مَذْيٌ فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ وَهُوَ فِي ذٰلِكَ لَا يَتَكَلَّمُ رواه ابن ماجه و صححه الزيلعي وفي اسناده مقال .[2]

**ترجمه :** حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې څوک قې وکړي او يا ئې د پوزو نه وينه لاړه شي او يا اولټئ وکړي او يا تري مذي لاړه شي نو راوګرځي اودس دې وکړي او په هغه مانځه باندې دې بنا وکړي چې هغه په دې کې خبرې نه وي کړي . د دې حديث روايت ابن ماجه کړي او زيلعي صحيح ګڼړلي دي او د دې په اسناد کې مقال دی .

﴿٥٦١﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ إِذَا رَعُفَ انْصَرَفَ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ رَجَعَ فَبَنٰى وَلَمْ يَتَكَلَّمْ رواه مالك و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه :** د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دی چې کله به د ده د پوزو نه وينه لاړه نو وُبه ګرځيده او اودس به ئې وکړ بيا به واپس راغي او بنا به ئې وکړه او خبرې به ئې نه وي کړي . د دې حديث روايت مالک رحمه الله کړي دی او اسناد ئې صحيح دی .

---

(١) ابوداؤد كتاب الصّلوة ج١ص ١٤٣ باب اذا احدث في صلوته ، ترمذي ابواب الرضاع ج١ص ٢٢٠ باب ماجآء في كراهية اتيان النسآء في ادبارهن ، دارقطني ، كتاب الصّلوة ج١ص ١٥٣ باب الوضوء من الخارج من البدن ...الخ .

(٢) ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوة والسنة فيها ص ٨٧ باب ماجآء في البناء على الصّلوة ، نصب الراية ج١ص ٣٨.

(٣) مؤطا امام مالك كتاب الطهارة ص ٢٧ باب ماجآء في الرعاف والقيء .

﴿۵۶۲﴾ وَ عَنه قَالَ إِذَا رَعُفَ الرَّجُلُ فِي الصَّلَاةِ أَوْ ذَرَعَهُ القَيْءُ أَوْ وَجَدَ مَذْيًا فَإِنَّه يَنْصَرِفُ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ يَرْجِعُ فَيَتِمُّ مَا بَقِيَ عَلَىٰ مَا مَضَىٰ مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه وېلي چې كله په مانځه كې د سړي د پوزو نه وينه لاړه شي او يا التي وكړي او يا مذي پيدا كړي نو هغه دي وګرځي او اودس دي وكړي بيا دي راشي نو پاتي مونځ دي په تير شوي مونځ باندي پوره كړي تر څو پوري ئي چې خبري نه وي كړي . د دي حديث روايت عبدالرزاق كړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۵۶۳﴾ وَ عَن عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ إِذَا وَجَدَ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاتِهِ فِي بَطْنِهِ رِزًّا أَوْ قَيْئًا أَوْ رُعَافًا فَلْيَنْصَرِفْ فَلْيَتَوَضَّأْ ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَىٰ صَلَاتِهِ مَا لَمْ يَتَكَلَّمْ رواه الدار قطني و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : او حضرت علي رضي الله عنه وېلي دي كله چې پيدا كړي يو ستاسي په خپل مانځه كې په خپله خېټه كې څه شئ محسوس كړي يا قي او يا د پوزو وينه نو ؤدي ګرځي او اودس دي وكړي او په تير شوي مونځ باندي دي خپل مونځ بنا كړي تر څو پوري ئي چې خبري نه وي كړي . د دي حديث روايت الدار قطني كړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۵۶۴﴾ وَ عَنه قَالَ إِذَا جَلَسَ مِقْدَارَ التَّشَهُّدِ ثُمَّ أَحْدَثَ فَقَدْ تَمَّ صَلَاتُه رواه البيهقي في السنن واسناده حسن .[3]

**ترجمه** : او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه وېلي دي چې كله يو سړي د تشهد په اندازه كيني بيا بي اودسه شي نو په تحقيق سره پوره شوي دي مونځ د ده . د دي حديث روايت په سنن كې بيهقي كړي او اسناد ئي حسن دي .

**دبناء على الصلاة حكم** :بناء على الصلاة يعني كه مونځ كونكي ته په وخت د مونځ كې حدث لاحق شو او اودس كولو نه پس تر كوم ځاي پوري چې يي مونځ كړې دي د هغې اعتبار كولو سره باقي مونځ اوكړي نو د دې په باره كې اختلاف دي .

(۱) امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد مطلقا بناء جائز نه ده ، ليكن د امام مالک رحمه الله په نزد صرف د پوزي ماتيدو په صورت كې جائز ده د دېنه علاوه د ده په نزد هم جائز نه ده .(بداية المجتهد)

---

(۱) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۲صـــ ۳۳۹ باب الرجل يحدث ثم يرجع قبل ان يتكلم .

(۲) دار قطني كتاب الطهارة ج۱صـــ ۱۵۴ باب الوضوء من الخارج من البدن ...الخ .

(۳) السنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۷۳ باب تحليل الصلاة بالتسليم .

(۲) دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد بناء على الصلاة جائز ده ليكن د سر نه مونځ كول افضل دي.

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دليل:** ۱. حديث دطلق بن علي رضي الله عنه "**وليعد صلاته**" دمونځ راګرزولو حكم دې. ۲. قياس: بناء على الصلاة كښې دمونځ په وخت كښې تلل راتلل، دقبلې نه انحراف او عمل كثير لازميږي كوم چې مفسد صلاة دي، خلاف قياس كوم صحيح حديث هم مروي نه دې.

**دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل:**

۱. حديث دعائشه رضي الله عنها مرفوعا "**ثُمَّ لِيَبْنِ عَلَى صَلَاتِهِ وَهُوَ فِي ذٰلِكَ لَا يَتَكَلَّمُ**" ددې حديث په سند كښې كلام دې. ۲. اثر دعلي رضي الله عنه او دابن عمر رضي الله عنه كوم چې صحيح سند سره قولا او عملا مروي دې، په دې باندې دصحابه رضي الله عنهم نه نكير هم ثابت دې او خلاف قياس قول دصحابي دمرفوع حديث په درجه كښې دې.

**ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب:**

۱... حديث دطلق رضي الله عنه كښې د "**وليعد صلاته**" زياتوالې دمحدثينو په نزد قابل قبول نه دې.
۲... خلاف قياس قول صحابي لره قياس باندې په هر صورت كښې ترجيح حاصله ده.

## ﴿بَابٌ فِي الْحَقْنِ﴾

## په مانځه كښې د تش او ډک او دس ماتي د ټينګولو او بندولو باب:

﴿۵۶۵﴾ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا صَلَاةَ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ وَلَا هُوَ يُدَافِعُهُ الْأَخْبَثَانِ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې ما د حضرت رسول اكرم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل ئې د طعام د حاضريدو او د تش او د ډک او دس ماتي د بندولو په حال كښې مونځ نشته.

﴿۵۶۶﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَرْقَمَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا أَرَادَ أَحَدُكُمْ أَنْ يَذْهَبَ إِلَى الْخَلَاءِ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلْيَبْدَأْ بِالْخَلَاءِ رواه الاربعة و صححه الترمذي.[2]

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۰۸ باب كراهة الصّلوة بحضرة الطعام .....الخ.

(۲) ترمذي ابواب الطهارة ج۱ ص۳۶ باب ماجاء اذا اقيمت الصّلوة ووجد احدكم الخلاء ....، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ صـــ ۱۲ باب ايصلي الرجل وهو حاقن، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱ صـــ ۱۳۷ باب العذر في ترك الجماعة، ابن ماجة ابواب الطهارة وسننها صـــ ۴۸ باب النهي للحاقن ان يصلي.

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن ارقم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل ئي کله چې يو ستاسي وغواړي چې بيت الخلاء ته په داسي حال کې لاړ شي چې د مانځه د پاره اقامت وکړې شي نو په بيت الخلاء دي شروع وکړي يعني د قضاء حاجت نه دي ځان فارغ کړي. د دي حديث روايت څلورو محدثينو کړي دي او ترمذي صحيح ګنړلي دي.

﴿۵٦٧﴾ وَعَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثٌ لَا يَحِلُّ لِأَحَدٍ أَنْ يَفْعَلَهُنَّ لَا يَؤُمَّ رَجُلٌ قَوْمًا فَيَخُصَّ نَفْسَهُ بِالدُّعَاءِ دُونَهُمْ فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ خَانَهُمْ وَلَا يَنْظُرُ فِي قَعْرِ بَيْتٍ قَبْلَ أَنْ يَسْتَأْذِنَ فَإِنْ فَعَلَ فَقَدْ دَخَلَ وَلَا يُصَلِّي وَهُوَ حَقِنٌ حَتَّى يَتَخَفَّفَ رواه ابوداود و آخرون و قال الترمذي حديث حسن. (۱)

**ترجمه** : حضرت ثوبان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي دري شيان دي چې هيچا ته ئي کول روا نه دي قوم ته دي داسي يو سړي امامت نه کوي چې خاص خپل ځان ته دعاء کوي او قوم ته دعاء نه کوي او که داسي وکړي نو قوم سره ئي خيانت وکړ او د اجازت نه مخکې دي د کور د انګړدننه نه ګوري او که داسي ئي وکړل نو ګويا کې ورننوتي دي او مونځ دي نه کوي په داسي حال کې چې هغه تش او يا ډک اودس ماتي بندوي تر څو پوري چې سپک او خالي شي. د دي حديث روايت ابوداؤد او نورو محدثينو کړي دي او ترمذي ويلي دي چې حديث حسن دي.

**مسئلة الباب**: د دې بحث "باب ترک الجماعة لعذر" لاندې تيرشوې دی.

قوله "لاصلاة بحضرة الطعام" يعني بهتره نه ده ځکه چې د دېنه په مونځ کې دننه يواځې والې او خشوع او خضوع نه پاتې کيږي مطلقا د مونځ نفي نه ده مراد.

## ﴿ بَابٌ فِي الصَّلَاةِ بِحَضْرَةِ الطَّعَامِ ﴾
## د طعام د حاضريدو په وخت کې د مونځ کولو باب

﴿۵٦٨﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَ عَشَاءُ أَحَدِكُمْ وَأُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَأُوا بِالْعَشَاءِ وَلَا يَعْجَلْ حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهُ رواه الشيخان. (۲)

---

(۱) ابوداؤد کتاب الطهارة ج۱ص۱۲ باب ايصلي الرجل وهو حاقن، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۸۲ باب ماجاء في کراهية ان يخص الامام نفسه

(۲) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۹۲ باب اذا حضر الطعام واقيمت الصلوة ....الخ ، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۰۸ بـاب کراهـة الصلوة بحضرة الطعام ... الخ .

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي كله چې يو ستاسي ته د شپې طعام كېښودې شي او د مانځه اقامت وكړې شي نو اول طعام وخورئ جلتي مه كوئ تر هغې پورې چې د طعام نه فارغ شي. د دې حديث روايت شيخينو كړې دي.

﴿۵۶۹﴾ وَ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَنَّه قَالَ إِذَا وُضِعَ العَشَاءُ وَ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَابْدَءُوا بِالعَشَاءِ اخرجه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د ام المؤمنين حضرت عائشې رضي الله عنها نه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي، چې كله طعام كېښودې شي او د مانځه اقامت وكړې شي نو مخكې د ودئ وخورئ دا حديث شيخينو خارج كړې دي.

**مسئلة الباب**: د دې بحث "باب ترک الجماعة لعذر" لاندې تيرشوې دی.

## ﴿ بَابُ مَا عَلَى الْإِمَامِ ﴾

## دا باب دي چې په امام باندې څه لازم دي

﴿۵۷۰﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِلنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ وَالسَّقِيمَ وَالكَبِيرَ وَإِذَا صَلَّى أَحَدُكُمْ لِنَفْسِهِ فَلْيُطَوِّلْ مَا شَاءَ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي كله چې يو ستاسي خلكو ته مونځ كوي نو په مانځه كې دې تخفيف كوئ ځكه چې په دې كې كمزوري خلک وي په دې كې به بيماران وي او په دې كې بوډاګان وي او كله چې يو ستاسي نه يواځي مونځ كوي نو اوږد دې ئې كړي چې څومره ئې خوښه وي. د دې حديث روايت شيخينو كړې دي.

﴿۵۷۱﴾ وَ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ وَاللهِ يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي لَأَتَأَخَّرُ عَن صَلَاةِ الغَدَاةِ مِنْ أَجْلِ فُلَانٍ مِمَّا يُطِيلُ بِنَا فَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي مَوعِظَةٍ أَشَدَّ غَضَبًا مِنهُ يَومَئِذٍ ثُمَّ قَالَ إِنَّ مِنكُمْ مُنَفِّرِينَ فَأَيُّكُمْ مَا صَلَّى بِالنَّاسِ فَلْيُخَفِّفْ فَإِنَّ فِيهِمُ الضَّعِيفَ وَالكَبِيرَ وَ ذَا الحَاجَةِ رواه

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۲ باب اذا حضر الطعام واقيمت الصلوة ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۰۸ باب كراهة الصلوة بحضرة الطعام ...الخ .

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۷ باب تخفيف الامام في القيام ...الخ ، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۸ باب امر الائمة بتخفيف الصلوة في تمام .

الشيخان .[1]

**ترجمه :** د حضرت ابي مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه يو سړي ويلي دي په الله جل شانه مې دې قسم وي اې د الله جل شانه رسوله چې زه د فلاني په وجه د سهر د مانځه نه روسته کېږم ځکه چې هغه مونږ نه اوږد مونځ کوي نو نه ؤ ليدلي ما رسول الله صلی الله علیه وسلم په هيڅ يوه موعظه کې چې دير زيات په غصه وي د ده نه په دغه ورځ بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې په تحقيق ځيني ستاسي نه داسي دي چې خلک په نفرت کې اچوي کوم يو کس چې ستاسي نه خلکو ته مونځ کوي نو اسان مونځ دي کوي بې شکه په دوي کې کمزوري شته بوډاګان شته حاجت مند خلک شته. دا حديث شيخينو روايت کړي دي.

﴿۵۸۲﴾ و عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَا صَلَّيْتُ وَرَاءَ اِمَامٍ قَطُّ اَخَفَّ وَلاَ اَتَمَّ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاِنْ كَانَ لَيَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَيُخَفِّفُ مَخَافَةَ اَنْ تُفْتَنَ اُمُّهُ رواه الشيخان .[2]

**ترجمه :** حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ويلي دي ما د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه اسان او مکمل مونځ هيڅ کله په هيڅ يو امام پسې نه دي کړي او کله به چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د معصوم جړا واوريده نو اسان او زر زر به ئي مونځ کاوه د دې ويري نه چې مور به ئي په ازمائش او تکليف کې پريوزي. د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۵۸۳﴾ وَعَنْ اَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنِّي لَاَقُوْمُ فِي الصَّلَاةِ اُرِيْدُ اَنْ اُطَوِّلَ فِيْهَا فَاَسْمَعُ بُكَاءَ الصَّبِيِّ فَاَتَجَوَّزُ فِي صَلَاتِي كَرَاهِيَةَ اَنْ اَشُقَّ عَلَى اُمِّهِ رواه البخاري .[3]

**ترجمه :** د حضرت ابي قتاده رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې په تحقيق زه په مانځه ؤدرېږم غواړم چې په مانځه کې اوږد قرأت ؤلولم نو چې زه د معصوم اواز واورم نو تيريلأم په مانځه کې يعني مختصر مونځ کوم دا مي نه ده خوښه چې مور ئي په تکليف کې کړم. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۹۷ باب تخفيف الامام في القيام ...الخ ، مسلم کتاب الاذان ج۱ص ۱۸۸ باب امر الائمة بتخفيف الصلوة في تمام .

(۲) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۹۸ باب من اخف الصلوة عند بکاء الصبي ، مسلم کتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۸ باب امر الائمة بتخفيف الصلوة في تمام .

(۳) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۹۸ باب من اخف الصلوة عند بکاء الصبي .

﴿۵۷۴﴾ وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ أَبِي الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ آخِرُ مَا عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَمَمْتَ قَوْمًا فَأَخِفَّ بِهِمُ الصَّلَاةَ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: حضرت عثمان ابن ابي العاص رضي الله عنه ويلي دي چې اخرني عهد او وعده چې كومه ما سره رسول الله صلى الله عليه وسلم كړي ده دا ده چې كله ځه كوم قوم ته مونځ كوم نو هغو ته به اسان مختصر مونځ كوم دا حديث مسلم روايت كړي دي.

﴿۵۷۵﴾ وعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِالتَّخْفِيفِ وَيَؤُمُّنَا بِالصَّافَّاتِ رواه النسائي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به مونږ د اسان او مختصر مونځ حكم كاوه او په خپله به ئي مونږ ته د صافات په سورت مونځ كاوه. د دي حديث روايت نسائي كړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

## حديث دابن عمر رضي الله عنه ددوو جملو په مينځ كې تطبيق:

حديث دابن عمر رضي الله عنه په اولنۍ جمله "كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْمُرُ بِالتَّخْفِيفِ" كې امام ته دمختصر قرأت كولو حكم كړې شوې دى او په آخري جمله كې "ويؤمنا بالصافات" كې پخپله حضور صلى الله عليه وسلم سورة صافات په شان داوږد سورت لوستلو ذكر دې نو علماؤ په دې طور باندې تطبيق بيان كړو چې په اصل كې دا دحضور صلى الله عليه وسلم خصوصيت وو چې په كم وخت كې نهايت اطمينان سره ډير آيتونه په دې طور باندې لوستل چې چاته به ستړې والې او بوج نه محسوسېدو لهذا دتخفيف اصل بيا هم حاصليدو.

# ﴿بَابُ مَا عَلَى الْمَأْمُومِ مِنَ الْمُتَابَعَةِ﴾

## په مقتدي باندي د امام د تابعدارۍ باب

﴿۵۷۶﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمَا يَخْشَى أَحَدُكُمْ إِذَا رَفَعَ رَأْسَهُ قَبْلَ

---

(۱) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۸ باب امر الائمة بتخفيف الصلوة في تمام.
(۲) نسائي كتاب الامام والجماعة ج۱ص ۱۳۲ باب الرخصة للامام في التطويل.

الإِمَامِ أَنْ يَجْعَلَ اللهُ رَأْسَهُ رَأْسَ حِمَارٍ أَوْ يَجْعَلَ اللهُ صُورَتَهُ صُورَةَ حِمَارٍ رواه الجماعة.[۱]

**ترجمه:** د حضرت ابوهریره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روایت دي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې آیا نه ویریږي یو ستاسي چې کله د امام نه مخکې سر پورته کوي د دې خبرې نه چې وګرځوي الله جل شانه سر د ده په شان د سر د خر او یا وګرځوي الله جل شانه شکل د ده په شان د شکل د خر. د دې حدیث روایت جماعت کړی دی.

﴿۵۷۷﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ حَدَّثَنِي الْبَرَاءُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَهُوَ غَيْرُ كَذُوبٍ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ لَمْ يَحْنِ أَحَدٌ مِنَّا ظَهْرَهُ حَتَّى يَقَعَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَاجِدًا ثُمَّ نَقَعُ سُجُودًا بَعْدَهُ رواه الشيخان.[۲]

**ترجمه:** د عبدالله بن یزید نه روایت هغه ویلي دي چې ماته حضرت براء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث بیان کړي دي او هغه رښتني دي ویلي ئې دي چې کله به رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سمع الله لمن حمده ویله زمونږ یو کس به هم خپله شانه کږوله تر څو پورې به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سجدې ته نه و تلي یا به د دې نه روسته مونږ په سجده پریوتو. د دې حدیث روایت شیخینو کړی دی.

﴿۵۷۸﴾ وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ يَوْمٍ فَلَمَّا قَضَى الصَّلَاةَ أَقْبَلَ عَلَيْنَا بِوَجْهِهِ فَقَالَ أَيُّهَا النَّاسُ إِنِّي إِمَامُكُمْ فَلَا تَسْبِقُونِي بِالرُّكُوعِ وَلَا بِالسُّجُودِ وَلَا بِالْقِيَامِ وَلَا بِالْإِنْصِرَافِ فَإِنِّي أَرَاكُمْ أَمَامِي وَمِنْ خَلْفِي رواه مسلم.[۳]

**ترجمه:** حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونږ ته یوه ورځ مونځ وکړ کله ئې چې مونځ وکړ مونږ طرف ته متوجه شو نو وې فرمایل اې خلکو زه ستاسي امام یم زما نه مخکې رکوع ته سجدې ته سلام او قیام ته مه ځئ بې شکه زه تاسي د خپل ځانه مخکې او روسته وینم. د دې حدیث روایت مسلم کړی دی.

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۶ باب اثم من رفع راسه قبل الامام، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۱ باب تحريم سبق الامام بركوع ...الخ، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱ص ۱۳۲ باب مبادرة الامام، ترمذي ابواب ما يتعلق بالصلوة ج۱ص ۱۲۹ باب ماجاء في التشديد في الذي يرفع راسه قبل الامام، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۹۱ باب التشديد في من يرفع قبل الامام ...الخ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها ص ۶۹ باب النهي ان يسبق الامام بالركوع والسجود، مسند احمد ج۲ص ۴۶۹.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۶ باب متى يسجد من خلف الامام، مسلم كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۹ باب متابعة الامام والعمل بعده.

(۳) مسلم كتاب الصلوة ج۱ص باب تحريم سبق الامام بركوع ...الخ.

## دمونځ په ارکانو کې دامام دمتابعت تفسیر

دباب په اولني حديث او آخري روايت کې دتقدم على الامام ممانعت دې او په دويم روايت کې تأخر عن الامام ثبوت دې .

"**تقدم على الامام**" يعنې په يو رکن کې دامام نه مخکې کيدل ، په تکبير تحريمه کې په اتفاق دائمه اربعه رحمهم الله سره مفسد صلاة دې ، او په سلام کې تقدم على الامام صرف دائمه ثلاثو رحمهم الله په نزد مفسد دې دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد مفسد نه دې بلکې مکروه دې ، او په باقي ارکانو کې تقدم على الامام دائمه اربعه رحمهم الله په نزد مفسد نه دې بلکې مکروه تحريمي دې . دويمه مسئله يعنې تأخر عن الامام کې اختلاف دې :

(۱) امام شافعي رحمه الله فرمايي چې دامام اتباع په ارکانو کې على وجه المعاقبة کيدل پکار دي يعنې اول امام او وروسته بيا مقتدي دې دغه رکن ادا کړي .

(۲) امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې په ټولو ارکانو کې اتباع على وجه المقارنة وي .

(۳) دامام مالک رحمه الله په نزد تحريمه وتسليمه کې خو تأخر عن الامام متعين دې او په باقي ارکانو کې دده دوه قوله دي افضليتِ مقارنه او افضليت تأخر .

بهرحال ائمه ثلاثه رحمهم الله تأخر ته په عموم باندې ترجيح ورکوي ليکن احناف مقارنه ته .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دليل** : حديث دبراء رحمه الله کوم کې چې دي چې تر څو پورې چې به حضور صلى الله عليه وسلم سجدې ته نه وو رسيدلې مونږ نه به څوک هم درکوع نه نه او چتيدو يعنې حد درجه به يې تأخر عن الامام کولو .

**دامام ابو حنيفه رحمه الله دليل** : حديث مشهور "اذا رکع فارکعوا واذا سجد فاسجدوا" دې فاء دتعقيب بلا مهلت لپاره دې او دامام صاحب رحمه الله مراد هم دمقارنت نه همدغه دې چې امام شروع کولو پسې متصل مقتدي دې هم فورا شروع کړي .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله ددليل جواب :**

۱... حديث "اذا رکع فارکعوا" قولي حديث دې لهذا دصحابه کرامو فعلي حديث باندې به ورته ترجيح حاصله وي .

۲... دصحابه کرامو رضي الله عنهم دعمل توجيه داده چې په اصل کې حکم خو هم دمقارنت وو ليکن په اخيره زمانه کې چې کله دحضور صلى الله عليه وسلم حرکت وانتقال من رکن الى آخر کې بطوء (اودريدل) راغلل ، هغه سرعت پاتې نشو کوم چې مخکې وو او بعضي ځوانان صحابه رضي الله عنهم ډيل تيزي دوچې نه دقومې نه سجده کې به دامام نه مخکې تلل (يا درسيدلو خطره پيدا شوه ) نو په دې باندې

حضور ﷺ خبرداري اوفرمايلو ، ددې تنبيه نه پس دا خلک ويريدل او ډير زيات احتياط يې شروع کړو او ترڅو پورې چې به امام سجدې ته نه وو رسيدلې تر هغې پورې به په قومه کې وو ، داد د معاقبه وجه ، باقي د حضور ﷺ د طرفه دا حکم نه وو .(الدر المنضود)

# ﴿أَبْوَابُ صَلَاةِ الْوِتْرِ﴾

## ﴿بَابُ مَا اسْتُدِلَّ بِهِ عَلَى وُجُوبِ صَلَاةِ الْوِتْرِ﴾

## دوترو د مانځه بابونه

**باب دې په بيان د هغه روايتونو کې چې دوترو د مانځه په واجبيدو باندې پرې استدلال شوي**

**﴿۵۷۹﴾ عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ اجْعَلُوا آخِرَ صَلَاتِكُمْ بِاللَّيْلِ وِتْرًا رواه الشيخان.[1]**

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي د خپلې شپې اخري مونځ وتر وګرځوئ . د دې حديث روايت شيخينو کړې دې .

**﴿۵۸۰﴾ وَعَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ بَادِرُوا الصُّبْحَ بِالْوِتْرِ رواه مسلم.[2]**

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي چې د صبا د ختو نه مخکې په جلئ سره وتر مونځ وکړئ . د دې حديث روايت مسلم کړې دې .

**﴿۵۸۱﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ أَوْتِرُوا قَبْلَ أَنْ تُصْبِحُوا رواه الجماعة الا البخاري.[3]**

**ترجمه** : د حضرت ابي سعيد خدري رضي الله عنه نه روايت دې چې رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي چې د صباح کيدو نه مخکې وتر وکړئ . د دې حديث روايت جماعت کړې دې مګر بخاري ئې

---

(۱) بخاري ابواب الوتر ج۱ص ۱۳۶ باب ليجعل اخر صلوته وتراً ، مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۷ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي ﷺ .

(۲) مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۷باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي ﷺ .

(۳) مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۷ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي ﷺ ، ترمذي ابواب الصلوة الوتر ج۱ص ۱۰۷ باب ما جاء في مبادرة الصبح بالوتر ، نسائي کتاب قيام الليل وتطوع النهار ج۱ص ۲۴۷ باب الامر بالوترقبل الصبح ، ابن ماجة ابواب الوتر ص ۸۴ باب من نام عن وتر او نسيها ، مسند احمد ج۳ص ۱۳ ، مستدرك حاكم کتاب الوتر ج۱ص ۱۰۳ .

روايت نه دي کړي.

﴿۵۸۲﴾ وَعَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَافَ أَنْ لَا يَقُومَ مِنْ آخِرِ اللَّيلِ فَلْيُوتِرْ أَوَّلَه وَمَنْ طَمِعَ أَنْ يَقُومَ آخِرَه فَلْيُوتِرْ آخِرَ اللَّيلِ فَإِنَّ صَلَاةَ آخِرِ اللَّيلِ مَشْهُودَةٌ وَذٰلِكَ أَفْضَلُ رواه مسلم.(۱)

**ترجمه:** حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې څوک ويرېږي چې په اخره شپه کې نشي پاڅيدي نو د شپې په اوله برخه کې دي وتر مونځ وکړي او څوک چې د اخري شپې د پاڅيدو طمع لري نو د شپې په اخره حصه کې دي د وترو مونځ وکړي ځکه چې د شپې د اخري برخي مونځ د ملائکو د حاضريدو وخت دي او دا بهتر دي. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۵۸۳﴾ وَعَنْ بُرَيدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَن لَّمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا اَلْوِتْرُ حَقٌّ فَمَنْ لَمْ يُوتِرْ فَلَيْسَ مِنَّا رواه ابوداود واسناده حسن.(۲)

**ترجمه:** حضرت بريده رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل به ئې چې وتر حق واجب دي څوک چې وتر نه کوي هغه زمونږ نه نه دي. وتر واجب دي څوک وتر نه کوي هغه زمونږ نه نه دي. وتر واجب دي څوک چې وتر نه کوي هغه زمونږ نه نه دي. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۵۸۴﴾ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الله تَعَالىٰ زَادَكُمْ صَلَاةً وَهِيَ الْوِتْرُ رواه الطبراني في مسند الشاميين وقال الحافظ في الدراية بإسناد حسن.(۳)

**ترجمه:** حضرت ابي سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې بي شکه الله جل شانه په تاسي باندي يو مونځ زيات کړي دي او هغه وتر دي. د دي حديث روايت د شاميانو په مسند کې طبراني کړي دي او حافظ په درايه کې ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي. يا په حسن اسناد سره نقل شوي دي.

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۸ باب صلوة الليل وعدد ...الخ.

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۱ باب في من لم يوتر.

(۳) الدراية كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۹ باب صلوة الوتر نقلا عن المسند الشاميين للطبراني.

﴿۵۸۵﴾ وَعَنْ أَبِي تَمِيمٍ الْجَيْشَانِي أَنَّ عَمْرَو بْنَ الْعَاصِ خَطَبَ النَّاسَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَقَالَ إِنَّ أَبَا بَصْرَةَ حَدَّثَنِي أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللهَ زَادَكُمْ صَلَاةً وَهِيَ الْوِتْرُ فَصَلُّوهَا فِيمَا بَيْنَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ إِلَى صَلَاةِ الْفَجْرِ قَالَ أَبُو تَمِيمٍ فَأَخَذَ بِيَدِي أَبُو ذَرٍّ فَسَارَ فِي الْمَسْجِدِ إِلَى أَبِي بَصْرَةَ فَقَالَ لَهُ آلْتَ سَمِعْتَهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا قَالَ عَمْرٌو قَالَ أَبُو بَصْرَةَ أَنَا سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

رواه احمد والحاكم والطبراني و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : د ابي تميم جيشاني نه روايت دي چې په تحقيق عمرو بن العاص د جمعي په ورځ خلكو ته خطبه وويله نو وي ويل چې بي شكه ابو بصره ماته حديث بيان كړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې الله جل شانه په تاسو باندي يو مونځ زيات كړي دي او هغه وتر دي نو دا مونځ د ماسختن او د سهر تر منځ كوئ ابو تميم ويلي دي چې ابوذر رضي الله عنه زه د لاسه ونيوم نو په مسجد كې ابو بصره ته ورغي نو ورته وي ويل چې تا دا حديث د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل ئي هغه څه چې عمرو ويي دي ابو بصره وويل چې ما دا حديث د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي . د دي حديث روايت احمد ، حاكم او طبراني كړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۵۸۶﴾ وعَنْ أَبِي سَعِيدٍ رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ نَامَ عَنْ وِتْرِهِ أَوْ نَسِيَهُ فَلْيُصَلِّهِ إِذَا أَصْبَحَ أَوْ ذَكَرَهُ رواه الدارقطني و آخرون و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : حضرت ابوسعيد رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د خپل وتر مانځه نه ؤده شي او ياني هير شي او ادائي نه كړي نو اداء دي ئي كړي. كله چې صبا شي او يا ورياد شي . دا حديث دار قطني او نورو روايت كړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

**دوتر دمونځ حكم** : (۱) دائمه ثلاثه رحمهم الله او دصاحبينو رحمهما الله په نزد صرف سنت دي . (۲) دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد واجب دي .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله او دصاحبينو دليل** :۱. دعلي رضي الله عنه حديث : "الوتر ليس بحتم كهيئة الصلاة المكتوبة ولكن سنة سنها رسول الله صلى الله عليه وسلم. (ترمذي)

---

(۱) مسند احمد ج۶ صـ ۷ ، مستدرک حاکم ج۳صـ ۵۹۳ ، مجمع الزوائد کتاب الصلوٰة ج۲صـ ۲۳۹ باب ماجاء في الوتر نقلا عن الطبراني في الكبير .

(۲) دار قطني كتاب الوتر ج۲صـ ۲۲ باب من نام عن وترهٖ او نسيه .

۲. داذان او اقامت نه مشروع کیدل هم په سنیت باندې دال دې.

**دامام ابو حنیفه** رَحِمَهُ اللهُ **دلیل** : دباب ټول حدیثونه ، مثلا : ۱... حدیث بریده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا".

۲. حدیث دابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "أوتروا قبل أن تصبحوا" امر لپاره دوجوب دې.

۳. حدیث دابو سعید رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ایضا : "من نام عن وتره أو نسیه فلیصله اذا أصبح أو ذکره" دوتر دقضاء حکم دې حال دا چې قضاء صرف دواجباتو وي.

۴. حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وترو باندې مواظبت فرمایل کوم چې دټولو په نزد مسلم دې.

۵. تارک وتر باندې نکیر کول "الوتر حق فمن لم یوتر فلیس منا".

۶. دصحابه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دتابعینو په سفر او حضر کې ددې اهتمام کول.

**ائمه ثلاثه او دصاحبینو ددلیل جواب :**

۱. دعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حدیث مذکور کې دفرضیت نفي کیږي نه دوجوب "کهیئة الصلاة المکتوبة" نه همدا مطلب دې او "سنة سنها رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ" نه ددې ماخذ یعنې ددلیل بیان دې.

۲. اذان او اقامت دفرض اعتقادي لپاره وي او وتر فرض عمل (واجب) دې.

## ﴿ بَابُ الْوِتْرِ بِخَمْسٍ اَوْ اَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ ﴾

## دا باب په دې باره کې دې چې وتر پنځه رکعته دي او یا د پنځو نه زیات دي

﴿۵۸۷﴾ عن سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ بِتُّ فِي بَيْتِ خَالَتِي مَيْمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا فَصَلّٰى رَسُوْلُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِشَاءَ ثُمَّ جَاءَ فَصَلّٰى اَرْبَعَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ نَامَ ثُمَّ قَامَ فَجِئْتُ فَقُمْتُ عَنْ يَسَارِهِ فَجَعَلَنِي عَنْ يَمِينِه فَصَلّٰى خَمْسَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ صَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ نَامَ حَتّٰى سَمِعْتُ غَطِيطَه اَوْ قَالَ خَطِيطَه ثُمَّ خَرَجَ اِلَى الصَّلَاةِ رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : د سعید بن جبیر نه روایت دې چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې زما د خپلې ترور حضرت میمونې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کره شپه وه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسختن مونځ وفرمایه بیا راغې نو څلور رکعته مونځ ئې وفرمایه بیا ؤده شو بیا مانځه ته پاڅیده نو زه راغلم د نبي کریم

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ صـ ۹۷ باب یقوم عن یمین الامام ...الخ.

ﷺ چپ طرف ته ژدريدم نو زه ئي خپل ښي طرف ته راواړولم نو پنځه رکعته مونځ ئي وکړ بيا ئي دوه رکعته مونځ وکړ بيا ۋده شو تر دي پوري چې مائي خرار واوريده غطيط او خطيط په يوه معنى باندي دي. بيا ئي مانځه ته تشريف راوړ. د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۵۸۸﴾ وَ عَنه عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ فَصَلَّى رَكعَتَينِ رَكعَتَينِ حَتّٰى صَلّٰى ثَمَانَ رَكعَاتٍ ثُمَّ اَوتَرَ بِخَمسٍ وَلَمْ يَجْلِسْ بَيْنَهُنَّ رواه ابوداود و في اسناده لين .(۱)

**ترجمه**: د سعيد بن جبير نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي نو هغه دوه دوه رکعته مونځ وکړ تر دي پوري چې اته رکعته ئي وکړه بيا ئي پنځه رکعته وتر وکړه او د دي تر منځ کينه ناست. د دي حديث روايت ابو داؤد کړي او په اسناد کې ئي ضعف دي.

﴿۵۸۹﴾ وَ عَنْ هِشَامٍ عَن اَبِيهِ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله ﷺ يُصَلِّي مِنَ اللَّيلِ ثَلَاثَ عَشْرَةَ رَكعَةً يُوتِرُ مِن ذٰلِكَ بِخَمسٍ لاَ يَجْلِسُ فِي شَيءٍ إِلَّا فِي آخِرِهَا رواه مسلم .(۲)

**ترجمه**: د هشام نه روايت دي ده د خپل پلار نه روايت کړي دي چې حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي چې رسول الله ﷺ د شپي ديارلس رکعته مونځ وکړه د دي نه ئي پنځه رکعته وتر وکړل او د دي پنځو رکعتونو په يو شي کې هم کينه ناست مګر خو په اخر رکعت کيناست. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۵۹۰﴾ وَعَن سَعدِ بنِ هِشَامٍ قَالَ اِنْطَلَقتُ اِلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَقُلتُ يَا اُمَّ المُؤمِنِينَ اَنْبِئِينِي عَنْ وِتْرِ رَسُولِ اللهِ ﷺ فَقَالَتْ كُنَّا نُعِدُّ لَه سِوَاكَه وَ طُهورَه فَيَبْعَثُه اللهُ مَا شَاءَ اَنْ يَبْعَثَه مِنَ اللَّيلِ فَيَتَسَوَّكُ وَ يَتَوَضَّأُ وَ يُصَلِّي تِسْعَ رَكَعَاتٍ لاَ يَجْلِسُ فِيهَا اِلَّا فِي الثَّامِنَةِ فَيَذْكُرُ اللهَ وَ يَحْمَدُه وَ يَدْعُوه ثُمَّ يَنْهَضُ وَلاَ يُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ ثُمَّ يَقْعُدُ فَيَذْكُرُ اللهَ وَ يَحْمَدُه وَ يَدْعُوه ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا ثُمَّ يُصَلِّي رَكعَتَينِ بَعدَ مَا سَلَّمَ وَ هُوَ قَاعِدٌ فَتِلْكَ اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكعَةً يَا بُنَيَّ فَلَمَّا اَسَنَّ نَبِيُّ اللهِ ﷺ وَ اَخَذَ اللَّحْمَ اَوتَرَ بِسَبْعٍ وَ صَنَعَ فِي الرَّكعَتَينِ مِثْلَ صَنِيعِهِ الاَوَّلِ فَتِلْكَ تِسْعٌ يَا بُنَيَّ وَ كَانَ نَبِيُّ اللهِ ﷺ اِذَا صَلّٰى صَلَاةً اَحَبَّ اَنْ يُدَاوِمَ عَلَيهَا وَ كَانَ اِذَا غَلَبَه نَومٌ اَو وَجَعٌ عَنْ قِيَامِ

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة باب في صلوة الليل .

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صـــ ۲۵۴ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي ﷺ .

اللَّيل صَلَّى مِنَ النَّهارِ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ وَلاَ اَعْلَمُ نَبِيَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَرَأَ الْقُرآنَ كُلَّه فِي لَيلة وَلاَ صَلَّى لَيلةً اِلَى الصُّبْحِ وَلاَ صَامَ شَهرًا كامِلاً غَيْرَ رَمَضَانَ رواه مسلم و احمد و ابوداود والنسائي.[1]

**ترجمه :** سعد بن هشام ويلي دي چې زه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورغلم نو ورته ؤمي ويل چې اي د مؤمنانو موري ماته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د وترو په باره کې خبر راکړه نو هغې وويل چې مونږ به رسول الله صلى الله عليه وسلم د پاره د ده مسواک او د ده د پاره د اوداسه اوبه برابرولې نو الله جل شانه به دې د شپې راپاڅاوه کله به چې الله جل شانه د ده د راپاڅولو اراده وفرمايله نو رسول الله صلى الله عليه وسلم به مسواک استعمال کړ او اودس به ئې وکړ او نه رکعته مونځ به ئې وکړ په دې کې به نه کيناسته مګر په اتم رکعت به کيناسته د الله جل شانه ذکر به ئې وکړ او د هغه حمد او ثنا به ئې ووبله او د الله جل شانه نه به ئې دعاء وغوښته بيا به پاڅيده سلام به ئې نه ګرځاوه بيا به ؤدريده نهم رکعت به ئې وکړ بيا به کيناسته د الله جل شانه ذکر به ئې وکړ او د الله جل شانه ثناء او حمد به ئې ووايه او د الله جل شانه نه به ئې دعاء وغوښته بيا به ئې سلام واړاوه مونږ ته به ئې سلام راواؤراوه د سلام نه روسته به ئې بيا دوه رکعته مونځ په داسې حال کې وکړ چې هغه به ناست ؤ اي بچوړيه دا يوولس رکعته دي نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ډير عمر والا شو بدن مبارک ئې غوښن شو نو اوه رکعته وتر به ئې کول په دوه ؤ رکعتونو کې به ئې هغه څه کول کوم څه به ئې چې په اول کې کول نو دا نه (۹) رکعته شو اي بچوړيه کله به چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم مونځ کاوه نو دا به ئې خوخه وه چې هميش والي پرې وکړي او کله به چې په ده باندې د تهجد د مونځ کولو نه خوب غالب شو او يا به بيماري ورپيښه شوه نو د ورځې به ئې دولس رکعته مونځ کاوه ماته علم نشته چې د الله جل شانه نبي به ټول قرآن کريم په يوه شپه کې لوسته او نه به ئې ټوله شپه تر صبا پورې مونځ کاوه او نه به ئې د رمضان نه په غير پوره مياشت روژه نيوله. د دې حديث روايت مسلم احمد ، ابوداؤد او نسائي کړي دي .

﴿۵۹۱﴾ و عن اَبِي سَلَمَةَ وَ عَبدِالرَّحْمٰنِ الاَعْرَجِ عَنْ اَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُوتِرُوا بِثَلاَثٍ اَوتِرُوا بِخَمْسٍ اَوْ بِسَبْعٍ وَلاَ تُشَبِّهوا بِصَلاَةِ الْمَغْرِبِ رواه الدارقطني والحاكم

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۶ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم ، مسند احمد ج۶ ص ۵۴ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۰ باب في صلوة الليل ، نسائي كتاب قيام الليل وتطوع النهار ج۱ص ۲۵۰ باب كيف الوتر بسبع .

والبيهقي و قال الحافظ اسناده على شرط الشيخين .(۱)

**ترجمه** : ابي سلمه او عبد الرحمن اعرج د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې دري رکعته وتر مه کوئ پنځه رکعته وتر کوئ او يا اوه رکعته وتر کوئ او د مابنام د مانځه سره ئې مشابه او يو شان کوئ مه . د دي حديث روايت الدار قطني ، اوالحاکم او بيهقي کړي دي او حافظ ويلي دي چې اسناد ئې د شيخينو په شرط باندي دي .

﴿۵۹۲﴾ وَعَنْ عِرَاكِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُوتِرُوا بِثَلَاثٍ تُشَبِّهُوا بِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَلٰكِنْ أَوْتِرُوا بِخَمْسٍ أَوْ بِسَبْعٍ أَوْ بِتِسْعٍ او بِإِحْدٰى عَشْرَةَ أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ رواه محمد بن نصر المروزي وابن حبان والحاكم و قال العراقي اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : د عراک ابن مالک نه روايت دي چې حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي دري رکعته وتر مه کوئ چې د مابنام د مانځه سره ئې مشابه کوئ لکن پنځه رکعته وتر کوئ يا اوه رکعته وتر کوي او يا نه رکعته وتر کوئ او يا يوولس رکعته وتر کوئ اويا د دي نه زيات کوئ . د دي حديث روايت محمد بن نصر مروزي ابن حبان حاکم کړي دي او عراقي ويلي دي چې اسناد ئې صحيح دي .

﴿۵۹۳﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ الْوِتْرُ سَبْعٌ أَوْ خَمْسٌ وَلَا نُحِبُّ ثَلَاثًا بُتْرَاءَ رواه محمد بن نصر والطحاوي و قال العراقي اسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې وتر اوه دي او يا پنځه دي او زه دري ناقص نه خوهوم . د دي حديث روايت محمد بن نصر ، او طحاوي کړي دي او عراقي ويلي دي چې اسناد ئې صحيح دي .

﴿۵۹۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ الْوِتْرُ سَبْعٌ أَوْ خَمْسٌ وَإِنِّي لَأَكْرَهُ أَنْ يَكُونَ ثَلَاثًا بُتْرَاءَ رواه محمد بن نصر والطحاوي و قال العراقي اسناده صحيح . قَالَ النِّيمَوِي أَنَّ الْوِتْرَ بِثَلَاثٍ قَدْ ثَبَتَ عَنِ النَّبِي

---

(۱) دار قطني كتاب الوتر ج۲صـــ ۲۴ باب لتشبهوا الوتر بصلوة المغرب ، مستدرك حاكم كتاب الوتر ج۱صـــ ۳۰۴ باب الوتر حق ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳صـــ ۳۱ باب من اوتر بثلاث موصولات ...الخ . الدراية ، كتاب الصّلوة ج۱صـــ۱۹۰ باب صلوة الوتر .

(۲) قيام الليل كتاب الوتر صـــ ۲۱۵ باب الوتر بثلاث عن الصحابة والتابعين ، صحيح ابن حبان كتاب الصّلوة ج ۵صـــ۶۸ رقم الحديث ۲۴۲۰ ، مستدرك حاكم كتاب الوتر صـــ ۲۰۴ باب الوتر حق .

(۳) قيام الليل كتاب الوتر صـــ ۲۱۵ باب الوتر بثلاث عن الصحابة ، طحاوي كتاب الصّلوة ج۱صـــ۱۹۹ باب الوتر .

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ جَمَاعَة مِنَ الصَّحَابَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ فَالنَّهي فِي هٰذِهِ الْأَحَادِيثِ مَحْمُولٌ عَلَىٰ أَنْ يُصَلِّيَ وِتْرًا بِثَلَاثِ رَكَعَاتٍ وَلَمْ يَتَقَدَّمْهُ تَطَوُّعٌ إِمَّا رَكعَتَانِ وَإِمَّا أَرْبَعُ رَكعَاتٍ أَو أَكْثَرُ مِنْ ذٰلِكَ.[1]

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې وتر اوه او يا پنځه ركعته دي او زه دري ناقص ركعتونه نه خوهوم. د دي حديث روايت محمد بن نصر او طحاوي كړي دي او اسناد ئې صحيح دي. نيموي رحمه الله ويلي دي چې دري ركعته وتر د نبي اكرم صلى الله عليه وسلم او د اصحابو رضي الله عنهم د يوې ډلي نه ثابت دي او په دغه احاديثو كې نهي په دي باندي محموله ده چې صرف دري ركعته وتر وكړي او د دينه وړاندي دوه، څلور او يا د دينه زيات نفل مونځ ونه كړي.

## دوتر متعلق دوه مختلف فيه مسئلې

د حديث نمبر ۵۸۷ نه واخله تر حديث نمبر ٦٢٦ پورې په څلورو ابوابو كې دوتر متعلق دوه مختلف فيه مسئلې بيان كړې شوي دي:

۱... دوتر څو ركعته دي؟ ۲... وتر يو سلام سره دي يا د دوو سلامونو سره؟

**دفقهاؤ اقوال**:

(۱) امام مالک رحمه الله په نزد د راجح قول مطابق كم از كم دري ركعته دوو سلامونه سره.

(۲) د امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد وتر د يو نه واخله تر يوولس (۱۱) ركعته پورې (وفي رواية يو نه واخله تر اووه (۷) پورې) صحيح دي، البته د دې دلوستلو دوه طريقې دي:

۱- موصولا يعني يو تشهد سره دري ركعته اولولي. ۲- مفصولا يعني دوه ركعته جدا او يو ركعت جدا اولولي.

(۳) د امام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دري ركعته يو سلام سره (وهو رواية عن الامام احمد رحمه الله).

**دلائل**: مصنف رحمه الله "باب الوتر بخمس او اكثر" لاندې د دري ركعتو نه زيات دقائلين وتر د دليل جوړيدو والا روايات ذكر كړي دي، اهم دلائلو خلاصه مع جواب وتاويل په لاندې دول دي.

۱... حديث دابن عباس رضي الله عنه (نمبر ۵۸۸) "ثُمَّ أَوْتَرَ بِخَمْسٍ وَلَمْ يَجْلِسْ بَيْنَهُنَّ".

۲... دعائشه رضي الله عنها حديث: "وَيُصَلِّي تِسْعَ رَكَعَاتٍ لَا يَجْلِسُ فِيهَا إِلَّا فِي الثَّامِنَةِ فَيَذْكُرُ اللهَ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ ثُمَّ يَنْهَضُ وَلَا يُسَلِّمُ ثُمَّ يَقُومُ فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ ثُمَّ يَقْعُدُ فَيَذْكُرُ اللهَ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ

---

(۱) قيام الليل كتاب الوتر صــ ۲۱۵ باب الوتر بثلاث عن الصحابة، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صــ۱۹۷ باب الوتر.

ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ".

۲... دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث: "لَا تُوتِرُوا بِثَلَاثٍ تُشَبِّهُوا بِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ وَلٰكِنْ أَوْتِرُوا بِخَمْسٍ أَوْ بِسَبْعٍ أَوْ بِتِسْعٍ او بِإِحْدٰى عَشْرَةَ أَوْ أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ" صراحة پنځه، اوه، نهه، يوولس او ددېنه زيات دوترو حکم دي.

## داحنافو دطرف نه جوابات:

**الزامي جواب او تطبيق**: په رواياتو کې "ايتار برکعة" نه واخله "ايتار بثلاث عشرة" بلکې "ايتار بسبع" يعنې تر اوولس رکعتو پورې وتر وارد دي لهذا په کومو روايتونو کې چې ديوولسو نه زيات "ايتار" وتر لوستلو ذکر دې هلته ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ دې تاويل کولو باندې مجبور دي چې دلته دايتار نه مراد صلاة الليل دې کوم کې چې درې رکعته وتر دي او اته رکعته دتهجد دي، او کله ددېنه مخکې دوه رکعته خفيف او دوه رکعته نفل پس دوترو نه او دوه رکعته سنت فجر شامل دي. مونږ دا وايو چې کومه توجيه چې ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ په ديارلس، اوولې رکعتونو والا احاديثو کې کړې ده همغه توجيه مونږ پنځه، اوه، نهه او يوولس رکعتونو والا حديثو کې کړو يعنې اته رکعته تهجد سره درې رکعته وتر نو پوره يوولس رکعتونه شو، چا پوره دې لره نقل کړي، بعضې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دشروع دوه رکعته خفيفتين لره او دوتر نه پس نفلو لره ساقط کړي نو "ثلاث عشرة رکعة" شو او بعضې صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دشروع دوه رکعته خفيفتين لره او دوتر نه پس نفلو لره ساقطولو سره سره دفجر سنتو لره هم خارج کړي نو همغوي "احدى عشرة رکعة" ويلي. يا په اخير عمر کې چې کله حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جسم مبارک درونډ شو نو يا حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کله کله دتهجد دوخت شپږ رکعته کول نو دوترو درې رکعه چې ملاو شي نو پوره نهه رکعته شو بعضې حضراتو دهغه زمانې عمل لره روايت کړې دی او ويلي يې دي چې "أوتر بتسع" يا بعضې وخت حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نوره کمي هم کړې او دتهجد يې صرف څلور رکعته کړي، دهغې زمانې عمل "أوتر بسبع" الفاظو سره بيان کړې شو.

غرض دا چې په رواياتو کې "أوتر" يعنې ايتار صرف صلاة الوتر لپاره هم ويلې شوې دې او پوره صلاة الليل لپاره هم دکوم په آخر کې چې دطاق عدد والا مونځ يعنې وتر باندې مشتمل وي.

**دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحديث وضاحت**: دبخاري شريف روايت "ثم أوتر بخمس

ولم يجلس بينهن " مجمل دې په دې کې دا وضاحت نشته چې پنځه رکعته دوترو وو يا دري دوتر دوه دنفل ورسره ملاو دي پنځه رکعته مراد دي خو بيا هم دغه روايت دابن عباس رضي الله عنه واقعه مذکور سره په مسلم شريف کې پدې الفاظو سره وارد شوې دی : "ثم أوتر بثلاث" همدرانګه آثار السنن حديث نمبر ۶۰۹ کې په سند دسعيد بن جبير رضي الله عنه عن ابن عباس دري رکعته وتر منقول دي لهذا دې مجمل روايت لره مفصل روايت باندې حمل کول اولی دي .

او " ولم يجلس بينهن " نه دجلسه طويله نفي مقصود ده کومه چې دعاء او ذکر لپاره وي نفس قعده نفي نشته ، چنانچې معمول هم دغه دې چې دعاء دوترو نه پس کيږي بلکې دنفلو نه پس کيږي

**دعائشي رضي الله عنها توجيه :** "فَيُصَلِّي التَّاسِعَةَ ثُمَّ يَقْعُدُ فَيَذْكُرُ اللهَ وَيَحْمَدُهُ وَيَدْعُوهُ ثُمَّ يُسَلِّمُ تَسْلِيمًا يُسْمِعُنَا ثُمَّ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ " ددې حديث توجيه دا بيان کړې شوې ده په اصل کې په دې يوولس رکعتو کې شپږ دتهجد ، دري دوتر ، او دوه رکعته به دوترو نه پس دنفل وو ، او "لايجلس فيها الا في الثامنة " مطلق دجلسې نفي مقصود نه ده بلکې دداسي جلسي نفي ده دکوم نه پس چې سلام نه وي او مطلب دادې چې داته (۸) رکعتو نه مخکې به دوي په هره جلسه باندې سلام اړولو ليکن په اتم رکعت باندې به يې جلسه کوله نو دسلام نه بغير په نهم رکعت اودريدو کوم چې دوتر دريم رکعت شو او بيا چې به دوترو نه فارغ شو نو دوه رکعته دنفل به يې نور کول ، په دې صورت کې دحضور ﷺ دصلاة الليل نفي هم لازم راځي ځکه چې ټول رکعتونه دنفل شو .

حديث دابن عباس او حديث دعائشه رضي الله عنها ددې توجيه نه بغير هيڅ چاره نشته ، ځکه چې ددواړو حضراتو نه داسي روايتونه په کثرت سره راغلي دي کوم کې چې صراحة يو سلام سره دري رکعته وترو ذکر دې او هيڅ تاويل هم نشي کيداي. والله أعلم بالصواب

**دابوهريره د حديث توجيه :**

په بعضي احاديثو کې دمابنام مونځ لره " وتر النهار " او وتر مونځ لره " وتر الليل " ويلې شوي دي ، کما في حديث أبي العالية " فهذا وتر الليل وهذا وتر النهار " ( آثار السنن : ۶۲۱)

لهذا دابوهريره رضي الله عنه حديث " ﷺ لا توتروا بثلاث تشبهوا بصلاة المغرب " مقصد دادې چې " وتر الليل " کې دمابنام مونځ په شان صرف په دري رکعتو اکتفی مه کوئ بلکې ددېنه مخکې تهجد هم کوئ دا تاويل ضروري دی ورنه ددريو رکعتو وترو والا صحيح او دصريح احاديثو

مخالفت به لازم راشي.

## ﴿بَابُ الْوِتْرِ بِرَكْعَةٍ﴾
## د يو ركعت وترو باب

﴿۵۹۵﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَجُلاً سَأَلَ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ صَلَاةِ اللَّيْلِ فَقَالَ صَلَاةُ اللَّيْلِ مَثْنٰى مَثْنٰى فَإِذَا خَشِيَ اَحَدُكُمُ الصُّبْحَ صَلّٰى رَكْعَةً وَاحِدَةً تُوْتِرُ لَهٗ مَا قَدْ صَلّٰى رواه الجماعة.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې يو سړي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د تهجدو په باره کښې پوښتنه وکړه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د شپې مونځ دوه دوه رکعته دي کله چې يو ستاسي د سهر د ختو نه وويرېږي نو يو رکعت دي وکړي د دې دپاره چې شوي مونځ پرې وتر کړي.

﴿۵۹۶﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيْ بِاللَّيْلِ إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُوْتِرُ مِنْهَا بِوَاحِدَةٍ فَإِذَا فَرَغَ مِنْهَا اِضْطَجَعَ عَلٰى شِقِّهِ الْاَيْمَنِ حَتّٰى يَأْتِيَهُ الْمُؤَذِّنُ فَيُصَلِّيْ رَكْعَتَيْنِ خَفِيْفَتَيْنِ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم د شپې يوولس رکعته مونځ کړې وُ د دې د پاره چې د شوي مونځ ځيني په يو سره وتر کړي کله چې د دې نه فارغ شو په ښي اړخ باندي ئې ډه ډه ووهله تر دې پورې چې مؤذن ورته راغي نو دوه رکعته خفيف مونځ ئې وکړ. د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۵۹۷﴾ وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْتَرَ بِرَكْعَةٍ رواه الدارقطني واسناده صحيح.[3]

---

(۱) بخاري ابواب الوتر ج۱ص ۱۳۵ باب ماجاء في الوتر، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۷ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۸ باب ماجاء ان صلوة الليل مثنى مثنى، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۷ باب صلوة الليل مثنى مثنى، نسائي كتاب قيام الليل ...الخ ج۱ص ۲۴۶ باب كيف صلوة الليل، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوة ...الخ ص ۹۴ باب ماجاء في صلوة الليل ركعتين ...الخ، مسند احمد ج۲ص ۱۰۲.

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۳ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم واخرجه البخاري في ج۱ص ۸۷، ج۱ص ۱۳۵، ج۱ص ۱۵۱، ج۱ص ۱۵۵، ج۱ص ۱۵۶ ج۲ص ۹۳۲ ولكن لم اجد فيه " يُوْتِرُ مِنْهَا بِوَاحِدَةٍ".

(۳) دار قطني كتاب الوتر ج۲ص ۲۳ باب ما يقرأ في ركعات الوتر والقنوت.

**ترجمه** : قاسم بن محمد د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت کړي دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د يو رکعت سره وتر اداء کړي دي . د دي حديث روايت الدار قطني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

**﴿۵۹۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَفْصِلُ بَيْنَ الْوِتْرِ وَالشَّفْعِ بِتَسْلِيمَةٍ وَيُسْمِعُنَاهَا رواه احمد باسناد قوي .**[1]

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د وترو او د دوه ؤ رکعتونو تر منځ په سلام سره فاصله کړي وه او مونږ ته ئي سلام را اوراوه . د دي حديث احمد په قوي اسناد سره کړي دي .

**﴿۵۹۹﴾ وَ عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْوِتْرُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِخَمْسٍ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِثَلَاثٍ فَلْيَفْعَلْ وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يُوتِرَ بِوَاحِدَةٍ فَلْيَفْعَلْ رواه الاربعة و آخرون الا الترمذي والصواب وقفه .**[2]

**ترجمه** : حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي چې وتر په هر مسلمان باندي حق دي (ضروري دي) واجب دي نو څوک چې خوخوي چې پنځه رکعته وتر وکړي نو ودي ئي کړي او څوک چې خوخوي چې دري رکعته وتر وکړي نو هغه دي وکړي او څوک چې خوخوي چې يو رکعت وتر وکړي نو هغه دي وکړي . د دي حديث روايت څلور محدثينو او نورو کړي دي خو ولي ترمذي نه دي کړي او برابره خبره دا ده چې دا حديث موقوف دي .

**﴿۶۰۰﴾ وَ عَنْ سَالِمِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَفْصِلُ بَيْنَ شَفْعِهِ وَ وِتْرِهِ بِتَسْلِيمَةٍ وَأَخْبَرَ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَفْعَلُ ذٰلِكَ رواه الطحاوي وفي اسناده مقال .**[3]

**ترجمه** : د سالم بن عبد الله بن عمر نه روايت دي چې ابن عمر رضي الله عنه د خپلو دوه ؤ رکعتونو او وترو په منځ کې په سلام سره جداي وکړه او ابن عمر رضي الله عنه خبر ورکړي چې بي شکه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به دغه فعل کاوه . د دي حديث روايت طحاوي کړي او په اسناد کې ئي خبري دي .

---

(۱) مسند احمد ج۲ص۷۶.

(۲) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۱ باب کم الوتر ، نسائي کتاب قيام الليل ...الخ ج۱ص ۲۴۹ باب کيف الوتر بثلاث، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوة ص ۸۵ باب ماجاء في الوتر بثلاث ...الخ ، مستدرک حاکم کتاب الوتر ج۱ص ۳۰۳ باب الوتر حق.

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۲ باب الوتر .

﴿۶۰۱﴾ وَعَنْ نَافِعٍ اَنَّ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُسَلِّمُ بَيْنَ الرَّكْعَةِ وَالرَّكْعَتَيْنِ فِي الْوِتْرِ حَتّٰى يَأْمُرَ بِبَعْضِ حَاجَتِهٖ رواه البخاري .[1]

**ترجمه**: د نافع نه روايت دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنه دوترو په يواودوه ؤركعتونو كې سلام گرځاوه تر دې چې امر به يې كاوه د خپل څيني حاجت په باره كې. د دې حديث روايت بخاري كړې.

﴿۶۰۲﴾ وَعَنْ بَكْرِ بْنِ عَبْدِ اللهِ الْمُزَنِي قَالَ صَلّٰى ابْنُ عُمَرَ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ قَالَ يَا غُلَامُ ارْحَلْ لَنَا ثُمَّ قَامَ وَ اَوْتَرَ بِرَكْعَةٍ رَوَاه سَعِيْدُ بْنُ مَنْصُوْرٍ و قال الحافظ في الفتح باسناد صحيح .[2]

**ترجمه** : بكر بن عبدالله المزني رضي الله عنه ويلي دي چې ابن عمر رضي الله عنه دوه ركعته ادا كړه بيا ئې وويل چې اې هلكه ځما په سورليځ كجاوه كيده بيا پاڅيده او په يو ركعت ئې وتر كړه . د دي حديث روايت سعيد بن منصور كړي دي او حافظ په فتح كې ويلي دي په صحيح سند سره .

﴿۶۰۳﴾ وَعَنِ ابْنِ اَبِي مُلَيْكَةَ قَالَ اَوْتَرَ مُعَاوِيَةُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بَعْدَ الْعِشَاءِ بِرَكْعَةٍ وَعِنْدَهٗ مَوْلٰى لِابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَاَتَى ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَاَخْبَرَه فَقَالَ دَعْه فَاِنَّه قَدْ صَحِبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه البخاري .[3]

**ترجمه** : ابن ابي مليكه ويلي دي چې معاويه ذ ماسختن نه روسته يو ركعت وتر وكړه او د ده سره د حضرت ابن عباس رضي الله عنه مولى موجود ؤ ابن عباس رضي الله عنه ته ورغي او خبر ئې كړ ابن عباس رضي الله عنه وويل دا پريږده په تحقيق د ده د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره صحبت شوي دي . د دي حديث روايت بخاري كړي دي .

﴿۶۰۴﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ التَّيْمِي قَالَ قُلْتُ لَايَغْلِبَنِي اللَّيْلَة عَلَى الْمَقَامِ اَحَدٌ فَقُمْتُ اُصَلِّي فَوَجَدْتُ حِسَّ رَجُلٍ مِنْ خَلْفِ ظَهْرِي فَاِذَا عُثْمَانُ بْنُ عَفَّانَ فَتَنَحَّيْتُ لَه فَتَقَدَّمَ فَاسْتَفْتَحَ الْقُرْآنَ حَتّٰى خَتَمَ ثُمَّ رَكَعَ وَسَجَدَ فَقُلْتُ اَوهَمَ الشَّيْخُ فَلَمَّا قُلْتُ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ اِنَّمَا صَلَّيْتَ رَكْعَةً وَاحِدَةً فَقَالَ اَجَلْ هِيَ وِتْرِي رواه الطحاوي و الدارقطني و اسناده حسن .[4]

---

(۱) بخاري ابواب الوتر ج۱ص۱۳۵ باب ماجآء في الوتر .
(۲) فتح الباري ابواب الوتر ج۲ص۱۳۴ نقلا عن سعيد بن المنصور ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۱۹۲ باب الوتر.
(۳) بخاري كتاب المناقب ج۱ص۵۳۱ باب ذكر معاوية رضي الله عنه .
(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۲۰۲ باب الوتر ، دار قطني كتاب الوتر ج۲ص۳۴ باب ما يقرأ في ركعات الوتر...الخ.

**ترجمه** : د عبدالرحمن التيمي ويلي دي چې ما په خپل زړه کې ويلي وُ چې زمانه به نن شپه تهجدو ته څوک هم مخکې پانه څيږي نو زه پاڅيدم مونځ مي کاوه چې د خپلې شانه روسته مي دير سړي کشاري واوريده نو هغه حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وُ نو زه د هغه د وجهې نه يو طرف ته شوم نو هغه وړاندي شو نو قرآن شريف ئي شروع کړ تر دي پوري چې ختم ئي کړ بيا ئي رکوع او سجده وکړه نو ما وويل چې بودا وهم کړي نو کله چې هغه مونځ وکړ ما وويل اي امير المؤمنين تا يو رکعت مونځ وکړ نو هغه وويل چې هو دا څما وتر دي . د دي حديث روايت طحاوي الدار قطني کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۶۰۵﴾ عن عَبْدِ الله بْنِ سَلَمَةَ قَالَ اَمَّنَا سَعْدُ بْنُ اَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي صَلَاةِ الْعِشَاءِ الْآخِرَةِ فَلَمَّا انْصَرَفَ تَنَحَّى فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ فَصَلَّى رَكْعَةً فَاتَّبَعْتُهُ فَاَخَذْتُ بِيَدِهِ فَقُلْتُ يَا اَبَا اِسْحَاقَ مَا هٰذِهِ الرَّكْعَةُ فَقَالَ وِتْرٌ اَنَامُ عَلَيْهِ قَالَ عَمْرٌو فَذَكَرْتُ ذٰلِكَ لِمُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ فَقَالَ كَانَ يُوتِرُ بِرَكْعَةٍ يَعْنِي سَعْدًا رواه الطحاوي و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** : عبدالله بن سلمه ويلي دي چې مونږ ته سعد بن ابي وقاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماسختن په مانځه کې امامت وکړ نو کله ئي چې سلام واړاوه نو د مسجد يو کونج ته شو نو يو رکعت مونځ ئي وکړ نو زه هم د ده پسې شوم مائي لاس ونيو ورته ومي ويل چې اي ابا اسحق دا رکعت څه شي دي نو هغه وويل چې وتر دي زه په دي باندي اوده کيږم عمر وويلي دي چې ما مصعب بن سعد ته دا خبره وکړه نو هغه وويل هغه به يو رکعت وتر کاوه يعني سعد . د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۶۰۶﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الله بْنِ ثَعْلَبَةَ بْنِ صُغَيْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ مَسَحَ وَجْهَهُ زَمَنَ الْفَتْحِ اَنَّهُ رَاٰى سَعْدَ بْنَ اَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ كَانَ سَعْدًا قَدْ شَهِدَ بَدْرًا مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِوَاحِدَةٍ بَعْدَ صَلَاةِ الْعِشَاءِ لَا يَزِيدُ عَلَيْهَا حَتّٰى يَقُومَ مِنْ جَوْفِ اللَّيْلِ رواه البيهقي في المعرفة و اسناده صحيح .[2]

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صــ ۲۰۳ باب الوتر .

(۲) معرفة السنن والآثار کتاب الصلوة ج۴ صــ ۵۹ رقم الحديث ۵۴۵۹ ، بخاري کتاب الدعوات ج۲ صــ ۹۴۰ باب الدعاء للصبيان بالبرکة .

قال النِّيموي وَفِي البَابِ آثَارٌ أُخرىٰ جلّها لَا تخلو عَنْ مَقَالٍ وَالأمرُ وَاسِعٌ لٰكنَّ الأفضَلُ أَنْ يُصَلِّي تَطَوُّعًا ثُمَّ يُصَلِّي الوِتْرَ بِثَلاثِ رَكْعَاتٍ مَوصُولَة.

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن ثعلبه بن صغير رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د مکې د فتحې په موقع د ده مخ په خپل مبارک لاس باندې مسح کړې ؤ هغه سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه په داسې حال کې ليدلي ؤ چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره بدر ته حاضر شوي ؤ چې هغه به د ماسختن د مانځه نه روسته يو رکعت وتر کول او په دې يو رکعت باندې به ئې زيات والې نه کاوه تهجدو ته تر د نيمې شپې د پاڅيدو پورې. د دې حديث روايت بيهقي کړې دې په المعرفه کې او اسناد ئې صحيح دې.

نيموي رحمه الله ويلي دي چې په باب کې نور اثار هم شته چې زياتر ئې د تنقيد نه خالي نه دي د وترو د اداء کولو کار پراخه دې خو ولې افضله دا ده چې نفل مونځ وکړې بيا په وصل سره درې رکعته وتر په يو سلام سره اداء کړي.

## په يو رکعت وتر باندې دشافعيه او حنابلو دلائل:

دباب ټول حديثونه په ظاهر کې ددې حضراتو دليلونه دي، ددلائلو خلاصه په لاندې ډول ده:

۱... حديث دعائشي رضي الله عنها "أن النبي صلی الله علیه وسلم أوتر بركعة".

۲... حضرت ابن عمر رضي الله عنه به دوترو په دوو رکعتونو باندې سلام اړولو بيا يو رکعت به يې ځانله کولو او فرمائل به يې: چې حضور صلی الله علیه وسلم به هم داسې کول.

۳... حديث دابن ابي مليکه رحمه الله چې حضرت معاويه به يو رکعت وتر ادا کول.

۴... حضرت سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه به هم ديو رکعت په وتر ادا کولو باندې اکتفا کوله.

۵... حضرت عثمان رضي الله عنه نه مروي په يو واقعه کې هغه فقط يو رکعت وتر کړې وو.

## داحنافو رحمه الله دطرف نه جوابات:

۱... دعائشي رضي الله عنها وغيره کې "ايتار بركعة" محتمل او غير واضح کلمات دي، حضور صلی الله علیه وسلم نه مروي يو سلام سره درې رکعت والا دصريح روايتونو په رڼا کې ددې جملې مطلب دادې چې دتهجد دشفعې سره دې يو رکعت اضافه کړې شي او دې لره دې درې رکعته وتر اوګرزولې شي نه دا چې صرف يو رکعت دې اوکړې شي که دا مطلب وانه خيستلې شي نو "ايتار بواحدة" به دهغه روايتونو هم مخالف وي کوم کې چې حضور صلی الله علیه وسلم د "بتيراء" يعنې صرف ديو رکعت والا مونځ نه منع فرمايلې ده.

۲... دحضرت ابن عمر رضي الله عنه په روايت کې دوه خبرې دي : (۱) دده خپل عمل چې دوه رکعته به يې ځانله او يو رکعت به يې ځانله ادا کولو .(۲) ددې عمل نسبت يې حضور صلى الله عليه وسلم طرفته اوکړ. ددې څو جوابونه ورکړل شوي دي :

۱- ممکنه ده "يفصل بين شفعه ووتره بتسليمة" کې دتسليمه نه تشهد والاسلام يعني "السلام عليک أيها النبي... الخ مراد وي او دا هم چې دمونځ نه دوتلو لپاره يې سلام ويلي وي .

۲- علامه محمد انور شاه کشميري رحمه الله فرمايي چې ددې عمل حضور صلى الله عليه وسلم طرفته په ټولو خبرو کې ضروري نه دې بلکې عين ممکن دې چې نسبت صرف په دريو رکعتو وتر کيدو کې وي.

۳- ابن عمر رضي الله عنه تشهد اول کې "السلام عليک أيها النبي... الخ" لره فسخ صلاة ګڼلو ، لهذا کيداې شي چې هغوي چې کله حضور صلى الله عليه وسلم لره په تشهد اول کې "السلام عليک" په ويلو اوليدو نو هغه دا اوګڼل چې حضور صلى الله عليه وسلم په دوو رکعتونو باندې نيت ختم کړو او بل رکعت يې مستقل نيت سره ادا کړو ، نو ددې نسبت بنياد حضرت ابن عمر رضي الله عنه خپل اجتهاد وو نه دا چې في الحقيقت قطع دصلوة شوي وه .

الغرض حديث دابن عمر رضي الله عنه کې مذکوره احتمالات موجوديدو کې ددېنه ايتار برکعة باندې استدلال صحيح نه دی.

**۳...دحضرت معاويه رضي الله عنه عمل** : دروايت سياق او سباق دا ښائي چې دا دحضور صلى الله عليه وسلم اجتهاد وو نه حديث مرفوع ، چنانچې ابن عباس رضي الله عنه ته چې کله ددوي ددې عمل خبر ورکړې شو نو هغه ددتصديق په ځاي دا اوويل چې هغه دحضور صلى الله عليه وسلم دصحابو نه دې ممکنه ده چې دخپل فقاهت نه يې داسي کړي وي ، دبخاري شريف ديو بل روايت په الفاظو کې ددې صراحت هم دې : دعه ، فأنه فقيه همدارنګه الفاظ "أوتر بعد العشاء بركعة" نه دا هم ممکنه ده چې حضرت معاويه رضي الله عنه يو رکعت يې ورسره ملاو کړې وي او فقط دري رکعت يې ادا کړي وي نور نوافل يې نه وي ادا کړي نو ابن عباس هم دده عظيم سعادت يعني حصول صحبت رسول الله صلى الله عليه وسلم په ذکر باندې اکتفى اوکړه.

**۴... دحضرت سعد رضي الله عنه عمل** : "ايتار بواحدة" په مسئله باندې نورو صحابو ددوي موافقت اونکړ بلکې دطحاوي شريف دروايت مطابق ابن مسعود رضي الله عنه په ده باندې تنقيد کړې وو همدارنګې دا هم ممکنه ده چې ايتار بواحدة نه مراد دلته هم دوو رکعتونو سره دې يو رکعت ملاويدل او دري رکعته وتر لوستلې وي ،علامه نيموي همدې معنې لره اختيار کړي ده .

۵... د حضرت عثمان رضي الله عنه مذکوره واقعه هم د احتمال نه خالي نه ده ، ځکه چې عين ممکنه ده چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په شان هغه هم د دوو رکعتو نه پس د سلام اړولو قائله وي د ريم رکعت يې ځانله اداکړې وي. بهرحال په دې باب کې شافعيه او حنابله سره هيڅ صريح حديث موجود نشته دې.

## ﴿بَابُ الْوِتْرِ بِثَلَاثِ رَكْعَاتٍ﴾

## په دريو رکعتونو سره دوترو باب

﴿۶۰۷﴾ عَنْ أَبِي سَلَمَةَ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا كَيْفَ كَانَتْ صَلَاةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ فَقَالَتْ مَا كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيْرِهِ عَلَى إِحْدٰى عَشْرَةَ رَكْعَةً يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّي أَرْبَعًا فَلَا تَسْأَلْ عَنْ حُسْنِهِنَّ وَطُولِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثًا قَالَتْ عَائِشَةُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَتَنَامُ قَبْلَ أَنْ تُوتِرَ فَقَالَ يَا عَائِشَةُ إِنَّ عَيْنَيَّ تَنَامَانِ وَلَا يَنَامُ قَلْبِي رواه البخاري .(۱)

**ترجمه** : د ابي سلمه ابن عبدالرحمن نه روايت دي چې هغه د حضرت عائشې رضي الله عنها نه پوښتنه وکړه چې د رمضان په مياشت کې د رسول الله صلی الله عليه وسلم مونځ څنګه ؤ نو هغې وويل چې نه زيانه ؤ رسول الله صلی الله عليه وسلم په رمضان کې او نه په غير د رمضان کې په يوولسو رکعتونو باندې رسول الله صلی الله عليه وسلم څلور رکعته مونځ اداکړ نو د هغې د ښه والي او اوږدوالي پوښتنه مه کوه بيا ئې څلور رکعته مونځ اداء کړنو د هغې د ښه والي او اوږدوالي پوښتنه مه کوه بيا ئې دري رکعته مونځ اداء کړ حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې ما رسول الله صلی الله عليه وسلم ته وويل چې اې د الله جل شانه رسوله آيا ته د وترو نه مخکې ؤده کيږې نو رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې اې عائشې زما سترګې ؤدې کيږي او زړه مې نه ؤده کيږي. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۶۰۸﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ عِنْدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاسْتَيْقَظَ فَتَسَوَّكَ وَتَوَضَّأَ وَهُوَ يَقُولُ ـ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ لَآيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ فَقَرَأَ هٰؤُلَاءِ الْآيَاتِ حَتّٰى خَتَمَ السُّورَةَ ثُمَّ قَامَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ فَأَطَالَ فِيهِمَا الْقِيَامَ وَالرُّكُوعَ وَالسُّجُودَ ثُمَّ انْصَرَفَ فَنَامَ حَتّٰى نَفَخَ ثُمَّ فَعَلَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ سِتَّ رَكَعَاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ يَسْتَاكُ وَيَتَوَضَّأُ وَ

---

(۱) بخاري کتاب التهجد ج ۱ ص ۱۵۴ باب قيام النبي صلی الله عليه وسلم بالليل في رمضان وغيره .

يَقْرَأُ هٰؤُلَاءِ الآيَاتِ ثُمَّ اَوْتَرَ بِثَلَاثٍ رواه مسلم .(۱)

**ترجمه** : علي ابن عبد الله بن عباس د حضرت عبد الله عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت کړي دي چې هغه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره ؤوده شوي ؤ نو راپيدا رشو نو مسواک ئي استعمال کړ او اودس ئي وکړ او د دي ايتونو تلاوت ئي کاوه :

اِنَّ فِي خَلْقِ السَّمَاوَاتِ وَالأَرْضِ وَاخْتِلاَفِ اللَّيلِ وَالنَّهارِ لَأيَاتٍ لِأُولِي الْأَلْبَابِ يعني په تحقيق په پيدائش د اسمانونو او د ځمکي کې او په اختلاف د شپي او د ورځي کې خامخا نښي نښاني دي دپاره د صاحبانو د خالصو عقلونو دا ايتونه ئي ولوستل تر دي پوره چې سورت ئي ختم کړ بيا پاځيده نو دوه رکعته مونځ ئي وکړ نو اوږده ئي کړل په دغه دواړو کې قيام. رکوع او سجده بيا ئي سلام واړاؤ نو اوده شو تر دي پوري چې خرار ئي وکړ بيا ئي دري ځله دا کار وکړ او شپږ رکعتونه ئي اداء کړل په دي هر يو ځل به ئي مسواک وانه اودس به ئي کاوه او دغه آياتونه به ئي تلاوت کړل بيا ئي دري رکعته وتر وکړل. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۶۰۹﴾ و عنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الأَعْلَى وَ قُلْ يَاۤ ايها الكَافِرُونَ وَ قُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ رواه الخمسة الا اباداود و اسناده حسن.(۲)

**ترجمه** : سعيد بن جبير د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کړي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په سبح اسم ربك الاعلیٰ قل ياايها الكافرون او په قل هوالله احد سره وتر ادا فرمايل. د دي حديث روايت د ابوداؤد نه په غير پنځو محدثينو کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

﴿۶۱۰﴾ و عن اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوتِرُ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الأَعْلَى وَ قُلْ يا ايها الكافرون و قل هو الله احد رواه الخمسة الا الترمذي و اسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : حضرت ابي ابن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په سبح اسم ربك

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج صـــ ۲۶۱ باب صلوة النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ودعائه بالليل .

(۲) نسائي كتاب قيام الليل ...الخ ج۱صـــ ۲۴۹ باب كيف الوتر بثلاث ، ترمذي ابواب الوتر ج۱صـــ ۱۰۶ باب ماجاء ما يقرأ في الوتر ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوة صـــ ۸۳ باب ماجاء فيما يقرأ في الوتر ، مسند احمد ج۱صـــ ۳۰۵ .

(۳) نسائي كتاب قيام الليل ج۱صـــ ۲۴۸ باب كيف الوتر بثلاث ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۱۰ باب ما يقرأ في الوتر، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوة صـــ ۸۳ باب ماجاء فيما يقرأ في الوتر ، مسند احمد ج ۵ صـــ ۱۲۳.

الاعلیٰ، قل یاایها الکافرون او قل هو الله احد سره وتر اداء فرمایل. د دې حدیث روایت د ترمذي نه په غیر پنځو محدثینو کړې دې او اسناد ئې صحیح دې.

﴿۶۱۱﴾ و عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْرَأُ فِي الْوِتْرِ بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ بِقُلْ يا أيها الكافرونَ وَ فِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هوَ الله أَحَدٌ وَلَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ وَ يَقُولُ يعني بَعْدَ التَّسْلِيمِ سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ ثَلَاثاً رواه النسائي و اسناده حسن.[1]

**ترجمه**: او حضرت أبي بن کعب رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په وترو کې سبح اسم ربک الاعلی او په دویم رکعت کې قل یاایها الکافرون او په دریم رکعت کې قل هو الله احد لوسته او سلام به ئې نه گرځاوه مگر د دې په اخر رکعت کې او د سلام نه پس به ئې درې ځلې دا دعاء فرمایله سبحان الملک القدوس. د دې حدیث روایت نسائي کړې او اسناد ئې حسن دې.

﴿۶۱۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبْزَى أَنَّهُ صَلَّى مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْوِتْرَ فَقَرَأَ فِي الْأُولَى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى وَ فِي الثَّانِيَةِ قُلْ يَاأَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ فِي الثَّالِثَةِ قُلْ هوَ الله أَحَدٌ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ ثَلَاثاً يَمُدُّ صَوْتَهُ بِالثَّالِثَةِ رواه الطحاوي و احمد و عبد بن حميد و النسائي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: د حضرت عبد الرحمن بن ابزي نه روایت دې چې ده د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم سره وتر مونځ کاوه نو په اول رکعت کې ئې سبح اسم ربك الاعلىٰ او په دویم رکعت کې ئې قل یاایها الکافرون او په دریم رکعت کې به ئې قل هو الله احد لوسته نو کله به چې د مانځه نه فارغ شو نو درې ځله به ئې دا دعاء لوستله: سبحان الملك القدوس او په دریم ځل به ئې پرې ډېر مبارک اواز اوچتاوه. د دې حدیث روایت طحاوي، احمد، عبد بن حُمید او نسائي کړې او اسناد ئې صحیح دې.

﴿۶۱۳﴾ وَ عَنْ زُرَارَةَ بْنِ أَوْفَى عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ أَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حَدَّثَتْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ رواه النسائي و آخرون و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: زراره ابن اوفي د سعد بن هشام نه روایت کړې دې چې حضرت عائشې رضي الله عنها هغه ته

(۱) نسائي كتاب قيام الليل ....الخ ج۱ص ۲۵۱ باب القراءة في الوتر.
(۲) نسائي كتاب قيام الليل ....الخ ج۱ص ۲۵۱ باب القراءة في الوتر، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۱ باب الوتر واللفظ له، مسند احمد ج۳ ص ۴۰۶ وله مسائله النسائي في عمل اليوم والليلة بروايات مختلفة فانظر مع ترجمه نبوي ليل ونهار ص ۴۳۳ برقم ۷۲۹ الى ۷۴۴.
(۳) نسائي كتاب قيام الليل ج۱ص ۲۴۸ باب كيف الوتر بثلاث.

حديث بيان کړي دي چې رسول اکرم ﷺ به د وترو په دوه ؤ رکعتونو سلام نه ګرځاوه د دي حديث روايت نسائي او نورو کړي او اسناد صحيح دي.

﴿٦١٤﴾ و عَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَعْدِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولَ اللهِ ﷺ كَانَ إِذَا صَلَّى الْعِشَاءَ دَخَلَ الْمَنْزِلَ ثُمَّ صَلَّى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ صَلَّى بَعْدَهُمَا رَكْعَتَيْنِ اَطْوَلَ مِنْهُمَا ثُمَّ اَوْتَرَ بِثَلَاثٍ لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ رواه احمد باسنادٍ يُعْتَبَرُ بِهِ (١)

**ترجمه**: حسن د سعد بن هشام په واسطه د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت کړي چې رسول اکرم ﷺ به چې کله د ماسختن مونځ وکړ نو کور ته به ئي تشريف ويوړ بيا به ئي دوه رکعته مونځ وکړ بيا به ئي د دي نه روسته نور دوه رکعته مونځ وکړ چې هغه به د مخکې دواړو رکعتونو نه اوږده ؤ بيا به ئي دري رکعته وتر وکړل او د دي تر منځ به ئي فاصله نه فرمايله. د دي حديث روايت احمد په معتبر سند سره کړي دي.

﴿٦١٥﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِي قَيْسٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا بِكَمْ كَانَ رَسُولُ اللهِ يُوتِرُ قَالَتْ بِأَرْبَعٍ وَ ثَلَاثٍ وَ سِتٍّ وَ ثَلَاثٍ وَ ثَمَانٍ وَ ثَلَاثٍ وَ عَشَرَةٍ وَ ثَلَاثٍ وَ لَمْ يَكُنْ يُوتِرُ بِأَكْثَرَ مِنْ ثَلَاثَ عَشَرَةَ وَلَا اَنْقَصَ مِنْ سَبْعٍ رواه احمد و ابوداود والطحاوي و اسناده حسن. (٢)

**ترجمه**: عبدالله بن ابي قيس ويلي چې ما د حضرت عائشي رضي الله عنها نه پوښتنه کړي ده چې رسول الله ﷺ به څو رکعته وتر کول حضرت عائشي رضي الله عنها وويل چې څلور او دري. شپږ او دري. اته او دري لس او دري او رسول الله ﷺ د ديارلسو رکعتونو نه زيات او د اووۀ رکعتونه کم وتر نهٔ ادا کړي. د دي حديث روايت احمد، ابوداؤد او طحاوي کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

﴿٦١٦﴾ و عَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ جُرَيْجٍ قَالَ سَأَلْتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا اُمَّ الْمُؤْمِنِينَ بِاَيِّ شَيْءٍ كَانَ يُوتِرُ رَسُولُ اللهِ ﷺ قَالَتْ كَانَ يَقْرَأُ فِي الْاُولٰى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلٰى وَفِي الثَّانِيَةِ بِقُلْ يَا اَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَفِي الثَّالِثَةِ بِقُلْ هُوَ اللهُ اَحَدٌ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ رواه احمد والاربعة الا النسائي و اسناده حسن. (٣)

---

(١) مسند احمد ج ۶ صـ ۱۵۵.

(٢) مسند احمد ج۶ص۱۴۹، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱صـ ۱۹۳ باب في صلوة الليل، طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۹۶ باب الوتر.

(٣) مسند احمد ج۶ صـ ۲۲۷، ترمذي ابواب صلوة الوتر ج۱صـ ۱۰۶ باب ماجآء ما يقرأ في الوتر، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱صـ ۲۰۱ باب ما يقرأ في الوتر، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات صـ ۸۳ باب ماجآء فيما يقرأ في الوتر.

**ترجمه** :عبدالعزیز بن جریج ویلي دي چې ما د حضرت عائشي رضي الله عنها ام المؤمنین نه پوښتنه کړي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په څه شي باندي وتر کړي دي هغي وویل چې په اول رکعت کې ئي په سبح اسم ربك الاعلی او په دویم رکعت کې ئي قل یاایها الکافرون او په دریم رکعت کې ئي قل هوالله احد او معوذتین یعني سورت فلق او سورت ناس تلاوت کول. د دي حدیث روایت احمد او نسائي نه په غیر څلورو محدثینو کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

﴿۶۱۷﴾ و عَنْ عُمْرَةَ عَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ بِثَلَاثٍ يَقْرَأُ فِي الرَّكْعَةِ الْأُولَى بِسَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْاَعْلَى وَ فِي الثَّانِيَةِ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ وَ فِي الثَّالِثَةِ قَالَ هُوَ اللهُ اَحَدٌ وَ قُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَ قُلْ اَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ رواه الدار قطني والطحاوي و صححه.[1]

**ترجمه** : عمره د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روایت کړي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به دري رکعته وتر فرمایل په اول رکعت کې به ئي سبح اسم ربک الاعلی او په دویم رکعت کې به ئي قل یاایها الکافرون او په دریم رکعت کې به ئي قل هوالله احد قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس تلاوت فرمایه. دا حدیث دار قطني او طحاوي کړي دي او طحاوي صحیح ګڼلي دي.

﴿۶۱۸﴾ و عَنِ الْمِسْوَرِ بْنِ مَخْرَمَةَ قَالَ دَفَنَّا اَبَابَكْرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لَيْلاً فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِنِّي لَمْ اُوتِرْ فَقَامَ وَصَفَفْنَا وَرَاءَهُ فَصَلَّى ثَلَاثَ رَكَعَاتٍ لَمْ يُسَلِّمْ اِلَّا فِي آخِرِهِنَّ اخرجه الطحاوي و اسناده صحیح.[2]

**ترجمه** : مسور بن مخرمه ویلي دي چې مونږ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه د شپي ښخ کړ نو حضرت عمر رضي الله عنه وویل چې ما وتر نه دي کړي نو ودرید او مونږ ورپسي صف جوړ کړ نو مونږ ته ئي دري رکعته وتر وکړل او سلام ئي فقط په اخري رکعت کې وګرځاوه. د دي حدیث اخراج طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحیح دي.

﴿۶۱۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ الْوِتْرُ ثَلَاثٌ كَوِتْرِ النَّهَارِ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ رواه الطحاوي و اسناده صحیح.[3]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ویلي دي چې وتر دري رکعته دي لکه چې د ورځي

---

(۱) دار قطني کتاب الوتر ج۲ص ۳۵ باب ما یقرأ في رکعات الوتر ، طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۶ باب الوتر.

(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۲ باب الوتر.

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۲ باب الوتر.

وتر د ماښام مونځ دي. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۲۰﴾ وَعَنْ ثَابِتٍ قَالَ صَلَّى بِي اَنَسٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اَلْوِتْرَ وَاَنَا عَنْ يَمِيْنِهٖ وَاُمُّ وَلَدِهٖ خَلْفَنَا ثَلَاثَ رَكْعَاتٍ لَمْ يُسَلِّمْ اِلَّا فِيْ آخِرِهِنَّ فَظَنَنْتُ اَنَّهٗ يُرِيْدُ اَنْ يُعَلِّمَنِيْ رواه الطحاوي واسناده صحيح. [1]

**ترجمه**: ثابت وېلي دي چې ماته حضرت انس رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ دري رکعته وتر مونځ وکړ چې زه ئي ښي خوا ته وُم او د هغه ام ولده زمونږ نه روسته وه او سلام ئي فقط د دي رکعتونو په اخر کې واړاوه زما غالب ګمان داؤ چې هغه ماته د وترو طريقه ښودله. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۲۱﴾ وَعَنْ اَبِيْ خَالِدَةَ قَالَ سَاَلْتُ اَبَا الْعَالِيَةِ عَنِ الْوِتْرِ فَقَالَ عَلَّمَنَا اَصْحَابُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوْ عَلَّمُوْنَا اَنَّ الْوِتْرَ مِثْلَ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ غَيْرَ اَنَّا نَقْرَأُ فِي الثَّالِثَةِ فَهٰذَا وِتْرُ اللَّيْلِ وَهٰذَا وِتْرُ النَّهَارِ رواه الطحاوي واسناده صحيح. [2]

**ترجمه**: ابو خالد وېلي دي چې ما د وترو په باره کې د ابو العاليه نه پوښتنه کړي نو هغه وويل چې مونږ ته د محمد صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابه کرامو د وترو تعليم کاوه او يائي وېلي دي چې هغو مونږ ته تعليم راکاوه چې وتر د ماښام د مانځه په شان دي خو ولي دومره ده چې مونږ به د وترو په دريم رکعت کې قرأت کاوه دا د شپې وتر دي او هغه د ورځې وتر دي. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۲۲﴾ وَعَنِ الْقَاسِمِ قَالَ وَرَاَيْنَا اُنَاسًا مُنْذُ اَدْرَكْنَا يُوْتِرُوْنَ بِثَلَاثٍ وَاِنَّ كُلًّا لَوَاسِعٌ وَاَرْجُوْ اَنْ لَا يَكُوْنَ بِشَيْءٍ مِنْهُ بَاْسٌ رواه البخاري. [3]

**ترجمه**: قاسم وېلي دي مونږ خلک ليدلي دي د کوم وخت نه چې مونږ بلوغ ته رسيدلي يو هغو به دري رکعته وتر کول او بې شکه د وترو هره يوه طريقه واسع ده او په يوه شئ کې به هم باک او حرج نه وي. روايت د دي حديث بخاري کړي دي.

﴿۶۲۳﴾ وَعَنْ اَبِي الزِّنَادِ عَنِ السَّبْعَةِ سَعِيْدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ وَعُرْوَةَ بْنِ الزُّبَيْرِ وَالْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ وَاَبِيْ

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۲۰۲ باب الوتر.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۲۰۲ باب الوتر.

(۳) بخاري ابواب الوتر ج۱ص۱۳۵ باب ماجاء في الوتر.

بَكرِ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ وَ خَارِجَة بنِ زَيدٍ وَ عُبَيدِ اللهِ بنِ عَبدِ اللهِ وَ سُلَيمَانَ بنِ يَسَارٍ فِي مَشيخَة سِوَاهُم أَهلُ فِقه وَصَلاَحٍ وَ فَضلٍ وَ رُبَّمَا اختَلَفُوا فِي الشَّيءِ فَأَخَذَ بِقَولِ أَكثَرِهِم وَ أَفضَلِهِم رَأيا فَكَانَ مِمَّا وَعَيتُ عَنهُم عَلَى هٰذِهِ الصِّفَةِ أَنَّ الوِترَ ثَلاَثٌ لَا يَسلِمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ رواه الطحاوي و اسناده حسن.[1]

**ترجمه**: ابي الزناد د اوؤ کسانو تابعينو، سعيد بن المسيب، عروه ابن الزبير، قاسم بن محمد، ابي بکر ابن عبدالرحمن، خارجه ابن زيد، عبيدالله ابن عبدالله، سليمان ابن يسار د دوي نه په غير يو فقيه د صلاح او د فضل خاوندانو په موجودګئ کې روايت کړي دي او کله به چې هغوي په يو شئ کې اختلاف وکړنو د داسې کس په ول به ئې عمل کاوه چې د زياتي بنې رأي او فضيلت والا به ؤ کومه خبره چې ما د دوي نه په دغه صفت سره ياده کړي ده هغه دا ده چې وتر دري رکعته دي او سلام به ئې فقط د دي رکعتونو په اخر کې اړاوه. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۲۲۲﴾ وَ عَنه قَالَ أَثبَتَ عُمَرُ بنُ عَبدِ العَزِيزِ الوِترَ بِالمَدِينَة بِقَولِ الفُقَهَاءِ ثَلاَثاً لاَ يَسلِمُ إِلاَّ فِي آخِرِهِنَّ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: او ابي الزناد ويلي دي چې حضرت عمر ابن عبد العزيز په مدينه منوره کې د فقهاؤ کرامو د قول موافق دري رکعته وتر مقرر کړي دي چې سلام فقط د دي دري رکعتونو په اخر کې دي. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې صحيح دي.

## په يو رکعت سره دري رکعته وتر باندې داحنافو دلائل:

دباب ټول په ټوله مرفوع او موقوف حديثونه په مسئلة الباب کې دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ واضح دليلونه دي، په بعضو کې وتر دري رکعتو کيدو او په بعضو کې سو سلام سره ددري کعت په کيدو کې صراحت موجود دې اهم دليلونه اجمالا په لاندې ډول دي:

۱. حديث دابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ "ثم أوتر بثلاث" وعنه ايضا "كَانَ يوتِرُ بِسَبِّحِ اسمَ رَبِّكَ الأَعلَى وَ قُل يَا أَيُّهَا الكَافِرُونَ وَ قُل هُوَ اللهُ أَحَدٌ" همدغه روايت دابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنهُ، عبد الرحمن بن أبزي رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم مروي دی ددې مطابق دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دائمي

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۰۴ باب الوتر.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۰۳ باب الوتر.

معمول دري ركعته دوترو كول وو .

٢. حديث د عائشه رضي الله عنها : "كَانَ لَا يُسَلِّمُ فِي رَكْعَتَيِ الْوِتْرِ" .

٣. حديث د عبدالله بن أبي قيس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عن عائشه رضي الله عنها : "بِأَرْبَعٍ وَثَلَاثٍ وَسِتٍّ وَثَلَاثٍ وَثَمَانٍ وَثَلَاثٍ وَعَشَرَةٍ وَثَلَاثٍ" ددې حديث نه په تولو حديثونو کې تطبيق پيدا كيږي ځكه چې صفا صفا ښودلې شوي دي چې كوم ځاي كې چې حضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اوه ركعته كړي نو هلته به څلور نفل او دري وتره وو ، او كوم ځاي كې يې چې څلور كړي هلته اته نفل او دري وتر به وو او كوم ځاي كې چې يې ديارلس ركعته كړي نو هلته به لس دوترو نه علاوه دري نور وتر وو ، بهرحال وتر هميشه دري ركعته كيږي .

٤.... حديث د مسور عن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ : "فصلى بنا ثلاث ركعات لم يسلم الا في آخرهن" .

٥... حديث د ابن مسعود رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ موقوفا : "اَلْوِتْرُ ثَلَاثٌ كَوِتْرِ النَّهَارِ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ" .

٦... حديث د ثابت رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ موقوفا : "اَلْوِتْرُ ثَلَاثٌ لَا يُسَلِّمُ إِلَّا فِي آخِرِهِنَّ" .

٧... ابو العاليه رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي " مونږ ته دحضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صحابو د دريو ركعتو وتر تعليم راكړو" .

٨... ابو الزناد رَحِمَهُ اللَّهُ فرمايي چې دمديني منورې فقهاء سبعه يو سلام سره د دريو ركعتو وترو قائله وو او حضرت عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ اللَّهُ د همدده فتوى موافق دري ركعته وتر حكم يې جاري كړو .

## ﴿ بَابُ مَنْ قَالَ إِنَّ الْوِتْرَ بِثَلَاثٍ إِنَّمَا يُصَلِّي بِتَشَهُّدٍ وَاحِدٍ ﴾

### دا باب دې په بيان د هغه چا په قول كې چې وتر دري دي خو په يو تشهد به كولي شي

﴿٦٢٥﴾ عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ عَنْ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تُوتِرُوا بِثَلَاثٍ أَوْتِرُوا بِخَمْسٍ أَوْ بِسَبْعٍ وَلَا تُشَبِّهُوا بِصَلَاةِ الْمَغْرِبِ رواه محمد بن نصر المروزي والدارقطني والحاكم والبيهقي واسناده صحيح قَالَ النِّيمَوِي اَلِاسْتِدْلَالُ بِهٰذَا الْخَبَرِ غَيْرُ صَحِيحٍ .[1]

---

(١) قيام الليل كتاب الوتر ص ٢١٥ باب الوتر بثلاث عن الصحابة ...الخ ، دار قطني كتاب الوتر ج٢ص ٢٤ لا تشبهوا الوتر بصلاة المغرب ، مستدرك حاكم كتاب الوتر ج١ص ٣٠٤ باب الوتر حق ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج٣ص ٣١ باب من اوتر بثلاث موصولات...الخ .

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې دري ركعته وتر مه كوئ په پنځو او يا په اوو ركعتونو سره وتر كوي او د مابنام د مانځه سره ئې مه يو شان كوئ. د دي حديث روايت محمد بن نصر مروزي كړي دي او دار قطني او حاكم او بيهقي كړي دي او اسناد ئې صحيح دي . او نيموي ويلي دي چې په دي حديث باندي استدلال نيول صحيح نه دي.

﴿۶۲۶﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ هِشَامٍ عَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يُوتِرُ بِثَلاَثٍ لاَ يَقْعُدُ اِلَّا فِي آخِرِهِنَّ وَ هٰذَاوِتْرُ اَمِيرِ الْمُؤْمِنِينَ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ وَعَنْه اَخَذَه اَهلُ الْمَدِينَة رواه الحاكم فِي الْمُسْتَدرَك وَهوَ غَيرُ مَحْفُوظٍ .[1]

قَالَ النِّيمَوِي اِنَّ كَثِيرًا مِنَ الْاَحَادِيثِ الَّتِي اَورَدْنَاها فِيمَا مَضٰى تَدُلُّ بِظَاهِرِها عَلَى تَشَهدِ الْوِتْرِ .

**ترجمه** : د سعيد بن هشام نه روايت دي چې حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به دري ركعته وتر كول فقط د دي وترو په اخر ركعت كې به كيناسته او دا وتر د امير المؤمنين حضرت عمر فاروق رضي الله عنه دي او د ده نه اهل مدينهٔ اخستي دي. د دي حديث روايت په مستدرك كې حاكم كړي او دا حديث غير محفوظ دي.

نيموي رحمه الله ويلي دي چې ډير هغه احاديث چې مونږ هغه په تيرو بابونو كې راوړي دي ظاهراً د وترو په دوهٔ تشهدونو باندي دلالت كوي.

**دابوهريره رضي الله عنه باندې كلام** : شافعيه رحمه الله او حنابله رحمه الله " ولا تشبهوا بصلاة المغرب " دا مطلب اخلي چې په صلاة المغرب كې دري ركعته دوه تشهدو سره وي نو ددې مشابهت نه كولو مطلب دا شو چې وتر دري ركعته يو تشهد سره ادا كړئ.

امام نيموي رحمه الله فرمايي چې ددوي دا استدلال صحيح نه دې ، په اصل كې بعضي احاديثو كې دمابنام مونځ ته " **وتر النهار** " او وتر مونځ ته " **وتر الليل** " ويلې شوي دی ، **كما في حديث أبي العالية " فهذا وتر الليل وهذا وتر النهار** " ( آثار السنن :۲۶۱) لهذا دابوهريره رضي الله عنه حديث مذكور مقصد دادې چې "**وتر الليل**" كې دمابنام مونځ په شان صرف په دريو ركعتونو باندې اكتفى مه كوئ بلكې ددېنه مخكې تهجد هم كوئ ، دا تاويل ضروري دی ورنه ددريو ركعتونو والاصحيح او

---

[1] مستدرك حاكم ، كتاب الوتر ج۱ص۳۰۴ باب الوتر حق .

دصریح احادیثو مخالفت به لازم راشي د حدیث داسباقو نه هم ددې تائید کیږي.

**دعائشه رضي الله عنها په حدیث باندې کلام:**

مصنف رَحِمَهُ اللهُ فرمایي چې دا حدیث غیر محفوظ دې، وضاحت ددې دادې چې مذکوره حدیث ابان بن یزید العطار خو "لایقعد الا في آخرهن" سره نقل کوي د سعید بن أبي عروبه رَحِمَهُ اللهُ روایت زیات قوي کیدو دوجې نه راجح کیدل پکار دي غرض دا چې دا حدیث هم ددې مستدل نشي کیداي والله اعلم بالصواب.

# بَابُ الْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ
# په وترو کې د قنوت باب

﴿۶۲۷﴾ عَن عَبدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ اَبِي لَيلى اَنَّه سُئِلَ عَنِ الْقُنُوتِ فَقَالَ حَدَّثَنَا الْبَرَاءُ بْنُ عَازِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سُنَّةٌ مَاضِيةٌ اخرجه السراج و اسناده حسن و سياتي روآيات اخري في الباب الآتي ان شاء الله تعالى.

**ترجمه**: د عبدالرحمن بن ابي ليلي نه روايت دي چې د هغه نه د قنوت په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وويل چې مونږ ته حضرت براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث بیان کړي هغه ویلي دي چې د اجازي سنت طريقه ده. دا حديث سراج خارج کړي او اسناد ئي حسن دي او زرده چې په راتلونکي باب کې به نور روايتونه هم راشي انشاء الله تعالى.

**تشريح**: د قنوت لغوي معنى: قنوت په مختلف معني ګانو استعمال شوي (۱) سکوت (۲) دعاء (۳) خشوع (عاجزي) (۴) طول د قيام (۵) طاعت.

او ابن عربي ويلي دي چې قنوت په لسو معني ګانو سره راغلي دي (۱) قيام (۲) صلوة (۳) سکوت (۴) طاعت (۵) عبادت (۶) خشود (۷) طول د قيام (۸) ارام په طاعت (۹) په عبوديت باندې اقرار (۱۰) اقامت.

## آيا قنوت في الوتر پوره کال مشروع دې يا صرف مخصوص ورځو کې؟

۱... حنفيه او حنابله دپوره کال دقنوت في الوتر قائله دي.

۲... شافعيه مطلقا او امام مالک رَحِمَهُ اللهُ في المشهور قنوت في الوتر صرف درمضان په نصف اخير کې قائله دي. (بداية المجتهد، ۱٦٤:۲)

## داحنافو او دحنابلو دلائل:

(۱) دباب اولنې حديث دبراء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: "سنة ماضية".

(٢) حديث دعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : " كان يقول في اخر الوتر اللهم اني اعوذ برضاك من سخطك واعوذ بمعافاتك من عقوبتك واعوذبك منك لا احصي ثناء عليك انت كما اثنيت على نفسك ".

حديث دحسن بن علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: " كلمات اقولهن في قنوت الوتر " (ابوداود :٢٠٢/١).په مذكوره روايتونو كې رمضان او دغير رمضان قيد نشته.

(٣) دراروان باب حديث نمبر ٦٣٣ "كَانَ يَقْنُتُ السُّنَّةَ كُلَّهَا فِي الوِتْرِ ".

دصحابه كرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ نه حضرات عمر ، علي ، ابوموسى اشعري ، براء ، ابن عباس او ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ هم پوره كال دقنوت قائله دي همدارنګه كه دلائل قويه ته اوګورو دشافعيو نه ابو عبدالله زبير رَحِمَهُ اللهُ ، ابووليد نيشاپوري رَحِمَهُ اللهُ، ابوفضل بن عبدان رَحِمَهُ اللهُ، او ابومنصور بن مهران رَحِمَهُ اللهُ هم پوره كال دقنوت في الوتر قائل دي.

## دشافعيه او دمالكيه دلائل:

(١) " عن الحسن ان عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ جمع الناس على أُبي بن كعب فكان يصلي لهم عشرين ليلة ( وفي بعض النسخ: عشرين ركعة ) ولايقنت بهم الا في النصف الباقي ". (الدرالمنضود :٥٩٣/٢)

(٢) حديث دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : كان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقنت في النصف من رمضان (الكامل لابن عدي)

(٣) اثر دعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "كان لايقنت الا في النصف الاخير من رمضان ". (ترمذي شريف)

## جوابات :

١.... داولني حديث سند منقطع دې ځكه چې دحسن بصري رَحِمَهُ اللهُ سماع دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ثابت نه ده.

٢... امام بيهقي رَحِمَهُ اللهُ شافعي دحديث انس مذكور سند لره غير صحيح ويلې دى.

٣... اثر دعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مذكور دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجتهاد وو يا بيا دقنوت نه مراد طول قيام دې.

# ﴿بَابُ قُنُوتِ الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ﴾

## دركوع نه مخكې په وترو كې د قنوت باب

﴿٦٢٨﴾ عن عَاصِمٍ قَالَ سَأَلْتُ أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْقُنُوتِ فَقَالَ كَانَ الْقُنُوتُ قُلْتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ أَوْ بَعْدَهُ قَالَ قَبْلَهُ قَالَ فَإِنَّ فُلَانًا أَخْبَرَنِي عَنْكَ أَنَّكَ قُلْتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ فَقَالَ كَذَبَ إِنَّمَا قَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْدَ الرُّكُوعِ شَهْرًا أُرَاهُ كَانَ بَعَثَ قَوْمًا يُقَالُ لَهُمُ الْقُرَّاءُ زُهَاءَ سَبْعِينَ رَجُلًا

إِلى قَوْمٍ مُشْرِكِينَ دُونَ أُولَئِكَ وَكَانَ بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهْدٌ فَقَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهْرًا يَدْعُو عَلَيْهِمْ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: عاصم ويلي دي چې ما د قنوت په باره کې د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه نو هغه وويل چې په تحقيق قنوت ؤ ما وويل چې د رکوع نه مخکې ؤ او که د رکوع نه روسته ؤ هغه وويل چې د رکوع نه مخکې ؤ هغه وويل چې فلاني ماته د ستا د خوا نه خبر راکړي چې تا ويلي دي چې د رکوع نه روسته ؤ هغه يعني حضرت انس بن مالک رضي الله عنه وويل چې هغه دروغ ويلي دي. بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فقط يوه مياشت د رکوع نه روسته قونت ويلي دي زه ګمان کوم چې رسول الله صلى الله عليه وسلم تقريبا اويا کسان چې قراء ورته ويلي شو مشرکينو ته ليږلي ؤ دا مشرکان د هغوي نه غير ؤ او د مشرکانو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم تر منځ معاهده وه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم تر يوې مياشتې پورې د قنوت دعا ويلې ده او هغو ته ئې بدعاء کړې ده د دې حديث روايت شيخينو کړې دي.

﴿۶۲۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ قَالَ سَأَلَ رَجُلٌ أَنَسًا رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْقُنُوتِ بَعْدَ الرُّكُوعِ أَوْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ قَالَ بَلْ عِنْدَ فَرَاغٍ مِنَ الْقِرَاءَةِ رواه البخاري في المغازي.(۲)

**ترجمه**: عبدالعزيز ويلي دي چې يو سړي دحضرت انس رضي الله عنه نه د قنوت د دعاء په باره کې پوښتنه وکړه چې قنوت د رکوع نه روسته دې او که د قرأت نه د فراغت په وخت کې دې انس رضي الله عنه وويل چې بلکه د قرأت نه د فراغت په وخت کې دې. د دې حديث روايت په مغازي کې بخاري کړې.

﴿۶۳۰﴾ وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ رواه ابن ماجه والنسائي واسناده صحيح.(۳)

**ترجمه**: حضرت أبي بن کعب رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وتر وکړل نو د قنوت دعا ئې د رکوع نه مخکې ويله. د دې حديث روايت ابن ماجه او نسائي کړې دې او اسناد ئې

---

(۱) بخاري ابواب الوتر ج۱ص ۱۳۶ باب القنوت قبل الركوع وبعده، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات.

(۲) بخاري كتاب المغازي ج۲ص ۵۸۶ باب غزوة الرجيع ورعل وذكوان وبئر معونة.

(۳) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۸۴ باب ماجاء في القنوت قبل الركوع وبعده، نسائي كتاب قيام الليل ...الخ ج۱ص۲۴۸ ب كيف الوتر بثلاث.

صحيح دي.

﴿٦٢١﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بنِ الْاَسْوَدِ عَنْ اَبِيه قَالَ كَانَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لاَ يَقْنُتُ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ اِلَّا الْوِتْرَ فَاِنَّه كَانَ يَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَة رواه الطحاوي والطبراني واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : د عبدالرحمن بن اسود نه روايت دي چې د ده پلار ويلي دي چې حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د وترو نه په غير په بل هيڅ يو مونځ کې د قنوت دعا نه ده کړې او هغه به د رکوع نه مخکې د قنوت دعاء کوله .د دې حديث روايت طحاوي او طبراني کړې دې او اسناد ئې صحيح دي.

﴿٦٢٢﴾ وَ عَنْ عَلْقَمَةَ اَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ اَصْحَابُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوا يَقْنُتُونَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ رواه ابن ابي شيبة و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د علقمه نه روايت دي چې حضرت بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصحابو به د رکوع نه مخکې په وترو کې د قنوت دعاء ويله د دې حديث روايت ابي شبيه کړې او اسناد ئې صحيح دي.

﴿٦٢٣﴾ وَ عَنْ اِبْرَاهِيمَ اَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يَقْنُتُ السَّنَةَ كُلَّهَا فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ رواه محمد بن الحسن في اكتاب الآثار و اسناده مرسل جيد .[3]

**ترجمه** : د ابراهيم نه روايت دي چې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په ټول کال کې په وترو کې د رکوع نه مخکې د قنوت دعا ويلي وه . د دې حديث روايت محمد ابن الحسن په کتاب الآثار کې کړې دې او اسناد ئې مرسل جيد دي.

﴿٦٢٤﴾ وَعَنْ حَمَّادَ عَنْ اِبْرَاهِيمَ النَّخْعِي اَنَّ الْقُنُوتَ وَاجِبٌ فِي الْوِتْرِ فِي رَمَضَانَ وَ غَيْرِه قَبْلَ الرُّكُوعِ وَ اِذَا اَرَدْتَ اَنْ تَقْنُتَ فَكَبِّرْ وَ اِذَا اَرَدْتَ اَنْ تَرْكَعَ فَكَبِّرْ اَيْضًا رواه محمد بن الحسن في كتاب الحجج والآثار و اسناده صحيح .[4]

---

(١) طحاوي كتاب الصلوة ج١صــ ١٧٣ باب القنوت في الفجر وغيره ، المعجم الكبير ج ٩صــ ٣٢٧ برقم ٩٤٢٥.

(٢) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج٢صــ ٣٠٢ باب في القنوت قبل الركوع او بعده .

(٣) كتاب الآثار باب القنوت في الصلوة صــ ٤٣ رقم ٢١١ .

(٤) كتاب الحجة ج١صــ ٢٠٠ باب عدد الوتر ، كتاب الآثار باب القنوت في الصلوة صــ٤٣ برقم ٢١٢.

**ترجمه** : حماد د ابراهیم نخعي نه روایت کړي چې په وترو کې په رمضان او غیر رمضان د رکوع نه مخکې د قنوت دعاء واجب ده او کله چې ته قنوت ویل غواړې نو تکبیر ووایه او کله چې ته رکوع کول وغواړې نو تکبیر هم ووایه . د دې حدیث روایت محمد بن الحسن په کتاب الحج او کتاب الاثار کې کړي دي او اسناد ئې صحیح دي .

په دې احادیثو کې د وترو په اخري رکعت کې د قنوت مختلف فیه مسئله بیانیږي چې آیا د قنوت دعاء د وترو په اخري رکعت کې قبل الرکوع ویلې شي او که بعد الرکوع ویلې شي په دې باره کې درې مذهبونه منقول (۱) احناف (۲) شوافع (۳) او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ .

( **۱) احناف** : د احنافو په نزد په وترو کې قنوت د رکوع نه مخکې مسنون دي او قنوت نازله بعد الرکوع همدغه مذهب د عبدالله بن المبارک او اسحاق براء بن عازب او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم دي.

(۲) امام مالک رَحِمَهُ اللهُ : دقنوت في الوتر خو قائله نه دې البته په فجر کې قبل الرکوع قنوت ته سنت وایي. (المدورنه، ص:۲٦)

( **۳) شافعیه او حنابله** : په نزد قنوت قبل الرکوع او قنوت بعد الرکوع دواړه جائز دي که نازله وي او في الوتر .

**دحنفیو دلائل** : دباب ټول حدیثونه دحنفیو دلیلونه دي خاص کر حدیث دابي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نمبر ٦٣۰ " اَنَّ رَسُوْلَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُوتِرُ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرُّكُوعِ" او حدیث نمبر ٦٣٢ اَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ اَصْحَابُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانُوا يَقْنُتُوْنَ فِي الْوِتْرِ قَبْلَ الرُّكُوعِ " الخ.

**دشافعیو او دحنابلو دلیل** : دعلي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مشهور اثر : "كان يقنت بعد الركوع".

**جوابونه** : (۱) دا دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اجتهاد وو دکوم منشا چې دا وه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به قنوت نازله بعد الرکوع باندې لیدلې وو نو قنوت وتر یې په همدې باندې قیاس کړ .

(۲) ابن المنذر رَحِمَهُ اللهُ دډیرو صحابو او تابعینو او تبع تابعینو نه قنوت وتر قبل الرکوع نقل کړې دی مثلا حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابو موسی اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، براء بن عازب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، او انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ....... عمر بن عبدالعزیز رَحِمَهُ اللهُ، عبیدة السلماني رَحِمَهُ اللهُ، حمید الطویل، ابن لیلی رَحِمَهُ اللهُ، دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه هم یو روایت قبل الرکوع مروي دی.

(۳) دباب په اولني حدیثو کې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صراحت فرمایلې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قنوت نازله بعد الرکوع او کړو او قنوت وتر قبل الرکوع مسنون دې . والله اعلم

# ﴿ بَابُ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عِنْدَ قُنُوتِ الْوِتْرِ ﴾

## دوترو د قنوت په وخت کې د لاسونو د اوچتولو باب

﴿۶۳۵﴾ عَنِ الْأَسْوَدِ عَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقْرَأُ فِي آخِرِ رَكْعَةٍ مِنَ الْوِتْرِ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ثُمَّ يَرْفَعُ يَدَيْهِ فَيَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَةِ رواه البخاري في جُزْءِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ وَاسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : د اسود نه روايت دي چې عبدالله رضي الله عنه د وترو په اخري ركعت كې قل هو الله احد تلاوت كاوه بيا به ئې خپل دواړه لاسونه اوچتول نو د ركوع نه مخكې به ئې د قنوت دعاء ويله . د دې حديث روايت د رفع اليدين په جزء كې بخاري كړي دي .

﴿۶۳۶﴾ وَ عَنْ إِبْرَاهِيمَ النَّخَعِيِّ قَالَ تُرْفَعُ الْأَيْدِي فِي سَبْعِ مَوَاطِنَ فِي اِفْتِتَاحِ الصَّلَاةِ وَفِي التَّكْبِيرِ لِلْقُنُوتِ فِي الْوِتْرِ وَ فِي الْعِيدَيْنِ وَ عِنْدَ اِسْتِلَامِ الْحَجَرِ وَ عَلَى الصَّفَا وَالْمَرْوَةِ وَ بِجَمْعٍ وَ عَرَفَاتٍ وَ عِنْدَ الْمَقَامَيْنِ عِنْدَ الْجَمْرَتَيْنِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : ابراهيم نخعي رحمه الله ويلي دي چې په اوو ځايونو كې به لاسونه اوچتولي شي (۱) د مانځه په شروع كې (۲) په وترو كې د قنوت د پاره د تكبير په ويلو كې (۳) د اخترونو په تكبيراتو كې (۴) د حجر اسود د ښكلولو په وخت كې (۵) د صفا او مروه په طواف كې (۶) په مزدلفه او عرفات باندې د ودريدو په وخت كې (۷) اوپه دوه وُ مقامونو د جمرو ويشتلو ته د ودريدو په وخت كې . د دې حديث روايت طحاوي كړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

**دترجمة الباب نه غرض** : علامه نيموي رحمه الله دنوم اخيستلو نه بغير دبعضې اهل علمو ددې خيال ترديد كول غواړي چې دقنوت وتر لپاره د يدين په ثبوت صحيح حديث، خو پريده چې اثرد صحابي رضي الله عنه يا اثر دتابعي رحمه الله هم موجود نشته . چنانچې دباب په دواړو حديثونو كې قنوت وتر كې مستقلا رفع يدين ذكر موجود دې .( ازگاورى التعليق الحسن )

علامه بنوري رحمه الله فرمايي چې دعلامه نيموي رحمه الله مراد دبعضې اهل علمو نه شاه محمد اسحاق دهلوي رحمه الله شاگرد شيخ نذير حسين دهلوي مرحوم دې . (معارف السنن : ۲۳۴/۴)

---

(۱) جزء رفع يدين للبخاري مترجم صـــ ۶۳.

(۲) طحاوي كتاب المناسك الحج ج۱صـــ ۴۵۵ باب رفع اليدين عند رؤية البيت .

# ﴿بَابُ الْقُنُوتِ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ﴾

## د سهر په مانځه کې د قنوت باب

﴿۶۳۷﴾ عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ مَازَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْنُتُ فِي الْفَجْرِ حَتَّى فَارَقَ الدُّنْيَا رواه عبد الرزاق و احمد و الدار قطني و الطحاوي و البيهقي في المعرفة و في اسناده مقال.[1]

**ترجمه** : حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه ويلي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم د سهر په مانځه کې هميشه د قنوت دعاء لوستله تر څو پورې چې د دنيا نه جدا شو . د دي حديث روايت عبدالرزاق ، احمد الدار قطني ، الطحاوي او بيهقي په معرفت کې کړي او په اسناد کې ئې مقال او خبري دي .

﴿۶۳۸﴾ و عن طَارِقِ بْنِ شِهَابٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ صَلَاةَ الصُّبْحِ فَلَمَّا فَرَغَ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي الرَّكْعَةِ الثَّانِيَةِ كَبَّرَ ثُمَّ قَنَتَ ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : طارق ابن شهاب ويلي دي چې ما د حضرت عمر رضي الله عنه پسې د سهر مونځ وکړ نو کله چې په دويم رکعت کې هغه د قرأت نه فارغ شو تکبير و وايه بيا ئې د قنوت دعاء وويله بيا ئې تکبير و وايه نو رکوع ئې وکړه . د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۳۹﴾ و عن أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يَقْنُتُ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ قَبْلَ الرُّكُوعِ رواه الطحاوي و اسناده حسن .[3]

**ترجمه** : د ابو عبد الرحمن نه روايت دي چې حضرت علي رضي الله عنه د سهر په مانځه کې د رکوع نه مخکې د قنوت دعاء وويله . د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۶۴۰﴾ و عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ كَانَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وَ أَبُو مُوسَى رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يَقْنُتَانِ فِي صَلَاةِ الْغَدَاةِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[4]

---

(۱) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۳ ص ۱۱۰ باب القنوت ، مسند احمد ص ۱۶۲ ج۳ ، دار قطني كتاب الوتر ج۲ص۳۹ باب صفة القنوت ...الخ ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۸ باب القنوت في الفجر وغيره ، معرفة السنن والآثار كتاب الصلوة ج۳ص ۱۲۱ رقم الحديث ۳۹۵۶ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲ص ۲۰۱.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۱ باب القنوت في الفجر وغيره .

(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۲ باب القنوت في الفجر وغيره .

(٤) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۲ باب القنوت في الفجر وغيره .

**ترجمه** : او عبدالرحمن بن مغفل ویلي دي چې حضرت علي رضي الله عنه او ابوموسی رضي الله عنه دواړو د سهر په مانځه کې به د قنوت دعا ویلې ده د دي حدیث روایت طحاوي کړی او اسناد ئي صحیح دي.

**(۶۲۱)** وَ عَنْ أَبِي رَجَاءَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيْتُ مَعَهُ الفَجْرَ فَقَنَتَ قَبْلَ الرَّكْعَة رواه الطحاوي و اسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : ابو رجاء د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت کړی ابو رجاء ویلي دي چې ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه سره د سهر مونځ وکړ نو هغه په کې د قنوت دعاء وویله . د دي حدیث روایت طحاوي کړی او اسناد ئي صحیح دي.

## د فجر په مونځ کې قنوت مستقلا مشروع دې یا نه ؟

قنوت دري حیثیت لري اول نفس قنوت یا مطلق قنوت دویم د وترو قنوت ، دریم د فجر قنوت. اول په نفس قنوت کې د هیچا هم اختلاف نشته تول په دي مقر دي چې نفس قنوت ثابت دي او په دي کې هم څه شک نشته چې د سهر د مانځه نه په غیر په باقي څلور مونځونو کې په غیر د څه سبب نه د شوافعو په نزد هم قنوت نشته .

دویم د وترو قنوت د وترو په قنوت کې اختلاف دي چې د وترو قنوت مستقل دي او که د فجر قنوت مستقل دي د احنافو او حنابله ؤ په نزد باندي د وترو قنوت مستقل دي او د شوافعو او مالکیه ؤ په نزد باندي د فجر قنوت مستقل دي . دریم قنوت فجر د فجر په قنوت کې اختلاف دي هغه دا چې په فجر کې په غیر د څه سبب نه قنوت شته او که نشته په دي باره کې دوه مذهبه دي:

(۱) امام ابوحنیفه رحمه الله امام ابویوسف رحمه الله امام محمد رحمه الله او د اکثرو اهل علمو په نزد باندي په فجر کې په غیر د څه سبب نه قنوت نشته .

(۲) مذهب : د امام شافعي رحمه الله په نزد باندي د سهر په مانځه کې همیشه او په دائمي ډول باندي قنوت مسنون دي او د امام مالک رحمه الله په نزد مستحب دي ......

## د مالکیو او د شوافعو دلیل:

۱... د باب اولني حدیث د کوم مطابق چې حضور صلی الله علیه وسلم پوره ژوند کې قنوت لوستل .

۲... حضرت عمر صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام رضي الله عنهم په فجر کې به یي قنوت لوستل کما في روایات الباب .

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۷۳ باب القنوت في الفجر وغيره .

**د حنفیه او اکثر اهل علمو دلیلونه :**

دراروان باب ټول حدیثونه بالخصوص حدیث دابي هریره رضي الله عنه ۶۴۹: " **كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَقْنُتُ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ إِلَّا أَنْ يَدْعُوَ لِقَوْمٍ أَوْ عَلَى قَوْمٍ** " او حدیث دابي مالک اشجعي رضي الله عنه نمبر ۶۵۰ کوم کې چې حضور صلی الله علیه وسلم او دحضراتو خلفاء راشدینو نه دقنوت فجر عدم ثبوت نه بلکې هغوي دېته بدعت ویلې دی.

**مالکیه او شوافعو ته جواب :**

(۱) بخاري او مسلم او نورو کتابونو دحدیثو کې دحضرت انس رضي الله عنه دا فیصله کونکې قول منقول دې چې حضور صلی الله علیه وسلم دفجر په مونځ کې چې کوم قنوت ویلې دی هغه قنوت نازله دې دمخصوصو قومونو په خلاف یو څو ورځې یې اویلو بیا یې پرېخودو .

(۲) په ترمذي شریف کې په سند دحسن صحیح دحضرت براء رضي الله عنه نه مروي دی " **يقنت في صلاة الفجر والمغرب** " ددېنه دفجر نه علاوه په مونځ کې هم دقنوت ثبوت ملاو شو لهذا **فما هو جوابكم عن القنوت في غير الفجر فهو جوابنا عن القنوت في الفجر .**

(۳) دمختلفو احادیثو په مینځ کې دتطبیق صورت همدغه دې چې دقنوت فجر نه دې قنوت نازله مراد واخیستې شي ابن رشد مالکي رحمه الله میلان هم همدغې طرفته دې .(بداية المجتهد،ص:۱۰۹)

# ﴿ بَابُ تَرْكِ الْقُنُوتِ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ ﴾

## د سهر په مانځه کې د قنوت د پرېښودلو باب

﴿۶۴۲﴾ **عَنْ مُحَمَّدٍ قَالَ قُلْتُ لِأَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هَلْ قَنَتَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ قَالَ نَعَمْ بَعْدَ الرُّكُوعِ يَسِيرًا رواه الشيخان .**[1]

**ترجمه :** محمد ویلي دي چې ما حضرت انس رضي الله عنه ته وویل چې آیا رسول الله صلی الله علیه وسلم د سهر په مانځه کې د قنوت دعاء ویله ده هغه وویل چې هو د رکوع نه خو لږ وخت پس . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي.

(۱) بخاري ابواب الوتر ج۱صـــ ۱۳۶ باب القنوت قبل الركوع وبعده ، مسلم كتاب المساجد ج۱صـــ ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات ...الخ واللفظ له.

﴿۶۲۳﴾ و عن اَبِي مِجْلَزٍ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَنَتَ رَسُولُ الله شَهرًا بَعْدَ الرُّكوعِ فِي صَلَاةِ الصُّبْحِ يدْعُو عَلَى رِعْلٍ وَذَكْوَانَ وَيقُولُ عَصِيةُ عَصَتِ اللهَ وَرَسُولَه رواه الشيخان.[1]

**ترجمه**: ابي مجلز د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه روايت کړي دي هغه ويلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د سهر په مانځه کې د رکوع نه پس يوه مياشت د قنوت دعاء ويلي ده چې په رعل او ذکوان قبيلو باندې ئې بدعائي کوله او فرمايل ئې چې عصيه قبيلې د الله جل شانه او د رسول الله صلی الله علیه وسلم د حکم نه نافرماني کړې ده. د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۶۲۴﴾ وَعَن عَاصِمٍ عَن اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَاَلْتُه عَنِ الْقُنُوتِ قَبْلَ الرُّكوعِ اَو بَعْدَ الرُّكوعِ فَقَالَ قَبْلَ الرُّكوعِ قَالَ قُلْتُ فَاِنَّ اُنَاسًا يزْعُمُونَ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ بَعْدَ الرُّكوعِ فَقَالَ اِنَّمَا قَنَتَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهرًا يدْعُو عَلَى اُنَاسٍ قَتَلُوا اُنَاسًا مِنْ اَصْحَابِه يقَالُ لَهمُ الْقُرَّاءُ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: عاصم ويلي دي چې ما د حضرت انس رضي الله عنه نه د رکوع نه مخکې او يا د رکوع نه روسته د قنوت د دعاء په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وويل چې د رکوع نه مخکې عاصم ويلي دي چې ما وويل چې خلک ګمان کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د رکوع نه پس د قنوت دعاء ويلي ده نو حضرت انس رضي الله عنه وويل چې بې شکه رسول الله صلی الله علیه وسلم يوه مياشت د قنوت دعا ويلې ده چې هغه خلکو ته ئې بدعائي کوله کومو خلکو چې د صحابه کرامو يوه ډله چې قراء ورته ويلې شي قتل کړي وه. د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۶۲۵﴾ و عن اَنَسِ بْنِ سِيرِينَ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهرًا بَعْدَ الرُّكوعِ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ يدْعُو عَلَى بَنِي عَصِيةَ رواه مسلم.[3]

---

(۱) بخاري کتاب المغازي ج۲ص ۵۸۷ باب غزوة الرجيع ورعل وذکوان، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات.

(۲) بخاري ابواب الوتر ج۱ص ۱۳۶ باب القنوت قبل الركوع وبعده، مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات ...الخ واللفظ له.

(۳) مسلم کتاب المساجد ج۱ص ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات ...الخ.

**ترجمه** :انس بن سيرين د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت کړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سهر په مانځه کې د رکوع نه روسته يوه مياشت د قنوت دعاء ويلي وه چې بني عصيه قبيلې خلاف ئې بدعائي کوله. د دې حديث روايت مسلم کړي دې.

﴿۶۲۶﴾ وَ عَنْ قَتَادَةَ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَنَتَ شَهْرًا يَدْعُو عَلَى أَحْيَاءِ الْعَرَبِ ثُمَّ تَرَكَهُ رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : قتاده د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کړي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يوه مياشت د قنوت دعاء ويلي وه چې د عربو د قبيلو نه ئې په بعضو قبيلو باندې ئې بددعائي کوله بيا ئې پرېښې وه. د دې حديث روايت مسلم کړي.

﴿۶۲۷﴾ وَ عَنْهُ عَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَقْنُتُ إِلَّا إِذَا دَعَا لِقَوْمٍ أَوْ دَعَا عَلَى قَوْمٍ رواه ابن خزيمة و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : او قتاده د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت کړي دې چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د قنوت دعا نه ده کړي مګر کله به ئې چې يو قوم ته دعاء کوله او يا به ئې د کوم خلاف بدعائي کوله. د دې حديث روايت ابن خزيمه کړي او اسناد ئې صحيح دې.

﴿۶۲۸﴾ و عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَدْعُوَ عَلَى أَحَدٍ أَوْ يَدْعُوَ لِأَحَدٍ قَنَتَ بَعْدَ الرُّكُوعِ فَرُبَّمَا قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَنْ حَمِدَهُ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا لَكَ الْحَمْدُ اَللّٰهُمَّ أَنْجِ الْوَلِيدَ بْنَ الْوَلِيدِ وَ سَلَمَةَ بْنَ هِشَامٍ وَ عَيَّاشَ بْنَ رَبِيعَةَ اَللّٰهُمَّ اشْدُدْ وَطْأَتَكَ عَلَى مُضَرَ وَاجْعَلْهَا سِنِينَ كَسِنِي يُوسُفَ يَجْهَرُ بِذٰلِكَ وَ كَانَ يَقُولُ فِي بَعْضِ صَلَاتِهِ فِي الْفَجْرِ اَللّٰهُمَّ الْعَنْ فُلَانًا فُلَانًا لِأَحْيَاءٍ مِنَ الْعَرَبِ حَتَّى أَنْزَلَ اللهُ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ رواه البخاري.[3]

**ترجمه** : د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دې چې په تحقيق رسول الله صلى الله عليه وسلم به چې کله د يو قوم خلاف بد دعائي کوله او يا به ئې د کوم چا په حق کې دعاء کوله نو د رکوع نه روسته به ئې د

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۳۷ باب استحباب القنوت في جميع الصلوات ...الخ .

(۲) وقال في تلخيص الحبير كتاب الصلوة ج۱ص ۲۴۵ باب صفة الصلوة وروى ابن خزيمة في صحيحه من طريق سعيد عن قتادة عن انس ان النبي صلى الله عليه وسلم لم يكن يقنت ...، وفي صحيح ابن خزيمة جماع ابواب ذكر الوتر ج۱ص ۱۵۲رقم ۱۰۹۷ عن ابي هريرة رضي الله عنه مثله .

(۳) البخاري كتاب التفسير ج۲ص ۲۵۵ باب قوله ليس لك من الامر شيء .

قنوت دعاء ويله او کله کله به ئي فرمايل چې سمع الله لمن حمده اللهم ربنا لك الحمد وويل اي الله وليد ابن وليد سلمه بن هشام او عياش ابن ربيعه ته نجات ورکړې اي الله په مضر قبيله باندې سزا سخته کړې او په دوي باندې قحط نازل کړې لکه چې د يوسف عليه السلام په وخت کې دې قحط کړې وُ دا دعاء به ئي په اوچت آواز باندې فرمايله او د سهر په بعض مونځونو کې به ئي فرمايل چې اي الله د عربو د قبيلو نه په فلانئ او فلانئ قبيله باندې لعنت وفرمائي تر دې چې الله جل شانه دا ايت شريف نازل وفرمايه چې (ليس لك من الامر شئ) د دې حديث روايت بخاري کړې دې.

﴿۶۴۹﴾ وَ عَنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يَقْنُتُ فِي صَلاَةِ الصُّبْحِ إِلاَّ أَنْ يَدْعُو لِقَوْمٍ أَو عَلَى قَوْمٍ رواه ابن حبان في صحيحه و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : او حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سهر په مانځه کې د قنوت دعاء نه ويله مګر په هغه وخت کې چې کله به ئي کوم قوم ته دعاء کوله او يا به ئي کوم قوم ته بد دعائي کوله. د دې حديث روايت ابن حبان په خپل صحيح کې کړې دې او اسناد ئي صحيح دې.

﴿۶۵۰﴾ و عَنْ أَبِي مَالِك قَالَ قُلْتُ لِأَبِي يا أَبَتِ إِنَّك قَدْ صَلَّيتَ خَلْفَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و أَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُثْمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ بالكوفة نَحْوًا مِنْ خَمْسِ سِنِينَ أَكَانُوا يَقْنُتُونَ فِي الْفَجْرِ قَالَ أَي بُنَيَّ مُحْدَثٌ رواه الخمسة الا اباداود و صححه الترمذي و قال الحافظ في التلخيص اسناده حسن.[2]

**ترجمه** : ابي مالک رحمه الله ويلي دي چې ما خپل پلار ته وويل چې اي زما پلاره په تحقيق تا د رسول الله صلى الله عليه وسلم پسې د ابوبکر – پسې د عمر رضي الله عنه پسې د عثمان رضي الله عنه پسې او د حضرت علي رضي الله عنه پسې په کوفه کې نزدې پنځه کاله مونځ کړې دې آيا دوي د سهر په مانځه کې د قنوت دعا ويلې ده هغه وويل اي ځويه دا بدعت دې. د دې حديث روايت د ابوداؤد نه په غير پنځو صاحبانو نقل کړې دې او ترمذي صحيح ګڼړلي دې.او حافظ په تلخيص الحبير کې ويلي دي چې اسناد ئي حسن دې.

(۱) تلخيص الحبير كتاب الصلوٰة ج۱ص۲۴۴ باب صفة الصلوٰة نقلًا عن ابن حبان.

(۲) ترمذي ابواب الصلوٰة ج۱ص۹۱ باب في ترك القنوت ، نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص۱۶۴ باب ترك القنوت ، ابن ماجة ، ابواب اقامة الصلوات ...الخ ص۸۹ باب ماجاء في القنوت في صلوٰة الفجر ، مسند احمد ج۳ ص۴۷۲.

﴿۶۵۱﴾ وعن الأسود أنّ عمر رضي الله عنه كان لا يقنت في صلاة الصّبح رواه الطحاوي و اسناده صحيح.
طحاوي كتاب الصلوة ج١ صـ ١٧٢ باب القنوت في الفجر وغيره.
**ترجمه** : د اسود نه روايت دي چې حضرت عمر رضي الله عنه د سهر په مانځه کې د قنوت دعاء نه وه لوستلې د دې حديث روايت طحاوي کړي دې او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۶۵۲﴾ وعنه أنّه صحب عمر بن الخطّاب رضي الله عنه سنين في السّفر والحضر فلم يره قانتاً في الفجر حتّى فارقه رواه محمد بن الحسن في كتاب الآثار و اسناده حسن. (۱)
**ترجمه** : د اسود نه روايت دي چې زه څو کاله د حضرت عمر رضي الله عنه سره په سفر او په حضر کې ملګرې وم ما هغه د جدائي تر وخته پورې د سهر په مانځه د قنوت د دعاء په حالت کې نه وُ ليدلې. د دې حديث روايت په کتاب الاثار کې محمد بن حسن کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۶۵۳﴾ وعنه قال كان عمر رضي الله عنه إذا حارب قنت وإذا لم يحارب لم يقنت رواه الطحاوي و اسناده حسن. (۲)
**ترجمه** : اسود وېلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه به چې کله د دشمن سره جګړه کوله نو قنوت به ئې وايه او کله به ئې چې د دهمنانو سره جنګ نه کاوه قنوت به ئې نه وايه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دې او اسناد ئې حسن دي.

﴿۶۵۴﴾ وعن علقمة والأسود ومسروق أنّهم قالوا كنّا نصلّي خلف عمر رضي الله عنه الفجر فلم يقنت رواه الطحاوي واسناده صحيح. (۳)
**ترجمه** : علقمه اسود او مسروق وېلي دي چې مونږ د حضرت عمر رضي الله عنه پسې د سهر مونځ کاوه نو هغه د قنوت دعاء نه ده ويلې. د دې حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۶۵۵﴾ وعن علقمة قال كان عبد الله رضي الله عنه لا يقنت في صلاة الصّبح رواه الطحاوي واسناده صحيح. (۴)

---

(۱) كتاب الآثار صـ ۴۴ باب القنوت في الصّلوة رقم ۲۱۴ وفي نسخة عندي من كتاب الآثار ستين مكان سنين.
(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج١ صـ ۱۷۲ باب القنوت في الفجر وغيره
(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج١ صـ ۱۷۲ باب القنوت في الفجر وغيره
(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج١ صـ ۱۷۲ باب القنوت في الفجر وغيره.

**ترجمه** : علقمه ويلي دي چې حضرت عبدالله رضي الله عنه به د صبا په مانځه کې د قنوت دعاء نه ويله. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۵۶﴾ وَعَنِ الْاَسْوَدِ قَالَ كَانَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ رضي الله عنه لَا يَقْنُتُ فِيْ شَيْءٍ مِنَ الصَّلَوَاتِ اِلَّا الْوِتْرَ فَاِنَّهٗ كَانَ يَقْنُتُ قَبْلَ الرَّكْعَةِ رواه الطحاوي و الطبراني و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : اسود ويلي دي چې حضرت عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه به د وترو نه په غير په هيڅ يو مونځ کې د قنوت دعاء نه ويله او هغه به د رکوع نه مخکې د قنوت دعاء لوستله. د دي حديث روايت طحاوي او طبراني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۵۷﴾ و عن اَبِي الشَّعْثَاءِ قَالَ سَاَلْتُ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه عَنِ الْقُنُوْتِ فَقَالَ مَا شَهِدْتُ وَمَا رَاَيْتُ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : ابي الشعثاء ويلي دي چې ما د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه د قنوت په باره کې پوښتنه رکړه نو هغه وويل چې نه خو زه په دغه وخت حاضروم او نه مي ليدلي دي. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۵۸﴾ وَعَنْهُ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ رضي الله عنه عَنِ الْقُنُوْتِ فَقَالَ مَا الْقُنُوْتُ فَقَالَ اِذَا فَرَغَ الْاِمَامُ مِنَ الْقِرَاءَةِ فِي الرَّكْعَةِ الْاٰخِرَةِ قَامَ يَدْعُوْ قَالَ مَارَاَيْتُ اَحَدًا يَفْعَلُهٗ وَاِنِّيْ لَاَظُنُّكُمْ مَعَاشِرَ اَهْلِ الْعِرَاقِ تَفْعَلُوْنَهٗ رواه الطحاوي واسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : او ابوالشعثاء ويلي دي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه د قنوت په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وويل قنوت څه شي دي سائل وويل چې کله امام په اخر رکعت کې د قرأت نه فارغ شي ؤدرېږي دعاء کوي هغه وويل چې ما هيڅوک نه دي ليدلي چې دغه کار کوي او بې شکه زه په تاسو باندي اي د عراق اهله گمان کوم چې داسي عمل کوئ. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي اسناد ئي صحيح دي.

﴿۶۵۹﴾ وَعَنْ اَبِيْ مِجْلَزٍ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه الصُّبْحَ فَلَمْ يَقْنُتْ فَقُلْتُ الْكِبَرُ يَمْنَعُكَ

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۳ باب القنوت في الفجر وغيره ، المعجم الكبير للطبراني ج ۹ص۳۲۸ برقم ۹۲۳۰ بنحو بسـو ومجمع الزوائد ج۲ص۱۳۷ نقلا عن الطبراني في الكبير .
(۲) طحاوي كتاب الصلوة ح۱ص۱۶۹ باب القنوت في الفجر وغيره .
(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۱۶۹ باب القنوت في الفجر وغيره .

فَقَالَ مَا أَحْفَظُه عَنْ أَحَدٍ مِنْ أَصْحَابِي رواه الطحاوي والطبراني و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : ابي مجلز ويلي دي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه پسي مې د صباح مونځ کړي ؤ نو هغه د قنوت دعاء ونه ويله نو ما وويل چې بودا توب دې د قنوت د دعا نه منع کوي نو هغه وويل د خپلو ملګرو د يو کس نه مې هم دا نه ده ياده کړي . د دې حديث روايت طحاوي او طبراني کړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۶۰﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ عَبْدَ اللهِ بْنَ عُمَرَ رضي الله عنه كَانَ لاَ يَقْنُتُ فِي شَيْءٍ مِنَ الصَّلاةِ رواه مالك و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنه د مانځه په يو شئ کې هم د قنوت دعا نه ويله . د دې حديث روايت مالک کړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۶۱﴾ و عَنْ عِمْرَانَ بْنِ الْحَارِثِ السُّلَمِيِّ قَالَ صَلَّيْتُ خَلْفَ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه الصُّبْحَ فَلَمْ يَقْنُتْ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : عمران ابن الحارث السلمي ويلي دي چې ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه پسې د سهر مونځ وکړ نو هغه د قنوت دعاء ونه ويله . د دې حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۶۲﴾ و عن غَالِبِ بْنِ فَرْقَدٍ الطَّحَّانِ قَالَ كُنْتُ عِنْدَ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه شَهْرَيْنِ فَلَمْ يَقْنُتْ فِي صَلاَةِ الْغَدَاةِ رواه الطبراني و اسناده حسن .[4]

**ترجمه** : غالب بن فرقد الطحان ويلي دي چې زه د حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه سره دوه مياشتې وم هغه د سهر په مانځه کې د قنوت دعاء نه ده ويلي . د دې حديث روايت طبراني کړي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۶۶۳﴾ و عن عَمْرِو بْنِ دِينَارٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ الزُّبَيْرِ رضي الله عنه يُصَلِّي بِنَا الصُّبْحَ بِمَكَّةَ فَلاَ يَقْنُتُ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۹ باب القنوت في الفجر وغيره ، مجمع الزوائد ج۱ص۱۳۷ نقلًا عن الطبراني في الكبير.

(۲) مؤطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ص ۱۴۳ باب القنوت في الصبح .

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۳ باب القنوت في الفجر وغيره .

(۴) المعجم الكبير للطبراني ج۱ص ۲۴۵ رقم الحديث ۶۹۳.

قال النيموي تدل الأخبار على أن النبي صلى الله عليه وسلم وأصحابه لم يقنتوا إلا في النوازل.[1]

**ترجمه** : عمرو بن دينار ويلي دي چې عبدالله بن الزبير رضي الله عنه مونږ ته په مکه مکرمه کې د سهر مونځ کړي ؤ خو هغه د قنوت دعا نه وه ويلې . د دې حديث روايت طحاوي کړي دی او اسناد ئې صحيح دی .

نيموي رحمه الله ويلي چې اخبار په دې خبره باندې دلالت کوي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم او د ده صحابه کرامو د سهر په مانځه کې د نوازلو د (هنګامي حالاتو نه) په غير د قنوت دعاء نه ده ويلې .

**مسئلة الباب** : دباب ټول حديثونه په فجر کې مستقل قنوت دنه مشروع کيدو او عندالنازله په مختلفو مونځونو کې دقنوت په جواز باندې دحنفيو او دحنابلو مستدل دي .مسئلة الباب ددېنه وړاندې باب کې تير شو .

## ﴿ باب لا وتران في ليلة ﴾

## باب په يوه شپه کې دوه ځله وتر نشته

﴿۶۶۴﴾ عن قيس بن طلق عن أبيه قال سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول لا وتران في ليلة رواه الخمسة الا ابن ماجه و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د قيس ابن طلق نه روايت دی چې د هغه پلار ويلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل ئې چې په يوه شپه کې دوه ځله وتر نشته . د دې حديث روايت د ابن ماجه نه په غير پنځو محدثينو کړی دی او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۶۵﴾ و عن ابن المسيب أن أبابكر رضي الله عنه و عمر رضي الله عنه تذاكرا الوتر عند رسول الله صلى الله عليه وسلم فقال أبو بكر أما أنا فأصلي ثم أنام على وتر فإذا استيقظت صليت شفعا حتى الصباح فقال عمر لكني أنام على شفع ثم أوتر من آخر السحر فقال رسول الله صلى الله عليه وسلم لأبي بكر حذر هذا و قال لعمر رضي الله عنه قوي هذا رواه الطحاوي والخطابي و بقي بن مخلد و اسناده حسن .[3]

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۳ باب القنوت في الفجر وغيره .

(۲) ترمذي ابواب الصلوة الوتر ج۱ص ۱۰۷ باب ماجاء لا وتران في ليلة ، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۳ باب في نقض الوتر ، نسائي کتاب قيام الليل ...الخ ج۱ص ۲۴۷ باب نهي النبي صلى الله عليه وسلم عن الوترين في ليلة ، مسند احمد ج۴ص ۲۳ .

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۷ باب التطوع بعد الوتر ، تلخيص الحبير ج۲ص ۱۷ باب صلوة التطوع نقلا عن بقي ابن مخلد .

**ترجمه** : د ابن مسیب رحمه الله نه روایت دي چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د وترو په باره کې مذاکره کوله حضرت ابوبکر رضي الله عنه وویل چې زه مونځ وکړم په وترو باندې بیا ویده شم نو کله چې راپیدار شم نو تر سهره پورې دوه دوه رکعته وکړم. او حضرت عمر رضي الله عنه ویلي دي لیکن زه دوه رکعته مونځ وکړم بیا د سهر په اخر کې وتر وکړم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ابوبکر رضي الله عنه ته وفرمایل چې دا یرېږي احتیاط کوي او حضرت عمر رضي الله عنه ته ئې وویل د ده کار مضبوط دي په خپل بیداریدو ئې باور دي . د دې حدیث روایت طحاوي کړي دي او خطابي او بقي ابن مخلد کړي دي او اسناد ئې مرسل قوي دي.

﴿۶۶۶﴾ وَعَنْ اَبِي حَمْزَةَ قَالَ سَأَلْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رضي الله عنه عَنِ الْوِتْرِ فَقَالَ إِذَا أَوْتَرْتَ أَوَّلَ اللَّيْلِ فَلَا تُوتِرْ آخِرَهُ وَإِذَا أَوْتَرْتَ آخِرَهُ فَلَا تُوتِرْ أَوَّلَهُ قَالَ وَسَأَلْتُ عَائِذَ بْنَ عَمْرٍو فَقَالَ مِثْلَهُ رواه الطحاوي و اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : ابي حمزه ویلي دي چې ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د وترو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه وویل چې کله د شپې اوله برخه کې وتر وکړې نو د شپې په اخره برخه کې وتر مه کوه او که د شپې په اخره برخه کې وتر کوې نو د شپې په اوله برخه کې وتر مه کوه ابو حمزه ویلي دي چې ما د عائذ ابن عمرو نه پوښتنه وکړه هغه هم په جواب کې دغه شان وویل . د دې حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۶۶۷﴾ وَعَنْ خِلَاسٍ قَالَ سَمِعْتُ عَمَّارَ بْنَ يَاسِرٍ رضي الله عنه وَسَأَلَهُ رَجُلٌ عَنِ الْوِتْرِ فَقَالَ أَمَّا أَنَا فَأُوتِرُ ثُمَّ أَنَامُ فَإِنْ قُمْتُ صَلَّيْتُ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ رواه الطحاوي و اسناده حسن .(۲)

**ترجمه**: خلاص ویلي دي چې ما د حضرت عمار بن یاسر رضي الله عنه نه اوریدلي دي کله چې د هغه نه یو سړي د وترو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه ورته وویل هر چې زه یم نو وتر وکړم بیا ویده شم نو که چیرته راپیدار شم نو دوه دوه رکعته مونځ وکړم . د دې حدیث روایت طحاوي کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۶۶۸﴾ وعَنْ سَعِيدِ بْنِ جُبَيْرٍ قَالَ ذُكِرَ عِنْدَ عَائِشَةَ رضي الله عنها نَقْضُ الْوِتْرِ فَقَالَتْ لَا وِتْرَانِ فِي لَيْلَةٍ

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۳۷ باب التطوع بعد الوتر .
(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۳۷ باب التطوع بعد الوتر .

واحدًا رواه الطحاوي و اسناده مرسل قوي . (۱)

**ترجمه** : سعيد بن جبير رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا ته د وترو د ماتولو يادا شت وشو نو حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا وويل چې په يوه شپه کې دوه ځله وتر نشته . د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي مرسل قوي دي .

**مسئلة الباب** : ددې باب تر لاندې د " **نقض وتر** " مسئله مذکور ده دا يوه مشهوره او اختلافي مسئله ده ، په ائمه اربعه کې خو هيڅ اختلاف نشته دې البته په قرن اول کې اختلاف پاتې شوې دې . بعضې صحابه حضرت علي ، عثمان ، ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنهُ د نقض وتر قائله وو دغه شان ابن عمر بلکې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ خو به په دې باندې عمل هم کولو کما في مسند احمد او دائمه حديث نه اسحاق بن راهويه هم ددې قائله دي .

## مسئله د " نقض وتر " توضيح

**دوترو د نقض معنیٰ او تعريف** : نقض : د شپي نه د اولی برخي وتر د شپي د اخري برخي د تهجدو نه مخکې په يو رکعت سره ماتولو ته ويلي شي او د تهجدو نه روسته به وتر دوباره وکړي شي لکه مثلاً چې يو کس د تهجدو د پاره د پاڅيدو نه روسته يو رکعت مونځ د نفل په نيت سره وکړي او دغه رکعت د ماسختن د وترو سره يوځاي کړي او د هغه وترو نه شفعه جوړه کړي داسي شو لکه د شپي په اول کې د وترو شوي مونځ ئي نقض او مات کړ نو دغه کس د تهجدو د مانځه د ادا کولو نه پس په اخر کې دوباره وتر وکړي ديته د وترو نقض ويلي شي يعني دا ولي حصي د شپي وتر ئي د تهجدو نه مخکې په يو رکعت سره نقض کړل يعني جفت ئي کړل او د تهجدو نه روسته ئي دويم ځل بيا وتر وکړل . د دي مسئلي په باره کې دوه مذهبه منقول دي .

**( ۱ ) مذهب** : جمهور اهل السنت او ځلور واړه امامان په دي متفق دي چې د وترو اعاده لازمي نه ده او په غير د وترو نه تهجد کول صحيح او درست دي .

**( ۲ ) مذهب** : د اسحاق ابن راهويه دي اسحاق ابن راهويه د وترو د نقض او د دويم ځل د وترو د ادا کولو قائل دي او د اثار السنن مؤلف امام نيموي د لا وتران في ليلة په باب سره د اسحاق بن راهويه د مسلک ترديد کړي دي .

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۲۳۷ باب التطوع بعد الوتر .

**د اسحاق رَحِمَهُ اللهُ دليل** : د وترو د نقض په باره کې امام اسحاق رَحِمَهُ اللهُ د نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې مبارک حديث باندې استدلال کړې دې چې ( **اجعلوا اخر صلوتکم باللیل وتراً** ) (۲) او بله دا چې اسحاق بن راهويه د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسې اقتداء او تابعداري کړې ده او ويلي ئې دي چې هغه هم د وترو د نقض قائل ؤ او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د سند په روايت ئې عمل کړې دې ( **عن ابن عمر انه کان اذا سئل عن الوتر قال فلو اوترت قبل ان انام ثم اردت ان اصلي باللیل شفعة بواحدة ما مضي من وتري ثم صليت مثنى مثنى فاذا قضيت صلاتي اوترت بواحدة** ) يعني د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت دې چې کله به د ده نه د وترو په باره کې پوښتنه وشوه ويل به ئې که زه چرته د خوب نه مخکې وتر وکړم او بيا د شپې د مونځ اراده کړم نو په يو رکعت خپل تير شوي وتر مونځ جفت کړم بيا دوه دوه رکعته مونځ وکړم کله چې د تهجد مانځه نه فارغ شم په يو رکعت سره وتر کړم.

**دجمهور او د ائمه ؤ اربعه ؤ دليلونه** : د نوموړي باب تول پنځه واړه روايتونه د ائمه ؤ اربعه ؤ د پاره مستدل دي د دې باب اول (۶۶۴) روايت چې قيس ابن طلق ابن علي د خپل پلار نه روايت کړې دې په دې کې د ( **لا وتران في ليلة** ) په الفاظو سره په صراحت سره حکم شوې چې په يوه شپه دوه ځله وتر نشته.

د دې باب دويم (۶۶۵) حديث کې د حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عمر فاروق رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په يوه شپه کې د يو ځل وترو معمول ذکر شوې چې يوه ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ( **حذر هذا** ) او بل ته ئې د ( **قوي هذا** ) خطاب کړې دې.

د دې باب په دريم (۶۶۶) حديث کې چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عائذ بن عمرو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فتوی مذکور ده چې په يوه شپه کې يو ځل وتر کولې شي.

او د دې باب څلورم (۶۶۷) روايت کې د حضرت عمار بن ياسر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ همدغه معمول ذکر دې.

او د دې باب په پنځم (۶۶۸) حديث کې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا حديث دې چې ( **لا وتران في ليلة** ) په يوه شپه کې دوه ځله وتر نشته.

**د اسحاق رَحِمَهُ اللهُ د استدلال نه د څلورو امامانو جواب**: څلورو امامانو د امام اسحاق رَحِمَهُ اللهُ د استدلال نه په جواب کې ويلي دي چې د وترو نقض غير صحيح دې او ويلي ئې دي چې په اجعلوا صلواتکم بالليل وترا کې چې کوم امر دې هغه د پاره د استحباب دې او دا ځکه چې پخپله د حضرت رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه د وترو نه پس دوه رکعت مونځ کول ثابت، دي لکه د حضرت

عائشې رضي الله عنها نه روايت دي ويلي ئي دي چې (كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يوتر بواحدة ثم يركع ركعتين يقرأ فيهما وهو جالس الخ) يعني حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مخکې شو مونځ ئي يو رکعت سره وتر کاوه بيا به ئي دوه رکعته مونځ کاوه په دوارو کې به ئي قرأت کاوه په داسي حال کې چې ناست به وُ الخ.

او هر چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه عمل دي يو خو دا چې عمل ئي د قول نه مخالف دي بله دا چې ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې ځما سره د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه څه روايت نشته او دا مسئله ځما درأي نه مستنبط ده.

عن مسروق قال قال ابن عمر رضي الله عنه شئ افعله برأي لا رواية.[1]

او ابن عباس رضي الله عنه د ابن عمر رضي الله عنه په باره کې ويلي دي چې ان ابن عمر يوتر في الليلة ثلاث مرات.[2] يعني ابن عمر رضي الله عنه په يوه شپه کې دري ځله وتر کول. سره د دي چې د دي باب د احاديثو موافق رسول الله صلى الله عليه وسلم د دوه ځله وترو نه هم منع کړي ده.[3]

# ﴿بَابُ الرَّكعَتَيۡنِ بَعۡدَ الۡوِتۡرِ﴾

## دوترو نه پس د دوه وُ رکعتونو باب

﴿٦٢٦﴾ عن عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يوتِرُ بِوَاحِدَةٍ ثُمَّ يَرْكَعُ رَكعَتَيۡنِ يَقۡرَأُ فِيهِمَا وَهوَ جَالِسٌ فَإِذَا اَرَادَ اَنۡ يَرْكَعَ قَامَ فَرَكَعَ. رواه ابن ماجه و اسناده صحيح.[4]

**ترجمه**: حضرت عائشې رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به مخکې ادا شوي مونځ په يو رکعت سره وتر کاوه بيا به ئي دوه رکعته مونځ کاوه په دوارو رکعتونو کې به ئي قرأت لوسته حال دا چې هغه به ناست وُ او کله به ئي چې رکوع کوله وبه دريده نو رکوع به ئي وکړه. د دي حديث روايت ابن ماجه کړي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(١) معارف السنن.

(٢) مصنف عبدالرزاق.

(٣) درس ترمذي ج ٢ صـ ٢٣٩-٢٤١.

(٤) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـ ٨٥ باب ماجاء في الركعتين بعد الوتر جالسا.

﴿۶۷۰﴾ وَ عَنْ ثَوْبَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ هٰذَا السَّهَرَ جُهْدٌ وَ ثِقْلٌ فَاِذَا اَوْتَرَ اَحَدُكُمْ فَلْيَرْكَعْ رَكْعَتَيْنِ فَاِنْ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ وَ اِلاَّ كَانَتَا لَهُ رواه الدارمي والطحاوي والدارقطني واسناده حسن .[1]

**ترجمه** : د حضرت ثوبان رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي چې بې شکه دغه شب ګیري مشقت او سختي ده کله چې یو ستاسي وتر کوي نو دوه رکعته دي وکړي او که چرته د شپې پاځیده نو تهجد دي وکړي او که نه نو دا دواړه رکعتونه ده لپاره د تهجد دي . د دي حدیث روایت دارمي طحاوي او دار قطني کړي دي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۶۷۱﴾ و عن اَبِي اُمَامَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّيهِمَا بَعْدَ الْوِتْرِ وَهُوَ جَالِسٌ يَقْرَأُ فِيهِمَا اِذَا زُلْزِلَتْ وَ قُلْ يَااَيُّهَا الْكَافِرُوْنَ رواه احمد والطحاوي و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابو امامه رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم دا دوه رکعتونه د وترو نه روسته کړي په داسي حال کې چې هغه ناست وُ په دي دواړو رکعتونو کې ئې اذا زلزلت او قل یاایها الکافرون سورتونه لوستل . د دي حدیث روایت احمد او طحاوي کړي او اسناد ئې حسن دي .

## دوتر نه پس ددوو رکعتو کولو څه حکم دې ؟

(۱) امام مالک رحمه الله خو ددېنه مطلق انکار کوي .
(۲) امام احمد رحمه الله نه صرف یو پېره کول ثابت دي .
(۳) امام ابو حنیفه رحمه الله او شافعي رحمه الله نه په دې باره کې هیڅ صراحت منقول نه دي . (معارف السنن)

لیکن په حقیقت کې ددې دوو رکعتونو په ثبوت کې متعدد احادیث دي ، دباب دروایتونو نه هم ذمؤلف غرض رکعتین بعد الوترو اثبات دي .

## تطبیق بین الاحادیث:

مشهور حدیث " اجعلوا آخر صلاتکم وترا " نه رکعتین بعد الوترنه هم په ظاهره نهي ده حال دا چې دباب روایات مثلا " کان یصلیها بعد الوتر وهو جالس " نه ددې ثبوت فراهم دې اوس په دې

---

(۱) سنن دارمي كتاب الصلوة صـــ ۱۹۸ باب في الركعتين بعد الوتر ، طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۳۴ باب التطوع بعد الـــوتر ، دار قطني كتاب الوتر ج۲صـــ ۳۹ باب في الركعتين بعد الوتر وفي الطحاوي والدار قطني انّ هذا السفر مكان . ان هذا السّهر.
(۲) مسند احمد ج۵ صـــ ۲۶۰، طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ۲۳۷ باب التطوع بعد الوتر .

احادیثو کې تطبیق په لاندې ډول دې :

۱... "اجعلو آخر صلاتکم وترا" امر استحباب باندې محمول دې نه وجوب باندې .

۲... " آخر صلاتکم " نه په حالت دقیام آخري مونځ مراد دې ځکه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه دا دوه رکعته په ناسته ثابت دي او همدغه په دې کې مسنون هم دي .(معارف السنن :۴/۲۵۹)

۳... "آخر صلاتکم " دحکم نه رکعتین مستثنی دي کما یفهم من صنیع الامام الترمذي (۱/۱۰۷)

**یادونه** : حدیث نمبر ۶۷۰ کې لفظ " السهر " دې لیکن په اکثرو روایتونو کې " السفر " وارد دې. کماني معارف السنن تحت البحث .

## ﴿ بَابُ التَّطَوُّعِ لِلصَّلَوَاتِ الْخَمْسِ ﴾

## د پنځه وخته مونځونو د پاره د نفلو باب

﴿۶۷۲﴾ عنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ حَفِظْتُ مِنَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَشْرَ رَكَعَاتٍ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ هَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ فِي بَيْتِهِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ فِي بَيْتِهِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ صَلَاةِ الصُّبْحِ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وایلي دي چې ما د نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه لس رکعتونه حفظ کړي دي دوه رکعته د ماسپښین د مانځه نه مخکې او دوه رکعته د ماسپښین د مانځه نه روسته او دوه رکعته د ماښام نه روسته په خپل کور کې او دوه رکعته د ماسختن نه روسته په خپل کور کې او دوه رکعته د سهر د مانځه نه مخکې د دې حدیث روایت شیخینو کړي دي .

﴿۶۷۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ لَمْ يَكُنِ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى شَيْءٍ مِنَ النَّوَافِلِ أَشَدَّ تَعَاهُدًا مِنْهُ عَلَى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ رواه البخاري .(۲)

**ترجمه** : حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وایلي دي ځومره به چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سهر سنتو اهتمام کاوه دومره ئې د نورو سنتو اهتمام نه کاوه . د دې حدیث شیخینو کړي دي .

---

(۱) بخاري کتاب التهجد ج۱ص۱۵۷ باب الرکعتین قبل الظهر ، مسلم کتاب صلوة المسافرین ج۱ص۲۵۲ فضل سنن الراتبة ....الخ .

(۲) بخاري کتاب التهجد ج۱ص۱۵۶ باب تعاهد رکعتي الفجر ...الخ ، مسلم کتاب صلوة المسافرین ج۱ص۲۵۱ باب استحباب رکعتي سنة الفجر ...الخ .

﴿٦٧٤﴾ وَ عَنها اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَدَعُ اَرْبَعاً قَبْلَ الظُّهرِ وَ رَكعَتَينِ قَبْلَ الغَدَاةِ رواه البخاري (١)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم د ماسپښين نه مخکې څلور رکعته او د سهر نه مخکې دوه رکعته نهٔ پريښي د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿٦٧٥﴾ وَعَنها عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَكعَتَا الفَجرِ خَيرٌ مِنَ الدُّنيا وَمَا فِيها رواه مسلم.(٢)

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د سهر دوه رکعته سنت د دنيا او په دنيا کې د ټولو موجوده شيانو نه بهتر دي. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿٦٧٦﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ بِتُّ فِي بَيتِ خَالَتِي مَيمُونَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا بِنتِ الحَارِثِ زَوجُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عِندَهَا فِي لَيلَتِها فَصَلَّى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ العِشَاءَ ثُمَّ جَاءَ اِلَى مَنزِلِه فَصَلَّى اَربَعَ رَكعَاتٍ رواه البخاري.(٣)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې ما د خپل ترور حضرت ميموني بنت الحارث د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د بي بي په کور کې شپه تيره کړي او نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغي د شپې په نوبت کې د هغي سره وُ نو نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د ماسختن مونځ وکړ بيا ئې خپل کور ته تشريف راوړ نو څلور رکعته ئې وکړل د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿٦٧٧﴾ وَعَنْ عَبدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ سَأَلتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا عَنْ صَلَاةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَن تَطَوُّعِه فَقَالَتْ كَانَ يُصَلِّي فِي بَيتِي قَبلَ الظُّهرِ اَربَعًا ثُمَّ يَخرُجُ فَيُصَلِّي بِالنَّاسِ ثُمَّ يَدخُلُ فَيُصَلِّي رَكعَتَينِ وَكَانَ يُصَلِّي بِالنَّاسِ المَغرِبَ ثُمَّ يَدخُلُ فَيُصَلِّي رَكعَتَينِ وَيُصَلِّي بِالنَّاسِ العِشَاءَ وَيَدخُلُ بَيتِي فَيُصَلِّي رَكعَتَينِ رواه مسلم.(٤)

---

(١) بخاري كتاب التهجد ج١ص ١٥٧ باب الركعتين قبل الظهر.

(٢) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج١ص ٢٥١ باب استحباب ركعتي سنة الفجر ...الخ.

(٣) بخاري كتاب العلم ج١ص ٢٢ باب السمر بالعلم.

(٤) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج١ص ٢٥٢ باب جواز النافلة قائما وقاعداً ...الخ.

**ترجمه**: عبدالله بن شقيق ويلي دي چې ما د حضرت عائشي رضي الله عنها نه د رسول الله صلى الله عليه وسلم د نفل مانځه په باره کښې پوښتنه وکړه نو هغې وويل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به ځما په کوټه کښې د ماسپښين د مانځه نه مخکښې څلور رکعته کول بيا به وُوته نو خلکو ته به ئې مونځ وکړ بيا به راننواته نو دوه رکعته مونځ به ئې وکړ او خلکو ته به ئې د ماښام مونځ وکړ بيا به راننواته نو دوه رکعته مونځ به ئې وکړ او خلکو ته به ئې ماسختن مونځ وکړ بيا به ځما کوټې ته راغي نو دوه رکعته مونځ به ئې وکړ. د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۶۷۸﴾ وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا زَوْجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُصَلِّي لِلّٰهِ كُلَّ يَوْمٍ ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً تَطَوُّعاً غَيْرَ فَرِيضَةٍ إِلاَّ بَنَى اللهُ لَهُ بَيْتاً فِي الْجَنَّةِ رواه مسلم وآخرون.[1]

**ترجمه**: او د ام حبيبة رضي الله عنها نه چې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم بي بي مبارکه ده روايت شوي دي چې هغې د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل ئې کوم مسلمان بنده چې د الله جل شانه د رضا د پاره د فرض نه په غير هره ورځ دولس رکعته نفل مونځ ادا کړي الله جل شانه به ده ته په جنت کښې کور جوړ کړي. د دې حديث روايت مسلم او اخرونو کړي دي.

﴿۶۷۹﴾ وعنها قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَليلة ثِنْتَيْ عَشْرَةَ بُنِيَ لَهُ بَيْتٌ فِي الْجَنَّةِ أَرْبَعاً قَبْلَ الظُّهْرِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَهَا وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْمَغْرِبِ وَرَكْعَتَيْنِ بَعْدَ الْعِشَاءِ وَرَكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْفَجْرِ صَلاَةِ الْغَدَاةِ رواه الترمذي وآخرون واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې په يو شپه او ورځ کښې دولس رکعته مونځ ادا کړي د ده د پاره په جنت کښې کور جوړ کړي شي. څلور رکعته د ماسپښين نه مخکښې او دوه رکعته د ماسپښين د مانځه نه روسته دوه رکعته د ماښام نه روسته او دوه رکعته د ماسختن نه روسته او دوه رکعته د سهر د مانځه نه مخکښې. د دې حديث روايت ترمذي او نورو کړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۶۸۰﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ثَابَرَ عَلَى ثِنْتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً مِنَ

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۱ باب فضل السنن الراتبة قبل الفرائض.

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۴ باب ماجاء في من صلي في يوم وليلة ثنتي عشرة ركعة ...الخ.

السُّنَّةَ بَنَي الله له بَيتاً فِي الجَنَّةَ اَرْبَعَ رَكعَاتٍ قَبْلَ الظُّهرِ وَرَكعَتَينِ بَعْدَهاَو رَكعَتَينِ بَعْدَ المَغرِبِ وَ رَكعَتَينِ بَعْدَ العِشَاءِ و رَكعَتَينِ قَبْلَ الفَجْرِ رواه الاربعة الا اباداود و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د سنتو په دولسو ركعتونو باندې پابندي وكړي نو الله جل شانه به ده ته په جنت كې يو كور جوړ كړي څلور ركعته د ماسپښين د مانځه نه مخكې او دوه ركعته د ماسپښين د مانځه روسته او دوه ركعته د ماښام د مانځه نه روسته او دوه ركعته د ماسختن د مانځه نه روسته او دوه ركعته د سهر د مانځه نه مخكې . د دې حديث روايت د ابوداؤد نه په غير څلورو صاحبانو كړي دي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۶۸۱﴾ و عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم رَحِمَ الله امْرَأً صَلَّى قَبْلَ العَصْرِ اَرْبَعاً رواه ابوداود و آخرون و حسنه الترمذي و صححه ابن خزيمة و ابن حبان .[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي الله جل شانه دې په هغه چا رحم وكړي چې د مازيګر د مانځه نه مخكې څلور ركعته نفل مونځ اداء كوي . د دې حديث روايت ابوداؤد او نورو كړي او ترمذي حسن ګڼړلي او خُزيمه او ابن حبان صحيح ګڼړلي دي .

﴿۶۸۲﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَتْ مَا صَلَّي النَّبِي صلى الله عليه وسلم اَلعِشَاءَ قَطُّ فَدَخَلَ عَلَى الاَصْلِي اَرْبَعَ رَكعَاتٍ اَو سِتَّ رَكعَاتٍ رواه احمد و ابوداود و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي رسول الله صلى الله عليه وسلم چې كله هم د ماسختن مونځ اداء فرمايلي ما كره ئې تشريف راوړي نو څلور او يا شپږ ركعته مونځ ئې كړي . د دې حديث روايت احمد او ابوداؤد كړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۸۳﴾ و عن عَلِي رضي الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يصَلِّي عَلَى اَثَرِ كلِّ صَلاَةٍ رَكعَتَينِ اِلاَّ الفَجْرَ وَالعَصْرَ رواه اسحاق بن راهويه في مسنده و اسناده حسن .[4]

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۲ باب ماجاء في من صلي في يوم وليلة ثنتي عشرة ركعة ...الخ ، نسائي كتاب قيام الليل ...الخ ج۱ص ۲۵۲ بـاب ثواب من صلّي في اليوم والليلة ثنتي عشرة ركعة .... ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوت ص ۸۱ باب ماجاء في ثنتي عشرة ركعة ....

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۰ باب الصلوة قبل العصر ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۸ باب ما جآء في الاربع قبل العصر ، صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۲ص ۲۰۶ رقم ۱۱۹۳ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۵ ص۷۷ رقم ۲۴۴۴.

(۳) مسند احمد ص ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۵ باب الصلوة بعد العشاء .

(٤) نصب الراية كتاب الصلوة ج۱ص ۲۵۰ فصل في الاوقات المكروهة نقلا عن اسحق بن راهويه في مسنده ، صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۲ص ۲۰۷ رقم ۱۱۹۶.

**ترجمه** : حضرت علي رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د هر مانځه نه روسته دوه رکعته اداء فرمايلي ذي په غير د سهر او د مازيګر نه . د دي حديث روايت اسحٰق بن راهويه په خپل مسند کې کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۶۸۴﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا لَمْ يُصَلِّ اَرْبَعاً قَبْلَ الظُّهرِ صَلاَّهُنَّ بَعْدَهَا رواه الترمذي و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي کله به چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ماسپښين د مانځه نه مخکې څلور رکعته نهٔ اداء فرمايلي نو د ماسپښين د مانځه نه روسته به ئې ادا فرمايل . د دي حديث روايت ترمذي کړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۶۸۵﴾ وَعَنْ عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعَ رَكْعَاتٍ يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِالتَّسْلِيمِ عَلَى الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَمَنْ تَبِعَهُمْ مِنَ الْمُسْلِمِينَ وَالْمُؤْمِنِينَ رواه الترمذي و آخرون و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : حضرت علي رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به د مازيګر د مانځه نه مخکې څلور رکعته مونځ ادا فرمايه او د رکعتونو په منځ کې به ئې په مقربو ملائکو او د دوي په تابعدارو مؤمنانو او مسلمانانو باندي په سلام سره جدائي کوله . د دي حديث روايت ترمذي او نورو محدثينو کړي دي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۶۸۶﴾ وَعَنْ اِبْرَاهِيمَ النَّخْعِي قَالَ كَانُوا لاَ يَفْصِلُونَ بَيْنَ اَرْبَعٍ قَبْلَ الظُّهرِ بِتَسْلِيمٍ اِلاَّ بِالتَّشَهُّدِ وَلاَ اَرْبَعٍ قَبْلَ الْجُمُعَةِ وَلاَ اَرْبَعٍ بَعْدَهَا رواه محمد بن الحسن في الحجج و اسناده جيد .[3]

**ترجمه** : ابراهيم نخعي رحمه الله ويلي دي چې صحابه کرامو به د جمعي د مانځه نه مخکې د څلورو رکعتونو په منځ کې او د جمعي د مانځه نه روسته د څلورو رکعتونو په منځ کې فصل او جدائي نه کوله. د دي حديث روايت په حجج کې محمد بن حسن کړي دي او اسناد ئې جيد دي .

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۷ باب ماجاء في الركعتين بعد الظهر باب آخر .

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۸ باب ماجاء في الاربع قبل العصر ، صحيح ابن خزيمة كتاب الصلوة ج۲ص۲۱۸ تعليقا تحت باب رقم ۵۲۵.

(۳) كتاب الحجة ج۱ص ۲۷۴ باب صلاة النافلة .

﴿۶۸۷﴾ وَعَنْهُ قَالُوا مَا كَانُوا يُسَلِّمُونَ فِي الْأَرْبَعِ قَبْلَ الظُّهرِ رواه الطحاوي و اسناده جيد.[1]

**ترجمه** : او ابراهيم نخعي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې صحابه کرامو به د ماسپښين د مانځه نه مخکې په څلورو رکعتونو کې سلام نه ګرځاوه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئې جيد دي.

**سنن رواتب** : عام نوافل خو چې انسان څومره او غواړي کولې يې شي د هغې څه خاص تعداد نه دې معلوم ليکن د فرضو مونځ سره مرتب نوافل کوم ته چې سنن رواتب يا سنن مؤکده ويلې کيږي، د هغې په تعداد کې اختلاف دې :

(۱) د بعضي حضراتو مطابق امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف د فجر نه مخکې دوه رکعته سنن رواتب دي او باقي ټول عام نوافل. (الدر المنضود:۲/۵۱۲)

علامه ابن رشد مالکي هم همدې طرفته مائل ښکاري (بداية المجتهد :ص ۱۶۵-۱۶۷) ليکن حضرت بنوري رَحِمَهُ اللهُ د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ په حوالې سره يو څو سنن رواتب قول نقل کړې دی مثلا د ظهر نه مخکې څلور رکعته .(معارف السنن :۴/۱۰۹،۱۰۵).

(۲) شافعيه او حنابلو په نزد سنن رواتب لس دي : د فجر نه مخکې دوه رکعته، ماسپخين نه مخکې او وروسته دوه رکعته، بيا د ماښام او د ماسخوتن نه پس هم دوه دوه.

(۳) د حنفيو په نزد ټول دولس رکعات رواتب دي يعنې د ماسپخين نه مخکې څلور رکعته.

د شافعيو او د حنابلو دليل : د باب اولنې حديث کوم چې د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مروي دې او په هغې کې په واضح طور باندې د لس رکعاتو ثبوت دې.

حنفيه او دنورو دلائل : د دې حضراتو استدلال د باب قوي او فعلي احاديثو نه دې، مثلا :

(الف) حديث دام حبيبه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا نمبر ۶۸۰ : مَنْ صَلَّى فِي يَوْمٍ وَلَيلة ثِنْتَي عَشَرَةَ بُنِيَ لَه بَيتٌ فِي الْجَنَّة أَرْبَعاً قَبْلَ الظُّهرِ.

(ب) حديث دعائشه رضي الله عنها نمبر ۶۷۵ : " أَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يَدَعُ أَرْبَعاً قَبْلَ الظُّهرِ".

## د حنفيو وجوه ترجيح او په احاديثو کې تطبيق :

۱... د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سنن معمول په کور کې ادا کول وو لهذا ازواج مطهرات د دې صحيح

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص۲۳۲ باب التطوع بالليل والنهار كيف هو .

تعدادو نه واقف کيدې شي : " فان صاحب البيت ادرى بما فيه " او هغوي د حضور ﷺ قول وفعل د ماسپخين نه مخکښې څلور رکعته نقل کړي دي ، او ابن عمر رضي الله عنه د خپل حفظ مطابق ذکر کړي دي کوم چې ممکن دې د سفر واقعه وي يا کله کله عمل .

۲... د ابن عمر رضي الله عنه روايت فعلي دې ليکن نور قولي او فعلي هر قسمه روايات دي او عندالتعارض قول لره فعل باندې به ترجيح حاصله وي .

## د ماز يګر نه مخکښې د څلور رکعتو فضيلت :

د باب حديث ابن عمر رضي الله عنه نمبر ٦٨٢ کښې ارشاد دې : رَحِمَ اللهُ امْرَأً صَلَّى قَبْلَ الْعَصْرِ اَرْبَعاً.

(۱) حضرت حکيم الامت فرمايي چې د دې څلور رکعتو څه معين فضيلت بيانولو په ځاي د مطلق رحمت ذکر د دې خبرې دليل دې چې د دوي ثواب دومره زيات دې چې د بيان په قيد کښې نشي راتلاي (درس ترمذي : ۲/۹٤).

(۲) دا جمله خبريه هم کيدې شي او دعائيه هم ، يعنې يا خو حضور ﷺ خبر ورکوي چې داسې ده او يا دعا کوي چې الله تعالى دې رحم اوکړي داسې کس باندې ، خلک د بزرګانو نه د دعا غوښتنه کوي ، د حضور ﷺ د دعاء نه زياته اوچته دعاء د چا کيدې شي د دې د وصولولو کوشش کولو پکار دې . والله الموافق

البته د دې څلورو رکعتونو د غير مؤکد کيدو کښې د چا اختلاف هم نشته دې .

## ﴿بَابُ مَا اسْتُدِلَّ بِهِ عَلَى الْفَصْلِ بِتَسْلِيمَةٍ بَيْنَ الْاَرْبَعِ مِنْ سُنَنِ النَّهَارِ﴾

**دا باب دې په بيان د هغه روايتونو کښې په کومو کښې چې استدلال کړې شوې دې د ورځې د څلورو رکعتونو د سنتو تر منځ د يو سلام په جدائي سره**

﴿٦٨٨﴾ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ صَلَاةُ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ مَثْنَى مَثْنَى رواه الخمسة قَالَ الْبَيْهَقِي ذِكْرُ النَّهَارِ لَيْسَ بِمَحْفُوظٍ وَ يُعَارِضُه بَعْضُ الْاَخْبَارِ الْمُتَقَدِّمَة مِمَّا ذَكَرْنَاه فِي الْبَابِ السَّابِقِ.[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اکرم ﷺ فرمايلي دي چې د شپې او د ورځې مونځ دوه دوه رکعته دي . د دې حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي .

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۱۸۳ باب صلوة النهار، نسائي کتاب قيام الليل ج۱صــ ۲۴۶ باب کيف صلوة النهار ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۹۴ باب ماجاء في صلوة الليل والنهار مثنى مثنى ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱صــ۹۸ باب ماجاء في الاربع قبل العصر ، مسند احمد ج۲صــ ۲۶.

نیموي رَحِمَهُ اللهُ ویلي چې دنهار دلفظ ذکر غیر محفوظ دي او دتیرباب ځینو احادیثو سره معارض دي.

## سنن ونوافل : دوه ، دوه رکعته یا څلور ، څلور ؟

دورځي او دشپې په سنتو او نوافلو کې آیا دوه ، دوه رکعته کول افضل دي یعنې هر دویم رکعت باندې دې سلام واړولې شي یا څلور ، څلور رکعت ؟ په دې کې اختلاف دې لیکن دا اختلاف په افضلیت کې دي جواز او عدم جواز کې نه دې ؛

۱... دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد ورځ وي او که شپه څلور ، څلور رکعته کول افضل دي.

۲... دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد په یو نیت سره هم دوه رکعته کول افضل دي.

۳... دصاحبینو په نزد فرق دې ، چنانچې په ورځ کې څلور ، څلور رکعته او په شپه کې دوه ، دوه رکعته کول افضل دي.

۴... دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد که ورځ او که شپه نفل دوه دوه رکعته کول افضل دي. (معارف السنن :۱۱۷/۴، الدر المنضود :۵۳۵/۲)

دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل :

۱... حدیث دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوعا : " صلاة اللیل والنهار مثنی مثنی ". (ابوداود :۱۸۳/۱)

۲... حدیث المطلب عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال : الصلاة مثنی مثنی ان تشهد في کل رکعتین ... " الحدیث. (ابوداود :۱۸۳/۱).

**دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دلیل :** همغه دې کوم چې پاس تیر شو او هغه "مثنی " لفظ په وجوب باندې محمولوي.

**دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ دلیل :**

۱... په ورځ کې دڅلور رکعته کولو دافضلیت دلیل خو دابوایوب حدیث دې مرفوعا یعنې "اربع قبل الظهر لیس فیهن تسلیم " (ابوداود :۱۸۳/۱)

۲... په شپه کې دڅلور رکعته کولو دافضلیت دلیل دصحیح حدیث عائشه رضي الله عنها دې یعنې "کان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لا یزید في رمضان ولا في غیره علی احدی عشرة رکعة یصلي اربعا... " الحدیث.

۳... قیاس هم دا غواړي ځکه چې په څلور رکعتو کې داوږدې تحریمې دوجې نه مشقت زیات وي.

## دصاحبينو دليل :

۱... دباب دابن عمر رضي الله عنه حديث : " صلاة الليل مثنى مثنى ".
۲... په ورځ کې دڅلور رکعته کولو دافضليت وجه دامام صاحب په دليل کې موجود ده.

## ائمه ثلاثه رحمهم الله ته جواب :

۱... " مثنى مثنى" دا مطلب نه دی چې په هر دويم رکعت دې سلام واړولې شي بلکې ددېنه مراد شفعا شفعا دې يعنې نفل مونځ شفعا کول پکار دي نه وترا.
۲... حديث دمطلب رضي الله عنه زمونږ په خلاف نه دی بلکې زمونږ مؤيد دی چې حضور صلی الله عليه وسلم اوفرمايل " دشپې مونځ دوه دوه رکعته دې هغه دا چې ته په هر دوو رکعتو باندې تشهد اووايې او عاجزي او مسکنت ظاهرکړې .... الحديث " معلومه شوه چې د "مثنى" نه غرض دوو رکعتو باندې تشهد ويل دي . والله اعلم

**خبرداری**: په بعضې شروحو کې مسئله مبحوث عنها کې دصاحبينو په قول باندې فتوي نقل کړې شوې ده ليکن دتتبع او تالاش نه بعد معلومېږي چې د متون مشهوره نه صرف الدر المختار کې دې قول لره غوره کړې شوې دی حال دا چې په رد المختار شامي (۱٦/۲) ، البحر الرائق (۵۴/۲) ، او حلبي کبيري (ص:۳۳٦) کې دامام صاحب قول لره راجح ګرځولې شوې دی . والله اعلم

# ﴿بَابُ النَّافِلَةِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ﴾

## د ماښام نه مخکې د نفلو باب :

﴿٦٨٩﴾ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ الْمُؤَذِّنُ اِذَا اَذَّنَ قَامَ نَاسٌ مِنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَبْتَدِرُوْنَ السَّوَارِيَ حَتّٰى يَخْرُجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُمْ كَذٰلِكَ يُصَلُّوْنَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ رواه الشيخان و زاد مسلم حَتّٰى اَنَّ الرَّجُلَ الْغَرِيْبَ لَيَدْخُلُ الْمَسْجِدَ فَيَحْسِبُ اَنَّ الصَّلَاةَ قَدْ صُلِّيَتْ مِنْ كَثْرَةِ مَنْ يُصَلِّيْهِمَا .[1]

---

(۱) بخاري کتاب الاذان ج۱ص ۸۷ باب کم بين الاذان والاقامة ، مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۸ باب استحباب رکعتين قبل صلوة المغرب .

**ترجمه**:حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ويلي دي کله به چې مؤذن اذان وکړ نودنبي اکرم صلى الله عليه وسلم د صحابه کرامو نه به ځيني خلکو ديوالونو طرف ته جلتي کوله تر دي پوري چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به تشريف راوړ دغسي به دوي د ماښام نه مخکې دوه رکعته مونځ کړي ؤ د دي حديث روايت شيخينو کړي او مسلم دغه الفاظ زيات کړي دي ، تر دي پوري چې يو مسافر سړي به مسجد ته داخل شو نو دوه ؤ رکعتونود مونځ کوونکو د زياتوالي په وجه به ئي داسي ګمان کاوه چې ګني جمع شوي ده .

**﴿۶۹۰﴾** عَنْ مُخْتَارِ بنِ فلفلٍ قَالَ سَئلتُ عن انس بن مالك عَنِ التَّطَوُّعِ بَعْدَ الْعَصْرِ فَقَالَ كَانَ عُمَر يضْرِبُ الْأَيْدِيَ عَلىٰ صَلٰوة بَعْدَ الْعَصْرِ وَكُنَّا نُصَلِّي عَلٰى عَهْدِ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم رَكْعَتَيْنِ بَعْدَ غُرُوبِ الشَّمسِ قَبْلَ صَلٰوةِ المَغرِبِ فَقُلتُ لَه اَكَانَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم صَلَّاهُمَا قَالَ كَانَ يرَانَا فَلَمْ يَامُرْنَا وَلَم ينهنَا رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : مختاربن فضل ويلي دي چې ما پوښتنه وکړه د انس بن مالک نه د نفل مونځ په باره کې پس د مازيګر نه نو هغه وويل چې حضرت عمر رضي الله عنه به وهل خلک په لاسونو باندي په مانځه باندي د مازيګر د مانځه نه روسته او حال دا چې ؤ مونږ چې مونځ به مو کاوه په زمانه د رسول الله صلى الله عليه وسلم کې دوه رکعته روسته د نورد پريوتو نه مخکې د ماښام د مانځه نه نو مختار بن فلفل وائي چې ما حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ته وويل چې آيا رسول الله صلى الله عليه وسلم دغه دوه رکعته مونځ کړي ؤ حضرت انس رضي الله عنه وويل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونږ ليدو نو نه ئي راته امر کړي ؤ او نه ئي منع کړي ؤ . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

**﴿۶۹۱﴾** وَعَن مَرثَدِ بنِ عَبدِ الله اليزَني قَالَ اَتَيتُ عَقبَةَ بنِ عَامِرِ الجُهنِي رضي الله عنه فَقُلتُ اَلا اُعَجِّبُك مِن اَبِي تَمِيمٍ يركَعُ رَكعَتَينِ قَبلَ صَلَاةِ المَغرِبِ فَقَالَ عُقبَةُ اِنَّا كُنَّا نَفعَلُه عَلىٰ عَهدِ النَّبِي صلى الله عليه وسلم فَقُلتُ فَمَا يمنَعُك الاٰنَ قَالَ الشُّغلُ رواه البخاري .[2]

**ترجمه** : حضرت مرثد بن عبدالله اليزني رحمه الله ويلي دي چې زه حضرت عقبه بن عامر الجهني رضي الله عنه ته راغلم ورته ومي ويل چې زه تاته د ابو تميم په باره کې عجيبه خبره ونه کړم چې د ماښام نه مخکې ئي دوه رکعته مونځ کاوه نو حضرت عقبه بن عامر وويل چې مونږ هم د نبي اکرم

(۱) مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۸ باب استحباب رکعتين قبل صلوة المغرب.

(۲) بخاري کتاب التهجد ج۱ص ۱۵۸ باب الصلوة قبل المغرب.

صلى الله عليه وسلم په زمانه کې دغسې کول ما ورته وويل چې اوس تاڅه شي منع کوي هغه وويل چې شغل او مصروفيت. د دې حديث روايت مسلم کړې دې.

(۶۱۲) وَعَن عَبدِ الله بنِ مُغَفَّلٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم بَينَ كُلِّ أذَانَينِ صَلَاةٌ بَينَ كُلِّ أذَانَينِ صَلَاةٌ ثُمَّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَن شَاءَ رواه الجماعة.[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د هر دوه ؤ اذانونو (اذان او اقامت) تر منځ مونځ دي د هر دوه ؤ اذانونو تر منځ مونځ دي بيا ئې په دريم ځل وفرمايل چې د چا خوښه وي معنی دا چې ضروري نه دي. د دې حديث روايت د محدثينو پر جماعت کړې دې.

(۶۱۳) وَعَنه عَنِ النَّبِيِّ صلى الله عليه وسلم قَالَ صَلُّوا قَبلَ المَغرِبِ صَلُّوا قَبلَ المَغرِبِ ثُمَّ قَالَ فِي الثَّالِثَةِ لِمَن شَاءَ كَرَاهِيَةَ أن يَتَّخِذَهَا النَّاسُ سُنَّةً رواه البخاري ولأبي داود صَلُّوا قَبلَ المَغرِبِ رَكعَتَينِ.[2]

**ترجمه** :حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د ماښام نه مخکې مونځ وکړئ د ماښام نه مخکې مونځ وکړئ بيا ئې په دريم ځل وفرمايل چې څوک ئې کول غواړي دا ئې خوښه نه وه چې خلک ئې مؤکد سنت وګڼړي. د دې حديث روايت بخاري کړې دې او د ابوداؤد الفاظ دا سې دي چې د ماښام نه مخکې دوه رکعته مونځ وکړئ.

(۶۱۴) وَعَنه أنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم صَلَّى قَبلَ المَغرِبِ رَكعَتَينِ رواه ابن حبان في صحيحه ومحمد بن نصر المروزي في قيام الليل و زاد ثُمَّ قَالَ صَلُّوا قَبلَ المَغرِبِ رَكعَتَينِ ثُمَّ قَالَ عِندَ الثَّالِثَةِ لِمَن شَاءَ خَافَ أن يَحسِبَهَا النَّاسُ سُنَّةً و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د ماښام نه مخکې دوه رکعته مونځ کړې دې. د دې حديث روايت ابن حبان په خپل صحيح کې کړې دې او

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۸۷ باب بين كل اذانين صلوة لمن شاء ، مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۸ باب استحباب ركعتين قبل صلوة المغرب ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۴۵ باب ماجاء في الصلوة قبل المغرب ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۲ باب الصلوة قبل المغرب ، نسائي كتاب الاذان ۱ص۱۱۱ باب الصلوة بين الاذان والاقامة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ج۱ص ۸۲ باب ماجاء في الركعتين قبل المغرب ، مسند احمد ج۴ ص ۸۶ .

(۲) بخاري كتاب التهجد ج۱ص ۱۵۸ باب الصلوة قبل المغرب ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۲ باب الصلوة قبل المغرب .

(۳) المختصر قيام الليل ص ۵۰ باب الركعتين قبل المغرب ذكر من لم يركعهما ، تلخيص الحبير ج۱ص ۱۳ نقلا عن ابن حبان في صحيحه .

محمد بن نصر المروزي په قيام الليل کې کړي دي . او مروزي دغه الفاظ زيات کړي دي چې بيا ئې په دريم ځل فرمايلي دي چې څوک ئې د کولو اراده لري د دي يري نه چې خلک به ئې سنت وګڼي او اسناد ئې صحيح دي .

## دلمر ډوبيدو نه پس دنوافلو بحث

**مسئلة البابين** : دغروب آفتاب نه پس دفرض لمونځ نه مخکې دوه رکعته نفل کول څنګه دي ؟

۱... داتمه اربعه نه څوک هم ددې داستحباب قائله نه دي بلکې رد المختار (۱/۳۷۶) کې حنفيه او مالکيه او شوافع (في رواية) په نزد دې لره مکروه ليکلي دي .

۲... امام شافعي او احمد رحمه الله نه يو روايت رکعتين قبل المغرب استحباب منقول دې .(الدر المنضود :۲/۵۲۸، حلبي کبيري ، ص: ۲۱۰)

داستحباب دقائلينو دجواز دليل:

ددې باب ټول حديثونه استحباب او جواز باندې دلالت کوي کوم نه چې ۱... حديث انس رضي الله عنه نمبر ۶۸۹ کې داصحاب نبي صلى الله عليه وسلم بعهد نبوي رکعتين قبل المغرب کول او دحضور صلى الله عليه وسلم په دې باندې نکير نه کول مذکور دي .

۲... حديث دعبدالله بن مغفل رضي الله عنه مرفوعا نمبر ۶۹۳ کې حضور صلى الله عليه وسلم رکعتين قبل المغرب اجازت ورکول مذکور دي .

۳... حديث دعبدالله بن مغفل نمبر ۶۹۴ کې پخپله دحضور صلى الله عليه وسلم رکعتين قبل المغرب کول مذکور دي . نو ګويا چې قولي او فعلي احاديثو نه نافله قبل المغرب ثبوت فراهم دې .( رکعتين قبل المغرب عدم جواز باندې دليل او تطبيق بين الاحاديث دراروان باب تر لاندې اوګورئ)

## ﴿ بَابُ مَنْ اَنْكَرَ التَّنَفُّلَ قَبْلَ الْمَغْرِبِ ﴾

## باب د هغه چا باره کې دي چې د ماښام نه مخکې ئې د نفلونه انکار کړي دي

﴿۶۹۵﴾ عَنْ طَاؤُسٍ قَالَ سُئِلَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الْمَغْرِبِ فَقَالَ مَا رَأَيْتُ اَحَدًا يُصَلِّيهِمَا عَلَى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صلى الله عليه وسلم رواه عبد بن حميد الكشي في مسنده و ابوداود و اسناده صحيح .[1]

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۲ باب الصلوة قبل المغرب ، سنن الكبرى كتاب الصلوة ج۲ص ۴۷۶ باب من جعل قبل صلوة المغرب ركعتين .

**ترجمه** : طاؤس ویلي دي چې د حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه د مابنام نه مخکې د دوه ؤ رکعتونو په باره کې پوښتنه وشوه نو هغه وویل چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې هیڅ یو کس نه دي لیدلي چې دغه دوه رکعته ئې کړي وي. د دي حدیث روایت عبدابن حُمید الکشي په خپل مسند کې کړي دي او ابوداؤد کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

**﴿۶۹۶﴾** وَعَن حَمَّادِ بنِ اَبِي سُلَيمَانَ اَنَّه سَاَلَ اِبرَاهِيمَ النَّخَعِي عَنِ الصَّلَاةِ قَبلَ المَغرِبِ قَالَ فَنَهَاهُ عَنهَا وَ قَالَ اِنَّ رَسُول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَ اَبَابَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ لَم يكونُوا يصَلُّونَهَا رواه محمد بن الحسين في الآثار و اسناده منقطع و رجاله ثقات.[1]

**ترجمه** : د حماد ابن ابي سلیمان نه روایت دي چې هغه د ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ نه د مابنام د مانځه نه مخکې د دوه ؤ رکعتونو په باره کې پوښتنه وکړه نو هغه ئې دغه د مانځه نه منع کړ او وي ویل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ او حضرت ابوبکر صدیق رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ دغه مونځ نه ؤ کړي . د دي حدیث روایت په اثار کې محمد بن الحسن کړي دي او اسناد ئې منقطع دي او رجال ئې ثقه او باوري دي.

## د ترجمة الباب نه غرض

د دې باب نه غرض نافله قبل المغرب په عدم جواز باندې دلیلونه بیانول مقصود دي :

۱... حدیث نمبر ۶۹۵ کې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ واضحه فرمایلي چې ما د حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په زمانه کې چالره هم په دې دوو رکعتونو کولو باندې نه دي کتلي.

۲... حدیث نمبر ۶۹۶ کې ابراهیم نخعي رَحِمَهُ اللهُ (جلیل القدر تابعي) د رکعتین قبل المغرب نه منع کړي او فرمایي چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ او شیخینو رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا دا دوه رکعته نه دي کړي.

د استحباب او د جواز قائلینو ته جواب او د احادیثو په مینځ کې تطبیق:

۱... " صلوا قبل المغرب " تعلق د نهي عن الصلوة بعد العصر سره ده یعني د عصر نه پس د تطوع چې کومه نهي ده هغه په غروب باندې منتهي (ختمیږي) کیږي ، البته د غروب نه پس څوک چې نفل غواړي نو کولې یې شي یعني خپل شوق پوره کولې شي چې خلاف ولیدې.(الدر المنضود : ۵۲۸/۲)

۲... "لمن شاء" نه معلومه شوه چې امر لپاره د استحباب نه دې.

---

(۱) کتاب الآثار صـــ ۲۹ باب ما یعاد من الصلوة وما یکره منها رقم الحدیث ۱۳۵.

۳... مضبوط خبره داده چې ددې په باره کې دحضراتو صحابه کرامو په دې کې څه لږ ډیر اختلاف پاتې شوې دی او دهغې نه پس دیو قابل ذکر فقیه یا تابعي نه په سند صحیح نافله قبل المغرب ثبوت نشته مرفوع حدیث باندې ترک عمل ددې دضعف نښه ده.

۴... " رکعتین قبل المغرب" سره متعلق ټول احادیث دتعجیل بالمغرب دحکم راتللو نه مخکې وارد دي او اوس دا رکعتین منسوخ دي. (رد المحتار شامي: ۱/۳۷۶)

# ﴿ بَابُ التَّنَفُّلِ بَعدَ صَلَاةِ العَصرِ ﴾

## د مازیګر مونځ نه وروسته د نفلو باب

﴿۶۹۷﴾ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا قَالَت مَا تَرَكَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَكعَتَينِ بَعدَ العَصرِ قَطُّ رواه الشيخان.[۱]

**ترجمه**: حضرت عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا ویلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مازیګر نه روسته دوه رکعته هیڅکله نه دي پرېښي. د دې حدیث روایت شیخینو کړي دي.

﴿۶۹۸﴾ وَعَنها قَالَت رَكعَتَانِ لَم يَكُن رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدعُهُمَا سِرًّا وَلَا عَلَانِيَةً رَكعَتَانِ قَبلَ الصُّبحِ وَرَكعَتَانِ بَعدَ العَصرِ رواه الشيخان.[۲]

**ترجمه**: حضرت عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا ویلي دي چې دوه داسي رکعتونه دي چې رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه په پټه پرېښي دي او نه ئي په ښکاره پرېښي دي دوه رکعته د سهر د مانځه نه مخکې او دوه رکعته د مازیګر د مانځه روسته. د دې روایت شیخینو کړي دي.

﴿۶۹۹﴾ وَعَن أَبِي سَلَمَةَ أَنَّهُ سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا عَنِ السَّجدَتَينِ اللَّتَينِ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّيهِمَا بَعدَ العَصرِ فَقَالَت كَانَ يُصَلِّيهِمَا قَبلَ العَصرِ ثُمَّ أَنَّهُ شُغِلَ عَنهُمَا أَو نَسِيَهُمَا فَصَلَّاهُمَا بَعدَ العَصرِ ثُمَّ أَثبَتَهُمَا وَكَانَ إِذَا صَلَّى صَلَاةً أَثبَتَهَا رواه مسلم.[۳]

---

(۱) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص ۸۳ باب ما يصلى بعد العصر من الفوائت، مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۷ باب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها.

(۲) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص ۸۳ باب ما يصلى بعد العصر من الفوائت، مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۷ باب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها.

(۳) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۷ باب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها.

**ترجمه** : ابي سلمه نه روايت دي چې هغه د حضرت عائشي رضي الله عنها نه د هغه دوه ؤ رکعتونو په باره کې پوښتنه وکړه کوم چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د مازيګر د مانځه نه روسته اداء کول نو حضرت عائشي رضي الله عنها ووئيل دا دوه رکعتونه رسول الله صلی الله علیه وسلم د مازيګر د مانځه نه مخکې ادا کول بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم د هغي د اداء کولو نه په څه مشغول شو او يا ئي هير شو نو دا دوه رکعتونه ئي د مازيګر د مانځه نه روسته وکړل بيا رسول الله صلی الله علیه وسلم په دي دوه ؤ رکعتنو باندي دوام ؤفرمايه او رسول الله صلی الله علیه وسلم به چې کله يو مونځ ادا کاوه نو په هغي باندي به ئي دوام فرمايه.
د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

## دمازيګر مونځ نه پس نفل کول جائز دي يا نه ؟

۱... دامام ابوحنيفه رحمه الله په نزد دا مکره وي.
۲... امام مالک رحمه الله او امام شافعي رحمه الله معمولي اختلاف سره دې لره جائز ګرځوي. (بداية المجتهد، ص: ۸۸)

**امام مالک رحمه الله او دشافعي رحمه الله دلائل**: ددې باب ټول حديثونه ددې حضراتو مستدل دي خاص کر اولنې حديث " مَا تَرَكَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم رَكعَتَيْنِ بَعدَ العَصرِ قَطُّ " خو دادې ملحوظ نظر وي چې دجواز ټول حديثونو مدار حضرت سيده عائشه رضي الله عنها باندې دې.

د راروان باب " باب كراهية التطوع بعد صلاة العصر .... " ټول روايات دامام صاحب مستدل دي کوم چې داطلاق او دعموم په سبب هر قسمه نفل لره شامل دي خاص کر حديث دابو هريره رضي الله عنه نمبر ۷۰۲: "اَنَّ رَسُولَ الله صلی الله علیه وسلم نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعدَ العَصرِ حَتّٰى تَغرُبَ الشَّمسُ".

## داحاديثو په مينځ کې تعارض:

په دې باب کې دام سلمه رضي الله عنها حديث نمبر ۷۰۴ نه معلوميږي چې حضور صلی الله علیه وسلم دا دوه رکعتونه صرف يو ځيره کړي دي هغه هم په ديو مجبورې په بناء باندې، هغه دا وه چې دوي بعد الظهر دوه رکعتونه سنت نه وو کړي نو دعصر نه پس يې هغې لره ادا کړو ليکن بل طرفته حديث دعائشه رضي الله عنها مطابق دحضور صلی الله علیه وسلم دائمي معمول وو دعصر نه پس دوه رکعته کول ،او دا دواړه حديثونه بخاري او مسلم کې دي.

## دمتعارضه احاديثو کې تطبيق او امام مالک رحمه الله او شافعي رحمه الله ته جواب :

۱... يو اعتبار سره خو دام سلمه رضي الله عنها حديث لره دعائشي رضي الله عنها باندې په دې طور ترجيح حاصله ده چې په بعضي رواياتو کې حضرت عائشه دحضور صلی الله علیه وسلم هميش والي پخپله بيانوي او بعضي رواياتو کې سائل لره دحضرت ام سلمه رضي الله عنها حواله ورکوي.

۲... یا بیا دا چې رکعتین لره دحضور صلی الله علیه وسلم په خصوصیت باندې محمول کړې شي ځکه چې دطحاوي دروایت مطابق دام سلمه رضي الله عنها په پوښتنې باندې حضور صلی الله علیه وسلم هغې ته ددې دکولو اجازت ورنکړو پخپله حضرت عمر رضي الله عنه بعد العصر دروه رکعته کولو والا به یې وهل او دا به دېولو صحابو په وړاندې وو چا هم نکیر اونه فرمایل.
۳... دنهي عن الصلاة بعد العصر روایات قوي او متواتر دي او ددوي په مقابله کې فعلي جزئي واقعه ده، لهذا عمومي استدلال ددې نه نشي کیدې.

## ﴿بَابُ كَرَاهَةِ التَّطَوُّعِ بَعدَ صَلَاةِ العَصرِ وَ صَلَاةِ الصُّبحِ﴾

## د مازیگر او د سهر د مانځه نه روسته د نفلو د ادا کولو د مکروهوالي باب

﴿۷۰۰﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما قَالَ سَمِعتُ غَيرَ وَاحِدٍ مِّن أَصحَابِ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم مِنهم عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ رضي الله عنه وَ كَانَ أَحَبَّهم إِلَيَّ أَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعدَ الفَجرِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ وَبَعدَ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم د ډیرو صحابه کرامو نه چې بعض د هغې نه حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه دي چې هغه ماته د ټولو نه زیات محبوب ؤ چې بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم د سهر نه روسته د نمر ترختو پورې او د مازیگر نه روسته تر د نمر د پریوتو پورې د مانځه نه منع کړې. د دې حدیث روایت شیخینو کړې دې.

﴿۷۰۱﴾ وَ عَن أَبِي سَعِيدٍ الخُدرِيِ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم لَا صَلَاةَ بَعدَ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ وَلَا صَلَاةَ بَعدَ صَلَاةِ الفَجرِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه** : حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه ویلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي چې د مازیگر د مانځه نه روسته د نمر تر پریوتو مونځ نشته او د سهر د مانځه نه روسته تر د نمر د ختو پورې مونځ نشته. د دې حدیث روایت شیخینو کړې دې.

---

(۱) مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۵ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص ۸۲ باب الصلوة بعد الفجر حتى ترتفع الشمس.
(۲) مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۵ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۲ باب لا تتحرّى الصلوة قبل غروب الشمس.

﴿۴۰۲﴾ وَ عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نَهى عَنِ الصَّلَاة بَعدَ العَصرِ حَتّٰى تَغرُبَ الشَّمسُ وَ عَنِ الصَّلَاة بَعدَ الصُّبحِ حَتّٰى تَطلُعَ الشَّمسُ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د مازيګر د مانځه نه روسته د نمر تر پريوتو پوري د مانځه نه منع کړي او د سهر د مانځه نه روسته ئي د نمر تر ختو پوري د مانځه نه منع فرمايلي دي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۴۰۳﴾ وَ عَن عَمرِو بنِ عَبَسَة السُّلَمِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ قُلتُ يا نَبِي الله اَخبِرنِي عَمَّا عَلَّمَكَ الله وَ اَجهلَه اَخبِرنِي عَنِ الصَّلَاة قَالَ صَلِّ صَلَاة الصُّبحِ ثُمَّ اَقصِرُ عَنِ الصَّلَاة حَتّٰى تَطلُعَ الشَّمسُ حَتّٰى تَرتَفِعَ فَاِنَّها تَطلُعُ حِينَ تَطلُعُ بَينَ قَرنَي الشَّيطَانِ وَ حِينَئِذٍ يسجُدُ لَها الكفَّارُ ثُمَّ صَلِّ فَاِنَّ الصَّلَاة مَشهودَة مَحضُورَة حَتّٰى يستَقِلَ الظِّلُ بِالرُّمحِ ثُمَّ اَقصِر عَنِ الصَّلَاة فَاِنَّ حِينَئِذٍ تُسجَرُ جهنَّمُ فَاِذَا اَقبَلَ الفَيءُ فَصَلِّ فَاِنَّ الصَّلَاة مَشهودَة مَحضُورَة حَتّٰى تُصَلِّيَ العَصرُ ثُمَّ اَقصِر عَنِ الصَّلَاة حَتّٰى تَغرُبَ الشَّمسُ فَاِنَّها تَغرُبُ بَينَ قَرنَي شَيطَانٍ وَ حِينَئِذٍ يسجُدُ لَها الكفَّارُ رواه مسلم و احمد .(۲)

**ترجمه** : حضرت عمرو بن سُلمي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې ما وويل اې د الله جل شانه نبي ماته د هغه څه نه خبر راکړه چې تاته الله جل شانه ښودلى دي او زه د هغي نه ناخبريم د مانځه په باره کې ما خبر کړه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې د سهر مونځ وکړه بيا د مانځه نه بند شه تر دي پوري چې نمر ؤخيژي او چت شي ځکه چې نمر کله راخيژي د شيطان د دوه ؤ ښکرونو تر منځ راخيژي او په دغه وخت کې کافران نمر ته سجده کوي بيا مونځ وکړه ځکه مانځه ته فرشتې د ګواهئ د پاره حاضرېږي تر دي پوري چې سوري د يوي نيزي نه کم شي بيا د مانځه نه بند شه ځکه چې په دغه وخت کې جهنم ګرمېږي کله چې سوري راوګرځي نو مونځ وکړه ځکه چې په مانځه کې ملائکې د شهادت د پاره حاضرېږي تر دي پوري چې د مازيګر مونځ وکړي بيا د مانځه نه بند شه تر دي پوري چې نمر پريوزي ځکه چې نمر د شيطان د دوه ؤ ښکرونو تر منځ پريوزي او په دغه وخت کې کافران نمر ته سجده کوي. د دي حديث روايت مسلم او احمد رَحِمَهُمَا اللهُ کړي دي.

---

(۱) مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص۲۷۵ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، بخاري کتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۳ بساب لا تتحرّي الصلوة قبل غروب الشمس .

(۲) مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص۲۷۶ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، مسند احمد ج۴ص۱۱۱.

﴿۴۰۲﴾ وَعَن كُرَيبٍ أَنَّ ابنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ والمِسوَرَ بنَ مَخرَمَةَ وَعَبدَ الرَّحمٰنِ بنِ أَزهرَ أَرسَلُوهُ إِلىٰ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَقَالُوا اِقرَأْ عَلَيهَا السَّلَامَ مِنَّا جَمِيعًا وَسَلهَا عَنِ الرَّكعَتَينِ بَعدَ صَلَاةِ العَصرِ وَقُل لَهَا أَنَّا أُخبِرنَا إِنَّكِ تُصَلِّينَهُمَا وَقَد بَلَغَنَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نَهىٰ عَنهُمَا وَقَالَ ابنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كُنتُ أَضرِبُ النَّاسَ مَعَ عُمَرَ بنَ الخَطَّابِ عَنهُمَا قَالَ كُرَيبٌ فَدَخَلتُ عَلىٰ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَبَلَّغتُهَا مَا أَرسَلُونِي بِهٖ فَقَالَت سَل أُمَّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَخَرَجتُ إِلَيهِم فَأَخبَرتُهُم بِقَولِهَا فَرَدُّونِي إِلىٰ أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَقَالَت أُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا سَمِعتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَنهىٰ عَنهُمَا ثُمَّ رَأَيتُهُ يُصَلِّيهِمَا حِينَ صَلَّى العَصرَ ثُمَّ دَخَلَ عَلَيَّ وَعِندِي نِسوَةٌ مِن بَنِي حَرَامٍ مِنَ الأَنصَارِ فَأَرسَلتُ إِلَيهِ الجَارِيَةَ فَقُلتُ قُومِي بِجَنبِهٖ قُولِي لَهُ تَقُولُ لَكَ أُمُّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا يَا رَسُولَ اللهِ سَمِعتُكَ تَنهىٰ عَن هَاتَينِ وَأَرَاكَ تُصَلِّيهِمَا فَإِن أَشَارَ بِيَدِهٖ فَاستَأخِرِي عَنهُ فَفَعَلَتِ الجَارِيَةُ فَأَشَارَ بِيَدِهٖ فَاستَأخَرَت عَنهُ فَلَمَّا انصَرَفَ قَالَ يَا ابنَتَ أَبِي أُمَيَّةَ سَأَلتِ عَنِ الرَّكعَتَينِ بَعدَ العَصرِ وَإِنَّهُ أَتَانِي نَاسٌ مِن عَبدِ القَيسِ فَشَغَلُونِي عَنِ الرَّكعَتَينِ اللَّتَينِ بَعدَ الظُّهرِ فَهُمَا هَاتَانِ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د کريب نه روايت دي چې ابن عباس رضي الله عنه المسور بن مخرمه او عبدالرحمن ابن ازهر کريب حضرت عائشې رضي الله عنها ته وليږه نو ورته وې ويل چې زمونږ د ټولو د خوا نه ورته سلام ووايه او د مازيګر د مانځه نه روسته د دوه رکعته مونځ پوښتنه ترې وکړه او ورته ووايه چې بې شکه مونږ ته خبر راکړې شوې دې چې ته هغه دوه رکعته کوې او مونږ ته خبر رسيدلې دې چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د دې دوه و رکعتونو نه منع فرمايلې ده او ابن عباس رضي الله عنه ويلې دې چې ما د حضرت عمر رضي الله عنه سره خلک د دغه دوه رکعتونو په وجه وهلي دي کريب ويلي دي چې زه حضرت عائشې رضي الله عنها ته ورغلم کوم پيغام چې ما ته هغو راکړې و هغه مې ورته ورساوه نو حضرت عائشې رضي الله عنها وويل چې د حضرت ام سلمی رضي الله عنها نه پوښتنه وکړه نو کريب وائي چې زه راؤوتم دوي ته راغلم د حضرت عائشې رضي الله عنها په خبره مې هغو خبر کړل نو زه ام سلمی رضي الله عنها نه په هغو څه وليږلم په کومه ئې چې حضرت عائشې رضي الله عنها ته ليږلې وم نو ام سلمی رضي الله عنها وويل چې ما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي و چې د دې دوه و رکعتونو نه ئې منع فرمايلې وه خو کله ئې چې د مازيګر

---

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۱صـــ ۱۶۴ باب اذا كلم وهو يصلي فاشار بيده...الخ ، مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱صـــ ۲۸۴ بـاب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها .

مونځ وکړنو ما ولیده چې دا دوه رکعته ئي وفرمایل بیا ما کره راغي په داسي حال کې چې ځما سره د انصارو د بني حرام د قبیلي ښځي وي نو ما ورته یوه جینئ ورواستوله او ورته ومي ویل چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خوا ته او دریږه او ورته ووایه چې تاته ام سلمه رَضِيَ اللهُ عَنْهَا وائي چې اي د الله جل شانه رسوله ماستانه اوریدلي ؤ چې د دي دوه ؤ رکعتونو نه دي منع کوله او زه دي ګورم چې تاسي ئي کوئ نو که چرته په مبارک لاس ئي اشاره وکړه نو ګړي راروسته شه نو هغې دا کار وکړ او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته په مبارک لاس اشاره وکړه نو هغه تري راروسته شوه نو کله چې د مانځه نه فارغ شو وي فرمایل چې اي د ابي امیه لوري تا د مازیګر د مانځه نه روسته د دوه ؤ رکعتونو په باره کې پوښتنه کړي ده ماته د عبد قیس د قبیلي څه خلک راغلي ؤ زه ئي د هغه دوه ؤ رکعتونو نه مشغول کړي وم کوم چې د ماسپښین د مانځه نه روسته دي نو دا هغه دوه رکعتونه دي د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي.

﴿۴۰۵﴾ وَ عَن مُعَاوِيَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اِنَّكُم لَتُصَلُّونَ صَلَاةً لَقَد صَحِبنَا رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَينَاهُ يُصَلِّيهَا وَلَقَد نَهَى عَنهَا يعني الرَّكعَتَينِ بَعدَ العَصرِ رواه البخاري.[1]

**ترجمه:** حضرت معاویه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې به شکه تاسي یو داسي مونځ کوئ چې په تحقیق مونږه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په صحبت کې ؤ نو مونږ هغه نه دي لیدلي چې دا دوه رکعته ئي کړي وي او خامخا په تحقیق د دي نه ئي منع فرمایلي ده یعني د مازیګر نه روسته د دي دوه رکعتونه. د دي حدیث روایت بخاري کړي دي.

## ﴿بَابُ كَرَاهَةِ التَّنَفُّلِ بَعدَ طُلُوعِ الفَجرِ سِوَي رَكعَتَي الفَجرِ﴾

## د سهر د دوه رکعته سنتو نه په غیر د صبا د ختو نه پس د نورو نفلي مونځو د کراهت باب

﴿۴۰۶﴾ عَن عَبدِ اللهِ بنِ مَسعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَمنَعَنَّ اَحَدَكُم اَو اَحَدًا مِنكُم اَذَانُ بِلَالٍ مِن سُحُورِهِ فَاِنَّهُ يُؤَذِّنُ اَو يُنَادِي بِلَيلٍ لِيَرجِعَ قَائِمَكُم وَلِيُنَبِّهَ نَائِمَكُم رواه السنة الا الترمذي (۲)

---

(۱) بخاري کتاب مواقیت الصلوة ج۱ صـــ ۸۳ باب لا تتحري الصلوة قبل غروب الشمس.

(۲) بخاري کتاب الاذان ج۱ صـــ ۸۷ باب الاذان قبل الفجر، مسلم کتاب الصیام ج۱ صـــ ۳۵۰ باب بیان ان الدخول في الصوم یحصل بطلوع الفجر ....الخ، ابوداؤد کتاب الصیام ج۱ صـــ ۳۲۰ باب وقت السحور، نسائي کتاب الصیام ج۱ صـــ ۳۰۵ باب کیف الفجر، ابن ماجة ابواب ما جاء في الصیام صـــ ۱۲۳ باب ماجاء في تاخیر السحور.

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي : منع دي نكړي يو كس د ستاسي د حضرت بلال رضي الله عنه اذان د پيشنمي نه ځكه چې دا په شپه كې اذان كوي د دي د پاره چې ستاسي د نفلو مونځ كوونكي واپس راشي او ستاسي اوده خلك را بيدار كړي . د دي حديث روايت شپږو محدثينو كړي دي مګر ترمذي نه دي روايت كړي .

﴿۴۰۷﴾ وَعَن حَفصَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا طَلَعَ الفَجرُ لَا يُصَلِّي اِلَّا رَكعَتَي الفَجرِ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت حفصي رضي الله عنها ويلي دي كله به چې صبا اوخاته رسول الله صلى الله عليه وسلم به د سهر د سنتو نه په غير بل مونځ نه كاوه . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

## دصبح صادق كيدو نه پس دوه ركعته دسنت فجر نه علاوه نفل جائز دي يا نه ؟

۱... امام مالک رحمه الله فرمايي چې دچا تهجد پاتې شي نو هغه خپل معتاد تهجد كولې شي .

۲... امام شافعي رحمه الله په نزد دري قوله دي : ۱- مطلقا مكروه . ۲- سنت فجر نه مخكې جائز او ورسته كې بيا مكروه . ۳- دفجر نه مخكې مطلقا جائز . همدغه صحيح دې .

**دامام مالک رحمه الله دليل** : پو پيره دحضرت عمر رضي الله عنه نه يو څو ركعتونه دتهجد پاتې شوي وو نو دوي بيا دصبح صادق نه پس اوكړل .

**دامام شافعي رحمه الله دليل :**

۱... حديث دعمرو بن عبسه رضي الله عنه چې كله ده پوښتنه اوكړه يارسول الله !دشپې په كومه حصه كې دعاګانې زياتې قبليږي ؟ نو حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمايل چې په وروستنې حصه كې ، بيا چې ته څومره غواړې تفل اوكړه .... تردې پورې چې ته مونځ اوكړي .... الحديث

۲... حضور صلى الله عليه وسلم پخپله صرف دفجر دوه ركعته سنت اوكړل ليكن ددينه علاوه نفل كولو لره يې منع اونه فرمايله ..

**دامام ابو حنيفه رحمه الله او احمد رحمه الله دليلونه :**

۱... دباب اولنې حديث دكوم مطابق چې دحضرت بلال رضي الله عنه اذان دفجر صرف ددې لپاره وو "تر څو چې تهجد ګزار اوس بس كړي " ، كه ددېنه بعد هم نفل جائز وې نو ددې وجې ښودلو په ظاهر كې هيڅ مقصد نشته.

---

(۱) مسلم كتاب صلوة الـ ...ارين ج۱ص ـــ ۲۵۰ باب استحباب ركعتي سنة الفجر ....الخ .

۲... دويم حديث د حضرت حفصه رضي الله عنها نه مروي دې د کوم مطابق چې حضور ﷺ دصبح صادق دطلوع نه پس فقط دوه رکعته سنت فجر کول حضور ﷺ دنوافلو او دتهجد ځومره حريص وو هغه خو ظاهره ده ليکن ددې باوجود ددينه منع کيدل کم ازکم دکراهت دليل دې .

۳... په نهي کيدو دبيان جواز لپاره يو يا دوه پيره خو به يې خامخا کړې وې ليکن په رواياتو کې کله هم کول موجود نه دي .

## دامام مالک رحمه الله ددليل جواب :

دمنع احاديث قوي او دخپل مطلب باندې واضح تر دي لهذا ديو صحابي په مقابله کې احاديث مرفوعه باندې به عمل اولى وي همدارنګه دادحضرت عمر رضي الله عنه اجتهاد وو ، ځکه خو دبل صحابي نه ددې مثل ثابت نه دې ، پخپله حضرت عمر رضي الله عنه نه د يو پيره نه علاوه داسي کول منقول نه دي .

## امام شافعي رحمه الله ته جواب : داولني دليل جوابات :

۱... حديث دعمروبن عبسه رضي الله عنه جواز تنفل باندې صريح نه دې .

۲... عمرو بن عبسه قديم الاسلام دې او ددوي رضي الله عنه په حديث کې دنسخ قوي احتمال موجود دې ځکه چې په دې حديث کې صلاة الليل لره مکتوبه يعني فرض ويلې شوې دې حالانکه ددې فرضيت بالاتفاق منسوخ دې .

۳... په يو روايت کې دعمروبن عبسه رضي الله عنه دحديث الفاظ دادي : " **حتى يطلع الفجر . فاذا طلع الفجر فلا صلاة الا الركعتين حتى تصلي الفجر ....** " **الحديث** . اوس خو خبره بالکل واضحه شوه .

دويم دليل جواب دادې چې اول خو په ټولو احاديثو کې " **فلا صلاة الا الركعتين حتى تصلي الفجر** " دغه شان " **الصلاة مقبولة حتى يطلع الصبح** " ، " **ثم لا صلاة حتى تطلع الشمس** " وارد دي لهذا نهي عن غير الركعتين ثابت دي . ( معارف السنن :۴/۶۴-۶۸)

# ﴿بَابٌ فِي تَاكِيدِ رَكعَتَي الفَجرِ﴾

## د سهر د دوه ؤ رکعتونو د تاکید باب

﴿۴۰۸﴾ عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَا تَدعُوا رَكعَتَي الفَجرِ وَ لَو طَرَدَتكُمُ الخَيل رواه احمد و ابوداود و اسناده صحيح و قد تقدم احاديث الباب في باب التطوع للصلوات الخمس.[۱]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې د سهر دوه رکعته مه پرېږدي اگر که چې رېائمال کړي وي تاسي لره اسونو . د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ او ابوداؤد کړي دي او اسناد ئي صحيح دي . او په تحقيق د دي باب حديثونه د پنځو مونځونو د پاره د نفلو په باب کې تير شوي دي .

**مسئلة الباب** : د فجر دوه رکعته سنت بالاتفاق مؤکده دي ، مالکيه هم ورته اهم النوافل وايي . (رحمة الامة ، ص: ٤٥ )

د احاديث الباب نه د دي يو اهميت معلوم دي .

# ﴿بَابٌ فِي تَخفِيفِ رَكعَتَي الفَجرِ﴾

## د سهر په سنتو کې د تخفيف کولو باب

﴿۴۰۹﴾ عَن عَائِشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يخَفِّفُ الرَّكعَتَينِ اللَّتَينِ قَبلَ صَلَاة الصُّبحِ حَتَّى اِنِّي لَا قُولُ هل قَرَأَ بِأمِّ الكِتَابِ رواه الشيخان .[۲]

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا ويلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به په هغه دوه ؤ رکعتونو کې چې د سهر د مانځه نه مخکې دي تخفيف کاوه تر دي پوري چې ما به ويل چې آيا ام الکتاب يعني فاتحه ئي پکې لوستلي ؟ د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

---

(۱) مسند احمد ج۲صـــ ۴۰۵ ، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۷۹ باب في تخفيفهما ورکعتي الفجر .

(۲) بخاري کتاب التهجد ج۱صـــ ۱۵۶ باب ما يقرأ في رکعتي الفجر ، مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱صـــ ۲۵۰ باب استحباب رکعتي سنة الفجر .

(۴۱۰) وَعَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ رَمَقْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَهرًا فَكَانَ يَقرَأُ فِي الرَّكعَتَينِ قَبلَ الفَجرِ قُل يَا أَيُّهَا الكَافِرُونَ وَقُل هُوَ اللهُ أَحَدٌ رواه الخمسة الا النسائي وحسنه الترمذي.[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم يوه مياشت په ژور نظر سره ليدلي دي چې د سهر د مانځه نه مخكې ئې په دوه ؤ ركعتونو كې قل ياايها الكافرون او قل هوالله احد لوسته . د دي حديث روايت د نسائي نه په غير پنځو محدثينو كړي دي او ترمذي حسن گڼرلي دي.

## دتخفيف وضاحت او تشريح :

دسحر په سنتو كې نخفيف قرأت دحضور صلى الله عليه وسلم نه ثابت دې داختصار قرأت په مقدار كې اختلاف په لاندې دول دې :

۱... امام مالک رحمه الله او بعض ظاهريه په نزد دفجر په سنتو كې صرف سوره فاتحه مستحب ده .

۲... دجمهور په نزد سوره فاتحې سره يو بل وړوكې سورت دې هم ورسره اولوستلې شي . ( معارف السنن : ۵۹/۴)

## دامام مالک رحمه الله دليل :

دباب دعائشي رضي الله عنها حديث " حتى اني لاقول : هل قرأ بأم الكتاب " چې دومره مختصر قرأت چې ماته دسوره فاتحې په ويلو كې هم تردد وو .

**دجمهور دليل** : دجمهور استدلال دباب دويم حديث ( حديث دابن عمر رضي الله عنه) سره سره دهغه ټولو احاديثو نه دې كوم چې دحضرت ابن مسعود رضي الله عنه، انس ، ابوهريره ، ابن عباس ، حفصه ، او پخپله حضرت عائشه رضي الله عنها نه هم مروي دي ددې مطابق حضور صلى الله عليه وسلم دفجر په سنتو كې سورة الكافرون او سورة الاخلاص په شان واړه واړه سورتونه كول .

**امام مالک رحمه الله او ظاهريه ته جواب** :چي كله دمتعددو احاديثو نه ضم سورت ثابت دې نو ددې انكار صحيح نه دې همدارنګې هغه صريح هم دې حال دا چې ستاسو مستدل دعائشي رضي الله عنها حديث كې دا احتمال دې چې حضور صلى الله عليه وسلم دتهجد ركعتونه دومره اوږده وو چې ددې په مقابله كې په سنتو كې دمختصر قرأت دوجې نه نفس سوره فاتحه لوستلو هم يقين نه وو ليكن

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۵ باب ما جآء في تخفيف ركعتي الفجر ...الخ ،ابوداود كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۸باب في تخفيفهما عن ابي هريرة رضي الله عنه ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ج۱ص ۸۱ باب ماجآء في الركعتين قبل الفجر ، مسند احمد ج۲ص ۹۴ .

ددې باوجود دوي به په دې کې قرأت کولو او ضم دسورت به يې هم کولو کما هو مصرح في الروايات الاخرى... واذا جاء الاحتمال بطل الاستدلال.

## ﴿بَابُ كَرَاهة سُنَّة الْفَجْرِ اِذَا شَرَعَ فِي الْاِقَامَة﴾

## باب دې په کراهت د سنتو د سهر کې کله چې شروع وکړې شي په اقامت کې

﴿۷۱۱﴾ عن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِنَّه قَالَ اِذَا اُقِيمَتِ الصَّلاَة فَلاَ صَلاَة اِلاَّ الْمَكتُوبَة رواه الجماعة الا البخاري.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې د مانځه د پاره اقامت وشي د فرضو نه په غير بل هيڅ مونځ نشته. د دې حديث روايت د بخاري نه په غير جماعت کړې دې.

﴿۷۱۲﴾ وَعَن عَبدِ الله بنِ مَالِك ابنِ بُحَينَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ مَرَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بِرَجُلٍ وَقَدْ اُقِيمَتِ الصَّلاَة يُصَلِّي رَكعَتَينِ فَلَمَّا انصَرَفَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لاَثَ بِهِ النَّاسُ فَقَالَ لَه رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَلصُّبْحُ اَرْبَعاً اَلصُّبْحُ اَرْبَعاً رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: عبدالله ابن مالک بن بُحينه رضي الله عنه وايي دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم په يو سړي باندې په داسې حالت کې تېرشو چې جمع ولاړه وه هغه د سهر دوه رکعته سنت کول نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم سلام وګرځاوه خلک د هغه نه چار چاپېره راجمع شوي نو هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د سهر فرض مونځ څلور رکعته دي، د سهر فرض مونځ څلور رکعته دي. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې.

---

(۱) مسلم کتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۷ باب کراهة الشروع في نافلة بعد شروع المؤذن ...الخ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص ۹۶ باب ما جاء اذا اقيمت الصلوة فلا صلوة الا المكتوبة، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۰ باب اذا ادرك الامام ولم يصل ركعتي الفجر، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱ص ۱۳۹ باب ما يكره من الصلوة عند الاقامة، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها ص ۸۱ باب ماجاء في اذا اقيمت الصلوة فلا صلوة الا المكتوبة، مسند احمد ج۲ص ۴۵۵.

(۲) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۹۱ باب اذا اقيمت الصلوة فلا صلوة الا المكتوبة، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۷ باب كراهة الشروع في نافلة بعد ...الخ.

﴿۴۱۳﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَرْجِسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ بِالْمَسْجِدِ وَرَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي صَلَاةِ الْغَدَاةِ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ فِي جَانِبِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَمَّا سَلَّمَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا فُلَانُ بِأَيِّ الصَّلَاتَيْنِ اِعْتَدَدْتَ بِصَلَاتِكَ وَحْدَكَ أَمْ بِصَلَاتِكَ مَعَنَا رواه مسلم والاربعة الا الترمذي.[1]

**ترجمه**: حضرت عبدالله بن سرجس رضي الله عنه ويلي دي يو سړي په داسي حال کې مسجد ته راننوت چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د سهر په مانځه کې ؤ نو د مسجد يو اړخ ته ئي دوه رکعته مونځ وکړ بيا د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په مانځه کې داخل شو نو کله چې رسول الله صلى الله عليه وسلم سلام واړاوه وي فرمايل اي فلاني کوم يو د دوه ؤ مونځونو ته دي اعتبار ورکړي دي خپل يوا ځي مونځ ته او که خپل هغه مونځ ته چې مونږ سره دي وکړ. د دي حديث روايت د ترمذي په غير مسلم او څلورو محدثينو کړي دي.

﴿۴۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ أُقِيْمَتْ صَلَاةُ الصُّبْحِ فَقَامَ رَجُلٌ يُصَلِّي رَكْعَتَيْنِ فَجَذَبَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِثَوْبِهِ وَقَالَ أَتُصَلِّي أَرْبَعًا رواه احمد و اسناده جيد.[2]

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي د سهر د مانځه اقامت وکړي شو نو يو سړي پاڅيده د سهر دوه رکعته مونځ ئي کاوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه د جاي نه ؤ نيؤ رائي هکوره او وي فرمايل آيا د سهر څلور رکعته مونځ کوي. د دي حديث روايت احمد کړي او اسناد ئي جيد دي.

﴿۴۱۵﴾ وَعَنْهُ قَالَ كُنْتُ أُصَلِّي وَأَخَذَ الْمُؤَذِّنُ فِي الْإِقَامَةِ فَجَذَبَنِي النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ أَتُصَلِّي الصُّبْحَ أَرْبَعًا رواه ابوداود الطيالسي في مسنده و ابن خزيمة و ابن حبان و آخرون و قال الحاكم في المستدرك هذا حديث صحيح علي شرط مسلم وَلَمْ يُخْرِجَاهُ.[3]

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۴۷ باب كراهة الشروع في نافلة بعد ...الخ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۰ باب اذا ادرك الامام ولم يصل ركعتي الفجر ، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱ص ۱۳۹ فيمن يصلي ركعتي الفجر والامام في الصلوة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها ص ۸۲ باب ماجاء في اذا اقيمت الصلوة فلا صلوة الا المكتوبة .

(۲) مسند احمد ج۱ص ۲۳۸.

(۳) مسند ابي داؤد طيالسي ص ۳۵۸ رقم الحديث ۲۷۳۶ ابن ابي مليكه عن ابن عباس رضي الله عنه ، صحيح ابن خزيمة ، جماع ابواب الركعتين قبل الفجر ج۲ص ۱۶۹ رقم الحديث ۱۱۲۴ باب النهي عن ان يصلي ركعتي الفجر ...الخ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج ۵ ص ۸۲ رقم الحديث ۲۴۶۰ باب النوافل ، المستدرك كتاب صلوة التطوع ج۱ص ۳۰۷ باب فضيلة ركعتي سنة الفجر .

**ترجمه** : او حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې ما مونځ کاوه او مؤذن په اقامت کې شروع کړي وه نو زه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د جامي نه راکش کړم نو وي فرمايل آيا د سهر مونځ څلور رکعته کوې. د دي حديث روايت داؤد طيالسي په خپل مسند کې کړي دي او ابن خزيمه او ابن حبان او نورو کړي دي او حاکم په مستدرک کې ويلي دي چې داحديث صحيح دي د مسلم په شرط باندي اودوي نه دي خارج کړي.

**﴿۷۱۶﴾** وَ عَنْ اَبِي مُوسَي الاَشْعَرِي رضي الله عنه عَنْ رَسُولِ الله صلی الله علیه وسلم اَنَّه رَأٰى رَجُلاً صَلّٰ رَكعَتَي الغَدَاة حِينَ اَخَذَ المُؤَذِّنُ يُقِيمُ فَغَمَزَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم مَنْكِبَيه وَ قَالَ اَلاَ كَانَ هٰذَا قَبْلَ ذَا رواه الطبراني في الصغير والكبير واسناده جيد.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابو موسي اشعري رضي الله عنه روايت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يو سړي د سهر په دوه ؤ رکعتونو سنتو باندي وليده کله چې مؤذن په اقامت شروع کوله نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم هغه د اوږو نه ؤنيو او وي فرمايل آيا هغه مونځ د دينه مخکې نه دي. د دي حديث روايت په صغير او کبير کې طبراني کړي دي او اسناد ئې جيد دي.

**﴿۷۱۷﴾** و عن اَبِي هرَيرَة رضي الله عنه قَال قَالَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم اِذَا اُقِيمَتِ الصَّلاَة فَلاَ صَلاَة اِلاَّ المَكتُوبَة قِيل يارَسُولَ الله وَلاَ رَكعَتَي الفَجْرِ قَالَ وَلاَ رَكعَتَي الفَجْرِ رواه ابن عدي والبيهقي و قال الحافظ في الفتح اسناده حسن وَفِيمَا قَالَه نَظرٌ و هذه الزيادة لا اصل لها.[2]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي کله چې جمع اؤدرېږي نو د فرض مونځ نه په غير بل هيڅ يو مونځ نشته چا پوښتنه وکړه چې اي د الله جل شانه رسوله د سهر دوه رکعته سنت هم نشته هغه وفرمايل چې نه د سهر دوه رکعته سنت هم نشته. د دي حديث روايت ابن عدي او بيهقي کړي دي او حافظ په فتح الباري کې ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي او په دي کې نظر او اعتراض او د دغه زيادت د پاره هيڅ اصل نشته.

---

(۱) المعجم الصغير للطبراني ج۱ص۵۵ قال حدثنا احمد بن حمدان ...الخ ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲ص۷۵ باب اذا اقيمت الصلوة هل يصلي غيرها نقلا عن الطبراني في الكبير والاوسط.

(۲) كامل ابن عدي ج ۷ ص ۲۷۰۲ ترجمة يحيي بن نصر بن حاجب ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲ص ۴۸۳ باب كراهية الاشتغال بهما ...الخ ، فتح الباري كتاب الاذان ج۲ص ۲۸۸ باب اذا اقيمت الصلاة ...الخ.

## داقامت نه پس دسحر دسنتو حکم

که دسحر مونځ اودرېږي او چا تر اوسه پورې سنت نه وي کړي نو هغه ته څه کول پکار دي آیا سنت دي اوکړي او که نه پرېږدي او جمع کې شریک شي؟

۱... دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد په دې وخت کې سنت کول مطلقا مکروه دي نه دې کول پکار.

۲... امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمایي ، دوو شرطونو سره سنت کولې شي ، اول دا چې بهر دجومات نه به وي ، دویم دا چې دفرض دواړه رکعتونه دده جماعت سره ملاوېږي ،، که یو رکعت هم فوت کېږي نو بیا دې نه کوي.

۳... دحنفیو په نزد هم دوه شرطونه دي ؛ یو خارج دجومات یا کم ازکم دجماعت سره اختلاط نه وي بلکې په مېنځ کې یو شئ حائل وي دویم دا چې ددواړو رکعتونو فوت کیدو ویره نه وي که صرف یو رکعت فوت کېږي نو بیا هم کولې شي.

**دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ دلیل** ؛ دا حضرات دباب دټولو احادیثو نه استدلال کوي دکوم په الفاظ کې چې یو طرفته خو عموم دې مثلا : " إِذَا أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَلَا صَلَاةَ إِلَّا الْمَكْتُوبَةَ" او بل طرفته یو چا دجماعت داودیدو نه پس دفجر سنت اوکړل نو په همغه وخت کې پرې نکیر اوکړې شو مثلا دا وینا چې "أَتُصلي الصبح اربعا".

**دامام ابوحنیفه رَحِمَهُ اللهُ او دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دلیلونه :**

۱... په ډیرو احادیثو کې دفجر په سنتو باندې خاص تاکید کړې شوې دې مثلا " لاتدعوهما ولو طردتكم الخيل " په اسونو باندې روند اچولو باندې هم دسحر دسنتو نه پرېخودو حکم دې.

۲... حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په سفر او حضر کې همیشه سنت فجر لره ادا کړي او کله یي هم دې لره نه دي پرېخي.

۳... ابوعثمان نهدي رَحِمَهُ اللهُ فرمایي: " كُنَّا نَأْتِي عُمَرَ بِنِ الْخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَبْلَ أَن نُّصَلِّيَ الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبحِ وَهوَ فِي الصَّلَاةِ فَنُصَلِّي فِي آخِرِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ نَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِي صَلَاتِهِم ".

۴... حضرت ابن عمر ، ابن مسعود ، ابن عباس ، ابودرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او نور فقهاء صحابو نه مروي دي چې هغوي به دسحر سنت دجماعت داودریدو نه پس هم ادا کول ، ددې نه معلومېږي چې دحضراتو صحابو عمل دا وو چې هغوي به دسحر سنت دجماعت داودریدو نه پس هم کول.

## امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ ته جواب :

۱... "فلا صلاة الا المكتوبة" والا حديث عموم باندې خو دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ هم عمل نشته ځکه چې دجماعت داودريدو نه پس دسحر سنت په کور کې کول دده په نزد جائز دي، دغه شان "الا المكتوبة" تر لاندې دفوت شده دفرض مونځونو قضا جائز کيدل پکار دي حالانکه هغه هم دده په نزد جائز نه دي، چې کله حديث مذکور بالاتفاق عام مخصوص منه البعض شو نو تاکيد سنت فجر والا احاديثو او دفقهاؤ او دصحابو د تعامل په بناء باندې په دې کې دسنت فجر تخصيص هم پکار دې.

۲... دصحابو آثار وېه رښا کې د" أتصلي الصبح اربعا ؟ " نکير په داخل دجومات کې متصل بالصفوف سنت کولو لپاره دې. (معارف السنن : ۷۱/۴)

## دمؤلف دقول " وهذه الزيادة لا اصل لها " مطلب :

بعضي شوافع په استدلال کې دباب حديث نمبر ۷۱۷ لره وړاندې کوي کوم کې چې دا مذکور دي چې " قِيلَ يَارَسُولَ اللهِ وَلَا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ قَالَ وَلَا رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ " نو علامه نيموي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې حافظ ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ دې اضافې سره حديث لره حسن ګرځولې او ددېنه يې استدلال صحيح ويلې دې ليکن دا خبره ده چې دا اضافه محفوظه نه ده ځکه چې بيهقي رَحِمَهُ اللهُ فرمايلي چې " لا اصل لها " . (التعليق الحسن)

## ﴿بَابُ مَنْ قَالَ يُصَلِّي سُنَّةَ الْفَجْرِ عِنْدَ اِشْتِغَالِ الْإِمَامِ بِالْفَرِيضَةِ خَارِجَ الْمَسْجِدِ اَوْفِي نَاحِيَةٍ اَوْ خَلْفَ أُسْطُوَانَةٍ اِنْ رَجَا اَنْ يُدْرِكَ رَكْعَةً مِنَ الْفَرْضِ﴾

**دهغه چا په باره کې باب دي چې ويلي ئې دي چې په فرضو کې دامام د اشتغال په وخت کې دسهر سنت د مسجد نه د باندې او د مسجد په يو ګوټ کې او يا د ستني نه وروسته ادا کولې شي په دې شرط چې د فرضو د يو رکعت د ګيرولو اميد ئې وي**

﴿۷۱۸﴾ عَنْ مَالِكِ بْنِ مِغْوَلٍ قَالَ سَمِعْتُ نَافِعاً يَقُولُ اَيْقَظْتُ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لِصَلَاةِ الْفَجْرِ وَ قَدْ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَقَامَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.

**ترجمه**: مالک بن مغول ویلي دي چې ما د نافع نه اوریدلي دي چې ویل ئې ما حضرت ابن عمر رضي الله عنه د سهر د مانځه د پاره د خوب نه راپیدار کړ په داسې حال کې چې جماعت ودرول شوي وُ نو هغه پاخیده دوه رکعته مونځ ئې وکړ. د دې حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۴۱۹﴾ عَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ قَالَ خَرَجَ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ رضي الله عنه مِنْ بَيْتِهِ فَأُقِيمَتْ صَلَاةُ الصُّبْحِ فَرَكَعَ رَكْعَتَيْنِ قَبْلَ أَنْ يَدْخُلَ الْمَسْجِدَ وَهُوَ فِي الطَّرِيقِ ثُمَّ دَخَلَ الْمَسْجِدَ فَصَلَّى الصُّبْحَ مَعَ النَّاسِ رواه الطحاوي.[1]

**ترجمه**: محمد بن کعب ویلي دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنه د خپل کور نه راووته د سهر مونځ (جماعت) ولاړ وُ د مسجد د ننوتو نه مخکې ئې دوه رکعته مونځ وکړ چې هغه په لاره وُ بیا مسجد ته ننواته نو د خلکو سره ئې د سهر مونځ وکړو. د دې حدیث طحاوي کړي دي.

﴿۴۲۰﴾ وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه أَنَّهُ جَاءَ وَالْإِمَامُ يُصَلِّي الصُّبْحَ وَلَمْ يَكُنْ صَلَّى الرَّكْعَتَيْنِ قَبْلَ الصُّبْحِ فَصَلَّاهُمَا فِي حُجْرَةِ حَفْصَةَ رضي الله عنها ثُمَّ أَنَّهُ صَلَّى مَعَ الْإِمَامِ رواه الطحاوي ورجاله ثقات الا يحيي بن ابي كثير يدلس.[2]

**ترجمه**: زید ابن اسلم د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کړي دي چې هغه راغي او امام د سهر مونځ کاوه او ده د سهر د مانځه نه مخکې دوه رکعته مونځ نه وُ کړي نو دوه رکعته ئې د حضرت حفصې رضي الله عنها په حجره کې ادا کړل بیا ئې د امام سره مونځ اداء کړ. د دې حدیث روایت طحاوي کړي او رجال ئې ثقه دي په غیر د یحي ابن کثیر نه چې هغه تدلیس کوي.

﴿۴۲۱﴾ وعن أَبِي الدَّرْدَاءِ رضي الله عنه أَنَّهُ كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ وَالنَّاسُ صُفُوفٌ فِي صَلَاةِ الْفَجْرِ فَيُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِي الصَّلَاةِ رواه الطحاوي واسناده حسن.[3]

**ترجمه**: د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه نه روایت دي چې هغه مسجد ته داخل شوي وُ او خلک د سهر د مانځه په صفونو کې ولاړ وُ نو د مسجد په یو کنج کې ئې دوه رکعته مونځ وکړ بیا د قوم سره په مانځه کې داخل شو. د دې حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.
(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.
(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.

﴿۴۲۲﴾ عن حَارِثَةَ بْنِ مُضَرِّبٍ اَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ اَبَا مُوسٰى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خَرَجَا مِنْ عِنْدِ سَعِيدِ بْنِ الْعَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَاُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَرَكَعَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَ الْقَوْمِ فِي الصَّلَاةِ وَاَمَّا اَبُو مُوسٰى فَدَخَلَ فِي الصَّفِّ رواه ابو بكر بن ابي شيبة في مصنفه و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حارثه ابن مُضَرِّب نه روایت دي چې حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت سعید بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دواړه راؤوتل نو د مانځه اقامت وکړي شو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دوه رکعته مونځ وکړ بیا د قوم سره په مانځه کې داخل شو خو ولي ابو موسیٰ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په صف کې داخل شو. د دي حدیث روایت ابوبکر ابن ابي شیبه په خپل مصنف کې کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۴۲۳﴾ و عن عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِي مُوسٰى عَنْ اَبِيهِ حِينَ دَعَاهُمْ سَعِيدُ بْنُ الْعَاصِ دَعَا اَبَا مُوسٰى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ حُذَيْفَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ عَبْدَ اللهِ بْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَبْلَ اَنْ يُصَلِّيَ الْغَدَاةَ ثُمَّ خَرَجُوا مِنْ عِنْدِهٖ وَ قَدْ اُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَجَلَسَ عَبْدُ اللهِ اِلٰى اُسْطُوَانَةٍ مِنَ الْمَسْجِدِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ دَخَلَ فِي الصَّلَاةِ رواه الطحاوي والطبراني و في اسناده لين.[2]

**ترجمه** : عبدالله ابن ابي موسی د خپل پلار نه روایت کړي کله چې سعید بن العاص دوي رابلل. ابو موسی رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حذیفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او حضرت عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئې د سهر د مانځه نه مخکې ئې راؤبلل بیا دوي د هغه د ځاي نه راؤتل او د مانځه اقامت شوي وُ نو حضرت عبدالله د مسجد یوي ستن ته ودریده او دوه رکعته مونځ ئې وکړ بیا په مانځه کې داخل شو. د دي حدیث روایت طحاوي او طبراني کړي دي. او په اسناد کې ئې ضعف دي.

﴿۴۲۴﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ اَبِي مُوسٰى عَنْ عَبْدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّهُ دَخَلَ الْمَسْجِدَ وَ الْاِمَامُ فِي الصَّلَاةِ فَصَلّٰى رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ رواه الطحاوي والطبراني و اسناده حسن.[3]

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـ ۲۵۱ في الرجل يدخل المسجد في الفجر.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۵۷ باب اداء سنة الفجر.

(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۵۷ باب اداء سنة الفجر، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صـ ۷۵ باب اذا اقيمت الصلوة هل يصلي غيرها نقلا عن الطبراني في الكبير.

**ترجمه** : عبدالله ابن ابي موسى د عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت كړي دي چې هغه په داسې وخت كې مسجد ته ننوت چې امام په مانځه كې وُ نو هغه د سهر دوه ركعته سنت وكړل. د دي حديث روايت طحاوي او طبراني كړي دي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۷۲۵﴾ وَ عَن اَبِي مِجلَز قَالَ دَخَلتُ المَسجِدَ فِي صَلَاةِ الغَدَاةِ مَعَ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَابنِ عَبَّاس رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَالإِمَامُ يُصَلِّي فَاَمَّا ابنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَدَخَلَ فِي الصَّفِّ وَ اَمَّا ابنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَصَلَّى رَكعَتَينِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَ الإِمَامِ فَلَمَّا سَلَّمَ الإِمَامُ قَعَدَ ابنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ مَكَانَه حَتّٰى طَلَعَتِ الشَّمسُ فَقَامَ فَرَكَعَ رَكعَتَينِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : ابي مجلز ويلي دي چې زه د ابن عمر او د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا سره د سهر په مانځه كې مسجد ته ننوتم كله چې امام مونځ كاوه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په صف كې داخل شو او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ دوه ركعته مونځ وكړ بيا د امام سره په مانځه كې داخل شو. كله چې امام سلام وګرځاوه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خپل ځاي تر هغه وخته پورې كيناست چې نمر راوْخاته نو پاڅيده دوه ركعته ئې وكړل. د دي حديث روايت طحاوي كړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۷۲۶﴾ وَعَن اَبِي عُثمَانَ الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ جَاءَ عَبدُ اللهِ بنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَالإِمَامُ فِي صَلَاةِ الغَدَاةِ وَلَم يكن صَلَّى الرَّكعَتَينِ فَصَلّٰى عَبدُ اللهِ بنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا الرَّكعَتَينِ خَلفَ الإِمَامِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَهم رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : ابي عثمان انصاري رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې عبدالله ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ راغي او امام د سهر په مانځه كې وُ او هغه د سهر دوه ركعته سنت نه وُ كړي نو عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د امام نه روسته دوه ركعته وكړل بيا د هغوي سره داخل شو. د دي حديث روايت طحاوي كړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۷۲۷﴾ عَن اَبِي عُثمَانَ النَّهدِي قَالَ كُنَّا نَاتِي عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَبلَ اَن نُصَلِّي الرَّكعَتَينِ قَبلَ الصُّبحِ وَهوَ فِي الصَّلَاةِ فَنُصَلِّي فِي آخِرِ المَسجِدِ ثُمَّ نَدخُلُ مَعَ القَومِ فِي صَلَاتِهِم رواه الطحاوي واسناده

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوٰة ج۱ صـــ ۲۵۷ باب اداء سنة الفجر .

(۲) طحاوي كتاب الصلوٰة ج۱ صـــ ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر .

حسن.[1]

**ترجمه** : ابي عثمان النهدي ويلي دي مونږ حضرت عمر بن الخطاب ته د سهر د مانځه د دوه ؤ رکعتونو نه مخکې راغلو او حضرت عمر رضي الله عنه په مانځه کې نو مونږ د مسجد په اخره برخه کې مونځ وکړ بيا د قوم سره د دوي په مانځه کې داخل شو. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي حسن دي.

﴿۷۲۸﴾ وَعَنِ الشَّعْبِي قَالَ كَانَ مَسْرُوقٌ يَجِيءُ إِلَى الْقَوْمِ وَهُمْ فِي الصَّلَاةِ وَلَمْ يَكُنْ رَكَعَ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَيُصَلِّي الرَّكْعَتَيْنِ فِي الْمَسْجِدِ ثُمَّ يَدْخُلُ مَعَ الْقَوْمِ فِي صَلَاتِهِمْ رواه الطحاوي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : شعبي ويلي دي چې کله به مسروق قوم ته راغلي او قوم به په مانځه کې ؤ او ده به د سهر دوه رکعته نه ؤ کړي نو په مسجد کې به ئي دوه رکعته وکړل بيا به د قوم سره د دوي په مانځه کې داخل شو. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۷۲۹﴾ وَعَنه عَن مَسْرُوقٍ أَنَّه فَعَلَ ذٰلِكَ غَيْرَ أَنَّه قَالَ فِي نَاحِيَةِ الْمَسْجِدِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : شعبي د مسروق نه روايت کړي دي چې هغه داسي کړي دي خو ولي هغه دا ويلي دي چې دوه رکعته ئي د مسجد په يو ګوټ کې کړي دي. يعني (انه قال في ناحية المسجد). د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۷۳۰﴾ عَن يَزِيدَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَنِ الْحَسَنِ أَنَّه كَانَ يَقُولُ إِذَا دَخَلْتَ الْمَسْجِدَ وَلَمْ تُصَلِّ رَكْعَتَيِ الْفَجْرِ فَصَلِّهِمَا وَإِن كَانَ الإِمَامُ يُصَلِّي ثُمَّ ادْخُلْ مَعَ الإِمَامِ رواه الطحاوي واسناده صحيح.[4]

**ترجمه** : د يزيد ابن ابراهيم نه روايت دي چې حسن رحمه الله ويلي ؤ چې کله ته مسجد ته داخل شي او د سهر دوه رکعته دي نه دي کړي نو هغه دوه رکعته وکړه اګر چې امام مونځ کوي بيا د امام سره شريک شه. د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.
(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.
(۳) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.
(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ ص ۲۵۸ باب اداء سنة الفجر.

﴿۷۳۱﴾ وَ عَن يونُسَ قَالَ كَانَ الحَسَنُ يقُولُ يصَلِّيهِمَا فِي نَاحِيةِ المَسجِدِ ثُمَّ يدخُلُ مَعَ القَومِ فِي صَلَاتِهِم رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : يونس ويلي دي چې حسن رَحِمَهُ اللّٰهُ به ويل چې د هغه مسجد په كوټ كې دوه ركعته وكړي بيا د قوم سره د دوي په مونځ كې داخل شي. د دي حديث روايت طحاوي كړي او اسناد ئې صحيح دي.

**دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او دامام مالك رَحِمَهُ اللّٰهُ تائيد:**

دباب ټول آثار صحابه او تابعين رَحِمَهُ اللّٰهُ نه دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ او دامام مالك رَحِمَهُ اللّٰهُ دقول تائيد كيږي چې دجماعت داودريدو نه پس هم دسحر سنت كولې شي، البته دامام مالك رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد صرف په كور كې دې ادا كړې شي او ددواړو بابونو درواياتو نه دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللّٰهُ ددې قول تائيد كيږي چې كه يو ركعت هم دامام سره دملاويدو توقع وي نومونځ كونكي ته پكار دي چې دسحر سنت دې اوكړي بيا دسحر سنت كولو دري صورتونه دي: (١) په كور كې، دا له ټولو نه بهتر دے. (٢) دجومات په يو كونج كې. (٣) ديو ستنې شاته. دا دري واړه صورتونه جائز دي.

## ﴿بَابُ قَضَاءِ رَكعَتَي الفَجرِ قَبلَ طُلُوعِ الشَّمسِ﴾

### د نمر د ختو نه مخكې د سهر د سنتو د قضاء باب

﴿۷۳۲﴾ عَن قَيسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَأُقِيمَتِ الصَّلَاةَ فَصَلَّيتُ مَعَه الصُّبحَ ثُمَّ انصَرَفَ النَّبِي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَنِي أُصَلِّي فَقَالَ مَهلًا يا قَيسُ أَصَلَاتَانِ مَعًا قُلتُ يارَسُولَ اللّٰه اِنِّي لَم أَكن رَكعتُ رَكعَتَي الفَجرِ قَالَ فَلَا إِذَن رواه الاربعة الا النسائي و احمد و ابوبكر بن ابي شيبة والدارقطني والحاكم والبيهقي قال النيموي اسناده ضعيف.[2]

**ترجمه** : حضرت قيس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ تشريف راوړ نو د مانځه اقامت وكړې شو نو ما د رسول اللّٰه صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سره د سهر مونځ وكړ بيا نبي اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ واپس

---

(١) طحاوي كتاب الصلوة ج١ص ٢٥٨ باب اداء سنة الفجر.

(٢) ترمذي ابواب الصلوة ج١ص ٩٦ باب ماجآء في اعادتهما بعد طلوع الشمس، ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ص ١٨٠ باب من فاتته متى يقضيها، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها ص٨٢ باب ماجاء فيمن فاتته الركعتان قبل صلوة الفجر ...، مسند احمد ج٥ ص ۴۴۷، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج٢ص ٢٥۴ باب في ركعتي الفجر اذا فاتته، دار قطني كتاب مستدرك حاكم كتاب الصلوة ج١ص ٢٧٥ باب قضاء سنة الفجر بعد الفرض، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج٢ص ۴٨٣ باب من اجاز قضاء هما بعد الفراغ من الفريضة

کیده نو زه ئي په مانځهٔ مندلم نو وي فرمایل چې پرېږده اي قیسه آیا دوه مونځونه یو ځاي ما وویل یا د الله جل شانه رسوله ما د سهر دوه رکعته نهٔ کړي هغه وفرمایل چې په دي وخت ئي مه کوه . د دي حدیث روایت د نسائي نه په غیر څلورو محدثینو احمد ، ابوبکر بن ابي شیبه، دار قطني او حاتم او بیهقي کړي دي . او نیموي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې اسناد ئي ضعیف دي .

﴿۴۳۲﴾ وَ عَن عَطَاءِ بنِ اَبِي رَبَاحٍ عَن رَجُلٍ مِنَ الاَنصَارِي قَالَ رَأی رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَجُلًا يُصَلِّي بَعدَ الغَدَاةِ قَالَ يَارَسُولَ اللهِ لَم اَكُن صَلَّيتُ رَكعَتَي الفَجرِ فَصَلَّيتُهُمَا اَلآنَ فَلَم يَقُل لَه شَيئًا

اخرجه ابن حزم في المحلي و قال العراقي اسناده حسن . قال النيموي و فيما قاله نظر .[1]

**ترجمه** : د عطاء ابن ابي رباح نه روایت دي چې د انصارو نه یو کس ویلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو کس ولیده چې د سهر د مانځه نه روسته ئي مونځ کاوه نو هغه کس وویل چې اي د الله جل شانه رسوله ما د سهر دوه رکعته سنت نهٔ کړي اوس مي اکړل نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه ته څه ونه فرمایل دا حدیث ابن حزم په محلّیٰ کې خارج کړي او عراقي ویلي دي چې اسناد ئي حسن دي او نیموي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې عراقي څه ویلي دي په هغې اعتراض دي .

## دسحر دسنتو قضا

که یو کس دفجر سنت دفرضو نه مخکې اونکړل شو نو هغه دې څه اوکړي ؟

۱. عطاء رَحِمَهُ اللهُ، طاؤس رَحِمَهُ اللهُ او دائمو نه دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دطلوع نه مخکې کولې شي .

۲. ائمه ثلاثه حنفیه رَحِمَهُ اللهُ، حنابله اودمالکیو رَحِمَهُ اللهُ په نزد دطلوع شمس نه مخکې کول مکروه دي .

## دفریق اول استدلال :

دباب دواړه حدیثونه دمجوزینو دلیل دې ، په اولني حدیث کې خو حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه کس ته اوفرمایل " فلا اذن " چې اوس نه یعني که چرې دا خبره وه چې (سنت) دې نه وو کړي نو بیا به ما منع کولې .دویم حدیث کې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په داسي موقع کې سکوت اختیارول تقریر دې لهذا ددې جواز ثابت شو . ( دمانعینو حضراتو دلیلونه په راروان باب کې دي )

## داولني حدیث متعلق جوابونه :

۱... دا حدیث سندا منقطع دې ، امام ترمذي رَحِمَهُ اللهُ اوفرمایل چې دمحمد ابراهیم سماع قیس بن عمرو نه ثابت نه ده .

---

(۱) محلی لابن حزم کتاب الصلوة ج۲ صـــ ۸۲ باب من صح الفة صلاة الفرض فلا يشتغل لفورها.

۲... "فلا اذان" دوه مطلبونه کېدې شي، يو هغه کوم چې پاس بيان کړې شو دويم دا چې بيا هم نه دي کول پکار.

امام نَووي رَحِمَهُ اللهُ او امام ذهبي رَحِمَهُ اللهُ ( چې دواړه شافعي دي ) ددې حديث دسند پوره تحقيق نه پس فرمايي چې دحديث په سند اَضعيف کېدو باندې دټولو اتفاق دې.

## دويم حديث سره متعلق جوابونه :

۱... علامه عراقي رَحِمَهُ اللهُ ددې سند لره حسن ګرځولې دې بيا هم په دې کې ارسال دې، همدارنګه راوي حسن بن ذکوان مدلس دې. (التعليق الحسن)

۲... چې کله په دې وخت کې د تطوع نهي دنورو احاديثو صحيحو نه ثابت ده نو په داسې صورت کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سکوت به په تقرير باندې دلالت نه کوي.

۳... کېداي شي دا واقعه دمنع نه مخکې وي. ( الدر المنضود : ۲/۵۲۱)

## ﴿بَابُ كَرَاهَةِ قَضَاءِ رَكعَتَي الفَجرِ قَبلَ طُلُوعِ الشَّمسِ﴾

## د نمر د ختو نه مخکې د سهر د سنتو د قضاء د کراهة باب

﴿۴۳۴﴾ عَن أَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعدَ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ وَعَنِ الصَّلَاةِ بَعدَ الصُّبحِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دې چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د مازيګر نه روسته تر د نمر پرېوتو پورې د مانځه نه منع فرمايلې ده او د سهر د مانځه نه روسته ئې د نمر ترختو پورې د مانځه نه منع فرمايلې ده. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې.

﴿۴۳۵﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَمِعتُ غَيرَ وَاحِدٍ مِن أَصحَابِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مِنهُم عُمَرُ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَكَانَ أَحَبُّهُم إِلَيَّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نَهَى عَنِ الصَّلَاةِ بَعدَ الفَجرِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ وَبَعدَ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ رواه البخاري.[2]

---

(۱) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص۲۷۵ باب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها، بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۲ باب الصلوة بعد الفجر ترتفع الشمس.

(۲) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص۲۷۵ باب الاوقات التي نهي عن الصلوة فيها، بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۲ باب الصلوة بعد الفجر حتى ترتفع الشمس.

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ډيرو صحابه کرامو نه اوريدلي چې يو د هغې نه حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وُ او ماته حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دوي کې ډير محبوب وُ چې بې شکه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مازيګر نه روسته د نمر تر پريوتو پورې د مانځه نه منع فرمايلې وه او د سهرد مانځه نه روسته ئې د مانځه نه منع فرمايلې تر څو پورې نور وخيژي. د دې حديث روايت بخاري کړې دې.

﴿۲۶﴾ وَ عَنْ اَبِي سَعِيدِ الْخُدرِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ صَلَاةَ بَعدَ صَلَاةِ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ وَلَا صَلَاةَ بَعدَ صَلَاةِ الفَجرِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت ابي سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې د مازيګر د مانځه نه روسته د نمر پريوتو پورې مونځ نشته او د سهر د مانځه نه روسته د نمر ختو پورې مونځ نشته. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې.

﴿۲۷﴾ وَعَن عَمرِو بنِ عَبَسَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قُلتُ يَا نَبِيَّ اللهِ اَخبِرنِي عَنِ الصَّلَاةِ قَالَ صَلِّ صَلَاةَ الصُّبحِ ثُمَّ اقصُر عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ وَ تَرتَفِعَ فَاِنَّهَا تَطلُعُ بَينَ قَرنَي شَيطَانٍ وَ حِينَئِذٍ يَسجُدُ لَهَا الكُفَّارُ ثُمَّ صَلِّ فَاِنَّ الصَّلَاةَ مَشهُودَةٌ مَحضُورَةٌ حَتَّى يَستَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمحِ ثُمَّ اقصُر عَنِ الصَّلَاةِ فَاِنَّ حِينَئِذٍ تُسجَرُ جَهَنَّمُ فَاِذَا اَقبَلَ الفَيءُ فَصَلِّ فَاِنَّ الصَّلَاةَ مَشهُودَةٌ مَحضُورَةٌ حَتَّى تُصَلِّيَ العَصرَ ثُمَّ اقصُر عَنِ الصَّلَاةِ حَتَّى تَغرُبَ فَاِنَّهَا تَغرُبُ بَينَ قَرنَي شَيطَانٍ وَ حِينَئِذٍ يَسجُدُ لَهَا الكُفَّارُ رواه احمد و مسلم و آخرون.[2]

**ترجمه** : حضرت عمرو بن عبسه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما عرض وکړ چې اې د الله جل شانه نبي ماته د مانځه په باره کې خبر راکړه وې فرمايل د سهر مونځ وکړه بيا د مانځه نه بند شه تر څو پورې چې نمر راوخيژي او اوچت شي ځکه چې نمر د شيطان ددوه وُ ښکرونو ترمنځ راخيژي او نمر ته په دې وخت کې کافران سجده کوي بيا مونځ وکړه ځکه چې مانځه ته ملائکې د شهادة د پاره حاضريږي تر دې پورې چې سوري د نيزې په اندازه کم شي بيا د مانځه نه بند شه ځکه چې په دغه وخت کې جهنم ګرمولې شي نو کله چې سوري راوګرځي نو مونځ کوه ځکه چې مانځه ته فرهتې د

(۱) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۵ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ص۸۲ بـاب لا تتحري الصلوة قبل غروب الشمس .

(۲) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۶ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها ، مسند احمد ج۴ص۱۱۱.

ګوابنئ د پاره حاضريږي تر دي پوري چې د ماز يګر مونځ وکړي بيا د مانځه نه بند شه تر دي پوري چې نمر پريوزي ځکه چې دا نمر د شيطان د دوه ؤ ښکرونو ترمنځ پريوزي نو په دغه وخت کې کافران نمر ته سجده کوي . د دي حديث روايت احمد ، مسلم او نورو کړي دي.

﴿۴۳۸﴾ وَ عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَن لَم يصَلِّ رَكعَتَي الفَجرِ فَليصَلِّهِمَا بَعدَ مَا تَطلُعُ الشَّمسُ رواه الترمذي و اسناده صحيح .[۱]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چا چې د سهر دوه رکعته نه وي کړي نو د نمر ختو نه روسته دي ئې وکړي . د دي حديث روايت ترمذي کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۴۳۹﴾ وَعَن نَافِع عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه صَلّٰى رَكعَتَي الفَجرِ بَعدَ مَا اَضحٰى رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده حسن.[۲]

**ترجمه** : نافع د حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت کړي چې هغه د سهر دوه رکعته مونځ د څاخت نه روسته وکړ. د دي حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۴۴۰﴾ وَ عَن اَبِي مِجلَزٍ قَالَ دَخَلتُ المَسجِدَ فِي صَلَاة الغَدَاة مَعَ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَالاِمَامُ يصَلِّي فَاَمَّا ابنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَدَخَلَ فِي الصَّفِ وَ اَمَّا ابنُ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَصَلّٰى رَكعَتَينِ ثُمَّ دَخَلَ مَعَ الاِمَامِ فَلَمَّا سَلَّمَ الاِمَامُ قَعَدَ ابنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ مَكَانَه حَتّٰى طَلَعَتِ الشَّمسُ فَقَامَ فَرَكَعَ رَكعَتَينِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[۳]

**ترجمه** : ابو مجلز ويلي دي چې زه د عبدالله ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او عبدالله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره د سهر په مانځه کې مسجد ته ننوتم او امام مونځ کاوه حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په صف کې داخل شو او ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ دوه رکعته مونځ وکړ بيا د امام سره داخل شو کله چې امام سلام وګرځاوه نو ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خپل ځاي تر هغه وخته پوري کيناست چې نمر وخاته نو پاڅيده او دوه رکعته مونځ ئې وکړ . د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئې صحيح دي.

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوٰة ج۱ص ۹۶ باب ماجاء في اعادتهما بعد طلوع الشمس .

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۲۵۴ باب في ركعتي الفجر اذا فاتته.

(۳) طحاوي كتاب الصلوٰة ج۱ص ۲۵۷ باب اداء سنة الفجر .

﴿۴۲۱﴾ وَعَن يحيي بن سَعيدٍ قَالَ سَمِعتُ القَاسِمَ يقُولُ إِذَا لَم أُصَلِّهِمَا حَتّٰى أُصَلِّي الفَجرَ صَلَّيتُهُمَا بَعدَ طُلُوعِ الشَّمسِ رواه ابن ابي شيبة و اسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : او يحيى ابن سعيد ويلي دي چې ما د قاسم نه اوريدلي دي چې ويل ئې کله چې زه د سهر دوه رکعته ونکړم تر دي چې د سهر مونځ وکړم نو هغه مې د نمر د ختو نه روسته کړي. د دي حديث روايت ابن ابي شيبه کړي او اسناد ئې صحيح دي.

**دجمهورو تائيد**: د دې باب حديثونه او آثار د خپل صحتِ سند او د مفهوم واضح کيدو په اعتبار سره ائمه حنفيه، حنابله او د مالکيو دليل دي د دېنه دابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث نمبر ۷۳۸ کې خو صراحتا دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ارشاد دې : " مَن لَم يصَلِّ رَكعَتَيِ الفَجرِ فَليصَلِّهِمَا بَعدَ مَا تَطلُعُ الشَّمسُ " او د دې حديث سند صحيح هم دې.

## ﴿بَابُ قَضَاءِ رَكعَتَيِ الفَجرِ مَعَ الفَرِيضَةِ﴾

### د سهر د فرضو د دوه ؤ ركعتونو د قضائي سره د سهر د سنتو د قضائي باب

﴿۴۲۲﴾ عَن أَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ عَرَّسنَا مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَلَم نَستَيقِظ حَتّٰى طَلَعَتِ الشَّمسُ فَقَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيأخُذ كُلُّ رَجُلٍ بِرَأسِ رَاحِلَتِهٖ فَإِنَّ هٰذَا مَنزِلٌ حَضَرَنَا فِيهِ الشَّيطَانُ قَالَ فَفَعَلنَا ثُمَّ دَعَا بِالمَاءِ فَتَوَضَّأَ ثُمَّ سَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ أُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَصَلَّى الغَدَاةَ رواه مسلم.(۲)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د شپې په اخره برخه کې قافله واړوله نو مونږ رابيدار نشو تر څو چې نمر راؤخوت نو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې هر سړي دي خپل اوښ د مهار نه ؤنيسي بې شکه په دې ځاي کې زمونږ سره شيطان حاضر شوي دي ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې نو مونږ هم داسې وکړل بيا ئې، او به راؤغوښتې نو اودس ئې وکړ بيا ئې دوه رکعته مونځ وکړ بيا د مانځه د پاره اقامت ؤکړې شونو د سهر مونځ ئې وکړ. د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۴۲۳﴾ وَعَن أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَفِيهِ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص۲۵۵ في ركعتي الفجر اذا فاتته.

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۳۸ باب قضاء الصلوة الفائتة ...الخ.

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الطَّرِيقِ فَوَضَعَ رَاسَه ثُمَّ قَالَ احْفَظُوا عَلَيْنَا صَلَاتَنَا فَكَانَ أَوَّلُ مَن اسْتَيقَظَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالشَّمْسُ فِي ظَهرِهِ قَالَ فَقُمْنَا فَزِعِينَ ثُمَّ قَالَ ارْكَبُوا فَرَكِبْنَا فَسِرْنَا حَتَّى إِذَا ارْتَفَعَتِ الشَّمْسُ نَزَلَ ثُمَّ دَعَا بِمِيضَاةٍ كَانَتْ مَعِي فِيهَا شَيْءٌ مِن مَاءٍ قَالَ فَتَوَضَّأَ مِنهَا وُضُوءًا دُونَ وُضُوءٍ قَالَ وَبَقِيَ فِيهَا شَيْء من ماء ثم قال لابي قتادة احفظ علينا ميضاتك فسيكون لها نبأ ثم اذن بلال بالصلاة فصلى رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ركعتين ثم صلى الغداة فصنع كما يصنع كل يوم رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: حضرت ابي قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې مونږ ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه ووېله او هغه هم په دې کې ؤ نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لارې نه واوښت نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل سر مبارک کېښود بيا ئې وفرمايل په مونږ باندې زمونږ د مانځه نګراني وکړئ نو اول چې راپيدار شوي ؤ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؤ او نمر د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مبارکه شاه باندې ؤ ابوقتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي دي چې نو مونږ د وېرې په حالت کې راپاڅېدو، بيا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ؤفرمايل چې سواره شئ نو مونږ سواره شو نو روان شو تر دې پورې چې کله نمر راوچت شو نو راکوز شو بيا ئې لوټه وغوښتله کومه چې ما سره وه پکې لږ شان اوبه وې نو په هغې باندې ئې خفيف شان اودس وکړ قتاده رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې په دې کې څه لږې شان اوبه پاتې شوې بيا ئې ابي قتاده ته وفرمايل چې ماته دې دا خپله لوټه ؤساته زر ده چې د دې لوټې دپاره به څه خاص خبره اوو'قعه وي بيا بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د مانځه دپاره اذان وکړ نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دوه رکعته مونځ وکړ بيا ئې د سهر مونځ وکړ نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ همغسې عمل وکړ لکه څنګه به ئې چې هره ورځ عمل کاوه. د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۸۲۲﴾ وَعَن نَافِعِ بن جُبَيرٍ عَن أَبِيه أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ فِي سَفَرٍ لَه مَن يَكلَؤُنَا اللَّيلَةَ لَا يرقُدُ عَنِ الصَّلَاةِ عَن صَلَاةِ الصبح قال بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ انا فاستقبل مطلع الشمس و ضرب على آذانهم حتي ايقظهم حر الشمس فقاموا فقال توضؤا ثم اذن بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فصلي ركعتين و صلوا ركعتي الفجر ثم صلاة الفجر رواه النسائي و احمد والطبراني والبيهقي في المعرفة و اسناده حسن.[2]

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ص۲۳۸ باب قضاء الصلوة الفائتة ...الخ.

(۲) نسائي کتاب المواقيت ج۱ص۱۰۲ باب کيف يقضي الفائت من الصلوة، مسند احمد ج۴ص۸۱، المعجم الکبير للطبراني ج۲ص۱۴۴ رقم الحديث ۱۵۲۵. معرفة السنن والآثار کتاب الصلوة ج۳ص۴۲۰ رقم الحديث ۵۱۵۶.

**ترجمه** : نافع بن جبير د خپل پلار نه روايت کړي دي چې رسول الله ﷺ په خپل يو سفر کې فرمايلي دي چې نن شپه به زمونږ څوک څوکيداري وکړي چې د سهر د مانځه نه اُوده نشي. حضرت بلال رضي الله عنه ووئيل چې زه نو نمرخاته طرف ته ئې مخ واړاوه اوؤده شو تر دي پورې چې د نمر حرارت راپيدار کړل نو راپاڅيدل نو وي فرمايل چې اودس وکړي بيا حضرت بلال رضي الله عنه اذان وکړ نو دوه رکعته مونځ ئې وکړ او صحابه کرامو هم دوه رکعته د سهر سنت وکړل او بيا ئې د سهر مونځ وکړ. د دي حديث روايت نسائي رحمه الله احمد رحمه الله طبراني او بيهقي په معرفت کې کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

# ﴿بَابُ إِبَاحَةِ الصَّلَاةِ فِي السَّاعَاتِ كُلِّهَا بِمَكَّةَ﴾

## هر وخت په مکه مکرمه کې د مانځه د جواز باب

﴿۴۷۵﴾ عَن جُبَيْرِ بنِ مُطْعِمٍ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يَا بَنِي عَبدِ مَنَافٍ لَا تَمنَعُوا أَحَدًا طَافَ بِهٰذَا البَيتِ وَ صَلَّى أَيَّةَ سَاعَةٍ مِنْ لَيلٍ أَو نَهَارٍ رواه الخمسة و آخرون و صححه الترمذي والحاكم و غيرهما وفي اسناده مقال.[1]

**ترجمه** : د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي چې اي بني عبد مناف هيڅوک د دي بيت د طواف نه مه منع کوئ او د شپي او ورځي په هره ګړئ کې چې دوي غواړي مونځ دي کوي. دا حديث پنځو محدثينو او نورو روايت کړي دي او ترمذي او حاکم او د دوي نه په غير نورو صحيح ګڼرلي دي او د دي په اسناد کې مقال او خبره ده.

﴿۴۷۶﴾ وَ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ قَالَ يَا بَنِي عَبدِ المُطَّلِبِ أَو يَا بَنِي عَبدِ مَنَافٍ لَا تَمنَعُوا أَحَدًا يَطُوفُ وَيُصَلِّي فَإِنَّهُ لَا صَلَاةَ بَعدَ الصُّبحِ حَتّٰى تَطلُعَ الشَّمسُ وَلَا صَلَاةَ بَعدَ العَصرِ حَتّٰى تَغرُبَ الشَّمسُ إِلَّا بِمَكَّةَ عِندَ هٰذَا البَيتِ يَطُوفُونَ وَيُصَلُّونَ رواه الدارقطني و اسناده ضعيف.[2]

---

(۱) ترمذي ابواب الحج ج۱ص ۱۷۵ باب ماجاء في الصلوٰة بعد العصر وبعد الصبح ...الخ ، ابوداؤد كتاب المناسك ج۱ص ۲۶۰ باب الطواف بعد العصر ، نسائي كتاب المواقيت ج۱ص ۹۸ باب اباحة الصلوٰة في الساعات كلها بمكة ، ابن ماجة اقامة الصلوات ص ۹۰ باب ماجاء في الرخصة في الصلوٰة بمكة في كل وقت ، مسند احمد ج ۴ ص ۸۰ مستدرك حاكم كتاب المناسك ج۱ص ۴۴۸ باب لا يمنع احد عن الطواف بالبيت ...الخ .

(۲) دار قطني كتاب الصلوٰة ج۱ص ۴۲۶ باب جواز النافلة عند البيت في جميع الازمان .

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رَضِیَ اللهُ عَنهُ نه روایت دي چې نبي کریم صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ فرمایلي دي چې اي بني عبدالمطلب او اي بني عبد مناف تاسو یو کس هم د بیت نه د طواف کولو او د مانځه کولو نه مه منع کوئ بې شکه د سهر نه روسته تر نمر ختو پورې مونځ نشته او د مازیګر نه روسته تر نمر پرېوتو پورې مونځ نشته په غیر د مکې نه د دې بیت سره نزدې طواف کوئ او مونځ کوئ . د دې حدیث روایت دار قطني کړي دي او اسناد ئې ضعیف دي .

(۴۷) وَ عَنْ أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ وَ قَدْ صَعِدَ عَلَى دَرَجَةِ الْكَعْبَةِ مَنْ عَرَفَنِي فَقَدْ عَرَفَنِي وَ مَنْ لَمْ يَعْرِفْنِي فَأَنَا جُنْدُبٌ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا صَلَاةَ بَعْدَ الصُّبْحِ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ وَلَا بَعْدَ الْعَصْرِ حَتَّى تَغْرُبَ الشَّمْسُ إِلَّا بِمَكَّةَ إِلَّا بِمَكَّةَ إِلَّا بِمَكَّةَ رواه احمد والدارقطني و اسناده ضعيف جداً .(۱)

**ترجمه** : حضرت ابي درداء رَضِیَ اللهُ عَنهُ ویلي دي او هغه د کعبې په پوړۍ باندې ختلې ؤ څوک چې ما پیژني هغه ما پیژني او څوک چې مانه پیژني نو زه جندب یم ما د رسول الله صَلَّی اللهُ عَلَیهِ وَسَلَّمَ نه اوریدلي چې فرمایل ئې د سهر د مانځه نه روسته تر نمر پرېوتو پورې مونځ نشته او د مازیګر د مانځه نه روسته تر نمر پرېوتو پورې مونځ نشته مګر په مکه مکرمه کې د دې حدیث روایت احمد او دار قطني کړي دي او اسناد ئې دیر ضعیف دي .

**مسئلة الباب** : په مکه مکرمه او نورو ځایونو کې په مکروه وختونو کې هیڅ فرق نشته.

(۱) دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد مکه مکرمه کې او خانه کعبې سره په مکروه وختونو کې نفل کول هم جائز دي.

(۲) دجمهورو په نزد په هیڅ یو ځاي کې په مکروه وختونو کې نفل کول جائز نه دي.... لیکن بعضې علماؤ دامام مالک قول هم دامام شافعي په شان نقل کړي دي .[وګورئ رحمة الامة، ص: ۴۶]

## دامام شافعي دلیل :

۱..... حدیث دباب جبیر بن مطعم : يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ لَا تَمْنَعُوا أَحَدًا طَافَ بِهَٰذَا الْبَيْتِ وَ صَلَّى أَيَّةَ سَاعَةٍ مِنْ لَيْلٍ أَوْ نَهَارٍ. په هیڅ یو وخت کې یې هم د طواف او مونځ کولو نه منع نه ده فرمایلي .

(۱) مسند احمد ج ۵ ص ۱۶۵ ، دار قطني کتاب الصلوة ج۱ص ۴۲۴ باب جواز صلوة النافلة عند البيت في جميع الازمان.

۲...دباب دويم او دريم حديث ابن عباس او ابوذر کښې هم په مکروهه وختونو کې دمونځ کولو نه منع فرمايلي ده ليکن (الا بمکة) ويلو سره يې ددي حکم نه مستثنی فرمايلي ده.

**دجمهورو دلائل :**

۱....حديث ابي سعيد حدری نمبر ۷۳۶ ، لاَ صَلَاةَ بَعدَ صَلَاةِ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ الشَّمسُ وَلَا صَلَاةَ بَعدَ صَلَاةِ الفَجرِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ رواه الشيخان . .دغه شان په مکروه وختونو کې دمونځ دنه کولو والادير حديث چي مطلق دي .

۲....په وراندي باب کې دمعاذ بن عفراء اثر ذکردي چي معاذ رض دنبی عليه السلام دمنعې نه استدلال کړې چي په مکه مکرمه کې په مکروه وختونو کې مونځ نه دي لوستلې .پس معلومه شوه چي صحابه کرامو دې منعې لره مطلق ګڼلي وه .

**دامام شافعي ددليلونو جوابونه:**

(۱)داولني حديث په سند کې اختلاف واقع شوي دي .

دغه شان د(ایة ساعة) تشريح دويم مطلق او دصريح احاديث دوجي نه دمکروهه وختونو نه علاوه سره کولې کيږي يعني (اية ساعة اذا لم يکن وقتا مکروها ) دغه شان به داحاديثو په مابين کې تطبيق هم اوشي .دغه شان حکم بنی عبدمناف او دکعبه خادمانو لپاره دي چي دزمانې جاهليت په طريقه که دخپل من مطابق معززو لره اجازت او غير معززو لره مه منع کوي بلکه خانه کعبه دټولو دپاره ده چي دچاهم زړه غواړي طواف دي کوي او په حرم کې دي مونځ کوي .دنورو دلوستلو والو دپاره عموم دوخت بيان کول مقصود نه دي هغه دنورو نصوصو سره دوختونو ضابطه اوپيژني ، غرض حديث دوختونو دجواز او عدم جواز سره متعلق نه دي .

(۲)ددويم حديث په سند کې رجاء بن حارث ضعيف دي دغه شان هغه ټول احتمالات هم په دي حديث کې دي کوم چي ددي نه په مخکني حديث کې وو لهذا دصحيح اود غير محتمل احاديثو په مقابله کې حجت نه جوړيږي .

(۳) دريم حديث معلول،ضعيف او مضطرب دي .دمجاهد سماع دابوذر نه نده او يو راوي حميد مولی عفراء حد درجه ضعيف دي .

## ﴿ بَابُ كَرَاهَة الصَّلَاة فِي الْأَوْقَاتِ الْمَكْرُوهة بِمَكَّة ﴾

## په مکه مکرمه کې په اوقاتو مکروهه ؤکې د مانځه د کراهت باب

﴿۴۷۸﴾ عن مَعَاذِ بنِ عَفْرَاءَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّه طَافَ بَعدَ العَصرِ أَو بَعدَ الصُّبحِ وَلَم يصَلِّ فَسُئِلَ ذٰلِك فَقَالَ نَهَى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الصَّلَاة بَعدَ الصُّبحِ حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ وَبعدَ العَصرِ حَتَّى تَغرُبَ رواه اسحاق بن راهويه في مسنده و اسناده حسن.

قَالَ النِّيمَوِي و قد تَقَدَّمَ أَحَادِيثُ كَرَاهة الصَّلَاة فِي الأَوقَاتِ الخَمسَة.

**ترجمه** : د حضرت ابن عفراء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې ده د مازيګر او يا د سهر نه روسته طواف وکړ او مونځ ئې ونه کړ نو د دې تري پوښتنه وکړې شوه نو هغه وويل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د سهر د مانځه نه روسته د نمر ترختو پورې د مانځه نه منع کړې او د مازيګر نه پس ئې تر نمر پريوتو پورې د مانځه نه منع کړې ده. د دې حديث روايت ابو اسحاق ابن راهويه کړې دې او اسناد ئې حسن دي.

نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په پنځو وختونو کې د مانځه د کراهت حديثونه مخکې ذکر شوي دي.

## ﴿ بَابُ إِعَادَة الْفَرِيضَة لِأَجَلِ الْجَمَاعَة ﴾

## د جماعت دوجهې نه د فرض مونځ د راګرځولو باب

﴿۴۷۹﴾ عن أَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ : قَالَ لِي رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كيفَ أَنتَ إِذَا كَانَت عَلَيك أُمَرَاءُ يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاة عَن وَقتِهَا أَو يمِيتُونَ الصَّلَاة عَن وَقتِها قَالَ قُلتُ فَمَا تَأمُرُنِي قَالَ صَلِّ الصَّلَاة لِوَقتِها فَإِن أَدرَكتَها مَعَهم فَصَلِّ فَإِنَّها لَك نَافِلَة رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : حضرت ابو ذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ماته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې په هغه وخت کې به ستا څه حال وي کله چې په تا باندې داسې حکمران مقرر شي چې هغوي د خپل وخت نه مونځونه روسته کوي حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما عرض وکړ چې ته ماته چې حکم کوې وي فرمايل چې په خپل وخت کې مونځ کوه که چرته ته د هغه سره دا مونځ ؤمومې نو وي کړه دا به ستا د پاره نفل شي. د دې حديث روايت مسلم کړې دې.

---

(۱) مسلم کتاب المساجد ج۱ص۲۳۰ باب کراهة تاخير الصلوة عن وقتها ...الخ .

﴿۷۵۰﴾ و عَن مِحْجَنٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه كَانَ فِي مَجْلِسٍ مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَاُذِّنَ بِالصَّلاةِ فَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى ثُمَّ رَجَعَ وَ مِحْجَنٌ جَالِسٌ فِي مَجْلِسِه فَقَالَ لَه رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مَنَعَك اَن تُصَلِّيَ مَعَ النَّاسِ اَلَستَ بِرَجُلٍ مُسلِمٍ فَقَالَ بَلٰى يَا رَسُولَ الله وَ لٰكِنِّي قَد صَلَّيتُ فِي اَهلِي فَقَالَ لَه رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِذَا جِئتَ فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَاِن كُنتَ قَد صَلَّيتَ رواه مالك و آخرون و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حضرت محجن رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په يو مجلس کې ناست ؤ نو د مانځه د پاره اذان وکړي شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم پاڅيده نو مونځ ئې وکړيا واپس راغي او محجن په خپل ځاي باندي ناست ؤ نو هغه ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ته څه شي منع کړي ئې چې د خلکو سره مونځ وکړي آيا ته مسلمان سړي نه ئې محجن وويل ولې نه اي د الله جل شانه رسوله خو ما په خپل کور کې مونځ کړي ؤ نو دے ته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل کله چې ته راشي نو د خلکو سره مونځ کوه اګر چې تا کړي وي. د دي حديث روايت مالک او نورو کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۷۵۱﴾ و عن جَابِرِ بنِ يَزِيدَ بنِ الاَسوَدَ عَن اَبِيه قَالَ شَهِدتُ مَعَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَجَّتَه فَصَلَّيتُ مَعَه صَلَاةَ الصُّبحِ فِي مَسجِدِ الخِيفِ فَلَمَّا قَضٰى صَلَاتَه اِنحَرَفَ فَاِذَا هُوَ بِرَجُلَينِ فِي اُخرٰى القَومِ لَم يُصَلِّيَا مَعَه فَقَالَ عَلَيَّ بِهِمَا فَجِيءَ بِهِمَا تُرعَدُ فَرَائِصُهُمَا فَقَالَ مَا مَنَعَكُمَا اَن تُصَلِّيَا مَعَنَا فَقَالَا يَا رَسُولَ الله اِنَّا كُنَّا قَد صَلَّينَا فِي رِحَالِنَا قَالَ فَلَا تَفعَلُوا اِذَا صَلَّيتُمَا فِي رِحَالِكُمَا ثُمَّ اَتَيتُمَا مَسجِدَ جَمَاعَةٍ فَصَلِّيَا مَعَهُم فَاِنَّهَا لَكُمَا نَافِلَةٌ رواه الخمسة الا ابن ماجه و صححه الترمذي و ابن السكن و ابن حبان.[2]

**ترجمه** : حضرت جابر بن يزيد ابن الاسود نه روايت دي چې زما پلار ويلي دي چې زه د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم سره د هغه په حج کې وم ما د هغه سره په مسجد خيف کې د سهر مونځ وکړ کله چې هغه خپل مونځ پوره کړ راوګرځيده نو دوه سړي د خلکو په اخر کې ؤ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم سره

---

(۱) موطا امام مالك كتاب صلوة الجماعة صـ ۱۱۵ باب اعادة الصلوة مع الامام.

(۲) ترمذي ابواب الصلوة ج ۱ صـ ۵۲ باب ما جاء في الرجل يصلي وحده ثم يدرك الجماعة ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ۸۵ باب في من صلي في منزله ثم ادرك الجماعة ، نسائي كتاب الامامة والجماعة ج۱صـ ۱۳۷ باب اعادة الفجر مع الجماعة لمن صلي وحده ، مسند احمد ج۴ صـ ۱۶۰ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۵ صـ ۵۷ رقم ۲۳۸۸ باب اعادة الصلوة.

ئي مونځ نه وُ کړي نو وي فرمايل چې دا دواړه ماته راوله نو دواړه ورته راوستي شو په داسي حال کې د هغو د اوږو غوښې رپيدي تاسو مونږ سره د مانځه نه څه شئ منع کړي وئ نو يو کس د هغو نه عرض وکړ چې اي د الله جل شانه رسوله مونږ په خپلو ځايونو کې مونځ کړي وُ نبي کريم ﷺ وفرمايل داسي مه کوئ کله چې تاسو په خپلو ځايونو کې مونځ کړي وي بيا تاسو د جماعت مسجد ته راشئ نو د دوي سره مونځ کوئ ځکه چې دا به ستاسي د پاره نفل شي د دي حديث د ابن ماجه نه په غير پنځو محدثينو کړي دي او ترمذي ، ابن سکن او ابن حبان صحيح ګڼرلي دي .

﴿۷۵۲﴾ وَ عَنْ نَافِعٍ اَنَّ رَجُلاً سَأَلَ عَبْدَ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَقَالَ اِنِّيْ اُصَلِّيْ فِيْ بَيْتِيْ ثُمَّ اُدْرِكُ الصَّلَاةَ مَعَ الْإِمَامِ أَفَأُصَلِّيْ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللهِ بْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نَعَمْ فَقَالَ الرَّجُلُ اَيَّهُمَا اَجْعَلُ صَلَاتِيْ فَقَالَ لَهُ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَوَ ذٰلِكَ اِلَيْكَ اِنَّمَا ذٰلِكَ اِلَى اللهِ اَيَّهُمَا شَاءَ رواه مالك وآخرون واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې يو کس د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه پوښتنه وکړه چې بې شکه زه په کور کې مونځ وکړم بيا د امام سره مونځ وُمومم آيا د دي امام سره مونځ وکړم نو دوته عبدالله ابن عمر رضي الله عنه ووېل چې هو نو دي کس ووېل چې د دي دوه وُ مونځونو کوم يو خپل فرض مونځ وګرځوم نو عبدالله بن عمر رضي الله عنه ورته ووېل چې دا خبره الله جل شانه تاته سپارلي ده او دا خبره الله جل شانه ته سپارل شوي ده چې په دي دواړو کې الله جل شانه کوم يو غواري . د دي حديث روايت مالک او نورو محدثينو کړي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۷۵۳﴾ و عن ابن مسعود رضي الله عنه قَالَ اِنَّهُ سَيَكُونُ عَلَيْكُمْ اُمَرَاءُ يُؤَخِّرُونَ الصَّلَاةَ عَنْ مِيقَاتِهَا وَ يَخْنُقُونَهَا اِلٰى شَرَقِ الْمَوْتٰى فَاِذَا رَأَيْتُمُوهُمْ قَدْ فَعَلُوا ذٰلِكَ فَصَلُّوا الصَّلَاةَ لِمِيقَاتِهَا وَ اجْعَلُوا صَلَاتَكُمْ مَعَهُمْ سُبْحَةً رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : او ابن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې بې شکه زر ده چې مسلط به شي په تاسي باندي داسي حکمرانان چې روسته کوي به دوي مونځونه د خپل وخت نه او تنګه وي به دوي وخت د مانځه لره تر وخت د غرغري پوري نو کله چې تاسو دوي وُګورئ چې داسي عمل کوي نو کوي تاسي مونځ خپل په اول وخت کې او وُګرځوئ تاسي د دوي سره خپل مونځ نفل . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

---

(۱) موطا امام مالك كتاب صلوة الجماعة صــ ۱۱۶ باب اعادة الصلوة مع الامام .

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱صــ ۲۰۲ باب الندب الى وضع الايدي على الركب ...الخ .

﴿۷۵۲﴾ و عَن نَافِعٍ اَنَّ عَبدَ الله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ يقُولُ مَن صَلَّى الْمَغرِبَ اَوِ الصُّبحَ ثُمَّ اَدرَكَهُمَا مَعَ الإِمَامِ فَلاَ يعِد رواه مالك و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه به ويل څوک چې د ماښام او يا سهر مونځ وکړي بيا دواړه مونځونه دا د امام سره ونيسي نو دويم ځل دې ئې نه کوي . د دې حديث روايت مالک کړې دې او اسناد ئې صحيح دي .

## دمونځ داعادې (دوباره کولو)سره متعلق درې بحثونه

**اولنى بحث** : دمونځ داعادې يو قسم دادې که چرته امام دمستحب وخت دوتلو نه پس تاخير سره يو مونځ اولوستلو نو سړي لره پکار دي چې خپل مونځ په ځانله مستحب وخت کې ولولي ،دابهتره ده،او ددې نه پس که چرته په مسجد باندې تيريدل وي نو دامام دمخالفت نه دبچ کيدلو دپاره دې په مسجد کې دې په جمې سره هم مونځ ولولي،دادويم مونځ به نفل شي .دباب اولني حديث نمبر ۷۴۹ او پنځم حديث نمبر ۷۵۳ کې ددې قسم بيان دې .

دويم قسم دادې که يوکس دا اوګڼل چې په مسجد کې جماعت شوي دي او په خپل کور کې يې ځانله مونځ اولوستلو ،ليکن بيا روستو په مسجد تيريدلو او معلومه شوه چې مونځ اوسه پورې نه دي شوي .په باقي احاديثو کې ددې بيان دې .

**دويم بحث** :اعاده به دټولو مونځونو کولې شي او که دبعضې؟مسئله مختلف فيه ده .

(۱) دامام شافعي او احمد په نزدبه دټولو مونځونو اعاده کوي البته دامام احمد په نزد به دماښام په مونځ کې ديو رکعت اضافه کولې کيږي .

(۲)دامام ملک په نزد دماښام نه علاوه به دڅلورو مونځونو اعاده کوي .

(۳)داحنافو په نزد اعاده صرف ددومونځونو ده ماسپخين او ماسخوتن .

### دامام شافعي او احمد دلائل؛

۱... حديث نمبد ۷۵۱ (إِذَا جِئتَ فَصَلِّ مَعَ النَّاسِ وَإِن كُنتَ قَد صَلَّيتَ) دعموم تقاضه ده چې دټولو مونځونو اعاده دې اوکړې شي .

۲....حديث جابر بن يزيد عن ابيه قَالَ شَهِدتُ مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَجَّتَهُ فَصَلَّيتُ مَعَهُ صَلاَةَ الصُّبحِ فِي مَسجِدِ....الحديث .دلته دسحر دمونځ واقعه ده چې په هغې کې نبی عليه السلام

(۱) موطا امام مالك كتاب صلوة الجماعة صـــ ۱۱۶ باب اعادة الصلوة مع الامام .

د اعادې حکم کړې دې.

**دامام مالک رحمه الله استدلال :**

ددوی استدلال دقیاس شبهي نه دې یعني که چرته دمابنام دمونځ اعاده کوي نو هغه به هم درې رکعته شي دغه شان به ټول شپږ رکعته جمع کړې شي ،یا ورته ځانله ځانله درې رکعته هم نه شي ویلې نو داشپږ رکعته به ملاوشي او دنفلو مشابه به شي لهذا دفرضو جنس به دنفلو دجنس سره بدل کړې شي . [بدایة المجتهد،ص:۱۱۸]

دامام مالک نه یو روایت دادې که چرته په هیره باندې دمابنام په مونځ کې داخل شو نو په اخیر کې دې دیو رکعت اضافه اوکړي ددې دپاره چې اولنې مونځ فرض او دویم نفل شي . [المدونه ،ص:۵۷]

**دامام ابو حنیفه استدلال :**

(۱)دسحراو مازیگراعاده ځکه گرانه ده چې دا دویم مونځ به نفل شي او دصحیح احادیثودوجې نه نفل مونځ دسحر او مازیگرد مونځ نه پس مکروهه دې.دمابنام دمونځ اعاده ځکه نشته چې نفل مونځ ثلاثي(درې رکعاتووالا) نه وي بلکه ثنائي(دوه رکعاتووالا) یا رباعي (څلوررکعاتووالا)وي ،او دیو رکعت اضافه کوي نومخالفت دامام لازم راځي .ابن راشد مالکي فرمایلي دي (وهذا القیاس جید)[بدایة المجتهد ،ص:۱۱۸]

(۲)حضرت ابن عمر فرمایلي دي چې مَن صَلَّى المَغرِبَ اَوِ الصُّبحَ ثُمَّ اَدرَكَهمَا مَعَ الإِمَامِ فَلاَ يعدلهما په بعضو روایاتو کې دا حدیث مرفوع دې.[درس مشکوة]

**دامام شافعي او احمد په دلائلو باندې کلام او داحنافو وجوه ترجیح :**

دشوافعواوحنابلومستدل احادیث دنهي عن التنفل بعدالفجر والعصر والارروایاتو معارض دي ،اوس به دریو وجوهاتو سره نهي ته ترجیح حاصله شوي .

۱...دنهي روایات سندا قوي او متنا داضطراب نه خالي دي حال دا چې دجواز حدیث جابر بن یزید رضي الله عنه دیر مضطرب دي .

۲....دنهي روایات مانع او دجواز روایات مبیح او عندالتعارض منع مقدم وي .

۳....دنسخ امکان به هم ردنه کړې شي چې کله دا تطبیق اوکړې شي.

کوم ځاې پورې چې دمالکیو دقیاس شبهي تعلق دې نو ددې په باره کې پخپله مالکي علامه ابن رشد فرمایلي دي ." وهذا القیاس فیه ضعف .........والتمسک بالعموم أقوى من الاستثناء بهذا النوعمن القیاس " (بدایة المجتهد)

# ﴿ بَابُ صَلاَةِ الضُّحٰى ﴾

## د ځاښت د مانځه باب

﴿۷۵۵﴾ عن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ اَبِي لَيلى قَالَ مَا اَخبَرَنِي اَحَدٌ اَنَّه رَأَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحٰى إِلَّا اُمُّ هَانِئٍ رَضِيَ اللهُ عَنهَا فَإِنَّهَا حَدَّثَتْ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ بَيتَهَا يومَ فَتحِ مَكَّةَ فَصَلَّى ثَمَانَ رَكعَاتٍ مَا رَأَيتُه صَلَّى صَلاَةً قَطُّ اَخَفَّ مِنهَا غَيرَ اَنَّه كَانَ يُتِمُّ الرُّكوعَ وَالسُّجُودَ رواه الشيخان.

**ترجمه** : عبد الرحمن ابن ابي ليلى ويلي دي چې ماته د ام هاني رضي الله عنها په غير هيچا هم دا نه دي ويلي چې ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم د ځاښت د مانځه په اداء كولو ليدلي دي ام هاني رضي الله عنها حديث بيان كړي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د مكې د فتح په ورځ ماكره تشريف راوړ نو اته ركعته مونځ ئې وكړ ما كله هم رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دي ليدلي چې د دينه زيات خفيف او اسان مونځ ئې كړي وي مګر دا چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به ركوع او سجده پوره كوله . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

﴿۷۵۶﴾ و عن اَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اَوصَانِي خَلِيلِي بِثَلاَثٍ لاَ اَدَعُهُنَّ حَتّٰى اَمُوتَ صَومُ ثَلاَثَةِ اَيَّامٍ مِن كُلِّ شَهرٍ وَ صَلاَةُ الضُّحٰى وَنَومٌ عَلٰى وِترٍ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت ابي هريره رضي الله عنه ويلي دي چې ماته زما دوست د دريو خبرو وصيت كړي ؤ چې زه هغه تر مرګه پورې نه پريږدم د هري مياشتي نه دري ورځي روژه د ځاښت مونځ او د وترو نه روسته ؤده كيدل . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي .

﴿۷۵۷﴾ و عن عَبدِ الله بنِ شَقِيقٍ قَالَ قُلتُ لِعَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَكَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الضُّحٰى فَقَالَت لاَ إِلَّا اَن يَجِيءَ مِن مَغِيبِه رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : عبد الله ابن شفيق ويلي دي چې ما حضرت عائشي رضي الله عنها ته عرض كړي ؤ چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د ځاښت مونځ كاوه نو هغي وويل چې نه مګر چې د سفر نه به ئې واپس تشريف راوړ . دا حديث مسلم روايت كړي دي .

---

(۱) بخاري كتاب التهجد ج ۱ صــ ۱۵۷ باب صلوة الضحى في الحضر ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج ۱ صــ ۲۵۰ باب استحباب صلوة الضحى وان اقلها ركعتان ....الخ .

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج ۱ صــ ۲۴۸ باب استحباب صلوة الضحى وان اقلها ركعتان ....الخ .

﴿۷۵۸﴾ و عَن زَيدِ بنِ اَرقَمَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه رَأَي قَومًا يُصَلُّونَ مِنَ الضُّحٰى فَقَالَ اَمَا لَقَد عَلِمُوا اَنَّ الصَّلاَةَ فِي غَيرِ هٰذِهِ السَّاعَةِ اَفضَلُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ صَلاَةُ الاَوَّابِينَ حِينَ تَرمُضُ الفِصَالُ رواه مسلم. [1]

**ترجمه** : د حضرت زيد بن ارقم رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه يوه ډله د څاښت د مانځه په ادا كولو ليدلي وه نو هغه ويلي ؤ چې دغه خلكو ته دا معلومه نه وه چې د دې وخت نه په غيرمونځ زيات افضل دي په تحقيق رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي ؤ د اوابين مونځ هغه وخت دي چې كله د اوه د بچي خپې په شګه كې ګرمي شي. د دې حديث روايت مسلم كړي دي.

﴿۷۵۹﴾ و عنه قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلٰى اَهلِ قُبَاءٍ وَهُم يُصَلُّونَ الضُّحٰى فَقَالَ صَلاَةُ الاَوَّابِينَ اِذَا رَمِضَتِ الفِصَالُ مِنَ الضُّحٰى رواه احمد واسناده صحيح. [2]

**ترجمه** : حضرت زيد ابن ارقم رضي الله عنه ويلي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د قباء خلكو ته تشريف راوړ او هغوي د څاښت مونځ كاوه نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د اوابينو د مونځ هغه وخت دي كله چې د اوښ د بچي خپي په شګه كې د څاښت د ګرمۍ په وجه ګرمي شي. د دې حديث روايت احمد رحمه الله كړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۷۶۰﴾ وَ عَن اَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَنَّه قَالَ يُصبِحُ الرَّجُلُ عَلٰى كُلِّ سُلاَمٰى مِن اَحَدِكُم صَدَقَةٌ فَكُلُّ تَسبِيحَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَحمِيدَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَهلِيلَةٍ صَدَقَةٌ وَكُلُّ تَكبِيرَةٍ صَدَقَةٌ وَ اَمرٌ بِالمَعرُوفِ وَنَهيٌ عَنِ المُنكَرِ صَدَقَةٌ وَيُجزِئُ مِن ذٰلِكَ رَكعَتَانِ يَركَعُهُمَا مِنَ الضُّحٰى رواه مسلم و احمد و ابوداود. [3]

**ترجمه** : د حضرت ابي ذر رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د ستاسي نه د هر كس په بند باندې د سهر په وخت كې يو صدقه ده هره يوه (سبحان الله) صدقه ده او هره يوه (الحمد لله) صدقه ده او هره يوه (لا اله الا الله) صدقه ده او هريو (الله اكبر) صدقه ده او په نيكۍ

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صـــ ۲۵۷ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم.

(۲) مسند احمد ج ۴ صـــ ۳۶۶ .

(۳) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صـــ ۲۵۰ باب استحباب صلوة الضحى ...الخ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۸۲ باب صلوة الضحى ، مسند احمد ج۵ صـــ ۱۶۷.

باندي امر كول صدقه ده او د بدئ نه منع كول صدقه ده او په هر بند باندي د صدقي نه د څاښت دوه ركعته مونځ كافي كيږي. د دي حديث روايت مسلم رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ او ابو داؤد كړي دي.

**﴿۷۶۱﴾ و عن مُعَاذَةَ أنها سَأَلَت عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا كم كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي صَلاَةَ الضُّحٰى قَالَت أربَعَ رَكَعَاتٍ وَيَزِيدُ مَا شَاءَ رواه مسلم.**[1]

**ترجمه** : د معاذه نه روايت دي چې هغې د حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنهَا نه پوښتنه كړي وه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د څاښت څو ركعته مونځ اداء فرمايلي وُ حضرت عايشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا ويلي وُ چې څلور ركعته او څومره ئي چې غوښتل زياتول به ئي. د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

**﴿۷۶۲﴾ وَعن عَاصِمِ بنِ ضَمرَةَ السَّلُولِي قَالَ سَأَلنَا عَلِيا رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَن تَطَوُّعِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بِالنَّهارِ فَقَالَ إِنَّكُمْ لَاتُطِيقُونَه فَقُلنَا أخبِرنَا نَاخُذُ مِنه مَا اسْتَطَعْنَا قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا صَلَّي الفَجرَ يمهلُ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ الشَّمسُ مِن هٰهنَا يعنِي مِن قِبَلِ المَشرِقِ بِمِقدَارِها مِن صَلاَةِ العَصرِ مِن هٰهنَا يعنِي مِن قِبَلِ المَغرِبِ قَامَ فَصَلّٰى رَكعَتَينِ ثُمَّ يمهلُ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ الشَّمسُ مِن هٰهنَا يعنِي مِن قِبَلِ المَشرِقِ بِمِقدَارِها مِن صَلاَةِ الظُّهرِ مِن هٰهنَا قَامَ فَصَلّٰى أربَعاً وَ أربَعاً قَبلَ الظُّهرِ إِذَا زَالَتِ الشَّمسُ وَ رَكعَتَينِ بَعدَها وَ أربَعاً قَبلَ العَصرِ يفصِلُ بَينَ كُلِّ رَكعَتَينِ بِالتَّسلِيمِ عَلَي المَلاَئِكَةِ المُقَرَّبِينَ وَالنَّبِيينَ وَمَن تَبِعَهم مِنَ المُسلِمِينَ وَالمُؤمِنِينَ رواه ابن ماجه و آخرون واسناده حسن.**[2]

**ترجمه** : عاصم بن ضمره السلولي ويلي دي چې مونږ د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د ورځي د نفلو په باره كې پوښتنه وكړه نو هغه وفرمايل چې تاسي د هغې طاقت نه لرئ نو مونږ وويل چې ته پري مونږ خبر كړه چې زمونږ څومره طاقت وي نو همغومره عمل به پري وكړو حضرت علي كرم الله وجهه وفرمايل چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به كله د سهر مونځ اداء كړ تر هغه وخته پوري به ئي مهلت كاوه چې كله به نمر د دي خوا نه يعني شرق د خوا نه په اندازه د مانځه د مازيگر شو د دي خوا نه يعني د مغرب د خوا نه يا به پاڅيده نو دوه ركعته مونځ به ئي وكړ بيا به ئي تر هغې پوري مهلت كاوه چې كله به نمر د دي خوا نه يعني د مشرق له خوا نه په اندازه د مانځه د ماسپښين شو د دي خوا نه پا به څيده نو د ماسپښين نه مخكې به ئي چې كله به زوال وشو څلور

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صـــ ۲۴۹ باب استحباب صلوة الضحٰى.

(۲) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۸۲ باب ماجآء فيما يستحب من التطوع بالنهار.

رکعته مونځ وکړ او د ماسپښين د مانځه نه روسته به ئې دوه رکعته مونځ وکړ او څلور رکعته به ئې د مازيګر د مانځه نه مخکښې وُکړل او جدائي به ئې کوله د هرو دوه وُ رکعتونو تر منځ په سلام سره په مقربو ملائکو او په انبياؤ او د دوي په تابعدارانو د مسلمانانو او مؤمنانو ځيني . د دي حديث روايت ابن ماجه کړي او نورو کړي دي او اسناد ئې حسن دي .

## دڅاښت مونځ او ددي شرعي حيثيت

صلاة الضحى يعني دڅاښت مونځ هغه نوافل دي چي دنمر دراختلو نه پس طلوع يو نيزه او چتيدلو نه پس او دزوال نه مخکښې په يو وخت کښې ولوستلې شي .البته دتهجدو په شان ددې هم هيڅ حد مقرر نه دې ،ددووؤ نه واخله تر دولسو رکعتو پورې چي څومره غواړي نو لوستلې شي .

عام فقهاء اشراق او ضحى (څاښت)لره يو ګڼړي فرق صرف دومره دې که چرته دنمر دراختلو نه پس متصلا ولولي نو اشراق او که تاخير سره يي ولولي نو ضحى(څاښت) به وي.

علامه دارمي ،سيوطي او علي متقي دواړو لره جدا مونځونه ويلي دي.حضراتو صوفيائې کرامو هم دوه مستقل مونځونه شمير کړي دي .

**مسئلة الباب:** دصلاة ضحى (دڅاښت دمونځ) شرعي حيثيت څه دي ؟ددي په باره کښې کافي اختلاف راغلې دي .

۱...دجمهورو ،مالکيو او حنابلو په نزد دصحيح قول مطابق مستحب دي .

۲...داکثرو شوافعو په نزد سنت دي بعضې شوافعو خوورته سنت مؤکده هم ويلې دي .

۳...حضرت ابن عمر رضي الله عنه،انس رضي الله عنه او ابوبکره رضي الله عنه دې لره بدعت ويلې دي.

**دصلاة ضحى دليلونه :**

(۱) نبي عليه السلام دفتح مکې په ورځ دام هانى په کور کښې اته(۸) رکعاته لوستل .

(۲) حضرت ابوهريره دټول عمر لوستلو وصيت فرمايل .

(۳) سفر نه په واپسي باندي په خپله لوستل.

(۴) حديث "رکعتان يرکعهما من الضحى".

(۵) حديث علي رضي الله عنه "فصلى رکعتين".

(٦) بقول علامه عيني دپنځه ويشت صحابو نه صلاة الضحى لره نقل فرمايل .

نبي عليه السلام په صلاة ضحى باندي هميشه والې نه دي فرمايلې چي چرته دامت په ذمه باندي فرض اونګرځي ليکن کله کله به يي لوستل.دابن عمراونورو صحابو دې لره بدعت ويل مداومت او هميشه والي باندې محمول دي يا په داسې وخت کښې دصلاة ضحى مونځ لوستل بدعت دي کوم

چې به ددې دمسنون وخت نه مخکې بعضې خلکو لوستل.دحضرت زيد ابن ارقم رضي الله عنه حديث ددې په باره کې واضح دې.

## دحضرت عائشه رضي الله عنها په متعارضو احاديثو کې تطبيق ،

نبی علیه السلام به دې مونځ لره دحضرت عائشې په وړاندې نه لوستلو ځکه چې دڅاښت په وخت کې به نبی علیه السلام ددې سره نه وو بلکه عموما به يې په مسجد کې لوستل يا به يې دسفر په حالت کې لوستل لکه څنګه چې دحديث على نمبر ۷۶۲ نه واضح دې .چونکه حضرت عائشې ته دنورو نه ددې مونځ علم شوې وو ځکه نفي دځپل دروٶيت په اعتباره سره دې او اثبات نفس الامر او دحقيقت په اعتبار سره دې يا نه کول دمداومت دې او اثبات احيانالوستلو لره دې .والله اعلم

دصلاة الاوابين وجه تسميه :ابن العربی دې لره دانبياؤ او سابقينو عليهم السلام مونځ ګرځولې او په استدلال کې يې د آيات پيش کړې دې .اناسخرنا الجبال معه يسبحن باالعشي والاشراق ..[ص ۱۹۱۸]داشراق او اواب نه مشتق شو نو ددې مونځ نوم يې صلاة الاشراق او صلاة الاوابين وويلو.دغه شان په بعضې رواياتو کې داسې راغلي دې چې "لايحافظ على صلاة الضحى إلا كل اواب قال: وهي صلاة الاوابين" معارف السنن ۱۶۶٦/٤ -۲۷۲ ].

## ﴿بَابُ صَلَاةِ التَّسبِيحِ﴾

## دتسبيح د مانځه باب

﴿۷۶۳﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِلعَبَّاسِ بنِ عَبدِ المُطَّلِبِ يا عَبَّاسُ يا عَمَّاه أَلَا أُعطِيكَ أَلَا أَمنَحُكَ أَلَا أَحبُوكَ أَلَا أَفعَلُ بِكَ عَشرَ خِصَالٍ إِذَا أَنتَ فَعَلتَ ذٰلِكَ غَفَرَ اللهُ لَكَ ذَنبَكَ أَوَّلَه وَآخِرَه قَدِيمَه وَحَدِيثَه خَطَأَه وَعَمَدَه صَغِيرَه وَكَبِيرَه سِرَّه وَعَلَانِيَتَه عَشرَ خِصَالٍ أَن تُصَلِّيَ أَربَعَ رَكَعَاتٍ تَقرَأُ فِي كُلِّ رَكعَةٍ فَاتِحَةَ الكِتَابِ وَسُورَةً فَإِذَا فَرَغتَ مِنَ القِرَاءَةِ فِي أَوَّلِ رَكعَةٍ وَأَنتَ قَائِمٌ قُلتَ سُبحَانَ اللهِ وَالحَمدُ للهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ وَاللهُ أَكبَرُ خَمسَ عَشرَةَ مَرَّةً ثُمَّ تَركَعُ فَتَقُولُهَا وَأَنتَ رَاكِعٌ عَشرًا ثُمَّ تَرفَعُ رَأسَكَ مِنَ الرُّكُوعِ فَتَقُولُهَا عَشرًا ثُمَّ تَهوِي سَاجِدًا فَتَقُولُهَا عَشرًا وَأَنتَ سَاجِدٌ عَشرًا ثُمَّ تَرفَعُ رَأسَكَ مِنَ السُّجُودِ فَتَقُولُهَا عَشرًا ثُمَّ تَسجُدُ فَتَقُولُهَا عَشرًا ثُمَّ تَرفَعُ رَأسَكَ فَتَقُولُهَا عَشرًا فَذٰلِكَ خَمسٌ وَسَبعُونَ فِي كُلِّ رَكعَةٍ تَفعَلُ ذٰلِكَ فِي أَربَعِ رَكَعَاتٍ إِنِ استَطَعتَ أَن تُصَلِّيَهَا فِي كُلِّ

يوم مَرَّةً فَافْعَلْ فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي كُلِّ شَهْرٍ مَرَّةً فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فِي كُلِّ سَنَةٍ مَرَّةً فَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَفِي عُمرِكَ مَرَّةً رواه ابوداود و آخرون و اسناده حسن.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم حضرت عباس ابن عبدالمطلب ته وفرمايل اي عباس رضي الله عنه! اي تره زه تاته څه درنكړم او زه تاته كوم قيمتي شئ مفت درنكړم زه تاته لس خبري ونكړم كله چې ته دا وكړي نو الله جل شانه به ستا وړانديني او روستني پخواني او نوسني د خطا والا او د قصد والا واړه او لوئي پټ او ښكاره ټول ګناهونه معاف كړي. او لس خبري دا دي چې ته څلور ركعته مونځ وكړه او په هر ركعت كې د فاتحي سورت او بل سورت ولوله نو كله چې د اول ركعت نه فارغ شوي او ته لا ولاړ ئي په ولاړه ولاړه پنځلس كرته دغه كلمات وُلوله سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر. يعني پاک دي الله جل شانه د ټولو عيبونو نقصانونو تغير او زوال نه. او د هغه ناوړو صفتونو نه كوم چې كافران مشركان دهريان او يهود او نصارى ئي وړپوري وائي او هر يو حمد او ثنا خاص الله جل شانه لره ده او نشته مستحق د عبادت په غير د الله جل شانه نه بل هيڅ شئ د ټولو نه لوئي دي. بيا ركوع وكړه او د ركوع په حالت كې دغه كلمات لس ځله اووايه بيا د ركوع نه سر اوچت كړه او دغه كلمات لس ځله ووايه بيا سجدي ته لاړ شه او د سجدي په حالت كې دغه كلمات لس ځله ووايه بيا د سجدي نه سر اوچت كړه نو دغه كلمات لس ځله ووايه بيا بله سجده وكړه نو دغه كلمات لس ځله ووايه بيا د سجدي نه سر اوچت كړه نو دغه كلمات ځلي ووايه دا په هر ركعت كې پنځه اويا ځله شو په څلورو واړو ركعتونو كې دغه فعل وكړه كه وس او طاقت دي وُ نو هره ورځ دغه مونځ كوه او كه په هره ورځ دي ونكړ نو په هره جمعه كې ئي يو ځلي كوه او كه په هره جمعه كې دي يو ځل ونه كړ نو په هره مياشت كې ئي يو ځل كوه او كه په هره مياشت كې دي ونكړ نو په هر كال كې ئي يو ځل كوه او كه په هر كال كې دي ونكړ نو په عمر كې ئي يو ځل كوه. د دي حديث روايت ابوداؤد او نورو كړي دي او اسناد ئي حسن دي.

## دصلاة التسبيح مسائل :

دلسو نه زيات احاديث دصلاة التسبيح په باره كې راغلي دي. حضرت ابن عباس، فضل بن عباس، حضرت عباس، ابورافع، انس، ابن عمر، على، جعفر، ام سلمه، او جابر بن عبدالله صلاة التسبيح بيان كړي دي. په دې ټولو كې دابن عباس حديث چي په دې باب كې ذكرشوي دي سندامشهور او

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۸۳ باب صلوة التسبيح.

صحيح دي .بعضي علماؤ په دې کې کلام کړې دې لګ ضعيف يې ګرځولې دې بلکه ابن جوزي دې لره موضوع ويلې دې او هغوي ددې په يو راوي موسى بن عبدالعزيز باندې سخته جرح نقل کړې ده ليکن دويم طرفته ابن منده دې لره صحيح ګرځولې دې .فيصله کونکې قول دادې چې دصلاة التسبيح طرق اګرچې ضعيف دي ليکن دکثرت دوجې نه ورته دحسن درجه حاصله شوې ده دغه شان دامت دپې درپې والي دوجې نه هم ددې تائيد کيږي لهذا دې لره بدعت يا خلاف سنت ويل درست نه دي.

**دصلاة التسبيح درجه** :فقهاؤ دې لره مستحب ګرځولې دې.حضرت عبدالله بن مبارک به دې لره لوستلو ،ځيني تابعينو به ددې معمول ساتلو .عبدالعزيزبن داؤاد فرمايلي دي چې کوم کس دجنت طلب ګار وي نو هغه دې صلاة التسبيح لولي او ابو عثمان الزاهد ويلي دي چې دسختو او غمونو ددفع کولو دپاره دصلاة التسبيح په شان هيڅ يو عمل نه موندلې کيږي.

**دصلاة التسبيح دوه طريقې دي :**

(۱)دابن عباس دحديث مطابق ددې طريقه دا ده چې څلور رکعاتهٔ نفل مونځ دې ولولي او بيا په قيام کې دقرأت نه دفارغ کيدو نه پس پينځلس ځله او ددې نه پس سجدې پورې په هر نقل او حرکت کې لس ،لس ځله داتسبيح ولوستلې شي :سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اکبر ،او ددويمې سجدې نه پس دې سجده استراحت اوکړي او په دې کې دې هم دغه تسبيح لس ځله ولولي.داحنافو په نزد اګرچې بلاعذر جلسه استراحت مستحب نه ده ليکن په صلاة التسبيح کې داجلسه بغير دکراهت نه جائزده .

(۲)دعبدالله ابن مبارک مطابق دصلاة التسبيح په سجدو کې دکيناستلوضرورت نشته بلکه په قيام کې دې پينځويشت ځله ولولي يعني پينځلس ځله دې دقرأت دشروع کولو نه مخکې او لس ځله دقرأت نه پس درکوع نه مخکې ولولي .

غرض درې سوه (۳۰۰) تسبيحات کول دي په هر رکعت کې پينځه اويا(۷۵)ځله .لا فرط فيهاولا شطط.[معارف السنن :۴\۲۸۲-۲۸۹]

# ﴿أَبوَابُ قِيَامِ شَهرِ رَمَضَانَ﴾

## ﴿بَابُ فَضلِ قِيَامِ رَمَضَانَ﴾

## د تراویحو بابونه

## د تراویحو د فضیلت باب

﴿۷۶۴﴾ عَن اَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَن قَامَ رَمَضَانَ اِيمَانًا وَ اِحتِسَابًا غُفِرَ لَه مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِه رواه الجماعة.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي كوم كس چې د ايمان په حالت په رمضان المبارک كې وُدريږي يعني تراويح وكړي او د ثواب په اميد ئي وكړي د ده به وړاندیني ګناهونه معاف كړي شي. د دي حديث روايت د محدثينو جماعت روايت كړي دي.

﴿۷۶۵﴾ وَ عَنه قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يرَغِّبُ فِي قِيَامِ رَمَضَانَ مِن غَيرِ اَن يامُرَهم فِيه بِعَزِيمَةٍ فَيقُولُ مَن قَامَ رَمَضَانَ اِيمَانًا وَ اِحتِسَابًا غُفِرَ لَه مَا تَقَدَّمَ مِن ذَنبِه فَتُوُفِّيَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَالاَمرُ عَلٰى ذٰلِكَ ثُمَّ كَانَ الاَمرُ عَلٰى ذٰلِكَ فِي خَلَافَةِ اَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ صَدرًا مِن خِلَافَةِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَلٰى ذٰلِكَ رواه مسلم.[2]

**ترجمه**: حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په تراويحو كې ترغيب وركاوه خو ولي خلكو ته به ئي پوخ امر نه كاوه نو فرمايل به ئي چې څوک په تراويحو كې په رمضان المبارک كې وُدريږي او په الله جل شانه باندي د ايمان د لرلو او د ثواب په اميد د تراويحو مونځ ادا كړي نو ده ته به مخكيني ګناهونه معاف كړي شي نو وفات كړي شو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ او د تراويحو مونځ په همدغه حال وُ بيا د حضرت ابوبكر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ په خلافت كې هم د تراويحو

---

(۱) بخاري كتاب الايمان ج۱ص ۱۰ باب تطوع قيام رمضان من الايمان ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۹ باب الترغيب في قيام رمضان وهو التراويح ، ترمذي ابواب الصوم ج۱ص ۱۴۷ باب ماجاء في فضل شهر رمضان ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۹۴ باب في قيام شهر رمضان ، نسائي كتاب قيام الليل وتطوع النهار ج۱ص ۲۳۸ باب ثواب من قام رمضان ايمانا...الخ ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۹۵ باب ماجاء في قيام شهر رمضان ، مسند احمد ج۲ص ۲۸۱.

(۲) مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۵۹ باب الترغيب في قيام رمضان ...الخ .

عمل همدغسې جاري ؤ او د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په اول وخت کې هم تراويح په دې شکل سره کيدې. د دې حديث روايت مسلم کړي دی.

**مسئلة الباب** : د قيام الليل اطلاق د تهجد په مونځ باندې او د قيام رمضان اطلاق په تراويح باندې کيږي لکه څنګه چې په حديث کې دي: "من قام رمضان ايمانا واحتسابا غفرله ..... " الحديث. (الدر المنضود : ۵۵۷/۲)

## ﴿بَابٌ فِي جَمَاعَةِ التَّرَاوِيحِ﴾

## په جماعت سره د تراويحو باب

﴿۶۶۷﴾ عَن عُروَة اَنَّ عَائِشَة رضي الله عنها اَخبَرَته اَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم خَرَجَ لَيلة مِن جَوفِ اللَّيل فَصَلّٰى فِي المَسجِدِ وَ صَلّٰى رِجَالٌ بِصَلَاتِهٖ فَاَصبَحَ النَّاسُ فَتَحَدَّثُوا فَاجتَمَعَ اَكثَرُ مِنهم فَصَلّٰى فَصَلُّوا مَعَه فَاَصبَحَ النَّاسَ فَتَحَدَّثُوا فَكَثُرَ اَهلُ المَسجِدِ مِن اللَّيلة الثَّالِثَةِ فَخَرَجَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم فَصَلّٰى فَصَلُّوا بِصَلَاتِهٖ فَلَمَّا كَانَتِ اللَّيلة الرَّابِعَة عَجَزَ المَسجِدُ عَن اَهلِهٖ حَتّٰى خَرَجَ لِصَلَاةِ الصُّبحِ فَلَمَّا قَضَي الفَجرَ اَقبَلَ عَلَى النَّاسِ فَتَشَهَّدَ ثُمَّ قَالَ اَمَّا بَعدُ فَاِنَّه لَم يَخفَ عَلَيَّ مَكَانُكُم وَ لٰكِنِّي خَشِيتُ اَن تُفرَضَ عَلَيكُم فَتَعجِزُوا عَنها فَتُوُفِّيَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم وَالاَمرُ عَلٰى ذٰلِك رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د عروه نه روايت دی چې حضرت عائشې رضي الله عنها هغه ته (عروه) ويلي ؤ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم يو ځل د نيمې شپې په وخت د کور نه راووت او مسجد ته ئې تشريف ويوړ نو په مسجد کې ئې مونځ وکړ او ځينو خلکو هم د رسول الله صلى الله عليه وسلم په اقتداء مونځ وکړ نو صبا د سهر په وخت کې خلکو دا واقعه بيان کړه نو د اولې شپې په نسبت سره خلک ډير راجمع شوي ؤ نو رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ وکړ نو خلکو هم د ده سره مونځ وکړ بيا صبا سهر خلکو بله واقعه بيان کړه نو په دريمه شپه د مسجد خلک نور رهم زيات شو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم مسجد ته تشريف راوړ نو مونځ ئې وکړ او خلکو هم د ده پسې مونځ وکړ نو کله چې څلورمه شپه شوه نو مسجد د خلکو د زياتوالي د وجهې نه تنګ شو يعني دومره زيات خلک راغله چې په مسجد کې نه ځائيدل تر دې پورې چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د سهر مانځه ته تشريف راوړ نو کله ئې چې د سهر مونځ پوره کړ

---

(۱) بخاري كتاب الصوم ج۱ص ۲۶۹ باب فضل من قام رمضان ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۵۹؛ بـاب الترغيب في قيام رمضان ...الخ .

خلکو طرف ته متوجه شو نو تشهد ئې ووايه بيا ئې وفرمايل چې د حمد او صلوة نه روسته دا خبره ده چې دې ځاې ته ستاسې راتلل زمانه څه پټ نه ؤ خو ولې زه ويريدم چې په تاسو به فرض شي نو عاجز به شئ تاسو د هغې نه نو وفات شو رسول الله ﷺ او د تراويحو خبره همداسې وه. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې.

﴿۶۷﴾ وَ عَن زَيدِ بنِ ثَابِتٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ اِتَّخَذَ حُجرَةً فِي المَسجِدِ مِن حَصِيرٍ فَصَلّٰى فِيهِ لَيَالِيَ حَتّٰى اِجتَمَعَ عَلَيهِ نَاسٌ ثُمَّ فَقَدُوا صَوتَه لَيلَةً وَظَنُّوا اَنَّه قَد نَامَ فَجَعَلَ بَعضُهُم يَتَنَحنَحُ لِيَخرُجَ اِلَيهِم فَقَالَ مَازَالَ بِكُمُ الَّذِي رَأَيتُ مِن صَنِيعِكُم حَتّٰى خَشِيتُ اَن يُكتَبَ عَلَيكُم وَ لَو كُتِبَ عَلَيكُم مَا قُمتُم بِه فَصَلُّوا اَيُّهَا النَّاسُ فِي بُيُوتِكُم فَاِنَّ اَفضَلَ صَلَاةِ المَرءِ فِي بَيتِهِ اِلَّا الصَّلَاةَ المَكتُوبَةَ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه**: د حضرت زيد بن ثابت رضي الله عنه نه روايت دې چې نبي اکرم ﷺ په مسجد کې د پوزکو نه يوه حجره جوړه کړې وه نو څو شپې ئې په هغې کې مونځ وفرمايه تر دې چې پرده باندې ډير خلک راجمع شوې ؤ بيا هغوې د رسول الله ﷺ اوازونه ؤريده دوې ګومان کړې ؤ چې هغه به ؤده شوې وي نو بعضو صحابه کرامو په غاړه تازه کولو شروع وکړه د دې د پاره چې نبي کريم ﷺ دوې ته تشريف راوړې ستاسې په کثرت سره راتلل اوضع او معامله ما ليدلې وه تر دې چې زه ويريدم چې په تاسو به فرض شي او که چرته په تاسو باندې فرض شوې وې نو کولې به مونه شوې اې خلکو دغه مونځ په خپلو کورونو کې کوئ بې شکه چې د فرض مونځ نه په غير د سړي مونځ په کور کې افضل او بهتر دې. د دې حديث روايت شيخينو کړې دې.

﴿۶۸﴾ وَعَن جُبَيرِ بنِ نُفَيرٍ عَن اَبِي ذَرٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صُمنَا مَعَ رَسُولِ اللهِ ﷺ رَمَضَانَ فَلَم يَقُم بِنَا فَلَمَّا كَانَتِ الخَامِسَةُ قَامَ بِنَا حَتّٰى ذَهَبَ شَطرُ اللَّيلِ فَقُلتُ يَا رَسُولَ اللهِ لَو نَفَّلتَنَا قِيَامَ هٰذِهِ اللَّيلَةِ قَالَ فَقَالَ اَنَّ الرَّجُلَ اِذَا صَلّٰى مَعَ الاِمَامِ حَتّٰى يَنصَرِفَ حُسِبَ لَه قِيَامُ لَيلَةٍ قَالَ فَلَمَّا كَانَتِ الرَّابِعَةُ لَم يَقُم فَلَمَّا كَانَتِ الثَّالِثَةُ جَمَعَ اَهلَه وَنِسَاءَه وَالنَّاسَ فَقَامَ بِنَا حَتّٰى خَشِينَا اَن يَفُوتَنَا الفَلَاحُ

---

(۱) بخاري كتاب الاذان ج۱ص ۱۰۱ باب صلوة الليل، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص ۲۶۶ باب استحباب صلوة النافلة في بيته.

قَالَ قُلْتُ مَا الْفَلَاحُ قَالَ السُّحُورِ ثُمَّ لَم يَقُمْ بِنَا بَقِيَةَ الشَّهرِ رواه الخمسة و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د جبير بن نفير نه روايت دي چې حضرت ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره روژه ونيوله نو مونږ ته ئي تراويح ونه كړي بيا چې كله پنځمه شپه وه نو مونږ سره ؤدريده تر دي پوري چې نيمه شپه ؤوته نو ما عرض وكړ چې اي د الله جل شانه رسوله كه تاسو مونږ ته په دغه پاتي شپه كې نفل مونځ كړي وي حضرت ابوذر ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بې شكه چې يو كس د امام سره مونځ وكړي تر دي پوري چې كله هغه د مانځه نه فارغ شي نو د ده د پاره د ټولي شپې د قيام ثواب حسابولي شي ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې كله څلورمه شپه شوه نو مونږ سره مانځه ته ونه دريده نو كله چې دريمه شپه شوه نو نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خپل اهل و عيال او بيبياني او نور خلك راجمع كړل نو مونږ ته ئي مونځ وكړ تر دي پوري چې مونږ ؤيريدو چې پيش نمي به رانه فوت شي جبير ويلي دي چې ما وويل چې فلاح څه شي دي ابوذر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې فلاح پيش نمي دي بيا ئي مونږ ته پاتي مياشت تراويح ونه كړي . د دي حديث روايت پنځو محدثينو كړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۶۲۹﴾ وَ عَن ثَعلَبَة بنِ اَبِي مَالِك القُرَظِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَرَجَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ لَيلَة فِي رَمَضَانَ فَرَأى نَاسًا فِي نَاحِيَة المَسجِدِ يصَلُّونَ فَقَالَ مَا يَصْنَعُ هٰؤُلَاءِ قَالَ قَائِلٌ يَا رَسُولَ الله هٰؤُلَاءِ نَاسٌ لَيسَ مَعَهمُ القُرآنُ وَاُبَيٌّ بنِ كَعْبٍ يَقرَأُ وَ هُمْ مَعَه يصَلُّونَ بِصَلَاتِه قَالَ قَدْ اَحسَنُوا وَ قَدْ اَصَابُوا وَلَمْ يَكرَه ذٰلِكَ لَهمْ رواه البيهقي في المعرفة و اسناده جيد و له شاهد دون حسن عند ابي داود من حديث ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ.[2]

**ترجمه** : او حضرت ثعلبه بن ابي مالك القرضي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رمضان المبارك په مياشت كې يوه شپه راؤوات نو د مسجد په يو كوټ كې ئي خلك وليدل چې مونځ ئي كاوه نو ؤي فرمايل چې دا خلك څه كوي يو ويونكي ؤويل چې اي د الله جل شانه رسوله

---

(۱) ترمذي ابواب الصوم ج۱صـــ ۱۶۶ باب ماجاء في قيام شهر رمضان ، ابوداود كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۹۵ باب في قيام شهر رمضان واللفظ له ، نسائي كتاب قيام الليل وتطوع النهار ج۱صـــ ۲۳۸ باب قيام شهر رمضان ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۹۵ بـــاب ماجآء في قيام شهر رمضان ، مسند احمد ج۵ صـــ ۱۵۹.

(۲) معرفة السنن والآثار كتاب الصلوة ج ۴ صـــ ۳۹ رقم الحديث ۵۴۰۰ سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة صـــ ۴۹۵ باب من زعم انها بالجماعة افضل ...الخ ، ابوداود كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۹۵ باب في قيام شهر رمضان .

د دي خلکو قرآن کريم نه دي زده او ابي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قرأت لولي قرآن کريم وائي دي او دا د هغه په اقتداء کښ مونځ کوي نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل په تحقيق بنه کوي او حق ته رسيدلي او د دوي دا کار ئي بد ونه ګاڼړه. د دي حديث روايت په معرفت کښ بيهقي کړي دي او اسناد ئي جيد دي او د ده د پاره پ. ابوداؤد کښ د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث شاهد دي کوم چې د حسن د درجي نه کم نه دي.

﴿۷۷۰﴾ وعَن عَبدِ الرَّحمٰنِ ابنِ عَبدِنِ القَارِي انَّه قَالَ خَرَجتُ مَعَ عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ لَيلةً فِي رَمَضَانَ اِلَى المَسجِدِ فَاِذَا النَّاسُ اَوزَاعٌ مُتَفَرِّقُونَ يُصَلِّي الرَّجُلُ لِنَفسِه وَيُصَلِّي الرَّجُلُ فَيُصَلِّي بِصَلاتِه الرَّهطُ فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِنِّي لَو جَمَعتُ هٰؤُلاءِ عَلىٰ قَارِئٍ وَاحِدٍ لَكَانَ اَمثَلُ ثُمَّ عَزَمَ فَجَمَعَهم عَلىٰ اُبَيِّ بنِ كَعبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ثُمَّ خَرَجتُ مَعَه لَيلةً اُخرىٰ وَالنَّاسُ يُصَلُّونَ بِصَلاةِ قَارِئِهِم قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نِعمَ البِدعَةُ هٰذِه وَالَّتِي يَنَامُونَ عَنها اَفضَلُ مِنَ الَّتِي يَقُومُونَ يُرِيدُ آخِرَ اللَّيلِ وَكَانَ النَّاسُ يَقُومُونَ اَوَّلَه رواه البخاري.(۱)

**ترجمه**: عبدالرحمن بن عبدِ القاري ويلي دي چې زه د حضرت عمر بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره د رمضان المبارک په يوه شپه کښ مسجد ته اُوتم نو خلک په مختلفو ډلو کښ تقسيم شوي وُ يو کس به خاتمه مونځ کاوه يو کس به مونځ کاوه او قوم به د دي پسي اقتدا کړي وه نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل ځما داسي خيال دي چې که چرته زه دا خلک په يو قاري پسي راجمع کړم دا به ډيره بنه وي بيا ئي قصد وکړ نو په اُبي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پسي ئي خلک راجمع کړل يو شپه بيا زه د هغه سره ووتم او خلکو د خپل قاري په اقتداء کښ مونځ کاوه نو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمايل چې دا بنه بدعت دي او هغه کسان چې ويده شوي دي د دي نه بهتر دي د هغه کسانو نه چې ولاړ دي اراده لري د اخري شپي او خلک ولاړ دي په اول د دي کښ د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۷۷۱﴾ وَعَن نَوفَلِ بنِ آيَاسِ الهُذَلِي قَالَ كُنَّا نَقُومُ فِي عَهدِ عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي المَسجِدِ فَيَتَفَرَّقُ هٰهُنَا فِرقَةٌ وَهٰهُنَا فِرقَةٌ وَكَانَ النَّاسُ يَمِيلُونَ اِلىٰ اَحسَنِهِم صَوتاً فَقَالَ عُمَرُ اَرَاهُم قَد اتَّخَذُوا القُرآنَ اَغَانِي اَمَا وَاللهِ لَئِن استَطَعتُ لَاُغَيِّرَنَّ فَلَم يَمكُث اِلَّا ثَلاثَ لَيَالٍ حَتّٰى اَمَرَ اُبَيّاً فَصَلّٰى بِهِم رواه

---

(۱) بخاري كتاب الصوم ج۱ص ۲۶۹ باب فضل من قام رمضان.

البخاري في خلق افعال العباد وابن سعد وجعفر الفريابي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : نوفل بن آياس الهذلي ويلي دي چې مونږ به د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه په زمانه په مسجد کې قيام کاوه نو خلک به ډله ډله وُ يوه ډله به هلته وه بله ډله به دلته وه او خلکو د هغه چا اقتداء کې مونځ کاوه چې اواز به ئې ښه وُ نو حضرت عمر رضي الله عنه وويل چې ځما د دوي په باره کې دا رأيه ده چې دوي قرآن مجيد په تغني سره نيولي او جوړ کړي دي قسم مي دي په الله جل شانه وي که چرې زما وسعه او طاقت وشو نو خامخا به زه دا بدل کړم نو د دريو ورځو نه زيات وخت نهٔ تير شوي چې حضرت أبي رضي الله عنه ته ئې امر کړي وُ چې هغې خلکو ته مونځ وکړي د دي حديث روايت بخاري په خلق افعال العباد کې او ابن سعد او جعفر الفاريابي کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

**دتراويح تحقيق:**

لفظ "تراويح" اصطلاح ګويا که چې وروسته کې مقرر شوي ده ليکن تراويح د عهد نبوي دجماعت نه مشروع شوي دي حضور صلی الله علیه وسلم درمضان المبارک په يو څو شپو کې دتراويح مونځ اوکړو ليکن دفرضيت دويرې او دامت دسست والي دوجې نه يي مواظبت پرې اونکړ البته دحضور صلی الله علیه وسلم په موجودتيا کې صحابه کرامو رضي الله عنهم به په جماعت سره مونځونه کول او حضور صلی الله علیه وسلم به په دې باندې دعلم درلودلو باوجود نکير اونه فرمايل بلکې هغې لره ئې ښه او ګرځول لکه څنګه چې دابي ثعلبه دحديث الفاظ دي : "قد احسنوا وقد اصابوا".

**په جماعت سره دتراويح حکم :**

جمهور علماء امام ابو حنيفه رحمه الله، امام شافعي رحمه الله، او امام احمد رحمه الله او ديو روايت مطابق امام مالک رحمه الله په نزد دتراويح جماعت افضل دې، په همدې باندې دعهد صحابه نه دمسلمانانو تعامل جاري دې او په جماعت سره تراويح ددين دشعائرو نه ګڼلي کيږي. امام مالک رحمه الله او امام ابو يوسف رحمه الله فرمايي چې که انفرادي قرأت اوکړي او تراويح په کور کې اوکړي نو دا ډيره بهتره ده.

بيا داحنافو په نزد تراويح په جماعت سنت مؤکده على الکفايه دې. (معارف السنن ملخصا : ۴/۵۵۵-۵۵۶)

**دحضرت عمر رضي الله عنه دقول تشريح :**

کله چې حضرت عمر رضي الله عنه خلکو لره په مختلفو ټولګو کې ديو ، يو امام شاته دتراويح کولو په وخت اوليدل نو وي فرمايل : "نعم البدعة هذه" ددې عمل نه يي تعبير په بدعت سره ځکه اوکړو

---

(۱) بخاري کتاب الصوم ج۱صـــ ۲۶۹ باب فضل من قام رمضان.

چې دلغت په اعتبار سره هرنوي کار ته بدعت ویل کیږي ، اول به په جومات کې دیو امام قید نه وو بلکې چې دچا مرضي وه هغه به دیو امام شاته یو رکعت اوکړ باقي به یې ددویم او ددریم امام شاته کړل او اوس خو دپوره جومات یو امام مقرر وي .

# ﴿بَابُ التَّرَاوِيحِ بِثَمَانِ رَكَعَاتٍ﴾

## د اته رکعته تراویحو باب

﴿۷۷۲﴾ عَن اَبِي سَلَمَةَ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ اَنَّه سَأَلَ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا كَيفَ كَانَت صَلَاةُ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي رَمَضَانَ فَقَالَت مَا كَانَ يَزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيرِهِ عَلَى اِحدٰى عَشَرَةَ رَكعَةً يُصَلِّي اَربَعاً فَلَا تَسأَلُ عَن حُسنِهِنَّ وَ طُولِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّي اَربَعاً فَلَا تَسأَلُ عَن حُسنِهِنَّ وَ طُولِهِنَّ ثُمَّ يُصَلِّي ثَلَاثاً فَقُلتُ يَا رَسُولَ اللهِ اَتَنَامُ قَبلَ اَن تُوتِرَ قَالَ يَا عَائِشَةُ اِنَّ عَينَيَّ تَنَامَانِ وَلَا يَنَامُ قَلبِي رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د ابي سلمه بن عبدالرحمن نه روایت دي چې ده د حضرت عائشې رضي الله عنها نه پوښتنه کړې وه چې په رمضان المبارک کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم مونځ څنګه وُ نو هغې وفرمایل چې په رمضان او غیر رمضان کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په یوولسو رکعتونو باندې زیاتوالی نه کاوه هغه به څلور رکعته وکړل او د دې د هوالي او اوږدوالي پوښتنه مه کوه بیا به ئې څلور رکعته وفرمایل نو د دې د هوالي او اوږدوالي پوښتنه مه کوه بیا به ئې درې رکعته وفرمایل نو ما وویل چې اې د الله جل شانه رسوله آیا ته د وترو نه مخکې ویده کیږې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې اې عائشې بې شکه څما سترګې اُودې کیږي او زړه مې نه اُوده کیږي . د دې حدیث روایت شیخینو کړي دي .

﴿۷۷۳﴾ و عن جَابِرِ بنِ عَبدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صَلَّى بِنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي شَهرِ رَمَضَانَ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ وَ اَوتَرَ فَلَمَّا كَانَتِ القَابِلَةُ اجتَمَعنَا فِي المَسجِدِ وَرَجَونَا اَن يَخرُجَ فَلَم يَخرُج فَلَم نَزَل فِيهِ حَتّٰى اَصبَحنَا ثُمَّ دَخَلنَا فَقُلنَا يَا رَسُولَ اللهِ اِجتَمَعنَا البَارِحَةَ فِي المَسجِدِ وَ رَجَونَا اَن تُصَلِّيَ بِنَا فَقَالَ اِنِّي خَشِيتُ اَن يُكتَبَ عَلَيكُم رواه الطبراني في الصغير و محمد بن نصر المروزي في قيام الليل و ابن

---

(۱) بخاري كتاب الصوم ج۱ صــ ۲۶۹ باب فضل من قام رمضان ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ صــ ۲۵۴ باب صلوة الليل وعدد ركعات النبي صلى الله عليه وسلم .

خزيمة وابن حبان في صحيحهما وفي اسناده لين.[١]

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم د رمضان المبارک په مياشت کې اته رکعته مونځ وکړ او وتر ئې وفرمايل بيا چې کله راتلونکې شپه کې مونږ په مسجد کې جمع شو او زمونږ طمعه وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به تشريف راوړي رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف رانه وړ او مونږ هم په مسجد کې ؤ تر دې چې مونږ صبا کړ بيا مونږ حاضر او داخل شو نو مونږ وويل چې اې د الله رسوله مونږ بيګاه په مسجد کې راجمع شوي ؤ او زمونږ طمعه وه چې تاسو به مونږ ته په مسجد کې جمع وکړې نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې زه ويريدم چې چرته په تاسو باندې فرض نشي. د دې حديث روايت الطبراني کړې په صغير کې او محمد بن نصر المروزي په قيام ليل کې او ابن خزيمه او ابن حبان په خپلو خپلو صحيحو کتابونو کې او د دې په اسناد کې ضعف او کمزوري ده.

﴿٤٤٣﴾ وَعَنهُ قَالَ جَاءَ أُبَيُّ بنِ كعبٍ رضي الله عنه إِلىٰ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَقَالَ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ كَانَ مِنِّي اللَّيلَةَ شَيءٌ يعني فِي رَمَضَانَ قَالَ وَمَا ذَاكَ يَا أُبَيُّ قَالَ نِسوَةٌ فِي دَارِي قُلنَ اَنَّا لاَ نَقرَأُ القُرآنَ فَنُصَلِّي بِصَلاَتِكَ قَالَ فَصَلَّيتُ بِهِنَّ ثَمَانَ رَكَعَاتٍ وَاَوتَرتُ فَكَانَتْ سُنَّةَ الرِّضَا وَلَم يَقُلْ شَيئًا رواه ابو يعلي و قال الهيثمي اسناده حسن.[٢]

**ترجمه** : او حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې حضرت أبي بن كعب رضي الله عنه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغې نو وې ويل چې اې د الله جل شانه رسوله په نن مبارکه شپه ماته يو، خبره پېښه شوه په رمضان المبارک کې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې اې أبي هغه څه خبره وه أبي رضي الله عنه وويل چې زمونږ کور کې ښځې وې ويلې ؤ چې مونږ قرآن کريم نشو لوستلې مونږ تا پسې په جمع مونځ کوو ابي وويل چې ما هغو ته اته رکعته مونځ وکړ. او وتر مې ورته وکړل نو هغه د رضا سنت ؤ او هيڅ ئې ونه ويل. د دې حديث روايت ابو يعلي کړې دې او هيثمي ويلي دي چې اسناد ئې حسن دې.

---

(١) المعجم الصغير للطبراني صـــ ١٩٠ من اسمه عثمان، قيام الليل كتاب قيام رمضان صـــ ١٥٥ باب صلوة النبي صلى الله عليه وسلم جماعة ليلا ...الخ. صحيح ابن خزيمة جماع ابواب ذكر الوتر ج٢صـــ ١٣٨ باب ذكر دليل بان الوتر ليس بفرض رقم الحديث ١٠٧٠، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج ٥ صـ ٦٢ باب الوتر، رقم الحديث ٢٤٠١.

(٢) مسند ابي يعلى ج٣صـــ ٣٣٦ رقم الحديث ١٨٠١، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج٢صـــ ٧٤ باب في الرجل يؤم النساء.

﴿۷۷۵﴾ و عن مُحَمَّدِ بنِ يوسُفَ عَنِ السَّائِبِ بنَ يزِيدَ اَنَّه قَالَ اَمَرَ عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اُبَيَّ بنِ كعبٍ وَتَمِيمًا الدَّارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا اَن يقُومَا لِلنَّاسِ بِاَحْدٰى عَشْرَةَ رَكعَةً وَكَانَ القَارِئُ يقْرَأُ بِالمِئِينِ حَتّٰى كنَّا نَعتَمِدُ عَلَى العَصٰى مِن طُولِ القِيَامِ وَمَا كنَّا نَنصَرِفُ اِلَّا فِي فُرُوعِ الفَجْرِ رواه مالك و سعيد بن منصور و ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : او د محمد بن يوسف نه روايت دي چې سائب بن يزيد ويلي دي چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ بن الخطاب رَضِيَ اللهُ عَنهُ ابي بن كعب او تميم داري رَضِيَ اللهُ عَنهُ ته حكم وكړ چې د دوي دواړه خلكو ته يؤولس ركعته مونځ وكړي او امام به مئين سورتونه لوستل تر دي چې مونږ به د قيام د اوږدوالي د وجهې نه په خپلو امساګانو باندي تكيه كوله او مونږ به نه فارغيدو مګر د سهر نه لږ مخكې . د دي حديث روايت مالک او سعيد بن منصور او ابوبكر بن ابي شيبه كړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

## تراويح څو ركعته مسنون دي ؟

دتراويح په تعداد ركعاتو كې اختلاف دې :

۱... دائمه اربعو او دجمهور په دې باندې اتفاق دې چې دتراويحو كم ازكم شل ركعته دي البته دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه په يو روايت كې شپږديرش (۳۶) ركعتونه مروي دي ليكن دمالكيو كبارو مثلا ابن عبدالبر ودسوقي وغيره هم شل ركعته اختيار كړي دي .

۲... غير مقلدين د جمهور امت سره اختلاف كوي او داتو (۸) ركعتونو قائله دي .

## اته ركعاتو باندې دلائل:

ددر باب ټول روايتونه په اته ركعاتو دتراويح باندې دلالت كوي ، مثلا :

۱... دعائشي رضي الله عنها حديث : " مَاكانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يزِيدُ فِي رَمَضَانَ وَلَا فِي غَيرِه عَلٰى اِحْدٰى عَشْرَةَ رَكعَةً ......الخ" الحديث . معلومه شوه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په رمضان كې هم دوترو نه علاوه داته ركعاتو نه زياتې تراويح نه كولې همدارنګه تراويح او دتهجد مونځ يو دې ځكه چې دا ثابته نه ده چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په رمضان كې دوه قسمه مونځ جدا جدا كړې وي لهذا همدا اته ركعته تراويح دي .

---

(۱) مؤطا امام مالک كتاب الصلوة في رمضان صـ ۹۸ ماجاء في قيام رمضان ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـ ۳۹۱ باب في صلوة رمضان .

٢... حضور ﷺ هم اته رکعته تراويح کړي کما في حديث جابر بن عبد الله : "صلى بنا رسول الله ﷺ في شهر رمضان ثمان رکعات واوتر.... الخ" الحديث.
٣... حضرت ابي اته رکعاته تراويح کړي دي نو په هغې باندې حضور ﷺ رضامندي ښکاره کړي "فصليت بهن ثمان ركعات واوترت فكانت سنة الرضا ولم يقل شيئا".
٤... حضرت عمر رضي الله عنه هم داته رکعاته دتراويح کولو حکم ورکړ کما في حديث سائب بن يزيد رضي الله عنه.

**جوابونه:**

١... دعائشي رضي الله عنها حديث دتراويح په باره کې نه دې بلکې دتهجد په باره کې دې ځکه چې تراويح دحضور ﷺ په زمانه کې هم او دحضرت عمر رضي الله عنه په زمانه کې هم هميشه دشپې په اوله حصه کې لوستلې شوي دي لهذا دا دوه مستقل مونځونه دي.
٢... دجابر رضي الله عنه :حديث سند مدار په عيسى بن جاريه باندې دې لکه ځنګه چې نسائي او ابوداود "منکر الحديث" ورته ويلې لهذا دحضور ﷺ نه داته رکعاتو ثبوت نشته، او دا په وجه دکمزور کيدو نه دصحيح روايتونو مقابل نشي کيدې.
٣... حديث دابي زر رضي الله عنه، اګر چې دعلامه هيثمي رحمه الله په نزد دحسن په درجه کې دې ليکن ددې حديث په سند کې عيسى بن جاريه دې دکوم متعلق چې پاس تير شو همدارنګه اته رکعاته تراويح عهد فاروقي کې شل رکعاته تراويح باندې عمل داستقرار نه مخکې اختيار کړې شوې وو.
٤... حديث دسائب بن يزيد رضي الله عنه او داسې نور بعض روايتونو کې چې دحضرت عمر رضي الله عنه نه يوولس، ديارلس، او يوويشت رکعتونه ثابت دي نو دا ابتدا واقعه ده حال دا چې دصحابه کرامو رضي الله عنهم په مشورې سره په شل رکعتو باندې دعمل استقرار او اجماع نه وه شوې، چنانچې چې دکله نه شل رکعته شروع شول دهغې نه پس دټولو صحابه کرامو او دتابعينو تعامل په همدې باندې جاري شو او ائمه اربعه هم په دې باندې متفق شول لهذا داستقرار نه مخکې درواياتونه استدلال کول داصولو خلاف دي همدارنګه استقرار دعمل نه مخکې باندې محمولولو نه به تطبيق حاصل شي. (معارف السنن : ٤/٥٤١-٥٥١)

# ﴿بَابٌ فِي التَّرَاوِيحِ بِأَكْثَرَ مِن ثَمَانِ رَكَعَاتٍ﴾

## دا باب د اتو رکعتونه په زیاتو تراویحو کې دي

﴿۷۷۶﴾ عن دَاوُدَ بْنِ الْحُصَيْنِ أَنَّهُ سَمِعَ الْأَعْرَجَ يَقُولُ مَا أَدْرَكْتُ النَّاسَ إِلَّا وَهُمْ يَلْعَنُونَ الْكَفَرَةَ فِي رَمَضَانَ قَالَ وَكَانَ الْقَارِئُ يَقْرَأُ سُورَةَ الْبَقَرَةِ فِي ثَمَانِ رَكَعَاتٍ فَإِذَا قَامَ بِهَا فِي اِثْنَتَيْ عَشْرَةَ رَكْعَةً رَأَى النَّاسَ أَنَّهُ قَدْ خَفَّفَ رواه مالك و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : د داؤد بن حصین نه روایت دي چې هغه د اعرج نه اوریدلي دي چې ویل ئې ما په رمضان المبارک کې خلک موندلي ؤ چې په کفارو به ئې لعنت وایه او قاري به په اتو رکعتونو کې د بقرې سورت لوسته او کله به چې قاري د بقرې سورت په دولسو رکعتونو کې ؤلوسته نو خلکو به ګڼړل چې ده اسان او خفیف مونځ کړي دي. د دې حدیث روایت مالک کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

**د ترجمة الباب نه غرض :**

دا ویل غلط دي چې تراویح اته رکعته دي او بس، بلکې دده په تعداد او رکعاتو کې بتدریج اضافه کیدله، چنانچې ابتداء اته رکعتو کې به کافي قرأت کولې کیدو بیا چې کله قرأت دروند شو داتو پر ځاي دولس رکعتو کې هغومره به قرأت کیدلو څومره چې به په اتو رکعتو کې کیدلو نو دا امر دمصلینو دآسانتیا لپاره اوشو بیا نور تخفیف هم اوکړې شو تول شل رکعته اولوستلې شو او په همدې باندې اجماع شوه نو امت همدې لره قبول کړ او دهمدې مطابق عمل شروع شو . (مترجم)

# ﴿بَابٌ فِي التَّرَاوِيحِ بِعِشْرِينَ رَكَعَاتٍ﴾

## د تراویحو د شلو رکعتونو باب

﴿۷۷۷﴾ عن يزيد بن خُصَيفَةَ عَنِ السَّائِبِ بنِ يزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانُوا يَقُومُونَ عَلَى عَهدِ عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي شَهرِ رَمَضَانَ بِعِشرِينَ رَكعَةً قَالَ وَكَانُوا يَقرَءُونَ بِالمِئِينَ وَكَانُوا يَتَوَكَّئُونَ عَلَى عِصِيِّهِمْ فِي عَهدِ عُثمَانَ بنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مِن شِدَّةِ القِيَامِ رواه البيهقي و اسناده صحيح .[2]

---

(۱) موطا امام مالك كتاب الصلوة في رمضان صـــ ۹۸ باب ماجاء في قيام رمضان .

(۲) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲صـــ ۴۹۶ باب ما روي في عدد ركعات القيام في شهر رمضان.

**ترجمه**: د يزيد بن خصيفه نه روايت دي چې حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه ويلي دي چې د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په زمانه کې خلکو د رمضان په مياشت کې شل رکعته کول راوي ويلي دي چې خلکو به مئين (د سلو ايتونو والا سورتونه) تلاوت کول او د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه په زمانه کې به خلکو د اوږد قيام د وجهې نه په خپلو همساګانو باندي تکيه کوله . د دي حديث روايت البيهقي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۴۷۸﴾ وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ رُومَانَ اَنَّهُ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَقُومُونَ فِي زَمَانِ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ فِي رَمَضَانَ بِثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ رَكْعَةً رواه مالك و اسناده مرسل قوي .[1]

**ترجمه** : يزيد بن رومان ويلي دي چې د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه په زمانه کې به خلکو په رمضان المبارک کې درويشت رکعته اداء کول . د دي حديث روايت مالک کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي .

﴿۴۷۹﴾ وَعَنْ يَحْيَى بْنِ سَعِيدٍ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الْخَطَّابِ رضي الله عنه اَمَرَ رَجُلًا يُصَلِّي بِهِمْ عِشْرِينَ رَكْعَةً رواه ابوبكر بن ابي شيبة في مصنفه و اسناده مرسل قوي .[2]

**ترجمه** : د يحيي ابن سعيد نه روايت دي چې حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه يو کس ته امر وکړ چې خلکو ته شل رکعته وکړي . د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه په خپل مصنف کې کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي.

﴿۴۸۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ الْعَزِيزِ بْنِ رُفَيْعٍ قَالَ كَانَ اُبَيُّ بْنُ كَعْبٍ رضي الله عنه يُصَلِّي بِالنَّاسِ فِي رَمَضَانَ بِالْمَدِينَةِ عِشْرِينَ رَكْعَةً وَيُوتِرُ بِثَلَاثٍ اخرجه ابوبكر بن ابي شيبة في مصنفه و اسناده مرسل قوي[3]

**ترجمه** : عبدالعزيز بن رُفيع ويلي دي چې اُبي ابن کعب رضي الله عنه به خلکو ته په مدينه منوره کې په رمضان المبارک کې شل رکعته تراويح او دري وتر کول ابوبکر ابن ابي شيبه دا حديث په خپل مصنف کې خارج کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي .

---

(۱) مؤطا امام مالك كتاب الصلوة في رمضان صـــ ۹۸ باب ماجاء في قيام رمضان .

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصّلوات ج۲صـــ ۳۹۳ باب كم يصلي في رمضان من ركعة .

(۳) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصّلوات ج۲صـــ ۳۹۳ باب كم يصلي في رمضان من ركعة .

﴿۴۸۱﴾ وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَ اَدْرَكْتُ النَّاسَ وَهُمْ يُصَلُّوْنَ ثَلَاثاً وَعِشْرِيْنَ رَكْعَةً بِالْوِتْرِ رواه ابن ابي شيبة و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** : او عطاء ويلي دي چې ما خلک موندلي ؤ چې د وترو سره به ئي درويشت رکعته کول د دي حديث روايت ابن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۴۸۲﴾ وَعَنْ اَبِي الْخَصِيْبِ قَالَ كَانَ يَؤُمُّنَا سُوَيْدُ بْنُ غَفَلَةَ فِيْ رَمَضَانَ فَيُصَلِّيْ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً رواه البيهقي و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : او ابي الخصيب ويلي دي چې مونږ ته سويد بن غفله په رمضان المبارک کې امامت کاوه نو هغه پنځه ترويحي يعني شل رکعته مونځ کاوه . د دي حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۴۸۳﴾ وَعَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ ابْنُ اَبِيْ مُلَيْكَةَ يُصَلِّيْ بِنَا فِيْ رَمَضَانَ عِشْرِيْنَ رَكْعَةً رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ ته ابن ابي مليکه په رمضان المبارک کې شل رکعته مونځ کاوه . د دي حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۴۸۴﴾ وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ عُبَيْدٍ اَنَّ عَلِيَّ بْنَ رَبِيْعَةَ كَانَ يُصَلِّيْ بِهِمْ فِيْ رَمَضَانَ خَمْسَ تَرْوِيْحَاتٍ وَيُوْتِرُ بِثَلَاثٍ اخرجه ابوبكر بن ابي شيبة في مصنفه و اسناده صحيح .[4]

قَالَ النِّيْمَوِيُّ وَفِي الْبَابِ رِوَايَاتٌ اُخْرٰى اَكْثَرُهَا لَا تَخْلُوْ عَنْ وَهْنٍ وَلٰكِنَّ بَعْضُهَا يُقَوِّيْ بَعْضاً .

**ترجمه** : د سعيد بن عبيد نه روايت دي چې علي ابن ابي ربيعه په رمضان المبارک کې خلکو ته پنځه ترويحي او دري رکعته وتر کول . دا حديث ابوبکر ابن ابي شيبه په خپل مصنف کې خارج کړي دي او اسناد ئي صحيح دي . امام نيموي رحمه الله ويلي دي چې په باب کې نور روايتونه شته چې

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۳۹۳ باب كم يصلي في رمضان من ركعة .

(۲) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲ص ۴۹۶ باب ما روي في عدد ركعات القيام في شهر رمضان .

(۳) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۳۹۳ باب كم يصلي في رمضان من ركعة .

(۴) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۳۹۳ باب كم يصلي في رمضان من ركعة .

اکثرئې د ضعف نه خالي نه دي. خو ولي يو بل ته قوت ورکوي.

## دشلو رکعتو دتراويح ثبوت

دا ټول اته حديثونه دي دکوم نه چې بعض صحيح، بعض مرسل قوي او بعض جيد احسن دي کوم چې دحضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په دور کې شل رکعتو باندې اجماع دمنعقد کيدو او د دېنه پس په همدې باندې دعمل کيدو باندې دلالت کوي دا احاديث دشل رکعتو تراويحو په ثبوت باندې دجمهورو مستدل دي.

### دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ دقول وضاحت:

دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد داهل مدينې والادعمل دير لوي اهميت دې ځکه دوي داهل مدينې والا په شپږديرش(۳۶) رکعته کولو باندې اوموندل نو همدا قول يې اختيار کړو دذې شپږديرش(۳۶) رکعتونو اصل هم دادې چې داهل مکه ؤ دشل رکعتو تراويح کولو معمول وو ليکن هغوي به دهر تراويح نه پس يو طواف کولو، اهل مدينې والا چونکه طواف نه شو کولې، نو ځکه هغوي په ځپل مونځ کې ديو طواف، په ځاي څلور رکعته زيات کړل، دغه شان ددوي په تراويح کې داهل مکو په مقابله کې شپاړس(۱۶) رکعتونه زيات شول ددېنه معلومه شوه چې اصلاً دهغوي په نزد هم رکعات تراويح شل وو. (درس ترمذي: ۲/۶۵۲-۶۵۳)

اهل مدينه هر څلور رکعتونه پس په ترويحه کې منفردا منفردا څلور څلور رکعتونه کول. (الدر المنضود: ۲/۵۶۲)

چنانچې ابن الهادي فرمايي: "رأيت عامر بن عبدالله بن الزبير وابا بکر بن حزم ويحي بن سعيد يصلون بين الاشفاع". (المدونه، ص: ۱۳۲) دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ خاص شاګرد ابن وهب رَحِمَهُ اللهُ دشپږديرش رکعاتو والا روايت نقل کوي "عن عبدالله بن عمر بن حفص قال: اخبرني غير واحد: ان عمر بن عبدالعزيز أمر القراء أن يقوموا بذلک ويقرءوا في کل رکعة عشر آيات" (المدونه، ص: ۱۳۱) ددې روايت نه مذکوره توجيه لره تقويت ملاويږي خو بيا هم دصحابه کرامو تعامل زيات لائق دې چې دهمدې کامله اتباع اوکړې شي. (معارف السنن: ۴/۵۴۶)

# ﴿بَابُ قَضَاءِ الْفَوَائِتِ﴾

## د فوت شوو مونځونو د قضاء باب

﴿۷۸۵﴾ عن اَنَسِ بنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَن نَسِيَ صَلاَةً فَليُصَلِّ اِذَا ذَكَرَهَا لاَ كَفَّارَةَ لَهَا اِلَّا ذٰلِكَ وَاَقِمِ الصَّلاَةَ لِذِكرِي رواه الجماعة.[1]

**ترجمه**: د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د چا نه مونځ هير شي چې کله ورياد شي نو ؤدي ئي کړي د دي بلکه کفاره د دي نه په غير نشته او ځما د ياد په وخت کې مونځ وکړئ. د دي حديث روايت د محدثينو جماعت کړي دي.

﴿۷۸۶﴾ و عن جَابِرِ بْنِ عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ عُمَرَ بْنَ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ جَاءَ يَومَ الخَندَقِ بَعدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمسُ فَجَعَلَ يَسُبُّ كُفَّارَ قُرَيشٍ قَالَ يَا رَسُولَ الله مَا كِدتُّ اُصَلِّي العَصرَ حَتّٰى كَادَتِ الشَّمسُ تَغرُبُ قَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَا صَلَّيتُهَا فَقُمنَا اِلٰى بُطحَانَ فَتَوَضَّأَ لِلصَّلاَةِ وَتَوَضَّأنَا لَهَا فَصَلَّى العَصرَ بَعدَ مَا غَرَبَتِ الشَّمسُ ثُمَّ صَلّٰى بَعدَهَا المَغرِبَ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه نه روايت دي چې حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه د خندق په ورځ د نمر پريوتو نه روسته راغلي ؤ نو د قريشو کفارو ته ئي بدي رذي ويلي هغه وويل چې اي د الله جل شانه رسوله د مازيگر مونځ مي نه ؤ کړي تر دي چې نمر دوبيدو ته نزدي شوي ؤ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ما هم د مازيگر مونځ نه دي کړي نو مونږ په بطحان نومي ځاي کې ؤدريدو نو مانځه ته ئي اودس وکړ او مونږ هم د مانځه د پاره اودس وکړ نو هغه د مازيگر مونځ د نمر د پريوتو نه روسته وکړ بيا ئي د دينه روسته د ماښام مونځ وکړ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

(۱) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ صـــ ۸۴ باب من نسي صلوة فليصل اذا ذكرها ...الخ ، مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۳۸ بـــاب قضاء الصلوة الفائتة ...الخ ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ صـــ ۴۳ باب ما جآء في النوم عن الصلوة ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۶۳ باب في من نام عن صلوة او نسيها ، نسائي كتاب المواقيت ج۱ صـــ ۱۰۰ باب فيمن نام عن صلوة ، ابن ماجة ابواب مواقيت الصلوة صـــ ۵۰ باب من نام عن الصلوة او نسيها ، مسند احمد ج۳ صـــ ۲۸۲ .

(۲) بخاري كتاب مواقيت الصلوة ج۱ صـــ ۸۳ باب من صلّي بالناس جماعة بعد ذهاب الوقت ، مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۲۷ بـــاب الدليل من قال الصلوة الوسطي هي صلوة العصر .

﴿۸۷﴾ و عن عَبدِ الله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كانَ يقُولُ مَن نَسِيَ صَلاَةً فَلَمْ يذكرها إلاَّ وَهوَ مَعَ الإِمَامِ فَإِذَا سَلَّمَ الإِمَامُ فَليصَلِّ الصَّلاَةَ الَّتِي نَسِيَ ثُمَّ لِيصَلِّ بَعدَهَا أُخرٰى رواه مالك و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې هغه به ويل د چانه چې مونځ هير شي او بيا د امام سره په بل مانځه كې شامل شي نو كله چې امام سلام وګرځوي نو هغه دي هير شوي مونځ وكړي بيا دي د دې نه روسته هغه بل مونځ وكړي د دې حديث روايت مالک كړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

## په اوقات منهيو كې دمونځ قضا :

دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد په اوقات منهيو كې دقضا مونځ صحيح دې او دحنفيو په نزد په دې كې تفصيل دې هغه دا چې اقات منهيه په دوه قسمه دي : يو هغه كوم كې چې مطلقا مونځ كول جائز نه دي نه قضاءً او نه نفل هغه دري دي : طلوع ، غروب ، وقت الاستواء او دوه وختونه داسي دي كوم كې چې نوافل ممنوع او قضاء مونځ جائز دې يعنې بعد العصر والفجر .

## ترتيب بين الفوائت :

دوقتي او فوت شده مونځونو كې دترتيب قائمولو حكم څه دې ؟

۱...دامام شافعي رحمه الله او دظاهريه په نزد ترتيب واجب نه دې .

۲...دجمهورو علماؤ په نزد ترتيب واجب دې .

**دامام شافعي رحمه الله دليل** : حديث دابن عباس رضي الله عنه: "ان النبي صلى الله عليه وسلم قال : اذا نسي احدكم صلاة فذكرها وهو في صلاة مكتوبة فليتم التي هو فيها . فاذا فرغ عنها قضى التي نسي" په حديث كې موجوده مونځ لره دمكمل كولو نه پس دقضا كولو دمونځ حكم دې ليكن دموجوده مونځ راګرځولو يې نه دي ويلي معلومه شوه چې ترتيب ضروري نه دې . (بداية المجتهد ، ص : ۱۴۹)

## دجمهورو استدلال :

۱... دجابر رضي الله عنه حديث چې حضور صلى الله عليه وسلم دغزوه خندق په ورځ دلمر دوبيدو نه پس دمازيګر مونځ نه مخكې اوكړو ، بيا ماښام اوكړو حالانكه دماښام وخت ډير كم وو ليكن بيا يې هم دترتيب لحاظ اوساتلو .

---

(۱) مؤطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر صــ ۱۵۵ العمل في جامع الصلوة .

۲... دابن عمر رضي الله عنه قول کوم چې صحيح الاسناد دې او دغير مدرک بالقياس کيدو دوجې نه دمرفوع حديث درجه لري .

**دامام شافعي رحمه الله داستدلال جواب :**

دابن عباس رضي الله عنه په سند کې دوه علتونه دي يو دا چې په دې کې عمر بن ابي عمر راوي مجهول دې لهذا ضعيف سند دې دويم دا چې دمکحول سماع دابن عباس رضي الله عنه نه ثابته نه ده لهذا دصحيح روايت په مقابله کې داسي روايت نه استدلال صحيح نه دې . (تحقيق عبدالرزاق المهدي ، بداية المجتهد ، ص: ۱۴۹)

# ﴿أَبوَابُ سُجُودِ السَّهوِ﴾

## د سهوي د سجدو بابونه

دسجده سهوي متعلق يو څو مسئلې :

۱... دسهوي سجده دسهوي په وخت داحنافو په نزد مطلقا واجب ده او دامام شافعي رحمه الله په نزد سنت ده ليکن دامام مالک رحمه الله په نزد که ديو چا دنقصان په بنا باندې وي نو واجب ده او که دزيادت دوجې نه وي نو بيا مستحب ده .

۲... دسجده سهوي لپاره دتکبير افتتاح ضرورت شته يا نه ؟ دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد ضرورت شته خو په شرط ددې چې سجده سهوه دسلام نه پس وي او که قبل السلام وي نو بيا ددې لپاره دتکبير تحريمي حاجت نشته .

۳... دسجده سهوي نه پس په دويم ځل تشهد وئيل ضروري دي يا نه ؟ نو دائمه ثلاثه رحمه الله په نزد که سجده سهوه يې دسلام نه پس کړي وي نو بيا خو به په دويم ځل تشهد وايي ورنه نه به واي ، او دحنفيو په نزد په هر صورت کې به يې وايي . (الدرالمنضود :۲/۳۷۹ ، بداية المجتهد ، ص : ۱۵۴-۱۵۷)

# ﴿بَابُ سُجُودِ السَّهوِ قَبلَ السلامِ﴾

## د سلام نه مخکې د سهوي د سجدي باب

﴿۸۸۸﴾ عَن عَبدِ اللهِ بنِ بُحَينَةَ الاَسَدِيِ حَلِيفَ بَنِي عَبدِ المُطَّلِبِ رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم قَامَ فِي صَلَاةِ الظُّهرِ وَعَلَيهِ جُلُوسٌ فَلَمَّا اَتَمَّ صَلَاتَهُ سَجَدَ سَجدَتَينِ يُكَبِّرُ فِي كُلِّ سَجدَةٍ

وَهوَ جَالِسٌ قَبلَ اَن يُسَلِّمَ وَ سَجَدَهمَا النَّاسُ مَعَه مَكَانَ مَا نَسِيَ مِنَ الجُلُوسِ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه**: د بني عبد المطلب د قبيلې حليف حضرت عبد الله بن بُحينه الاسدي رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د ماسپښين په مانځه کې پاڅيده په داسې حال کې د ده په ذمه باندې قاعده يعني کيناستل وُ نو کله ئې چې مونځ پوره کړ نو دوه سجدې ئې وکړې په هره سجده کې ئې الله اکبر ووايه او هغه ناست وُ د سلام ګرځولو نه مخکې او خلکو هم د ده سره د هير شوي تشهد په ځاي دوه سجدې وکړې د دې حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۷۸۹﴾ وَ عَن اَبِي سَعِيدٍ الخُدرِي رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم اِذَا شَكَّ اَحَدُكم فِي صَلَاتِه فَلَم يدرِ كَم صَلّٰى ثَلَاثًا اَم اَربَعًا فَليطرحِ الشَّكَّ وَليبنِ عَلٰى مَا استَيقَنَ ثُمَّ يسجُدُ سَجدَتَينِ قَبلَ اَن يُسَلِّمَ فَاِن كَانَ قَد صَلّٰى خَمسًا شَفَعنَ لَه صَلَاتَه وَ اِن كَانَ صَلّٰى اِتمَامًا لِاَربَعٍ كَانَتَا تَرغِيمًا لِلشَّيطَانِ رواه مسلم.(۲)

**ترجمه**: حضرت ابي سعيد خدري رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي کله چې د ستاسو د يو کس په خپل مانځه شک شي نو نه پوهيږي چې څو رکعته ئې کړي دي درې ئې کړي او که څلور ئې کړي نو دا دې شک ختم کړي او په يقين دې بنا وکړي بيا دې د سلام نه مخکې دوه سجدې وکړي او که چرته پنځه رکعته ئې کړي وُ نو دا پنځه رکعته دې په دوه وُ سجدو باندې دغه مونځ جفت کړي او که چرته د څلورو رکعتونو د پوره کولو د پاره ئې دا يو رکعت کړي وي نو دا د شيطان د ذليل کولو د پاره دي. د دې حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۷۹۰﴾ وَ عَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ عَوفٍ قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله صلی الله علیه وسلم يَقُولُ اِذَا شَكَّ اَحَدُكم فِي صَلَاتِه فَلَم يدرِ وَاحِدَةً صَلّٰى اَم ثِنتَينِ فَليجعَلها وَاحِدَةً وَ اِذَا لَم يدرِ ثِنتَينِ صَلّٰى اَم ثَلَاثًا فَليجعَلها ثِنتَينِ وَ اِذَا لَم يدرِ ثَلَاثًا صَلّٰى اَم اَربَعًا فَليجعَلها ثَلَاثًا ثُمَّ يسجُدُ اِذَا فَرَغَ مِن صَلَاتِه وَهوَ جَالِسٌ قَبلَ اَن يُسَلِّمَ سَجدَتَينِ رواه احمد وابن ماجه والترمذي و صححه و هو معلول.(۳)

---

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۱ص۱۶۴ باب يكبر في سجدتي السهو، مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۱۱ باب اذا نسي الجلوس في الركعتين ...الخ.

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ص۲۱۱ باب اذا نسي الجلوس في الركعتين ...الخ.

(۳) مسند احمد ج۱ص۱۹۰ ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص۸۶ باب ماجاء فيمن قام من اثنتين ساهيا، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۹۰ باب فيمن يشك في الزيادة والنقصان.

**ترجمه:** حضرت عبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي دي چې فرمايل ئي کله چې ستاسي د يو کس په خپل مانځه کې شک شي نه پوهيږي چې يو رکعت ئي کړي او که دوه رکعته ئي کړي دي نو هغه دي يو رکعت وشميري او چې کنه ورته معلوم نه وي چې دوه رکعته ئي او که دري رکعته ئي کړي دي نو هغه دي دوه وګڼري او کله چې ورته معلوم نه وي چې دري رکعته ئي کړي دي او که څلور رکعته ئي کړي دي نو هغه دي دري رکعته وګڼري کله چې د مانځه نه فارغ شي نو د سلام نه مخکې دي دوه سجدي په ناسته وکړي د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ ابن ماجه او ترمذي کړي دي او ترمذي صحيح ګڼرلي دي او هغه معلول دي.

## سجده سهوه دسلام نه مخکې ده يا سلام نه پس ؟

دسجده سهوې محل بالاتفاق اختتام صلاة دې او خوخه يي ده چې دسلام سره سجده سهوه او کړي يا دسلام نه پس دواړه صورتونه جائز دي خو ليکن افضل کوم يو دې؟ په دې کې اختلاف دې:

۱. دحنفيو په نزد مطلقا بعد السلام ده. ۲. دشافعيه رَحِمَهُ اللهُ په نزد مطلقا قبل السلام ده.

۳. دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد تفصيل دې هغه دا چې که سهوه چې دکوم دوجې نه سجده کوي هغه دنقصان دقبيلې نه وي نو بيا خو به سجده سهوه قبل السلام کوي او که هغه سهوه دزيادت دقبيل نه وي نو سجده سهوه به بعد السلام وي، او چې کله نقصان او زيادت دواړه جمع شي نو نقصان له به غلبه ورکولې شي سجده سهوه به قبل السلام وي.

۴. امام احمد رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې هر يو حديث لره ددې په موقع باندې استعمال کړې شي يعني په کومه سهوه کې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سجده قبل السلام کړې ده مونږ به هم په دې سهوه کې سجده قبل السلام کوو او کومه سهوه کې چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سجده بعد السلام کړې ده په هغې کې به مونږ هم سجده بعد السلام کوو او کوم صورت چې په حديث کې نه وي وارد په هغه صورت کې به يي قبل السلام کوو.

حاصل دا راووت چې ائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ دسجده سهو قبل السلام دافضليت قائله دي او حنفيه دبعد السلام دافضليت قائله دي.

**دائمه ثلاثه** رَحِمَهُمُ اللهُ **استدلال**: دباب دري واړه حديثونه ( حديث دعبدالله بن بحينه ، حديث دابو سعيد خدري . حديث دعبدالرحمن بن عوف رَضِيَ اللهُ عَنهُ ) دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ مستدل دي ځکه چې په دري واړو روايتونو کې "**قبل ان يسلم**" الفاظ موجود دي.

دحنفيو استدلال او دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ داستدلال جواب درارون باب تر لاندې وګورئ.

**مسئلة الشک في الصلاة** : که يو کس ته دمونځ په حالت کې درکعتونو په عدد کې شک او شبه وي نو هغه ته څه کول پکار دي ؟

۱... دحنفيو په نزد دا مسئله مثلث ده ددې درې صورتونه دي چنانچې کوم کس ته چې په مونځ کې داسې شک او شبه په کثرت سره نه راځي بلکې اتفاقا کله راځي نو دده لپاره استيناف دې يعنې دسرنه دې مونځ راوګرځوي ، او کوم کس ته چې شک او شبه په کثرت سره راځي نو هغه لپاره تحري ده يعنې سوچ دې اوکړي ، دتحري نه پس چې کوم طرفته رجحان زيات وي هغه دې اختيار کړي او که دسوچ نه باوجود که يو طرفته غلبه نه وي نو بيا بنا علی الاقل المتيقن دي.

۲... امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ مطلقا دبناء علی الاقل قائله دي او په روايتو کې دتحري چې کوم ذکر راځي دهغې په باره کې هغه فرمايي چې دتحري معنی ده قصد کول يعنې چې کومه خبره صواب او صحيح ده هغې لره اختيارول ، هغه فرمايي چې صواب او صحيح شئ اقل متيقن وي .

دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ مسلم دادې که مونځ کونکې مستنکح وي يعنې کوم ته چې شک او شبه په کثرت سره راځي دهغه لپاره حکم دتحري دې خپلې تحرې باندې دې عمل اوکړي او که غير مستنکح دې نو هغه له پکار دي چې بناء علی اليقين دي اوکړي .

۴... دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول دادې چې په دې مسئله کې دامام او منفرد تر مينځ فرق دې امام لپاره تحري او ظن غالب باندې عمل کول دي او منفرد لپاره بناء علی الاقل.

دمذکوره تفصيل نه هم معلومه شوه چې دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ نه څوک هم داستيناف قائله نه دي بلکې تحري يا بناء علی الاقل ، هغه دا وايي چې داستيناف روايت ضعيف دې . حنفيه په دې سلسله کې داحاديثو تر مينځ دتطبيق صورت اختياروي .

## ﴿ بَابُ سُجُودِ السَّهوِ بَعدَ السَّلَامِ ﴾

## د سلام نه روسته د سهوي د سجدي باب

﴿۵۹۱﴾ عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِنصَرَفَ مِن اثنَتَينِ فَقَالَ لَه ذُو اليدَينِ أَقُصِرَتِ الصَّلَاةُ أَم نَسِيتَ يا رَسُولَ الله قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَصَدَقَ ذُو اليدَينِ فَقَالَ النَّاسُ نَعَم فَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّی اِثنَتَينِ أُخرَيينِ ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ كَبَّرَ فَسَجَدَ مِثلَ سُجُودِه أَو

أَطْوَلَ ثُمَّ رَفَعَ رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په دوه ؤ ركعتونو باندې سلام ؤ گرځاوه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ذواليدين ووېل چې آيا مونځ كم شوى دى او كه ستا نه هېر شوي دي اې د الله جل شانه رسوله صلى الله عليه وسلم نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې آيا ذواليدين رېښتيا وېلي دي نو خلكو ووېل چې هو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم پاڅېده نور دوه ركعته مونځ ئې وكړه بيا ئې سلام واړاوه بيا ئې تكبير ووايه نو سجده ئې وكه په مثال د سجدې خپلې او د هغه نه اوږده بيا ئې سر مبارك اوچت كړ . د دې حديث روايت شيخينو كړي دي .

﴿۴۹۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ جَعْفَرٍ رضي الله عنه أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم قَالَ مَنْ شَكَّ فِي صَلَاتِهِ فَلْيَسْجُدْ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا سَلَّمَ رواه احمد و ابوداود والنسائي والبيهقي و قال اسناده لا بأس به .[2]

**ترجمه** : د حضرت عبد الله بن جعفر رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي د چا چې په خپل مانځه كې شک شي نو د سلام نه روسته دې د سهوې دوه سجدې وكړي . د دې حديث روايت احمد او ابوداؤد او نسائي او بيهقي كړي دي چې د دې اسناد لا بأس دي .

﴿۴۹۳﴾ وَعَنْ عَلْقَمَةَ أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رضي الله عنه سَجَدَ سَجْدَتَيِ السَّهْوِ بَعْدَ السَّلَامِ وَ ذَكَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم فَعَلَ ذٰلِكَ رواه ابن ماجه و آخرون و اسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : د علقمه نه روايت دي چې ابن مسعود رضي الله عنه د سلام نه روسته د سهوې دوه سجدې وكړې او دا خبره ئې ياده كړه چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم هم دغسې كول . د دې حديث روايت ابن ماجه او نورو كړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۴۹۴﴾ وَعَنْ قَتَادَةَ عن أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّه قَالَ فِي الرَّجُلِ يَهِمُ فِي صَلَاتِهِ لَا يَدْرِي أَزَادَ أَمْ نَقَصَ قَالَ يَسْجُدُ سَجْدَتَيْنِ بَعْدَ مَا يُسَلِّمُ رواه الطحاوي و اسناده صحيح .[4]

---

(۱) بخاري كتاب التهجد ج۱ صـ ۱۶۴ باب من لم يتشهد في سجدتي السهو ....الخ مسلم كتاب المساجد ج۱ صـ ۲۱۳ باب من ترك الركعتين او نحوهما ...الخ .

(۲) مسند احمد ج۱ صـ ۲۰۵ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۴۸ باب من قال بعد التسليم . نسائي كتاب السهو ج۱ صـ ۱۸۵ باب التحري ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۲ صـ ۳۳۶ باب من قال يسجد هما بعد التسليم ...الخ .

(۳) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـ ۸۶ باب ماجاء فيمن سجدهما بعد السلام .

(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۹۹ باب سجود السهو .

**ترجمه** : د قتاده نه روایت دي چې حضرت انس رضي الله عنه د یو کس په باره کې ویلي ؤ چې هغه ته په خپل مانځه کې وهم راغې او نه پوهیږي چې زیات ئي ؤکړ او که کم ئي ؤکړ انس رضي الله عنه ویل ؤ چې د سلام نه روسته دي دوه سجدي وکړي . د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحیح دي .

**﴿۴۹۵﴾ و عن ضَمُرَةَ بنِ سَعِيدٍ اَنَّه صَلّٰى وَرَاءَ اَنَسِ بنِ مَالِك رضي الله عنه فَاَوهَمَ فَسَجَدَ سَجدَتَينِ بَعدَ السَّلاَمِ رواه الطحاوي و اسناده حسن .**[1]

**ترجمه** : د ضُمره بن سعید څخه روایت دي چې دوي د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روسته مونځ کړي ؤ نو هغه په شک کې پریوتي ؤ نو د سلام نه روسته ئي دوه سجدي وکړي . د دي حدیث روایت طحاوي کړي او اسناد ئي حسن دي .

**﴿۴۹۶﴾ و عَن عَمرِو بنِ دِينَارٍ عَن عَبدِ الله بنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنه قَالَ سَجدَتَا السَّهوِ بَعدَ السَّلاَمِ رواه الطحاوي و اسناده حسن .**[2]

**ترجمه** : د عمرو بن دینار نه روایت دي چې عبدالله بن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې د سهوي دوه سجدي د سلام نه روسته دي . د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

## دسجده سهوي دبعدالسلام دلائل :

د دې باب ټول حدیثونه دسجده سهوي بعد السلام کیدو کې د حنفیو مستدل دي د دې په سلسله کې یو مضبوط دلیل دابوداود شریف حدیث ثوبان رضي الله عنه دې دکوم الفاظ چې دادي " **عن النبي صلی الله علیه وسلم قال : لکل سهو سجدتان بعد...**(ابوداود : ۱۴۹/۱) دا حدیث قولي دې نه فعلي او په دې کې یوه قاعده کلیه بیان کړي شوي ده او هر قسمه سهو ( چې که کموالي وي او زیاتوالي ) لپاره دسجده بعد السلام حکم دې دباب داحادیثو اهم نکات دادي :

۱... اولنې حدیث عام طور سره " **حدیث ذي الیدین** " په نوم سره مشهور دې ، ددېنه استدلال په دې طور باندې دې چې حضور صلی الله علیه وسلم دماسپښین یا دمازدیگر مونځ دوه رکعت اوکړل او بیا دحضرت ذوالیدین توجه راوستلو باندې حضور صلی الله علیه وسلم باقي مونځ پوره کړ او په آخر کې یې

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۹۹ باب سجود السهو .
(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص [illegible] باب سجود السهو .

بعد السلام سجده سهوه اوکړه.

۲... دویم حدیث مسئلة الشک سره متعلق دې او په هغې کې هم "بعد ماسلم" الفاظ دي.

۳... څلورم او پنځم حدیث کې د حضرت انس رضي الله عنه په فتوی باندې عمل دې کوم کې چې که کمي وي او که زیاتوالې په دواړو صورتونو کې د بعد السلام حکم دې.

۴... شپږم حدیث کې د ابن عباس رضي الله عنه فتوی ده چې سجده سهوه بعد السلام ده.

## دائمه ثلاثه رحمهم الله د استدلال جوابونه:

۱... "قبل ان یسلم" والا روایات بیان جواز باندې محمول دي.

۲... دا هم کیدې شي چې په دې کې " قبل ان یسلم " نه مراد هغه سلام وي کوم چې د سجده سهوې او د تشهد لوستلو نه پس په آخر کې کیږي.

۳... حدیث د عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه سندا معلول دې.

## د حنفیو وجوه ترجیح:

۱... د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه روایت " ثم یسلم ثم لیسجد سجدتین " په صحیحینو کې مروي دي د دېنه علاوه په دې سلسله کې څه قولي حدیث متفق علیه نه دي بلکې هغه د امام مسلم رحمه الله د متفرداتو نه دي.

۲... بعد السلام په سجده کولو کې سلام او د تشهد زیاتوالې دې لهذا د مشقت زیاتیدو د وجې نه ثواب به هم په هغې کې زیات وي.

۳... حضرت عمر، ابن مسعود، ابن عباس، انس رضي الله عنهم او نور فقهاء صحابه رضي الله عنهم هم دغه قول دي. (معارف السنن: ۴/۴۸۷ - ۴۸۹)

## ﴿بَابُ مَا يَسَلِّمُ ثُمَّ يَسْجُدُ سَجدَتَي السَّهوِ ثُمَّ يَسَلِّمُ﴾

**باب دې په بیان د هغه احادیثو کې چې سلام به کړ خوي بیا به د سهوې دوه سجدې کوي بیا به سلام کړ خوي**

﴿۴۷﴾ عن عَلقَمَة قَالَ: قَالَ عَبدُ الله رضي الله عنه صَلَّي النَّبِي صلى الله عليه وسلم قَالَ اِبرَاهِيمُ لاَ اَدرِي زَادَ اَو نَقَصَ فَلَمَّا سَلَّمَ قِيلَ لَه يَا رَسُولَ الله اَحَدَثَ فِي الصَّلاَةِ شَيءٌ قَالَ وَمَا ذَاكَ قَالُوا صَلَّيتَ كَذَا وَ كَذَا فَثَنَى رِجلَه وَاستَقبَلَ وَ سَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ سَلَّمَ فَلَمَّا اَقبَلَ عَلَينَا بِوَجهِه قَالَ اِنَّه لَو حَدَثَ فِي الصَّلاَةِ شَيءٌ

لَنَبَّأْتُكُمْ وَلٰكِن إِنَّمَا اَنَا بَشَرٌ اَنْسٰى كَمَا تَنْسَوْنَ فَإِذَا نَسِيتُ فَذَكِّرُونِي رواه البخاري و آخرون.[1]

**ترجمه**: علقمه ويلي دي چې حضرت عبدالله رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم مونځ وكړ ابراهيم ويلي دي چې زه پوه نه يم چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خپل مانځه كې زياتوالي كړي او كه كم والي ئي كړي ؤ نو كله ئي چې سلام واړاوه نو ورته وويلي شو چې اي د الله جل شانه رسوله آيا په مانځه كې څه نوي حكم راغلي دي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هغه څه شئ دي خلكو وويل چې دومره دومره مونځ مو وكړ نو خپله خپه ئي خوره كړه او قبلې طرف ته ئي خپل مخ مبارك واړاوه او دوه سجدې ئي وكړې بيا ئي سلام واړاوه نو كله چې مونږ طرف ته متوجه شو وي فرمايل كه چرته په مانځه كې نوي حكم راشي نوزه خامخا تاسي خبروم خو ولې بې شكه زه بشريم زمانه هم خبره هيريږي لكه څنګه چې ستاسي نه هيريږي نو كله چې ځما نه خبره هيره شي نو ماته ئي رآيادوئ كله چې يو ستاسي ته په مانځه كې شك پيدا شي نو صحيح فكر او سوچ دې وكړي او خپل مونځ دې په هغې باندې پوره كړي بيا دې سلام وګرځوي بيا دې دوه سجدې وكړي. د دې حديث روايت بخاري او نورو محدثينو كړي دې.

﴿۴۹۸﴾ وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم صَلَّى الْعَصْرَ فَسَلَّمَ فِي ثَلَاثِ رَكَعَاتٍ ثُمَّ دَخَلَ مَنْزِلَهُ فَقَامَ اِلَيْهِ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ الْخِرْبَاقُ وَكَانَ فِي يَدَيْهِ طُولٌ فَقَالَ يَارَسُولَ اللهِ فَذَكَرَ لَهُ صَنِيعَهُ وَخَرَجَ غَضْبَانَ يَجُرُّ رِدَاءَهُ حَتّٰى انْتَهٰى اِلَى النَّاسِ فَقَالَ اَصَدَقَ هٰذَا قَالُوا نَعَمْ فَصَلّٰى رَكْعَةً ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ سَلَّمَ رواه الجماعة الا البخاري والترمذي.[2]

**ترجمه**: د حضرت عمران بن حصين نه روايت دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د مازيګر مونځ وكړ نو په دريو ركعتونو ئي سلام واړاوه بيا ئي خپل كور ته تشريف ويوړ نو هغه ته يو سړي پاڅيده چې هغه ته خرباق ويلې شو او په لاسونو كې ئي اوږدوالي ؤ نو وي ويل چې اي د الله جل شانه رسوله نو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته ئي د هغه مبارك فعل ذكر وكړ په غصه كې راؤت څادر ئي د ځان پسې راكوده تر دې پورې چې خلكو ته ورسيده نو وي فرمايل آيا دا رښتيا وائي خلكو وويل چې هو نو

---

(۱) بخاري كتاب الصّلوة ج۱ صـــ ۵۸ باب التوجه نحو القبلة.

(۲) مسلم كتاب المساجد ج۱ صـــ ۲۱۴ باب من ترك الركعتين او نحوهما ...الخ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـــ ۱۴۶ بـاب في سـجدتي السهو، نسائي كتاب السّهو ج۱ صـــ ۱۸۳ باب ما يفعل من سلم من اثنتين ....الخ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات صـــ ۸۶ بـاب فيمن سلم من ثنتين او ثلث ساهيا، مسند احمد ج۴ صـــ ۴۲۷.

يو ركعت مونځ ئي وكړ بيا ئي سلام وګرځاوه بيا ئي دوه سجدي وكړي بيا ئي سلام وګرځاوه . د دي حديث روايت د بخاري او ترمذي نه په غير جماعت كړي دي .

﴿۷۹۹﴾ وَ عَن زِيَادِ بنِ عَلاَقَةَ قَالَ صَلّٰى بِنَا المُغِيرَةُ بنُ شُعبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَلَمَّا صَلّٰى رَكعَتَينِ قَامَ وَلَمْ يَجلِسْ فَسَبَّحَ مَن خَلفَهُ فَأَشَارَ اِلَيهِمْ اَنْ قُومُوا فَلَمَّا فَرَغَ مِن صَلاَتِهِ سَلَّمَ ثُمَّ سَجَدَ سَجدَتَينِ وَ سَلَّمَ رواه احمد والترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح .[1]

**ترجمه** : زياد بن علاقه ويلي دي چې مونږ ته مغيره ابن شعبه رضي الله عنه مونځ وكړ نو كله ئي چې دوه ركعته وكړل نو پاڅيده او كينه ناست نو څوک چې د دوي نه روسته ؤ هغو سبحان الله وويل نو مغيره رضي الله عنه هغو ته اشاره وكړه چې ؤدريږئ كله چې د خپل مانځه نه فارغ شو سلام ئي وګرځاوه بيا ئي دوه سجدي وكړي او سلام ئي ؤګرځاوه . د دي حديث روايت احمد رحمه الله او ترمذي كړي دي او ويلي ئي دي چې دا حديث حسن صحيح دي .

﴿۸۰۰﴾ و عَن اَبِي قُلاَبَةَ عَن عِمرَانَ بنِ حُصَينٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ فِي سَجدَتَيِ السَّهوِ يُسَلِّمُ ثُمَّ يَسجُدُ ثُمَّ يُسَلِّمُ رواه الطحاوي و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : د ابي قلابه نه روايت دي چې حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه د سهوي د دوه ؤ سجدو په باره كې ويلي دي چې سلام به وګرځوي بيا به سجده وكړي بيا به سلام وګرځوي . د دي حديث روايت طحاوي رحمه الله كړي دي او اسناد ئي حسن دي .

**دترجمة الباب نه غرض** :دباب حديثونه په دې باب كې صريح دي چې د سجده سهوي نه قبل او بعد كې سلام دې نهذا بعد السلام د سجده سهوې په اثبات كې د حنفيو مستدل به ګرځو .

# ﴿ بَابُ صَلاَةِ المَرِيضِ ﴾

## د مريض د مانځه باب

﴿۸۰۱﴾ عن انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صَلّٰى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي مَرَضِه خَلفَ اَبِي بَكرٍ قَاعِدًا فِي ثَوبٍ مُتَوَشِّحاً بِهِ رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح .(۳)

---

(۱) مسند احمد ج۴ صـــ ۲۴۷ ، ترمذي ابواب الصلوات ج۱صـــ ۸۳ باب ماجاء في الامام ينهض في الركعتين.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۹۹ باب سجود السهو .

(۳) ترمذي ابواب الصلوة ج۱صـــ ۸۳ باب ماجاء اذا صلى الامام قاعداً فصلوا قعوداً باب منه .

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپله بيمارئ کې رومال باندي په داسي حال کې چې په مبارک سر باندي ئي خور کړي ؤ د حضرت ابوبکر رضي الله عنه پسي په ناسته مونځ وکړ. د دي حديث روايت ترمذي کړي او ويلي ئي دي چې دا حديث حسن صحيح دي.

﴿۸۰۲﴾ و عَن عَائِشَةَ رضي الله عنها قَالَ صَلَّى رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم خَلفَ أَبِي بَكرٍ رضي الله عنه فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ قَاعِداً رواه الترمذي و صححه.[1]

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د حضرت ابوبکر رضي الله عنه پسي په ناسته په هغه ناروغئ کې مونځ وکړ په کومه ناروغئ کې چې وفات شوي ؤ. د دي حديث روايت ترمذي کړي او صحيح ئي گنړلي دي.

﴿۸۰۳﴾ و عَن عِمرَانَ بنِ حُصَينٍ رضي الله عنه قَالَ كَانَت بِي بَوَاسِيرُ فَسَأَلتُ النَّبِي صلى الله عليه وسلم فَقَالَ صَلِّ قَائِماً فَإِن لَم تَستَطِع فَقَاعِداً فَإِن لَم تَستَطِع فَعَلَى جَنبٍ رواه الجماعة الا مسلماً و زاد النسائي فَإِن لَم تَستَطِع فَمُستَلقِياً لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفساً إِلَّا وُسعَهَا.[2]

**ترجمه**: او حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه ويلي دي چې ځما بواسير ؤ نو ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه پوښتنه وکړه نو هغه وفرمايل چې په ولاړه مونځ کوه که د ولاړي طاقت دي نه ؤ نو په ناسته ئي کوه او که په ناسته ئي نشي کولي نو په اړخ باندي ئي کوه. د دي حديث روايت د مسلم نه په غير جماعت کړي دي او نسائي دا الفاظ زيات کړي دي نو که د دي طاقت هم نه وي نو بيا ئي په ستوني ستاغ وکړه. الله جل شانه هر نفس ته د هغه د طاقت په اندازه تکليف ورکوي.

﴿۸۰۴﴾ و عن نَافِعٍ أَنَّ عَبدَ اللهِ بنَ عُمَرَ رضي الله عنه كَانَ يَقُولُ إِذَا لَم يَستَطِعِ المَرِيضُ السُّجُودَ أَومَا إِيمَاءً وَلَم يَرفَعْ إِلَى جَبهَتِهِ شَيئاً رواه مالك و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه**: د نافع نه روايت دي چې عبدالله بن عمر رضي الله عنه به ويل کله چې ناروغ د سجدي طاقت نلري د سر په اشاره دي مونځ وکړي او خپل تندي ته دي څه شي نه اوچتوي. د دي حديث روايت

---

(۱) ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۸۳ باب ماجآء اذا صلّى الامام قاعداً فصلّوا قعودًا باب منه.

(۲) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱ص۱۵۰ باب اذا لم يطق قاعداً ...الخ، ترمذي ابواب الصلوة ج۱ص۸۵ باب ماجآء ان صلوة القاعد علي النصف ...الخ، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱ص۱۳۷ باب في صلوة القاعد، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوة ص۸۷ باب ماجاء في صلوة المريض، مسند احمد ج۴ص۴۲۶.

(۳) مؤطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ص۱۵۴ باب العمل في جامع الصلوة.

مالک کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

## دمريض مختلف حالات او مسئلې

**اولنې مسئله** : صَلّٰى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلفَ اَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي مَرَضِهِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ قَاعِداً
ددې روايت نه دا معلومه شوه چې حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مرض وفات کې دامونځ دحضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنهُ په اقتدا کې اوکړو او دا هم معلومه شوه که مريض ته په ولاړې باندې قدرت نه وي حاصل نو په ناسته فرض مونځ هم کولې شي ځکه چې په داسې صورت کې فرض قيام دده دذمې نه ساقطيږي.
صلاة القاعد خلف القائم په جواز کې هيڅ شبه نشته لکه څنګه چې دباب روايات په دې باندې دلالت دي البته صلاة القائم خلف القاعد کې اختلاف دي ليکن دلته دا مسئله دبحث لاندې نه ده.

**دويمه مسئله** : دحضرت عمران بن حصين رَضِيَ اللهُ عَنهُ په حالت دمرض کې دمونځ تفصيل په مختلفو رواياتو کې مروي دي فقهاء فرمايي مريض که په يو طور باندې هم دقيام قدرت اونلري ( نه پخپله اودريږي او نه په يو شي باندې ډډه ووهي چې اودريږي ) نو هغه ته پکار دي چې په ناسته دې مونځ اوکړي او که په دې حالت کې که سجده اوکړې شي نو بهتره ورنه رکوع او سجده دې دسر په اشارې سره اوکړي. رکوع لپاره يې چې څومره سر لاندې کړې دې په سجده کې دې هغې نه زيات سر لاندې کړي ليکن دسر په زمکه لګيدل ضروري نه دي.

**قوله " فان لم تستطع فقاعدا "** : په ناسته که مونځ اوکړې شي نو دناستې طريقه به څه وي ؟ په دې کې دامام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد افتراش اولى دې لکه څنګه چې په التحيات کې کيني ، همدغه يو روايت دمزني رَحِمَهُ اللهُ دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ نه نقل کړې دې. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او احمد او صاحبينو رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد تربيع ناسته اولى ده ، همدغه يو روايت دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ نه دې.

## دمعذور مونځ مستلقيا وي يا مضطجعا ؟

که په يو طريقې سره هم ناسته مشکله وي نو بيا دې په ملاسته مونځ اوکړي. په ملاسته دمونځ دوه صورتونه دي. يو مضطجعا على يمينه يعنې په ښي اړخ باندې او دويم مستلقيا يعنې ستونې ستاغ خو په دې طور باندې چې مخ او قدمونه يې قبلې طرفته وي.
دجمهورو په نزد اولنې صورت اولى دې اګر چې دواړه جائز دي ، شافعيه دوجوب قائله دي ، او دمالکيه او حنابلو په نزد صرف داستحباب درجه ده دجمهور دحديث الفاظ " فعلى جنب " نه استدلال کوي.

حنفيه دا وايي چې د مستلقي اشاره به د کعبې د فضا طرفته واقع وي او د کعبې فضا اسماني قبله ده په خلاف د مضطجع چې دده اشاره به خپل قدمونو طرفته وي نه قبلې طرفته . د حنفيو داستدلال حديث الفاظ " فأن لم تستطع فمستلقيا " نه دي .

**قوله** " ولم يرفع الى جبهته شيئا " : يعنې که په ملاسته يا په ناسته چې کله د سر په اشارې سره رکوع او سجده کوي نو ددې لپاره به څه شي نه راوچتوي او دا مکروه تحريمي دي او که راووچت کړي شو نو بيا هم سر ټيټول فرض دې او پکار ده چې سر د رکوع په نسبت په سجده کې زيات ښکته کړي . (البحر الرائق ۲/۱۱۲ – ۱۱۳ ، الدر المنضود : ۲/۳۵۴)

# ﴿ بَابُ سُجُودِ الْقُرآنِ ﴾

## د قرآن کريم د تلاوت د سجدي باب

﴿۸۰۵﴾ عن عبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ قَرَأَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّجْمَ بِمَكة فَسَجَدَ فِيهَا وَسَجَدَ مَن كَانَ مَعَه غَيرَ شَيخٍ اَخَذَ كفًّا مِن حَصًى اَو تُرَابٍ وَرَفَعَه إِلى جَبْهَتِه وَقَالَ يكفِينِي هٰذَا فَرَأَيتُه بَعد قُتِلَ كَافِراً رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مکه مکرمه کې د النجم سورت تلاوت نو په هغې کې ئې د تلاوت سجده وکړه او څوک چې ورسره وُ هغو هم سجده وکړه خو ولې يو شيخ د خاورې او ګيټکيو يو موټي تندي ته را اوچت کړو وېل چې ماته دا کافي دي ما د دې واقعې نه روسته هغه ليدلي وُ چې د کفر په حالت کې وژلي شوي وُ . د دې حديث روايت شيخينو کړي .

﴿۸۰۶﴾ وعنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ بِالنَّجْمِ وَسَجَدَ مَعَه الْمُسْلِمُونَ وَالْمُشرِكونَ وَالْجِنُّ وَالإِنْسُ رواه البخاري .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د النجم د سورت سجده وکړه او د ده سره مسلمانانو ، مشرکانو جنياتو پېريانو ، او انسانانو سجده وکړه . د دي

---

(۱) بخاري ابواب ما جآء في سجود القران ....الخ ج۱ص ۱۴۶ باب ماجآء في سجود القرآن ...الخ ، مسلم كتاب المساجد ج۱ص ۲۱۵ باب سجود التلاوة .

(۲) بخاري ابواب ماجآء في سجود القرآن ....الخ ج۱ص ۱۴۶ باب سجود المسلمين مع المشركين .

حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۸۰۷﴾ وَعَنه قَالَ صٓ لَيسَ مِن عَزَائِمِ السُّجُودِ وَ قَد رَأَيتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَسجُدُ فِيهَا رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : او حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې د (صٓ) د سورت سجده په واجبو سجدو کې نه ده او په تحقيق ما نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ليدلي وُ چې په دي سورت کې ئي سجده کوله. د دي حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۸۰۸﴾ وَ عَنه اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ فِي صٓ وَ قَالَ سَجَدَهَا دَاوُدُ عَلَيهِ السَّلَامُ تَوبَةً وَنَسجُدُهَا شُكرًا رواه النسائي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د (ص) په سورت کې سجده کړي وه او فرمايلي ئي وُ چې په دي کې داؤد عَلَيهِ السَّلَامُ د توبي د پاره سجده کړي وه او مونږ يې د شکر سجده کوو. د دي حديث روايت نسائي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۰۹﴾ و عن اَبِي سَعِيدِ الخُدرِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه قَالَ قَرَأَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَهوَ عَلَى المِنبَرِ فَلَمَّا بَلَغَ السَّجدَةَ نَزَلَ فَسَجَدَ وَ سَجَدَ النَّاسُ مَعَه فَلَمَّا كَانَ يومٌ آخَرُ قَرَأَ فَلَمَّا بَلَغَ السَّجدَةَ تَشَزَّنَ النَّاسُ لِلسُّجُودِ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا هِي تَوبَةُ نَبِي وَ لٰكِنِّي رَأَيتُكُم تَشَزَّنتُم لِلسُّجُودِ فَنَزَلَ فَسَجَدَ وَ سَجَدُوا رواه ابوداود و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : د حضرت ابوسعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي ده ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په منبر باندي د سورت قرأت فرمايه کله چې د سجدي ايت ته ورسيده راکوز شو نو سجده ئي وکړه او د ده سره خلکو هم سجده وکړه بيا چې کله بله ورځ شوه هغه د دي سورت تلاوت وفرمايه کله چې د سجدي ايت ته ورسيده خلک د سجدي د پاره تيار شوي وُ نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې دا د يو نبي توبه وه لکن ما تاسو وليدئ چې سجدي ته تيار شوي استئ نو راکوز شو سجده ئي وفرمايله او خلکو هم سجده وکړه. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(۱) بخاري ابواب ماجاء في سجود القرآن ...الخ ج۱ص ۱۴۶ باب سجدة ص.

(۲) نسائي كتاب الافتتاح ج۱ص ۱۵۲ باب سجود القرآن السجود في ص.

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۲۰۰ باب السجود في ص.

﴿۸۱۰﴾ وعَنِ العَوامِ بنِ الحَوشَبِ قَالَ سَأَلتُ مُجَاهداً عَنِ السُّجُودِ فِي ص فَقَالَ سَأَلتُ عَنها ابنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَقَالَ أُسجُد فِي ص فَتَلَا هٰؤُلَاءِ الأيَاتِ مِنَ الأنعَامِ وَمن ذُرِّيتِه دَاؤدَ وَ سُلَيمَانَ إلى قَولِه اولٰئِكَ الَّذِينَ هدَي الله فَبِهدَاهمُ اقتَدِه رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : عوام بن حوشب ويلي دي چې ما د مجاهد نه د ( ص ) د سورت د سجدي په باره کې پوښتنه وکړه هغه وويل چې ما په دي باره کې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه پوښتنه کړي وه نو هغه وويل چې زه د (ص) په سورت کې سجده کوم بيا هغه د انعام د سورت دغه ايتونه تلاوت کړل : ومن ذريته داؤد وسليمان تر دي قوله پوري چې ( اولئك الذين هدالله فبهدٰهم اقتده ). د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۱۱﴾ و عَن اَبِي سَلَمَة قَالَ رَأَيتُ اَبَا هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَرَأَ إِذَا السَّمَاءُ انشَقَّت فَسَجَدَ بِها فَقُلتُ يا اَبَاهرَيرَة اَلم اَرَك تَسجُدُ قَالَ لَو لَم اَرَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سَجَدَ لَم اَسجُد رواه الشيخان.[2]

**ترجمه** : د ابي سلمه نه روايت دي ده ويلي دي چې ما د ابوهريره رضي الله عنه ليدلي وُ چې د ( اذا السماء انشقت ) سورت ئي تلاوت کاوه نو په هغي سره ئي سجده وکړه نو ما وويل اي ابوهريره ما ته په سجده نه ئي ليدلي ابوهريره رضي الله عنه وويل چې که چرته ما نبي کريم صلى الله عليه وسلم نه وي ليدلي چې سجده ئي کړي وه ما به سجده نه وي کړي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۸۱۲﴾ و عَن مُجَاهِدٍ قَالَ سَأَلتُ ابنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ السَّجدَة الَّتِي فِي حم قَالَ أُسجُدها بِآخِرِ الآيَتَينِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : مجاهد ويلي دي چې ما د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه د ( حم ) د سورت د سجدي په باره کې پوښتنه کړي، وه هغه وويل چې زه د دوه وُ ايتونو په اخر کې سجده کوم. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۴۸ باب سجود التلاوة.

(۲) بخاري ابواب ماجاء في سجود القرآن ...الخ ج۱صـــ ۱۴۶ باب سجدة اذا السَّماءُ انشَقّت ، مسلم کتاب المساجد ج۱صـــ ۲۱۵ باب سجود التلاوة.

(۳) طحاوي کتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۴۷ باب سجود التلاوة.

## دتلاوت دسجدې احکام

په نوموړي حديثونو کې د تلاوت د سجدې د حکم بيان دي چې په شرعي لحاظ سره د تلاوت سجده څه حيثيت لري په دې مسئله کې د دريؤ امامانو او د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ترمنځ اختلاف دي.
(۱) مذهب:امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ وائي چې د تلاوت سجده واجب ده (۲) مذهب: دري امامان صاحبان وائي چې د تلاوت سجده سنت ده .(۱) امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ د تلاوت د سجدې د وجوب په باره کې د تلاوت د سجدې په ټولو ايتونو استدلال کړې په کومو کې چې د امر صيغه راغلي ده ابن الهمام رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د تلاوت د سجدې ايتونه په دريؤ حالاتو باندې مشتمل دي . اول دا چې يا خو به په هغې کې د سجدې امر وي لکه د علق په سورت کې ( كلا لا تطعه واسجد واقترب ) او دويم دا چې پکې د کفارو د سجدې نه انکار ذکر وي لکه په سورت انشقاق کې (واذا قرأي عليهم القرآن لا يسجدون ) دريم دا چې يا به پکې د انبياؤ عليهم السلام د سجدو حکايت وي لکه په سورت (ص) کې ( وظن داود انما فتنٰه فاستغفر ربه وخر راکعا واناب ) .(۱)
نو بنا په دې باندې په امر باندې خو عمل کول په هر حال کې واجب دي او د غه شان د کفارو سره د موافقت نه په قرآن کريم کې نهي راغلي ده ( يايها الذين امنوا لا تكونوا كاالذين كفروا أل عمران ) الخ او بله دا چې د انبياؤ عليهم السلام اقتداء هم واجب ده لکه ( فبهداهم اقتده ) انعام .(۲)
د دريؤ امامانو صاحبانو مستدلات په لاندې ډول سره دي : ائمه ثلاثه ؤ په هغه روايتونو باندې استدلال کړې دي په کومو روايتونو کې چې داسې راغلي دي : نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د تلاوت ځيني ايتونه لوستلي دي او سجده ئې نه ده کړې . (۳) نو احنافو د دې په جواب کې ويلي دي چې د احنافو په نزد باندې د تلاوت په سجده کې على الفور سجده واجب نه ده .
د تلاوت سجده به د دوه ؤ تکبيرنو ترمنځ کولې شي او لنې تکبير سجدې ته د تلو په وخت کې ويلې شي او دويم تکبير به د سجدې نه د پورته کيدو په وخت کې ويلې شي د تلاوت د سجدې د پاره د تشهد د لاسونو د اوچتولو او سلام ګرځولو ته څه ضرورت نشته کوم شرطونه چې د مانځه د صحت د پاره دي همغه د تلاوت د سجدې د پاره هم شرط دي په نيت کې د سجدې د ايت تعين شرط نه دي

---

(۱) فتح القدير ج ۱ صـ ۳۸۲.
(۲) فتح القدير ج۱صـ ۳۸۲ .
(۳) ترمذي باب ماجاء من لم يسجد فيه .

که په مانځه کې د سجدې ايت تلاوت شي او فوراً ئې سجده وکړه نو نيت ته پکې څه ضرورت نشته. يعني نيت پکې شرط نه دي.

**د تلاوت د سجدې په شمار کې اختلاف**: په نوموړي باب کې بله مهم مسئله د تلاوت د سجدې د شمار ده په دې مسئله کې هم د علماؤ اختلاف دي علامه عيني د تلاوت د سجدو د شمار په باره کې د دولسو اقوال نقل کړي دي خو مونږ به دلته مشهور مذهبونه ذکر کوؤ .لکه احناف، شوافع او موالک، شوافع او احناف په دې باندې متفق دي چې په قرآن کريم د تلاوت ټول سجدې څوارلس دي خو په تعين کې ئې لږ شان اختلاف دي د شوافعو په نزد باندې د سورت حج سجدې دوه دي او د سورت ص د سجدې ايت د تلاوت سجده نه ګڼړي او د احنافو په نزد باندې په سورت حج کې دوه سجدې نشته بلکه يوه سجده ده کومه چې په دويمه رکوع کې ده. او د امام مالک رحمه الله په نزد باندې د سجدو د ايتونو شمار يوولس دي او د ده په نزد باندې په النجم او انشقت او په اقرأ کې د تلاوت سجده نشته.

او د احنافو د مذهب مطابق د تلاوت د سجدو تفصيل دا دي: په (۱) سورت اعراف .(۲) رعد .(۳) نحل. (۴) بني اسرائيل .(۵) مريم. (٦) حج (۷) فرقان (۸) نمل (۹) الم السجده .(۱۰) ص (۱۱) حم السجده (۱۲) سورت النجم، (۱۳) انشقاق ،(۱۴) العلق. (۱)

**د باب د حديثونو تشريح**: نوموړي باب اولني (۸۰۵) روايت چې عبدالله رضي الله عنه د النجم په سورت کې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د تلاوت د سجدې کولو واقعه بيان کړي. د بخاري شريف په يو روايت کې راغلي دي چې د دغه شيخ نوم اميه بن خلف ؤ او دغه واقعه د مکې مکرمې د فتح نه مخکې واقع شوې ده اميه ابن خلف د قريشو يو عزتمند سردار ؤ او د پوره اثر رسوخ والا کس ؤ د نبي کريم صلی الله علیه وسلم او د اسلام په مخالفت کې به ئې په ټولو د ساز شونو کې پوره کردار اداء کاوه او په خپله لوئې باندې به ئې فخر کاوه لکه چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د النجم په سورت کې د تلاوت سجده کوله او مسلمانان او مشرکان ټول په يو ځل په سجده پريوتل ده د تکبر په وجه سجده ونه کړه او يو موټي خاوره ئې تندي ته راؤچته کړه .(۲)

او د باب دويم (۸۰٦) حديث چې ابن عباس رضي الله عنهما په دې کې هم دغه واقعه بيان کړي چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم د سجدې ايت ته ؤرسيده نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د الله جل شانه د حکم د

---

(۱) ايضاح الطحاوي ج ۲ صــ ۳٦٤-۳٦٥.

(۲) در منضود ج ۲ صــ ۵۸۱.

تابعداري په غرض سجده وکړه نو ټولو مسلمانانو د هغه په متابعت کې سجده وکړه او دغسي مشرکانو د خپلو بتانو لات، منات او عزي د نوم په اوريدو سره هم سجده وکړه.
او يا دا ده چې د مشرکانو د سجدي سبب دا ؤ چې رسول الله صلى الله عليه وسلم کله په مسجد حرم دننه د النجم د سورت ايتونه (افرأيتم اللات والعزى ومات الثالثة الاخرىٰ . الكم الذكر وله الانثیٰ) تلاوت کړل نو شيطان رجيم خپل اواز د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اواز سره مشابه کړ او دا الفاظ ئي ويل چې (تلك الغرانيق العلىٰ وان شفاعتهن لترتجیٰ) نو د مشرکانو دا باور راغي چې نعوذ بالله من ذلك چې رسول الله صلى الله عليه وسلم زمونږ دبتانو توصيف وکړ نو په دي وجه دوي ډير خوشحاله شو او د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم سره په سجده پريوتل. ځينو مفسرينو په دي ځاي کې دا تفسير کړي دي چې دغه الفاظ شيطان نه ؤ ويلي بلکه نعوذ بالله، په خپله د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د مبارکي ژبي نه سهواً وتلي ؤ دا قول بالكل غلط دي او حقيقت همدا دي چې شيطان ملعون خپل اواز د رسول الله صلى الله عليه وسلم د اواز سره مشابه کړي او دغه الفاظ ئي ويلي ؤ مشرکينو دا فکر کاوه چې په خپله محمد صلى الله عليه وسلم دغه الفاظ ويلي دي او د مسلمانانو مشرکانو جنيانو او د ټولو بني ادمانو نه مراد دا دي چې کوم کسان چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره په دغه وخت کې موجود ؤ او د دي دريم(۸۰۷) حديث کې چې حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ئي روايت کړي په دي کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د سجدي ذکر شوي دي داسي چې دا سجده د واجبو سجدونه نه ده او احنافو ويلي دي چې دا سجده د فرائضو سجدو نه نه ده بلکه د تلاوت د واجبو سجدونه ده او د شوافعو په نزد د (ص) په سورت کې سجده نشته بلکه د دي په ځاي په سورت حج کې دوه سجدي دني او احناف حضرات په سورت حج کې د يوي سجدي قائل دي. امام شافعي رحمه الله په سورت (ص) کې په ليس من عزائم السجود حديث باندي استدلال کړي دي احنافو ويلي دي چې د عزائم السجود د نفي نه مراد دا دي چې دا سجده د شکر په طريقي سره واجب ده علماؤ ويلي دي چې د (ص) په سجده کې د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم سجده کول د حضرت داؤد عليه السلام سره د موافقت او د هغه د توبي د قبوليت د شکر په ډول باندي وه لکه چې د (۸۰۹) د ابوسعيد خدري د روايت او د (۸۱۰) د عوام بن حوشب د روايتونو همدغه مفهوم دي او په (۸۱۱) حديث کې چې د ابي سلمه نه روايت شوي دي (اذا السماء انشقت) په سورت کې سجده ثابته ده د دي نه د امام مالک رحمه الله جواب وشو همدارنګه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت شوي دي چې سجدنا مع رسول الله صلى الله عليه وسلم في اقرأ باسم

**ربك . واذا السماء انشقت** .(۱) دغـسي مفصل سورتونه د سورت حجرات نه تر سورت ناس پوري دا ټول مفصل دي . د حجرات د سورت نه تر بروج پوري ديته طوال مفصل ويلي شي او د سورت بروج نه تر سورت بينه پوري ديته اوساط مفصل ويلي شي او د بينه نه تر ناس پوري ديته قصار مفصل ويلي شي او په (۸۱۲) حديث كښ چې د مجاهد نه روايت شوي دي عبدالله ابن عباس رضي الله عنه په حم السجده كښ د تلاوت د دوه ؤ ايتونو اخرمقرر كړي دي په دي باره كښ د امام شافعي رحمه الله نه دوه قوله دي قديم قول ئي دا دي چې د لا يسأمون نه مخكښ ايت باندي د تلاوت سجده ده چې هغه ايت (**ان كنتم آياه تعبدون** ) دي دا د حضرت علي رضي الله عنه نه روايت شوي دي او د امام شافعي رحمه الله جديد قول دا دي چې د تلاوت سجده د لا يسأمون په ايت باندي ده او دا د ابن مسعود رضي الله عنه نه روايت شوي دي د امام شافعي رحمه الله په مذهب كښ صحيح خبره همدا ده احناف او امام احمد رحمه الله هم د دي قائل دي او صاحب د هدائي ويلي دي چې حضرت عمر رضي الله عنه په دغه ځاي باندي سجده كړي ده ...

# ﴿اَبْوَابُ صَلاَةِ الْمُسَافِرِ﴾

## د مسافر د مانځه بابونه

وضاحت : د مسافرئ ابتدا او انتها سره سره د سفر په حالت كښ د مونځ مختلف احكامات دي نو ځكه د دي عنوان تر لاندې په مختلفو بابونو كښ د سفر مسائل بيان فرمايي.

# ﴿بَابُ الْقَصْرِ فِي الصَّلاَةِ﴾

## په سفر كښ د قصر باب

**﴿۸۱۳﴾ عن عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنهَا زَوجِ النَّبِي صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَنَّها قَالَتْ فُرِضَتِ الصَّلاَةُ رَكعَتَينِ رَكعَتَينِ فِي الحَضَرِ وَالسَّفَرِ فَأُقِرَّتْ صَلاَةُ السَّفَرِ وَزِيدَ فِي صَلاَةِ الحَضَرِ رواه الشيخان** .(۳)

**ترجمه** : د نبي اكرم صلى الله عليه وسلم مباركي زوجي حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې په سفر او په حضر كښ مونځ دوه دوه ركعته فرض كړي شوي ؤ د سفر مونځ په خپل حال برقرار پاتي شو او د حضر

(۱) ترمذي ج۱ص ۱۰۱

(۲) فتح القدير .

(۳) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱ص ۱۴۸ باب يقصر اذا خرج من موضعه ، مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج۱ص ۲۴۱.

يعني د اقامت په مانځه کې زياتوالي وشو . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

﴿۸۱۴﴾ و عن ابن عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ فَرَضَ الله الصَّلاَة عَلى لِسَانِ نَبِيكُمْ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الحَضَرِ أَرْبَعاً وَفِي السَّفَرِ رَكعَتَينِ وَفِي الخَوفِ رَكعَة رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې الله جل شانه دستاسي د نبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ژبه مونځ فرض کړي دي، په حضر يعني اقامت کې څلور رکعته او په سفر کې دوه رکعته او په خوف او ويره کې يو رکعت . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۸۱۵﴾ وَ عَن عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صَلاَة السَّفَرِ رَكعَتَانِ وَ صَلاَة الجُمُعَة رَكعَتَانِ وَ الفِطْرِ رَكعَتَانِ وَالاَضحٰى رَكعَتَانِ تَمَامٌ غَيرُ قَصْرٍ عَلى لِسَانِ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه ابن ماجه و النسائي و ابن حبان واسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې د سفر مونځ دوه رکعته دي د جمعي مونځ دوه رکعته دي د واړه اختر مونځ دوه رکعته دي د لوئي اختر مونځ دوه رکعته پوره دي قصر نه دي د محمد – په مبارکه ژبه باندي دا خبره ثابته ده . د دي حديث روايت ابن ماجه ، نسائي او ابن حبان کړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۸۱۶﴾ وَ عَن عَبدِ الله بن عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَحِبتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ فَلَم يزِدْ عَلى رَكعَتَينِ حَتّٰى قَبَضَه الله وَ صَحِبتُ اَبَابَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَلَم يزِدْ عَلى رَكعَتَينِ حَتّٰى قَبَضَه الله وَ صَحِبتُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَلَم يزِدْ عَلى رَكعَتَينِ حَتّٰى قَبَضَه الله ثُمَّ صَحِبتُ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَلَم يزِدْ عَلى رَكعَتَينِ حَتّٰى قَبَضَه الله وَ قَد قَالَ الله تعالى لَقَد كَانَ لَكُم فِي رَسُولِ الله أُسْوَة حَسَنَة رواه مسلم والبخاري مختصرا .[3]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې زه د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره په سفر کې ؤم نو رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دوه ؤ رکعتونو زيات والي نه دي کړي تر دي چې وفات کړ ده لره الله جل شانه او زه د حضرت ابوبکر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره په سفر کې ؤم هغه هم د دوه ؤ رکعتونو نه زيات مونځ نه

---

(۱) مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج۱ص ۲۴۱.

(۲) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۷۶ باب تقصير الصلوة في السفر ، نسائي كتاب تقصير الصلوة في السفر ج۱ص ۲۱۱ ، صحيح ابن حبان كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۹ فصل في صلوة السفر رقم الحديث ۲۷۲۵ .

(۳) مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج۱ص ۲۴۲.

دي کړي او زه د حضرت عمر رضي الله عنه سره په سفر کې وُم هغه هم د دوه وُ رکعتونو نه زيات مونځ نه دي کړي. تردي چې وفات کړ ده لره الله جل شانه بيا زه د حضرت عثمان رضي الله عنه سره ملګري وم هغه هم د دوه وُ رکعتونو نه زيات مونځ نه وُ کړي تردي چې وفات کړ ده لره الله جل شانه او په تحقيق الله تعالى فرمايلي دي چې خامخا په تحقيق ستاسي د پاره رسول الله صلى الله عليه وسلم ښه نمونه ده. دا حديث مسلم او بخاري په مختصر ډول سره روايت کړي دي.

﴿۸۱۷﴾ وَعن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ يزِيدَ قَالَ صَلَّى بِنَا عُثمَانَ رضي الله عنه بِمِنًى اَربَعَ رَكعَاتٍ فَقِيلَ ذٰلِكَ لِعَبدِ اللهِ بنِ مَسعُودٍ رضي الله عنه فَاستَرجَعَ قَالَ صَلَّيتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم بِمِنًى رَكعَتَينِ وَ صَلَّيتُ مَعَ اَبِي بَكرِ الصِّدِيقِ رضي الله عنه بِمِنًى رَكعَتَينِ وَ صَلَّيتُ مَعَ عُمَرَ بنِ الخَطَّابِ رضي الله عنه رَكعَتَينِ فَلَيتَ حَظِّي مِن اَربَعَ رَكعَاتٍ رَكعَتَانِ مُتَقَبَّلَتَانِ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : عبدالرحمن بن يزيد ويلي دي چې مونږ ته حضرت عثمان رضي الله عنه په مني کې څلور رکعته مونځ وکړ نو دا خبره عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته وکړي شوه نو ده استرجاع وکړه وي ويل چې ما د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم سره په منى کې دوه رکعته کړي او د ابوبکر صديق رضي الله عنه سره مي دوه رکعته په مني کې کړي او د حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه سره مي په منى کې دوه رکعته کړي کاش چې څما برخه هم د څلورونه دوه مقبول رکعتونه وي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۸۱۸﴾ وَعَن اَبِي لَيلَى الكِندِي قَالَ خَرَجَ سَلمَانُ رضي الله عنه فِي ثَلَاثَةَ عَشَرَ رَجُلًا مِن اَصحَابِ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فِي غَزَاةٍ وَكَانَ سَلمَانُ رضي الله عنه اَسَنُّهم حَضَرَتِ الصَّلَاةُ فَاُقِيمَتِ الصَّلَاةُ فَقَالُوا تَقَدَّم يَا اَبَا عَبدِ اللهِ فَقَالَ مَا اَنَا بِالَّذِي اَتَقَدَّمُ اَنتُمُ العَرَبُ وَمِنكُمُ النَّبِي صلى الله عليه وسلم فَليَتَقَدَّم بَعضُكُم فَتَقَدَّمَ بَعضُ القَومِ فَصَلَّى اَربَعَ رَكعَاتٍ فَلَمَّا قَضَي الصَّلَاةَ قَالَ سَلمَانُ رضي الله عنه مَا لَنَا وَ لِلمُربَّعَةِ وَاِنَّمَا يَكفِينَا نِصفُ المُرَبَّعَةِ رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : ابو ليلى کندي ويلي دي چې حضرت سلمان رضي الله عنه د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د ديارلس کسه اصحابو سره په يوه غزا کې راوُواته او سلمان رضي الله عنه د دوي نه په عمر کې مشر وُ د مانځه وخت شو نو د مانځه د پاره اقامت وشو نو صحابه وُ وويل چې اي ابوعبدالله مخکې شه ابو عبدالله

(۱) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱صـ ۲۴۷ باب ماجاء في التقصير ....الخ .مسلم كتاب صلوة المسافرين وقصرها ج۱صـ۲۴۳.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـ ۲۸۴ باب صلوة المسافر .

ويل چې زه نه مخکې کیلأم تاسو عرب استئ او نبي د ستاسو نه دي ستاسي نه دي يو كس مخكې
شي نو د دي خلكو نه يو كس مخكې شو نو څلور ركعته ئي وكړل نو كله ئي چې مونځ پوره شو
سلمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې زمونږ د څلورو ركعتونو سره څه كار دي څمونږ د څلورو نيمائي كافي ؤ .
د دي حديث روايت طحاوي كړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۸۱۹﴾ وَ عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ حُمَيْدٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّهُ أَتَمَّ الصَّلَاةَ بِمِنًى ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ السُّنَّةَ سُنَّةُ رَسُولِ اللهِ وَ سُنَّةُ صَاحِبَيْهِ وَ لٰكِنَّهُ حَدَثَ الْعَامَ مِنَ النَّاسِ فَخِفْتُ أَنْ يَسْتَنُّوا رواه البيهقي في المعرفة تعليقا و حسن اسناده .[۱]

**ترجمه** : عبدالرحمٰن بن حميد د خپل پلار په ذريعه د حضرت عثمان بن عفان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت
كړي دي چې هغه يعني عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منى كې پوره مونځ وكړ بيا ئي خلكو نه خطبه وويله نو وي
ويل چې اي خلكو بې شكه سنت د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سنت دي او د هغه د دوه ؤ ملګرو سنت دي
خو ولې په دي كال كې څه نوي خلک دي نو زه ؤيريدم چې خلک دا هم سنت وګنړي . د دي حديث
روايت بيهقي په معرفت كې تعليقًا كړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۸۲۰﴾ وَ عَنِ الزُّهْرِيِّ قَالَ إِنَّمَا صَلَّى عُثْمَانُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بِمِنًى أَرْبَعًا لِأَنَّ الْأَعْرَابَ كَانُوا أَكْثَرَ فِي ذٰلِكَ الْعَامِ فَأَحَبَّ أَنْ يُخْبِرَهُمْ أَنَّ الصَّلَاةَ أَرْبَعٌ رواه الطحاوي و ابوداود و اسناده مرسل قوي .[۲]

**ترجمه** : زهري ويلي دي چې بې شكه حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منى كې څلور ركعته مونځ وكړ
ځكه چې په دي كال كې بانډه چيان خلک ډير زيات ؤ نو دائي ښه وګڼړله چې خلک په دي خبر كړي
چې مونځ څلور ركعته دي د دي حديث روايت طحاوي او ابوداؤد كړي او اسناد ئي مرسل قوي دي.

## قصر عزيمت دې يا رخصت ؟

**فائده** : په سفر كې څلور ركعتيز مونځ دوه ركعته كول "قصر" او پوره څلور ركعته كول " اتمام"
ورته ويلې كيږي .

**مسئلة الباب** : قصر في السفر واجئ يعني عزيمت دې يا مندوب ومستحب يعني رخصت ؟

۱. دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دمشهور روايت مطابق قصر رخصت دې او اتمام افضل او عزيمت.
دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه هم يو روايت داسي دې . (رحمة الامه ، ص: ۵۳)

---

(۱) معرفة السنن والآثار ، وايضا سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳صـــ ۱۴۴ باب من ترك القصر في السفر غير رغبة عن السنة .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۸۹ باب صلوة المسافر ، ابوداؤد كتاب المناسك ج۱صـــ۲۷۰ باب الصلوة بمنى .

۲.دحنفيوپه نزدقصر واجب او اتمام ناجائز دي ځکه چې په سفر کې هم دوه رکعت کول عزيمت دي.

## شافعيه او دنورو ائمو دلائل:

۱... آيت " فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَقْصُرُوْا مِنَ الصَّلٰوةِ ۖ اِنْ خِفْتُمْ اَنْ يَّفْتِنَكُمُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا "دكوم نه چې معلوميږي چې دمسافر لپاره قصر دسهولت لپاره دي که هغه قصر اوکړي نو په دې کې هيڅ حرج نشته ، دنفي حرج تقاضا داده چې که اوغواړي نو اتمام هم کولې شي کوم چې اصل دې .

۲... دحضرت عمر رضي الله عنه دسوال په جواب کې دحضور صلى الله عليه وسلم وينا " **صدقة تصدق الله بها عليكم فاقبلوا صدقة**" ( متفق عليه )

معلومه شوه چې دقصر حکم لپاره دتخفيف او سهولت دې چې هغې لره يي تعبير په صدقې سره اوفرمايلو او متصدق عليه باندې صدقه قبلول واجب نه دي .

۳. حضرت عائشه رضي الله عنها هر ځاي او حضرت عثمان رضي الله عنه په منى کې په حالت دسفر اتمام کولو .

## دحنفيو دلائل:

۱... دحضور اکرم صلى الله عليه وسلم نه دمشهورو رواياتو په اعتبار سره پخپل سفرونو کې هم قصر ثابت دې ، هميشه به يي قصر فرمايلو که اتمام جائز کيدلې نو کله خو به حضور صلى الله عليه وسلم ديبان جواز لپاره داسې کولې .

۲... دعائشې رضي الله عنها حديث : " فُرِضَتِ الصَّلَاةُ رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ فِي الْحَضَرِ وَالسَّفَرِ فَأُقِرَّتْ صَلَاةُ السَّفَرِ وَزِيدَ فِي صَلَاةِ الْحَضَرِ " معلومه شوه چې دسفر دوه رکعتونه دتخفيف په بناء باندې نه دي بلکې پخپلي اصلي فريضي باندې برقرار دي لهذا هغه عزيمت دي نه رخصت .

۳... دجمهور صحابه رضي الله عنهم او دتابعينو رحمهم الله هم دغه مسلک دې .

## شافعيه رحمهم الله ته جوابونه:

۱... په آيت کې نفي دجناح دايو داسې تعبير دې کوم چې په واجب باندې هم صادق راځي او داسې دې لکه څنګه چې د سعي په باره کې ويلي شوي دي " فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِاعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ اَنْ يَّطَّوَّفَ بِهِمَا " (البقره:۱۵۸) حالانکه سعي بالاتفاق واجب ده .

۲... حديث " **صدقة تصدق الله ... الخ**" نه داستدلال جواب دادې چې دداسې شي تصدق کوم کې چې دتمليک احتمال نه وي لکه دلته رکعتين نو هغه په حکم داسقاط کې وي يعنې صاحب حق خپل

حق لره ساقط کړ لهذا ددې تحقق دبل کس په قبلولو باندې موقوف نه دې بلکه په هر حال کې ساقطيږي. همدارنګه "فاقبلوا صدقة" دامر صيغه ده دکوم نه چې معلوميږي چې قصر في السفر واجب دې. (الدر المنضود: ۲/۴۸۲)

۲... حضرت عائشه رضي الله عنها او عثمان رضي الله عنه دتاويل په کولو کې اتمام کوي چنانچې چې کله دعروه بن زبير نه پوښتنه اوکړې شوه نو هغه جواب ورکړ: "تأولت كما تأول عثمان" معلومه شوه چې هغه سره داتمام هيڅ دليل دنص نه، نه وو ورنه ضرور به يې وړاندې کولو. دحضرت عائشې رضي الله عنها تاويل دا وو چې دقصر مدار وجود مشقت باندې دې. دحضرت عثمان رضي الله عنه دري تاويلونه مروي دي:

۱... حضور صلى الله عليه وسلم اوفرمايل: "تأهلت بمكة" ما مکه کور ګرځولې دې (لهذا زه اوس دسفر په مدت کې نه يم).

۲... حضور صلى الله عليه وسلم په منى کې داقامت نيت کړې وو.

۳... دامام زهري رحمه الله درِوايت مطابق په دې کال باندېچيان خلک ډير وو حضور صلى الله عليه وسلم دهغه خلکو په رعايت کې اتمام اوکړو ترڅو چې رکعتونو په تعداد کې ورته څه اشتباه پيدا نشي.

## ﴿بَابُ مَنْ قَدَّرَ مُسَافَةَ الْقَصرِ بِأَرْبَعَةِ بُرُدٍ﴾

## په څلورو بردو باندې د قصر د مسافې د اندازه کولو باب

﴿۸۲۱﴾ عَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ رضي الله عنه وَابْنَ عَبَّاسٍ كَانَا يُصَلِّيَانِ رَكْعَتَيْنِ وَيُفْطِرَانِ فِي أَرْبَعَةِ بُرُدٍ فَمَا فَوْقَ ذٰلِكَ رواه البيهقي وابن المنذر باسناد صحيح. [1]

**ترجمه**: د عطاء ابن ابي رباح نه روايت دې چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه او حضرت ابن عباس رضي الله عنه په څلورو بردونو او منزلونو کې يا د دې نه زيات دوه رکعته مونځ کاوه او د روژې افطار به ئې کاوه. د دې حديث روايت البيهقي او ابن المنذر کړې دې په صحيح اسناد سره.

﴿۸۲۲﴾ وَعَنْهُ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رضي الله عنهما أَنَّهُ سُئِلَ الْقَصرُ أَتُقْصَرُ الصَّلَاةُ إِلَى عَرَفَةَ قَالَ لَا وَلٰكِنْ إِلَى عُسْفَانَ وَإِلَى جُدَّةَ وَإِلَى الطَّائِفِ اخرجه الشافعي وقال الحافظ ابن حجر في التلخيص اسناده صحيح. (۱)

---

(۱) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳ صـ ۱۳۷ باب السفر الذي تقصر الصلوة في مثله الصلاة.

**ترجمه** : او د عطاء ابن ابي رباح نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه د مانځه د قصر په باره کې پوښتنه شوي وه چې ته د عرفات پوري مسافه کې قصر کوي هغه ورته وويل چې نه خو ولي د عسفان، جدي او طائف پوري مسافه کې قصر کوم . د دي حديث اخراج شافعي رَحِمَهُ اللهُ کړي دي او حافظ بن حجر رَحِمَهُ اللهُ په تلخيص کې ويلي دي چې اسناد ئي صحيح دي .

**﴿۸۲۳﴾ وَعَنْ سَالِمِ بنِ عَبدِ اللهِ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ رَكِبَ إِلَى رِيمٍ فَقَصَرَ الصَّلَاةَ فِي مَسِيرَةِ ذٰلِكَ رواه مالك و اسناده صحيح .**[2]

**ترجمه** : د سالم بن عبدالله نه روايت دي چې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د ريم تر ځاي پوري سفر کړي ؤ نو هغه د خپل سفر په دوران کې د قصر مونځ کړي ؤ . د دي حديث روايت مالک کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

**﴿۸۲۴﴾ وَعَنه أَنَّ عَبدَ اللهِ بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ رَكِبَ إِلَى ذَاتِ النُّصُبِ فَقَصَرَ الصَّلَاةَ فِي سَيرِهِ ذٰلِكَ رواه مالك و اسناده صحيح .**[3]

**قَالَ النِّيمَوِي وَقَدْ رُوِيَ عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ خِلَافُ ذٰلِكَ .**

**ترجمه** : او د سالم بن عبدالله نه روايت دي چې حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ تر ذات النصب پوري سفر کړي ؤ نو هغه په خپل دغه سفر کې د قصر مونځ کړي ؤ . د دي حديث روايت مالک رَحِمَهُ اللهُ کړي او اسناد ئي صحيح دي .

نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په تحقيق د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه د دي خلاف هم روايت شوي .

**﴿۸۲۵﴾ عَنْ نَافِعٍ أَنَّ ابنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ أَدنٰى مَا يَقصُرُ فِيهِ مَالٌ لَهُ بِخَيبَرَ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح .**[4]

**قال النيموي بين المدينة و خيبر ثمانية برد .**

---

(۱) مسند امام شافعي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۸۵ باب الثامن عشر في صلوة المسافر رقم الحديث ۵۲۶ ، تلخيص الحبير كتاب صلوة المسافرين ج۲ص ۴۶.

(۲) موطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ص ۱۳۰ باب ما يجب فيه قصر الصلوة .

(۳) موطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ص ۱۳۰ باب ما يجب فيه قصر الصلوة .

(٤) مصنف عبدالرزاق كتاب الصلوة ج۲ص ۵۲۶ باب في كم يقصر الصلوة رقم الحديث ۴۳۰۲.

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د يولو نه په کمه مسافه کې چې په هغې کې ئي قصر فرمايلي ؤ په خيبر کې تر خپلي ځمکي پوري ؤ . د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي دي او اسناد ئي صحيح دي . نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د خيبر او د مديني تر منځ اته برده ده .

**مسئلة الباب** : په څومره مسافت کې قصر جائز دي ؟

۱. دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ په نزد د قصر مسافت يعنې د شرعي سفر مقدار صرف دوه ورځې بغير د شمول د شپې نه او يا يو ورځ او يو شپه ، يا دوه مرحلې او مرحله يو لوي منزل ته وايي . يا څلور برد ، برد د بريد جمع ده . بريد وړوکې منزل ته وايي کوم چې دولس ميله وي يعنې واړه څلور منزلونه ، يا لوي دوه منزلونه . يا شپاړس (١٦) فرسخ ، يو فرسخ دري ميله وي لهذا شپاړس فرس اته څلويښت (۴۸) ميله شو .

۲... دحنفيو په نزد د دريو ورځو د سفر مسافت کوم ته چې دري مراحل هم وايي دا د واړه جليل القدر صحابيانو به په دومره مسافت په سفر باندې قصر کولو د کوم تحديد چې تقريباً اربعة برد دي .

**قوله " ولکن الى عسفان والى جده والى الطائف"** : امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمايي دا مقامات د مديني منورې نه څلور برده باندې واقع دي .

ذات النصب: دا هم د مديني منورې نه په څلور برده فاصله باندې واقع دي .(التعليق الحسن)

**قوله " قال النيموي : وقد روي عن ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خلاف ذلک** : مصنف رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه چې څنګه څلور بريده باندې قصر منقول دې د غه شان زيات مسافت هم منقول دې چنانچې د نافع د روايت مطابق د وي به کم نه کم د مديني منورې نه تر خيبر پورې مسافت باندې قصر کولو کوم چې اته برده دي لهذا د دوي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه مختلف روايات منقول دي .

## ﴿ بَابُ مَا اسْتُدِلَّ بِهِ عَلَى اَنَّ مَسَافَةَ الْقَصرِ ثَلَاثَةُ اَيَامٍ ﴾

**باب دې په بيان د هغه روايتونو کې چې په هغه سره استدلال کولې شي په دي باندې چې د قصر مسافه دري ورځې ده**

﴿۸۲۶﴾ عَن شُرَيحِ بنِ هَانِئٍ قَالَ اَتَيتُ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَسأَلُهَا عَنِ المَسحِ عَلَى الخُفَّينِ فَقَالَت عَلَيكَ بِابنِ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَاسأَلهُ فَاِنَّهُ كَانَ يُسَافِرُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَسَأَلنَاهُ فَقَالَ جَعَلَ

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةَ آيَامٍ وَلَيَالِيهِنَّ لِلْمُسَافِرِ وَيَوْمًا وَلَيْلَةً لِلْمُقِيمِ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : شريح بن هانئ ويلي دي چې زه حضرت عائشي رضي الله عنها ته راغلم ما ورنه په موزو باندي د مسح په باره کې پوښتنه وکړه هغي وويل چې ته ابن ابي طالب رضي الله عنه ته ورشه نو د هغه نه پوښتنه وکړه بي شکه چې هغه به د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره سفر کاوه نو مونږ د هغه نه پوښتنه وکړه نو ابن ابي طالب رضي الله عنه وويل رسول الله صلى الله عليه وسلم دري ورځې او دري شپې د مسافر د پاره او يوه ورځ او يوه شپه د مقيم د پاره مقرره فرمايلي ده . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۸۲۷﴾ وَعَنْ اَبِي بَكْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَعَلَ لِلْمُقِيمِ يومًا وَلَيلة وَتَقْصُرُ الصَّلَاةَ فَقَالَ اَتعرفُ السُّوَيدَاءَ قَالَ قُلتُ لَا وَلٰكِنِّي قَدْ سَمِعتُ بِها قَالَ هِيَ ثَلَاثُ لَيَالٍ قَوَاصِدَ فَإِذَا خَرَجنَا اِلَيها قَصَرنَا الصَّلَاةَ رواه محمد بن الحسن في الآثار و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابي بكره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په موزو باندي د مسح په باره کې د مقيم د پاره يوه ورځ او يوه شپه او د مسافر د پاره دري ورځې او دري شپې مقرري کړي دي او د مانځه قصر به ئي کاوه نو هغه وويل چې سويدا پيژني ابي بكره وائي چې ما وويل چې نه خو ولي نوم مي ئي اوريدلي دي هغه وويل چې دا په درميانه تګ سره د دريو ورځو فاصله ده کله چې مونږ دي طرف ته ووځو نو قصر مونځ کوو . د دي حديث روايت محمد بن الحسن په الاثار کې کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۸۲۸﴾ وَعَنْ عَلِيِّ بْنِ رَبِيعَةَ الْوَالِبِي قَالَ سَأَلْتُ عَبْدَاللهِ بْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اِلٰى كَمْ تُقْصَرُ الصَّلٰوةُ فَقَالَ اَتَعْرِفُ السُّوَيْدَآءَ قَالَ قُلْتُ لَا وَلٰكِنِّي قَدْ سَمِعْتُ بِها قَالَ هِيَ ثَلَاثُ لَيَالٍ قَوَاصِدَ فَإِذَا خَرَجْنَا اِلَيها قَصَرْنَا الصَّلٰوةَ . رَوَاهُ مُحَمَّدُ بْنُ الْحَسَنِ فِي الْأٰثَارِ وَاِسْنَادُهُ صَحِيحٌ .[3]

**ترجمه** : علي بن ربيعه الوالبي ويلي دي چې ما د عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه پوښتنه کړي وه چې تر کومي اندازي پوري د قصر مونځ کولي شي نو هغه وويل چې سويدا پيژني ربيعه ويلي دي چې ما وويل نه خو ولي نوم مي ئي اوريدلي دي هغه وويل چې دا په درميانه تګ سره د دريو ورځو

---

(۱) مسلم كتاب الطهارة ج۱ صــ ۱۳۵ باب التوقيت في المسح علي الخفين .

(۲) منتقى ابن الجارود صـــ ۳۹ باب المسح علي الخفين .

(۳) كتاب الاثار صـــ ۳۹ باب الصلوة في المسافر رقم الحديث ۱۹۲ .

فاصله ده کله چې مونږ دې طرف ته ورځو نو قصر مونځ کوو. د دې حديث روايت په اثار کې محمد بن الحسن کړې دې او اسناد ئې صحيح دې.

﴿۸۲۹﴾ وَعَنْ إِبْرَاهِيمَ بْنِ عَبْدِ اللهِ قَالَ سَمِعْتُ سُوَيْدَ بْنَ غَفَلَةَ الْجُعْفِيِّ يَقُولُ إِذَا سَافَرْتَ ثَلَاثًا فَاقْصُرْ رواه محمد بن الحسن في الصحيح و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: ابراهيم بن عبد الله ويلي دې چې ما د سويد بن غفله الجعفي نه اوريدلي دې چې ويل به ئې چې کله ته درې ورځې سفر وکړې نو قصر کوه. د دې حديث روايت په صحيح کې محمد بن الحسن کړې دې او اسناد ئې صحيح دې.

**وضاحت**: دباب ټول روايتونه دحنفيو مؤيد دې اولنې او دويم روايت مطابق حضور ﷺ دمسافر لپاره دمسح مدت درې ورځې او درې شپې مقرر فرمايلي. معلومه شوه چې په سفر شرعي کې ددرې ورځو اعتبار دې که ددرې ورځو مسافت نه وي نو بيا به دمسح مدت نه پوره کيږي.
دريم روايت اثر دابن عمر رضي الله عنه دې کوم کې چې حضور ﷺ سائل ته دمسافت قصر حد "سويداء" سره اوکړ او چې کله سائل سويداء لره اونه پيژندو نو بيا حضور ﷺ ددريو ورځو په درميانه رفتار سره ددې تشريح اوکړه نو معلومه شوه چې ددې نه دکم مدت په سفر کې قصر نشته څلورم روايت دسويد بن غفله رضي الله عنه اثر دې او هغه بالکل واضح دې.

"التعليق الحسن" کې مصنف رحمه الله دحضرت عمر رضي الله عنه قول هم ذکر کړې دې چې "**تقصر الصلاة في مسيرة ثلاثة ليال**" (بحواله کنز العمال) همدرانګه حضرت عثمان، ابن مسعود، رضي الله عنهم نخعي رحمه الله شعبي رحمه الله او نورو صحابو او تابعينو به هم ددريو ورځو دمسافت اعتبار کولو.

**تقريب بين اقوال الائمه**: شاه ولي الله رحمه الله فرمايي چې دحنفيو په نزد درې ورځې دسحر نه تر مابنامه پورې تلل لازم نه دې بلکې دصحيح قول مطابق که درې ورځې دسحر نه تر مابنامه تلل شروع کړې او تر زوال پورې روان وي بيا چرته دمه اوکړي نو دا هم صحيح ده او په همدومره مسافت باندې قصر کولې کيږي، بل طرفته ائمه ثلاثه رحمه الله ددوو ورځو قول هم اختيار کړې دې دکوم مطابق چې دوه ورځې دسحر نه تر مابنام تلل معتبر دې. په دې اعتبار سره دائمه اربعو دواړه اقوال يو بل سره قريب دې همدغه وجه ده چې دمتاخرينو اکثريت دعوام الناس دآسانې لپاره ددريو ورځو دمسافت تحديد پنځلس يا شپاړس يا اتلس فرسخه سره کړې دې او اوس اته څلويښت ميل لره سفر

---

(۱) کتاب الحجة ج۱ صـ ۱۶۸ باب صلوة المسافر والصواب ابراهيم بن عبدالاعلى وابراهيم بن عبدالله هو خطاء.

شرعي ګرځولې کيږي.
داهل ظواهرو قول دټولو نه جدا دې چې دقصر لپاره د مطلق سفر موجوديدل هم کافي دي ليکن ددوي په حق کې څه صريح مرفوع يا موقوف روايت نشته دې. (التعليق الحسن بتغير)

## ﴿بَابُ القَصرِ اِذَا فَارَقَ البُيوتَ﴾

## د کورونو نه د جدا کيدو په وخت کې د قصر باب

﴿۸۳۰﴾ عَن اَبِي هرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَافَرتُ مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَمَعَ اَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كلُّهم صَلّٰى مِن حِينَ يخرُجُ مِنَ المَدِينَةِ اِلىٰ اَن يرجِعَ اِلَيها رَكعَتَينِ فِي المَسِيرِ وَالقِيَامِ بِمَكة رواه ابو يعلي والطبراني وقال الهيثمي رجال ابي يعلي رجال الصحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت ابو هريره رضي الله عنه ويلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره او د ابوبکر رضي الله عنه سره او د عمر رضي الله عنه سره سفر کړي دي ټولو حضراتو د مديني منوري نه د وتلو د وخت نه مديني منوري ته د واپس تګه پورې د سفر په دوران کې او د مکې په قيام کې دوه رکعته اداء کړي وُ. د دې حديث روايت ابو يعلي او طبراني کړي دي او هيثمي ويلي دي چې رجال د ابو يعلي رجال د صحيح رجال دي.

﴿۸۳۱﴾ وَعَن اَبِي حَربِ بنِ الاَسوَدِ الدُّيلِي اَنَّ عَلِياً رَضِيَ اللهُ عَنهُ خَرَجَ مِنَ البَصرَةِ فَصَلَّى الظُّهرَ اَربعاً ثُمَّ قَالَ اِنَّا لَو جَاوَزنَا هٰذَا الخُصَّ لَصَلَّينَا رَكعَتَينِ رواه ابن ابي شيبة ورواته ثقات.[2]

**ترجمه**: د ابي الحرب ابن ابي الاسود الديلي نه روايت دې چې حضرت علي رضي الله عنه د بصري نه راووتو د ماسپښين مونځ ئې څلور رکعته وکړل بيا ئې وويل که چرې مونږ د دغه جونپړي تير شو نو خامخا به مونږ دوه رکعته مونځ کوو. د دې حديث روايت ابن ابي شيبه کړي دي او راويان ئې ثقه دي.

﴿۸۳۲﴾ وَعَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه كَانَ يقصُرُ الصَّلَاةَ حِينَ يخرُجُ مِن شُعَبِ المَدِينَةِ وَيقصُرُ اِذَا

---

(۱) مسند ابي يعلي الموصلي ج ۱۰ صــ ۲۵۶ رقم الحديث ۵۸۴۲، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲صــ ۱۵۶ باب صلوة السفر نقلا عن ابي يعلى والطبراني في الاوسط.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صــ ۴۴۹ باب من كان يقصر الصلوة.

رَجَعَ حَتّٰى يَدْخُلَهَا رواه عبد الرزاق و اسناده لا بَأسَ بِه.[1]

**ترجمه** : ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به چې کله د مديني د دري نه وواته نو قصر مونځ به ئي کاوه او کله به چې واپس شو تر دي چې مديني ته به ورسيده قصر مونځ به ي کاوه . د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي او اسناد ئي لا بأس دي .

**مسئلة الباب** :تقريبي طور باندي دائمو اربعو رحمهم الله مسلک دادې : " اذا خرج من بيوت المصر او القرية قصر " يعنې دکلي او دښار دآبادئ دوتلو نه پس په مونځ کې دي قصر شروع کړي. (اوګورئ: بداية المجتهد ، ص: ١٣٨) دباب روايات په همدې مسلک باندې دلالت کوي.

## ﴿بابُ يقصُرُ مَن لَم ينوِ الإقَامَةَ وَاِن طَالَ مُكثُه وَالعَسكَرُ الَّذِي دَخَلَ اَرضَ الحَربِ وَاِن نَوَوُا الإقَامَةَ﴾

**دا باب دي چا چې د اقامت نيت نه وي کړي قصر به کوي اګر چې اوږده زمانه پري تيره شي او هغه عسکر به هم قصر کوي کوم چې د کفر خاوري ته ننوتي وي اګر چې د اقامت نيت ئي کړي وي**

﴿٨٢٣﴾ عَن عِكرَمَةَ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تِسعَةَ عَشَرَ يَقصُرُ فَنَحنُ اِذَا سَافَرنَا تِسعَةَ عَشَرَ قَصَرنَا وَاِن زِدنَا اَتمَمنَا رواه البخاري.[2]

**ترجمه** : د عکرمه نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نولسو ورځو پوري اقامت کړي ؤ قصر به ئي کاوه . د دي حديث روايت ابو داؤد کړي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿٨٢٤﴾ وَعَن عُبَيدِ الله بنِ عَبدِ الله عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَكَّةَ عَامَ الفَتحِ خَمسَ عَشَرَةَ يَقصُرُ الصَّلَاةَ رواه ابوداود و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : د عبيدالله بن عبدالله نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مکې کې د فتح په کال پنځلس ورځې اقامت کړي ؤ قصر به ئي کاوه . د دي حديث روايت ابو داؤد کړي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(١) مصنف عبدالرزاق صلاة المسافر متى يقصر اذا خرج مسافراً رقم الحديث ٤٣٢٢ .
(٢) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج١ صـ ١٤٧ باب ماجاء في التقصير وكم يقيم حتى يقصر .
(٣) ابوداود كتاب الصلوة ج١ صـ ١٧٣ باب متى يتم المسافر .

﴿۸۳۵﴾ وَ عَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ المِسْوَرِ قَالَ كُنَّا مَعَ سَعدِ بْنِ اَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي قَريَة مِن قُرَي الشَّامِ فَكَانَ يُصَلِّي رَكعَتَينِ فَنُصَلِّي نَحنُ اَربَعاً فَنَسْأَله عَن ذٰلِك فَيقُولُ سَعدٍ نَحنُ اَعْلَمُ رواه الطحاوي واسناده صحيح .(۱)

**ترجمه** : عبدالرحمن بن المسور ويلي دي چې مونږ د حضرت سعد بن ابي وقاص سره د شام د كلو نه په يو كلي كې ؤ هغه به دوه ركعته اداء كول او مونږ به څلور ركعته كول نو مونږ د هغه نه په دې باره كې پوښتنه وكړه نو سعد رضي الله عنه وويل مونږ په دې ښه پوهيږو . د دې حديث روايت طحاوي كړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۸۳۶﴾ وَ عَن اَبِي جَمرَة نَصرِ بْنِ عِمرَانَ قَالَ قُلْتُ لِا بْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اِنَّا نُطِيل الْقِيَامَ بِخُرَاسَانَ فَكَيفَ تَرَى قَالَ صَلِّ رَكعَتَينِ وَاِنْ اَقَمتَ عِشْرِينَ سِنِيْنَ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح .(۲)

**ترجمه** : ابي جمره نصر بن عمران ويلي دي چې ما ابن عباس رضي الله عنه ته وويل چې مونږ په خراسان كې اوږده زمانه تيره كړه نو ستا څه خيال دي هغه وويل چې دوه ركعته كوه اګر چې لس كاله تير كړې . د دې حديث روايت ابوبكر بن ابي شيبه كړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۸۳۷﴾ وَ عَن نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اَرْتَجَّ عَلَينَا الثَّلْجُ وَ نَحنُ بِاَذَربِيجَانَ سِتَّة اَشْهرٍ فِي غَزَاة قَالَ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَكُنَّا نُصَلِّي رَكعَتَينِ رواه البيهقي في المعرفة واسناده صحيح .(۳)

**ترجمه** : د نافع نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې په يوه غزا كې مونږ اذربيجان كې چې په مونږ باندې تر شپږو مياشتو پورې مسلسله واوره ؤوريده حضرت ابن عمر رضي الله عنه ويلي ؤ چې مونږ به دوه ركعت كول . د دې حديث روايت په معرفه كې بيهقي كړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۸۳۸﴾ وعنِ الحَسَنِ قَالَ كُنَّا مَعَ عَبدِ الرَّحْمٰنِ بنِ سَمُرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ بِبَعضِ بِلَادِ فَارِسٍ سَنَتَينِ فَكَانَ لَا يَجْمَعُ وَلَا يَزِيدُ عَلَى رَكعَتَينِ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح .(۴)

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۲۸۶ باب صلوة المسافر .

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـــ ۴۵۳ باب في المسافر يطيل المقام في المصر .

(۳) معرفة السنن والآثار كتاب الصلوة ج۴ صـــ ۲۷۴ رقم الحديث ۶۱۴۸ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳صـــ۱۵۲ با ب من قال يقصرابداً ما لم يجمع مكثاً .

(۴) مصنف عبدالرزاق صلوة المسافر ج۲صـــ ۵۳۶ باب الرجل يخرج في وقت الصلاة .رقم الحديث ۴۳۵۲.

**ترجمه** : حسن ویلي دي چې مونږ د عبدالرحمن بن سمره رضي الله عنه سره د فارس په بعض ښارونو کې دوه کاله ؤ نو هغه به نه د جمعي مونځ کاوه او نه به ئې د دوه ؤ رکعتونه زيات مونځ کاوه. د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۸۳۹﴾ و عن اَنَسٍ رضي الله عنه اَنَّ اَصْحَابَ رَسُوْلِ الله صلى الله عليه وسلم اَقَامُوْا بِرَامَهُرْمُزْ تِسْعَةَ اَشْهُرٍ يَقْصُرُوْنَ الصَّلَاةَ رواه البيهقي و اسناده حسن.[1]

**ترجمه** : د حضرت انس رضي الله عنه نه روايت دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم صحابه کرامو په رامهرمز کې نه مياشتي وخت تير کړي ؤ په دغه موده کې ئې د قصر مونځ کاوه. د دي حديث روايت البيهقي کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

**مسئلة الباب** : که مسافر په يو کلي کې يو څو ورځي متعين دپاتي کيدو نيت اونکړي بلکې دهغه اراده دا وي چې بس نن سبا کې چې کله هم خپل غرض پوره کړم نو وطن ته به واپس لاړ شم ليکن تر ډير وخته پورې په دغه کلي کې پاتې شو نو هغه به په دې ټول مدت کې قصر کوي، دغه شان عساکر المسلمين که په دارالحرب کې ددشمن سره په ټکر وي او هغه هلته داقامت نيت اوکړي نو په دارالحرب کې دهغه دا نيت معتبر نه دې بلکه هغه به په دې وخت کې قصر کوي که څومره ورځي هم تيرې شي دا دواړه مسئلې دائمه اربعو رحمه الله په نزد متفق عليه دي البته دامام شافعي رحمه الله نه يو روايت دا چې په دې صورتونو کې به اتلس ورځې قصر کوي او دهغې نه پس به اتمام ليکن ددې باب درواياتو نه دمتفق عليه قول تائيد کيږي.

**قوله "فنحن اذا سافرنا تسعة عسر قصرنا"** دا دحضرت ابن عباس رضي الله عنه رائ ده ورنه راروان روايت دهمده نه مروي دې دکوم مطابق چې حضور صلى الله عليه وسلم دفتحې مکې په موقع باندې صرف پنځلس ورځې په مکه مکرمه کې قيام اوفرمايلو.

## ﴿بَابُ الرَّدِّ عَلَى مَنْ قَالَ اِنَّ الْمُسَافِرَ يَصِيْرُ مُقِيْمًا بِنِيَّةِ اِقَامَةِ اَرْبَعَةِ اَيَّامٍ﴾

**په هغه چاباندې چې ويلي ئې دي چې مسافر دڅلورو ورځو داقامت په نيت باندې مقيم ګرځي درد باب**

﴿۸۴۰﴾ عَنْ اَنَسِ بْنِ مَالِكٍ رضي الله عنه قَالَ خَرَجْنَا مَعَ رَسُوْلِ الله صلى الله عليه وسلم مِنَ الْمَدِيْنَةِ اِلَى مَكَّةَ فَصَلَّى رَكْعَتَيْنِ رَكْعَتَيْنِ حَتّٰى رَجَعَ قُلْتُ كَمْ اَقَامَ بِمَكَّةَ قَالَ عَشْرًا رواه الشيخان.[2]

---

(۱) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳ص۱۵۲ باب من قال يقصر ابدا ما لم يجمع مكثا.
(۲) البخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱ص۱۴۷ باب ماجاء في التقصير وكم يقيم ...الخ، مسلم كتاب صلوة المسافرين ج۱ص۲۴۳.

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې مونږ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د مديني منوري نه مکي معظمي پوري په سفر ؤ وتو نو د واپس راتلو تر وخته پوري ئي دوه دوه رکعته مونځ کاوه راوي ویلي دي چې ما وويل د څومره وخته پوري په مکه کې اوسیده هغه وويل لس ورځې. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

## ﴿ بَابُ مَن قَالَ اِنَّ الْمُسَافِرَ يَصِيرُ مُقِيمًا بِنِيَّةِ اِقَامَةَ خَمْسَةَ عَشَرَ يَومًا ﴾

## باب د هغه کس په باره کې دي چې ویلي ئي دي چې مسافر د پنځلسو ورځو د اقامت په نیت سره مقیم کیږي

﴿۸۲۱﴾ عَن مُجَاهِدٍ قَالَ اِنَّ ابْنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ اِذَا اَجْمَعَ عَلَى اِقَامَةِ خَمْسَةَ عَشَرَ يَومًا اَتَمَّ الصَّلاَةَ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : مجاهد رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به کله د پنځلسو ورځو د ایساریدو نیت کړي ؤ نو پوره مونځ به ئي ادا کاؤ. د دي حديث روايت ابوبكر بن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۲۲﴾ وَ عَنه عَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّه اِذَا اَرَادَ اَنْ يُقِيمَ بِمَكَّةَ خَمسَةَ عَشَرَ سَرَّحَ ظَهرَه وَ صَلَّى اَرْبَعًا رواه محمد بن الحسن في كتاب الحج و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د مجاهد نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به چې کله په مکه مکرمه کې د پنځلسو ورځو د ایساریدو نیت کړي ؤ نو د اس د شانه به ئي زین لري کړ او څلور رکعته مونځ به ئي کاوه. د دي حديث روايت محمد بن الحسن په كتاب الحج کې کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۲۳﴾ وَ عَنه عَن عَبدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اِذَا كُنتَ مُسَافِرًا فَوَطَّنتَ نَفسَكَ عَلَى اِقَامَةِ خَمسَةَ عَشَرَ يَومًا فَاَتِمَّ الصَّلاَةَ وَاِن كُنتَ لاَ تَدرِي فَاقصُرْ رواه محمد بن الحسن في الآثار و اسناده حسن.[3]

**ترجمه** : د مجاهد نه روايت دي چې حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي کله چې ته مسافر ئي او د خپل ځاي د پاره دي کوم ځاي کې د پنځلسو ورځو د پاره وطن جوړ کړي وي نو پوره مونځ

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۴۵۵ باب من قال اذا اجمع على اقامة خمس عشرة اتم .

(۲) كتاب الحجة ج۱ص ۱۷۰ باب صلوة المسافر .

(۳) كتاب الآثار ص ۳۸ رقم الحديث ۱۸۸.

کړه او که ته نه پوهیږي چې څومره وخت به تیروم نو قصر کوه . د دي حدیث روایت محمد بن الحسن کړي دي په اثار کې او اسناد ئې حسن دي .

﴿۸۲۴﴾ وَ عَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيِّبِ قَالَ اِذَا قَدِمتَ بَلَدَةً فَاَقَمْتَ خَمسَةَ عَشَرَ يومًا فَاَتِمِّ الصَّلاَةَ رواه محمد بن الحسن في الحجج و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : سعید بن المسیب رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي : کله چې ته کوم ښار ته ننوځې او د پنځلسو ورځو د اقامت نیت دي کړي وي نو پوره مونځ کوه . د دي حدیث روایت محمد بن الحسن په حجج کې کړي دي او اسناد ئې صحیح دي .

**دقصر مدت** : څومره ورځې داقامت نیت قصر لره باطلوي یا دقصر مدت څومره دې ؟

۱... دامام مالک او امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد چې څلور ورځې یې دپاتې کیدو نیت وي نو دا مقیم دې یا قصر کول جائز نه دي . او دا څلور ورځې به دیو دخول او دیوم خروج نه علاوه وي .

۲... دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد که دیو ویشت مونځونو نه دزیاتو نیت یې وي نو مقیم دې یا قصر کول جائز نه دي دیو ویشت مونځونو دمجموعي مدت دڅلور ورځو نه څه زیات دې .

۳... دامام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ مسلک دادې چې پنځلس ورځو نه کم مدت دقصر دې او پنځلس ورځې یا ددېنه دزیاتو پاتې کیدو نیت یې وي نو مقیم دې یا قصر کول جائز نه دي .

**دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ اللهُ استدلال** :

۱... دسعید بن مسیب رَحِمَهُ اللهُ قول : " اذا قام اربعا صلی اربعا " . (ترمذي)

۲... مهاجرینو ته په مکه مکرمه کې ددرې ورځو دقیام اجازت ملاو شوې وو .

**جوابونه** :

۱... دابن مسیب قول سندا مرجوح دې دویم په هغه حالت باندې محمول دې چې کله داقامت نه وي کړې شوې .

۲... دباب دانس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حدیث کوم چې دحنفیو دلیل هم دې ، مهاجرینو دقیام متعلق صریح دې کوم کې چې په مکه مکرمه کې ترلسو ورځو پورې دقیام ذکر دې او دا روایت متفق علیه هم دې .

---

(۱) کتاب الحجة ج۱ص ۱۷۱ باب صلاة المسافر .

# ﴿باب صَلاَةِ الْمُسَافِرِ بِالْمُقِيمِ﴾
## مقيم پسې د مسافر د مانځه باب

﴿۸۲۵﴾ عَن مُوسَى بنِ سَلَمَةَ قَالَ كُنَّا مَعَ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ بِمَكَّةَ فَقُلتُ اِنَّا اِذَا كُنَّا مَعَكُم صَلَّينَا اَربَعًا وَاِذَا رَجَعنَا اِلٰى رِحَالِنَا صَلَّينَا رَكعَتَينِ قَالَ تِلكَ سُنَّةُ اَبِي القَاسِمِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رواه احمد و اسناده حسن.[1]

**ترجمه** : موسى بن سلمه ويلي دي چې د حضرت ابن عباس رضي الله عنه سره په مكه كې وُ م ما وويل كله چې مونږ تاسو سره يو نو څلور ركعته مونځ كوو او كله چې خپلو خيمو طرف ته واپس لاړ شو نو مونږ دوه ركعته مونځ كوو هغو وويل چې دا د ابو القاسم صلى الله عليه وسلم سنت دي . د دې حديث روايت احمد كړي دي او اسناد ئې حسن دي .

**مسئلة الباب** : د مونځ په وخت كې دننه د مسافر د مقيم امام پسې اقتدا كول صحيح دي او د امام ابو حنيفه رحمه الله او د امام شافعي رحمه الله او احمد رحمه الله په نزد په دې صورت كې به د امام په اقتدا كې به مسافر هم اتمام كوي قصر نه دي كول پكار كه په پوره جماعت كې شريك وي يا په يو ركن كې شريك وي ، ليكن د امام مالك رحمه الله په نزد كه يو ركعت په جماعت سره او كړي نو اتمام به كوي ورنه قصر متعين دي . ( رحمة الامة :ص، ٥٤)

# ﴿باب صَلاَةِ الْمُقِيمِ بِالْمُسَافِرِ﴾
## د مسافر پسې د مقيم د مانځه باب

﴿۸۲۶﴾ عَن سَالِمِ بنِ عَبدِ اللهِ عَن اَبِيهِ اَنَّ عُمَرَ بنَ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ اِذَا قَدِمَ مَكَّةَ صَلّٰى بِهِم رَكعَتَينِ ثُمَّ يَقُولُ يَا اَهلَ مَكَّةَ اَتِمُّوا صَلاَتَكُم فَاِنَّا قَومٌ سَفرٌ رواه مالك و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : سالم بن عبد الله د خپل پلار نه روايت كړي دي چې حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه چې كله مكې مكرمې ته راغې نو دوه ركعته ئې وكړل بيا ئې وويل اې د مكې خلكو خپل مونځ پوره كړې مونږ مسافر يو . د دې حديث روايت مالک رحمه الله كړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

---

(۱) مسند احمد ج۱ص ـــ ۲۱۶.

(۲) مؤطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ۱۳۲ باب صلوة المسافر اذا كان اماما ...الخ

﴿٨٢٧﴾ وَعَنْ صَفْوَانَ بنِ عَبدِ الله بنِ صَفوَانَ اَنَّه قَالَ جَاءَ عَبدُ الله بنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يعُودُ عَبدَ الله بنَ صَفوَانَ فَصَلّٰى لَنَا رَكعَتَينِ ثُمَّ انصَرَفَ فَقُمْنَا فَاَتْمَمْنَا رواه مالك و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : صفوان ابن عبدالله بن صفوان ويلي دي چې عبدالله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ د عبدالله بن صفوان د ناروغۍ د پوښتنې د پاره راغي نو مونږ ته ئې دوه ركعته مونځ وكړ بيا هغه سلام واړاوه نو مونږه ؤدريدو مونځ مو پوره كړ. د دې حديث روايت مالک كړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

مسئلة الباب : دمقيم دمسافر پسې اقتدا كول صحيح دي كه وخت باقي وي او كه فوت شوي وي.
داحاديثو په رڼا كې مسافر امام لره پكار دي چې دمونځ نه پس دې اعلان اوكړي چې مونږ مسافر يو لهذا تاسو خلک خپل مونځونه پوره كړئ دروايت الفاظ دادي: اتموا صلاتكم فانا قوم سفر ( البحر الرائق : ٢/ ١٣٥)

# ﴿باب جَمعِ التَّقدِيمِ بَينَ الْعَصرَينِ بِعَرَفَة﴾
## د ماسپښين او مازيګر ترمنځ د تقديم د جمع باب

﴿٨٢٨﴾ عن جَابِرِ بنِ عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي حَدِيثٍ طَوِيلٍ فِي حَجَّةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ اَذَّنَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الظُّهرَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى العَصْرَ وَلَم يُصَلِّ بَينَهُمَا شَيئاً رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د حج په سلسله كې په يو اوږد حديث كې د حضرت جابر بن عبدالله نه روايت دې بيا ئې اذان وكړ بيا ئې اقامت وكړنو د ماسپښين مونځ ئې وكړ بيا ئې اقامت وكړنو د مازيګر مونځ ئې اوددواړو مونځونو ترمنځ ئې هيڅ مونځ ونه كړ. ددې حديث روايت مسلم كړي دي.

﴿٨٢٩﴾ و عنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ غَدَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مِن مِنًى حِينَ صَلَّى الصُّبحَ فِي صُبَيحَةِ يومِ عَرَفَةَ حَتّٰى اَتٰى عَرَفَةَ فَنَزَلَ بِنَمِرَةَ وَهِيَ مَنزِلُ الإمَامِ الَّذِي يَنزِلُ بِه بِعَرَفَةَ حَتّٰى إذَا كَانَ عِندَ صَلَاةِ الظُّهرِ رَاحَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مُهجِرًا فَجَمَعَ بَينَ الظُّهرِ وَالعَصرِ ثُمَّ خَطَبَ النَّاسَ ثُمَّ رَاحَ فَوَقَفَ عَلَى المَوقِفِ مِن عَرَفَةَ رواه احمد و ابوداود و اسناده حسن .[3]

---

(١) مؤطا امام مالك كتاب قصر الصلوة في السفر ١٣٢ باب صلوة المسافر اذا كان اماما ...الخ
(٢) مسلم كتاب الحج ج١صـ ٣٩٧ باب حجة النبي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ .
(٣) مسند احمد ج٢صـ ١٢٩ ، ابوداؤد كتاب المناسك ج١صـ ٢٦٥ باب الخروج الى عرفة .

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وېلي دي رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې کله د سهر مونځ ادا کړنو د منى نه د عرفي په ورځ سهر روان شو تر دي پورې چې عرفات ته راغي نمرې ته ئې تشريف راوړ او نمره د هغه امام د راتلو ځاى دي کوم چې هلته د عرفي په ورځ راځي تر دي چې کله د ماسپښين د مانځه وقت شو نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاړ د ماسپښين او مازيګر مونځونه ئې يو ځاى وکړل بيا ئي خطبه وفرمايله بيا لاړ د عرفات په موقف باندي تشريف فرما شو . د دي حديث روايت احمد او ابو داؤد کړي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۸۵۰﴾ وَعَنِ الْقَاسِمِ بْنِ مُحَمَّدٍ سَمِعْتُ ابْنَ الزُّبَيْرِ يَقُولُ إِنَّ مِنْ سُنَّةِ الْحَجِّ إِنَّ الْإِمَامَ يَرُوحُ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ يَخْطُبُ فَيَخْطُبُ النَّاسَ فَإِذَا فَرَغَ مِنْ خُطْبَتِهِ نَزَلَ فَصَلَّى الظُّهْرَ وَالْعَصْرَ جَمِيعًا رواه ابن المنذر واسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : قاسم بن محمد وېلي دي چې ما د ابن الزبير نه اورېدلي چې وېل ئي د حج د سنتو نه يوه دا هم ده چې امام د زوال نه روسته د خطبي ورکولو د پاره لاړ شي نو هغه به خلکو ته خطبه ووائي کله چې د خپل خطبي نه فارغ شو نو راخکته به شي د ماسپښين او مازيګر مونځ به يو ځاى وکړي . د دي حديث روايت ابن المنذر کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

**مسئلة الباب :**

" عصرين " نه مراد د ظهر او د عصر مونځ دې بالاتفاق نهمه ذوالحجه باندې وقوف د عرفي په موقع باندې جمع تقديم سنت دي يعني د مازيګر مونځ د خپل وخت نه مخکې د ظهر په وخت کې کول ، البته په دې کې دري ځايه اختلاف دې :

۱... په عرفه کې جمع بين الصلاتين لپاره د امام صاحب رَحِمَهُ اللهُ په نزد د امام الحج اقتداء او احرام شرط دې ليکن د ائمه ثلاثه رَحِمَهُ اللهُ او د صاحبينو رَحِمَهُ اللهُ په نزد صرف احرام کافي دى .

د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد بهتره داده چې د جمعې په شان په عرفات کې هم چې کله امام په منبر کيني نو مؤذن دې اذان اووايي د هغې نه پس دې امام خطبه اووائي او د منبر نه دې لاندې راکوز شي بيا دې مؤذن د مونځ لپاره اقامت شروع کړي د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ نه هم يو روايت داسې مروي دې امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمايي چې د امام خطبه ثانيه شروع کولو باندې مؤذن دې اقامت اووايي .

---

(۱) مسند احمد ج۲صـ ۱۲۹ ، ابوداؤد کتاب المناسک ج۱صـ ۲۶۵ باب الخروج الیٰ عرفة .

۴...دامام مالک رَحِمَهُ اللهُ په نزد دهر مونځ لپاره دې اذان او اقامت اوویلې شي ، دامام ابوحنيفه او شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد دماسپخين لپاره دې اذان اويلې شي او اقامت دې دهر مونځ لپاره جدا وي دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد هر مونځ کونکي لپاره دې صرف اقامت اويلې شي . (بداية المجتهد ،ص:۵۷۲)

# ﴿بَابُ جَمعِ التَّاخِيرِ بَينَ الْعِشَائَينِ بِالْمُزدَلِفَةِ﴾

﴿۸۵۱﴾ عَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ يَزِيدَ قَالَ حَجَّ عَبدُ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَأَتَينَا الْمُزدَلِفَةَ حِينَ الأَذَانِ بِالعَتَمَةِ أَو قَرِيبًا مِن ذٰلِكَ فَأَمَرَ رَجُلاً فَأَذَّنَ وَ أَقَامَ ثُمَّ صَلَّى المَغرِبَ وَ صَلّٰى بَعدَهَا رَكعَتَينِ ثُمَّ دَعَا بِعَشَائِهِ فَتَعَشّٰى ثُمَّ أَمَرَ أُرٰى رَجُلاً فَأَذَّنَ وَ أَقَامَ قَالَ عَمرٌو وَ لَا أَعلَمُ الشَّكَّ إِلَّا مِن زُهَيرٍ ثُمَّ صَلَّى العِشَاءَ رَكعَتَينِ فَلَمَّا طَلَعَ الفَجرُ قَالَ إِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ لَا يُصَلِّي هٰذِهِ السَّاعَةَ إِلَّا هٰذِهِ الصَّلَاةَ فِي هٰذَا المَكَانِ مِن هٰذَا اليَومِ قَالَ عَبدُ الله هُمَا صَلَاتَانِ تُحَوَّلَانِ عَن وَقتِهِمَا صَلَاةُ المَغرِبِ بَعدَ مَا يَأتِي النَّاسُ المُزدَلِفَةَ وَالفَجرِ حِينَ يَبزِغُ الفَجرُ قَالَ رَأَيتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَفعَلُه رواه البخاري.[1]

قَالَ النِّيمَوِي الجَمعُ بَينَ الصَّلَاتَينِ بِعَرَفَةَ وَالمُزدَلِفَةِ لِلنُّسُكِ لَا لِلسَّفَرِ خلافا للشافعي.

**ترجمه** : عبدالرحمن بن يزيد ويلي دي چې عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ حج کاوه. مونږ د ماسختن په تياره کې د اذان په وخت کې مزدلفي ته او يا مزدلفي ته نزدي ځاي ته راغلو نو هغه يو سړي ته د اذان حکم وکړ نو هغه اذان وکړ بيا ئي اقامت وکړ او بيا ئي د ماښام مونځ وکړ او د دې نه روسته ئي دوه رکعته مونځ وکړ بيا ئي د ماسختن ډوډئ راؤغوښته نو د شپې ډوډئ ئي ؤخوړه بيا ئي امر وکړ چې د يو سړي ګمان پرې کيدې شو نو هغه اذان او اقامت وکړ عمرو ويلي دي چې زه په شک علم نلرم مګر د زهير له خوا نه بيا ئي د ماسختن دوه رکعته ادا وفرمايل بيا چې کله سهر شو وي ويل چې بې شکه نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په دغه وخت کې هيڅ يو مونځ نه ؤ ادا فرمايلي په غير د دې مانځه نه په دغه ځاي کې په دغه ورځ عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي ؤ دا دوه مونځونه د خپل وخت نه اړول شوي ؤ د ماښام مونځ پس د هغه نه چې خلک مزدلفي ته راغلل او د سهر مونځ کله چې سهر وخاته دوي ويلي دي چې ما نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ليدلي ؤ چې داسې ئي کول. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.
نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي دوه مونځونه په عرفات او مزدلفه کې د حج په وجه دي نه د سفر په وجه او

(۱) بخاري کتاب المناسک ج۱ص۲۲۷ باب من اذن واقام لکل واحدة منهما.

امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ وائي چې دا دواړه مونځونه په عرفات او په مزدلفه کې د سفر په وجه دي نه د حج په وجه.

**مسئلة الباب:** "عشائين" نه مراد مغرب وعشاء دي په مزدلفه کې دماښام او دماسخوتن په وخت کې جمع تاخير هم بالاتفاق سنت دي او ددې لپاره بالاتفاق دامام الحج په اقتداء کې کيدل هم شرط نه دي بلکې احرام کافي دي دحنفيو په نزد په دې کې يو اذان او يو اقامت مسنون دي. (البحر الرائق: ۲/۳٤۰)

## ﴿بَابُ جَمعِ التَّقدِيمِ فِي السَّفَرِ﴾

## په سفر کې د تقديم د جمع باب

﴿۸۵۲﴾ عَن اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ فَزَالَتِ الشَّمسُ صَلَّى الظُّهرَ وَالعَصرَ جَمِيعًا ثُمَّ ارتَحَلَ رواه جعفر الفريابي والبيهقي والاسمعيلي و ابونعيم في مستخرجه على مسلم وهو حديث غير محفوظ. (۱)

**ترجمه:** د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ چې کله به په سفر کې و او زوال به شوي و نو د ماسپښين او د مازيګر مونځ به ئې يو ځاي وکړېيا به ئې سفر کاوه. د دې حديث روايت جعفر الفريابي، بيهقي، اسماعيلي او ابونعيم په خپل مستخرج کې علي المسلم باندې کړي دي او دا حديث غير محفوظ دي.

﴿۸۵۳﴾ وعن اَبِي الزُّبَيرِ عَن اَبِي الطُّفَيلِ عَن مُعَاذِ بنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزوَةِ تَبُوكَ اِذَا زَاغَتِ الشَّمسُ قَبلَ اَن يرتَحِلَ جَمَعَ بَينَ الظُّهرِ وَالعَصرِ وَاَن يرتَحِلَ قَبلَ اَن تَزِيغَ الشَّمسُ اَخَّرَ الظُّهرَ حَتّٰى ينزِلَ لِلعَصرِ وَفِي المَغرِبِ مِثلَ ذٰلِكَ اِن غَابَتِ الشَّمسُ قَبلَ اَن يرتَحِلَ جَمَعَ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ وَاَن يرتَحِلَ قَبلَ اَن تَغِيبَ الشَّمسُ اَخَّرَ المَغرِبَ حَتّٰى ينزِلَ لِلعِشَاءِ ثُمَّ جَمَعَ بَينَهُمَا رواه ابوداود وهو حديث ضعيف. (۲)

---

(۱) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳ص۱۶۲ باب الجمع بين الصلاتين، تلخيص الحبير كتاب صلوة المسافرين ج۲ص۴۹ باب الجمع بين الصلاتين في السفر، وفتح الباري ج۲ص۲۳۷ نقلا عن الاسمعيلي، جعفر الفريابي وابي نعيم.

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۷۱ باب الجمع بين الصلاتين.

**ترجمه** : د ابو الزبیر په واسطه ابو الفضیل د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت کړي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د تبوک په غزا کې ؤ کله به چې د تللو نه مخکې د نمر زوال شوي ؤ نو د ماسپښین او مازیګر د دواړو مونځونو ترمنځ به ئي جمع وکړه او که د نمر د کلأیدو نه مخکې به تلل نو د ماسپښین مونځ به ئي روسته کړ تر دي پورې چې مازیګر مانځه ته به راخکته شو او په مابنام کې هم دغسي که نمر به د تلو نه مخکې ډوب شوي ؤ نو د مابنام او ماسختن ترمنځ به ئي جمع وکړه او که د نمر د ډوبیدو نه مخکې به تلل نو د مابنام مونځ به ئي روسته کړ تر دي چې ماسختن به راخکته شو بیا به ئي د دواړو مونځونو ترمنځ جمع وکړه. د دي حدیث روایت ابوداؤد کړي او دا حدیث ضعیف دي.

﴿۸۵۴﴾ و عَن يزِيدَ بنِ حَبِيبٍ عَن اَبِي الطُّفَيل عَن مُعَاذِ بنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي غَزوَةِ تَبُوك اِذَا ارتَحَلَ قَبلَ زَيغِ الشَّمسِ اَخَّرَ الظُّهرَ اِلى اَن يجمَعَهمَا اِلَى العَصرِ فَيصَلِيهمَا جَمِيعًا وَ اِذَا ارتَحَلَ بَعدَ زَيغِ الشَّمسِ عَجَّلَ العَصرَ اِلي الظُّهرِ وَ صَلَّي الظُّهرَ وَالعَصرَ جَمِيعًا ثُمَّ سَارَ وَ كَانَ اِذَا اَرتَحَل قَبلَ المَغرِبِ اَخَّرَ المَغرِبَ حَتّٰى يصَلِيها مَعَ العِشَاءِ وَ اِذَا ارتَحَلَ بعدَ المَغرِبِ عَجَّلَ العِشَاءَ فَصَلَّاهَا مَعَ المَغرِبِ رواه الترمذي و ابوداود وهو حديث ضعيف جدا.[1]

**ترجمه** : د یزید بن حبیب په واسطه ابو الطفیل د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه نه روایت کړي دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د تبوک په غزا کې ؤ چې کله به ئي د نمر د زوال نه مخکې مزل کاوه نو ماسپښین به ئي روسته کړ تر دي چې د مازیګر سره به ئي جمع کړ بیا به ئي دواړه یو ځاي وکړل او که د نمر د زوال نه به ئي روسته مزل کاوه نو په مازیګر به ئي ماسپښین طرف ته جلدي کوله او ماسپښین او مازیګر به ئي یو ځاي کول بیا به ئي مزل کاوه او کله به ئي چې د مابنام نه مخکې مزل کاوه نو مابنام به ئي روسته کړ تر دي چې هغه به ئي د ماسختن سره یو ځاي ادا کړل او کله به ئي چې د مابنام نه روسته مزل کاوه نو په ماسختن به ئي جلتي کوله او هغه به ئي د مابنام سره ادا کاوه. د دي حدیث روایت ابوداؤد ، او ترمذي کړي او دا حدیث ډیر ضعیف دي.

﴿۸۵۵﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ فِي السَّفَرِ اِذَا زَاغَتِ الشَّمسُ فِي مَنزِلِه جَمَعَ بَينَ الظُّهرِ وَالعَصرِ قَبلَ اَن يركَبَ فَاِذَا لَم تَزِغ لَه فِي مَنزِلِه سَارَ حَتّٰى اِذَا حَانَتِ العَصرُ نَزَلَ فَجَمَعَ

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۲ باب الجمع بين الصلاتين ، ترمذي ابواب صلاة السفر ج۱ص ۱۲۴ باب ماجاء في الجمع بين الصلاتين .

بَيْنَ الظُّهرِ وَالعَصرِ وَإِذَا حَانَت لَه المَغرِبُ فِي مَنزِلِه جَمَعَ بَينَهمَا وَ بَيْنَ العِشَاءِ وَإِذَا لَم تَحُن فِي مَنزِلِه رَكِبَ حَتّٰى إِذَا كَانَتِ العِشَاءُ نَزَلَ فَجَمَعَ بَينَهُمَا رواه احمد و آخرون و اسناده ضعيف.(۱)

**ترجمه** : د ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم په سفر کې ؤ کله به چې د هغه په ځاي کې د نمر زوال وشو نو د سوريدو نه مخکې به ئي د ماسپښين او د مازيګر ترمنځ جمعه وکړه او کله به چې د ده په ځاي کې د نمر زوال نه ؤ شوي نو مزل به ئي کاوه تر دي چې د مازيګر وخت به شو نو راخکته به شو او د ماسپښين او د مازيګر ترمنځ به ئي جمع وکړه او کله به چې د ده په ځاي کې د ماښام وخت شو نو د ماښام او ماسختن ترمنځ به ئي جمع وکړه او کله به چې د ده په ځاي کې د ماښام وخت نه ؤ شوي نو سور به شو تر دي چې د ماسختن وخت به شو نو راخکته به شو او د دواړو مونځونو ترمنځ به ئي جمع وکړه . د دي حديث روايت احمد او نورو کړي او اسناد ئي ضعيف دي.

## د سفر په عذر جمع بين الصلاتين

**مسئلة البابين** : د سفر په عذر سره جمع بين الصلاتين جائز ده يا نه ؟ په دې کې دوه اقوال دي :

۱... د جمهور علماء او د ائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد بعذر السفر جمع بين الصلاتين جائز ده برابره خبره ده که هغه تقديما وي يعني مازيګر مونځ د ماسپخين په وخت کې او د ماسخوتن مونځ د ماښام په وخت کې کول يا تاخيرا وي يعني ماسپخين لره د مازيګر په وخت کې ادا کول تقديما وي يا تاخيرا وي يعني ماسپخين لره د مازديګر په وخت کې او ماښام لره د ماسخوتن په وخت کې کول.

۲... د حنفيو رحمه الله په نزد بعذر صورتا خو جمع بين الصلاتين کولې شي لکه د ماسپخين او د ماښام لره په آخري وخت کې او مازديګر او ماسخوتن لره د وخت په شروع کې کول . ليکن حقيقتا يو مونځ دبل مونځ په وخت کې ادا کول تقديما وي يا تاخيرا وي ناجائز دي.

بهرحال ائمه ثلاثه رحمهم الله د جواز قائله دي بعذر السفر او امام صاحب رحمه الله، او صاحبين ، نخعي رحمه الله حسن بصري رحمه الله د عدم جواز قائله دي .... دا دې واضحه وي چې د عرفې او د مزدلفې جمع بين الصلاتين د دې بحث نه خارج ده ځکه چې هلته مسئله متفق عليه ده .

### د جمع تقديم دلائل :

۱... د باب د انس رضي الله عنه حديث : "كَانَ رَسُولُ الله صلی الله علیه وسلم إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ..." الحديث دغه

(۱) مسند احمد ج۱ صـ ۳۶۷.

شان دباب نور روايات کوم چې دمعاذ بن جبل رضي الله عنه او دابن عباس رضي الله عنه نه مروي دي .

۲... "عن ابن عباس رضي الله عنه قال: كان رسول الله صلى الله عليه وسلم يجمع بين صلاة الظهر والعصر اذا كان على ظهر سير . ويجمع بين المغرب والعشاء " . (بخاري بحواله مشكاة ،ص: ۱۱۸)

**جوابونه :**

برسيره په دي باندي امام نيموي رحمه الله د دي باب اولني (۸۵۲) حديث غير محفوظ ګڼړلي دي . امام ذهبي په ميزان الاعتدال کې دغه حديث راوړي او ليکلي ئې دي چې د دي حديث راويان بنا بر تقابل منکر دي .

او د دي باب دويم (۸۵۳) حديث چې ابي الزبير روايت کړي دي د دي په سند کې هشام ابن سعد ابو عباد المدني دي او په ده باندي پوره جرحه موجود ده او دا کمزوري راوي دي .

او د دي باب دريم (۸۵۴) حديث عن يزيد بن حبيب ابوداؤد ج۱ص ۱۷۷ کې هم عن ابي الزبير عن ابي الطفيل عن معاذ بن جبل لکه چې تير حديث کې تير شوي دي خو ولي قتيبه ابن سعيد د ابوالزبير نوم بدل کړي دي او د يزيد بن حبيب نوم ئې ذکر کړي دي او ابوداؤد دي خبري ته اشاره هم کړي ده ويلي ئې دي چې دا حديث يواځي قتيبه روايت کړي دي او نووي ويلي دي چې دا حديث منکر دي او د تقديم د جمع په باره کې هيڅ داسي مضبوط حديث نشته .

تلخيص الحبير د باب الجمع بين الصلوتين او د اثار السنن مصنف امام نيموي رحمه الله هم په هو حديث ضعيف جداً سره دي طرف ته اشاره کړي ده .

او د دي باب څلورم (۸۵۵) حديث چې ابن عباس رضي الله عنه ئې روايت کړي دي د دي په سند کې حسين بن عبدالله بن عبيدالله ابن عباس هاشمي المدني دي په ده باندي په اسماء الرجال کې سخته جرحه وارد شوي ده ابوذرعه ويلي دي چې مضبوط نه دي او نسائي ويلي دي چې متروک دي او احمد ويلي دي چې د ده حديث منکر دي .(۱)

---

(۱) ميزان الاعتدال ج۱ص ۵۳۷.

## ﴿بَابُ مَا يَدُلُّ عَلَى تَرك جَمعِ التَّقدِيمِ بَينَ الصَّلاتَينِ فِي السَّفرِ﴾

## باب په هغه روايتونو کې دي چې په سفر کې د دوهٔ مونځونو ترمنځ د جمع تقديم په ترک باندي دلالت کوي

وضاحت : دلاندې دوو حديثونو الفاظ "أخر" او د"ي،خر" نه معلوميږي چې رسول الله ﷺ جمع تقديم نه ده فرمايلي بلکې داسي جمع ئې فرمايلې کوم لره چې راوي په "جمع تاخير" سره تعبير کړي.

﴿۸۵۶﴾ عن أَنَسِ بنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِي ﷺ إِذَا ارتَحَلَ قَبلَ أَن تَزِيغَ الشَّمسُ أَخَّرَ الظُّهرَ إِلى وَقتِ العَصرِ ثُمَّ نَزَلَ فَجَمَعَ بَينَهمَا فَإِذَا زَاغَتِ الشَّمسُ قَبلَ أَن يرتَحِلَ صَلَّى الظُّهرَ ثُمَّ رَكِبَ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ويلي دي نبي کريم ﷺ به چې کله د نمر د زوال نه مخکې د تلو اراده وفرمايله نو د ماسپښين مونځ به ئې تر مازيګره پوري روستي کړ بيا به د سورلئ نه راکښته شو دواړه مونځونه به ئې جمع او ادا کړل او کله به ئې چې تګ او مزل د نمر د زوال نه روسته وُ نو د ماسپښين مونځ به ئې ادا وفرمايه او بيا به سور شو. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۸۵۷﴾ وَعَن عَبدِ اللهِ بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ رَأَيتُ النَّبِي ﷺ إِذَا أَعجَلَه السَّيرُ فِي السَّفَرِ يؤَخِّرُ صَلَاةَ المَغرِبِ حَتَّى يجمَعَ بَينَها وَبَينَ العِشَاءِ رواه الشيخان.[2]

**ترجمه** : او حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ويلي دي چې ما نبي کريم ﷺ ليدلي وُ کله چې هغه - د سفر په دوران کې جلتي کوله نو د ماښام مونځ به ئې روسته کړ تردي چې ماښام او ماسختن به ئې يو ځاي ادا وفرمايل. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

---

(۱) بخاري ابواب تقصير الصلوٰة ج۱صــــ ۱۵۰ باب يؤخر الظهر الي العصر اذا ارتحل ...الخ ، مسلم كتاب المسافرين ج۱صــــ ۲۴۵ بــاب جواز الجمع بين الصلوٰتين في السفر .

(۲) بخاري ابواب تقصير الصلوٰة ج۱صــــ ۱۴۹ باب هل يؤذن او يقيم اذا جمع بين المغرب والعشاء ، مسلم كتاب المسافرين ج۱صــــ ۲۴۵ باب جواز بين الصلوٰتين في السفر .

## ﴿ بَابُ جَمعِ التَّاخِيرِ بَينَ الصَّلاتَينِ فِي السَّفَرِ ﴾
## په سفر کې د دوه وُ مونځونو ترمنځ د جمع د تاخیر باب

﴿۸۵۸﴾ عن اَنَسِ بنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا ارتَحَلَ قَبلَ اَن تَزِيغَ الشَّمسُ اَخَّرَ الظُّهرَ اِلَى وَقتِ العَصرِ ثُمَّ يجمَعُ بَينَهمَا وَاِذَا زَاغَتْ صَلَّى الظُّهرَ ثُمَّ رَكِبَ رواه الشيخان وفي رواية لمسلم اَخَّرَ الظُّهرَ حَتّٰى يدخُلَ اَوَّلَ وَقتِ العَصرِ ثُمَّ يجمَعُ بَينَهمَا .[1]

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ویلي دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم به چې کله د نمر د زوال نه مخکې مزل او تګ کاوه ماسپښین به ئي د مازیګره پوري روستي کړ بیا به ئي دواړه سره یو ځاي ادا کړل او کله به چې زوال شوي وُ د ماسپښین مونځ به ئي ادا کړ بیا به سوریده . دا حدیث شیخینو روایت کړي او د مسلم په یو روایت کې دا الفاظ راغلي دي چې ماسپښین به ئي روسته کړ تر دي پوري چې د مازیګر اولني وخت به داخل شو بیا به ئي دواړه یو ځاي ادا فرمایل .

﴿۸۵۹﴾ وَعَنه عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا عَجِلَ عَلَيه السَّفَرُ يؤَخِّرُ الظُّهرَ اِلٰى اَوَّلِ وَقتِ العَصرِ فَيجمَعُ بَينَهمَا وَيؤَخِّرُ المَغرِبَ حَتّٰى يجمَعَ بَينَهمَا وَبَينَ العِشَاءِ حِينَ يغِيبُ الشَّفَقُ رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به کله په سفر کې جلتي کوله نو د ماسپښین مونځ به ئي د مازیګر د اول وخته پوري روسته وفرمایه بیا به ئي دواړه یو ځاي ادا کړل او ماښام به ئي تر هغي وخته پوري روسته کړ چې کله به شفق غائب شو او ماښام او ماسختن به ئي دواړه یو ځاي ادا وفرمایل . د دي حدیث روایت مسلم کړي دي .

﴿۸۶۰﴾ وعَن نَافِعٍ اَنَّ ابنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ اِذَا جَدَّبِهَا السَّيرُ جَمَعَ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ بَعدَ اَن يغِيبَ الشَّفَقُ وَيقُولُ اِنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا جَدَّبِه السَّيرُ جَمَعَ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ رواه مسلم .[3]

**ترجمه** : د نافع نه روایت دي چې ابن عمر رضي الله عنه به کله په سفر کې جلتي کوله نو ماښام او

(۱) بخاري ابواب تقصير الصلوة ج۱صـــ ۱۵۰ باب اذا ارتحل بعد ما زاغت الشمس ، مسلم كتاب للمسافرين ج۱صـــ۲۴۵ باب جواز الجمع بين الصلوتين في السفر .

(۲) مسلم كتاب للمسافرين ج۱صـــ ۲۴۵ باب جواز الجمع بين الصلوتين في السفر .

(۳) مسلم كتاب للمسافرين ج۱صـــ ۲۴۵ باب جواز الجمع بين الصلوتين في السفر .

ماسختن به ئې دواړه يو ځاي ادا کول. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۸۶۱﴾ وَ عَنه عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ کَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَدَّ بِهِ السَّيرُ جَمَعَ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ إِلى رُبعِ اللَّيل رواه الدار قطني.

قَالَ النِّيمَوِي هٰذِهِ الزِّيَادَةُ فِي المَرفُوعِ إِنَّمَا هُوَ وَهمٌ وَالصَّوَابُ وَقفُهَا وَفِيهَا إِضطِرَابٌ وَالمَحفُوظُ بِدُونِهَا.[1]

**ترجمه**: د نافع نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي کله به چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته په سير کې جلتي وه نو ماښام او ماسختن به ئې د شپې تر څلورمې حصې پوري يو ځاي ادا فرمايه معنی دا چې ماښام به ئې روسته کاوه. دا حديث دار قطني روايت کړي دي.

نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې دغه زيادت په مرفوع کې وهم دي او د دي موقوف کيدل صحيح دي او په دي کې اضطراب دي او د دي نه په غير هغه روايت محفوظ دي.

﴿۸۶۲﴾ و عن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ غَابَتْ لَه الشَّمسُ بِمَكة فَجَمَعَ بَينَهُمَا بِسَرِف رواه ابوداود والنسائي وفيه ابو الزبير المكي وهو مدلس.[2]

**ترجمه**: د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته په مکه مکرمه کې نمر پريواته نو هغه - دواړه مونځونه په سرف نومي ځاي کې يو ځاي ادا وفرمايل. د دي حديث روايت ابو داؤد او نسائي کړي دي او په دي کې ابو الزبير مکي دي او هغه مدلس دي.

**تشريح**: د نوموړي باب اولني (۸۵۸) حديث چې د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه بخاري په ابواب التقصير الصلوة کې او د باب دويم (۸۵۹) حديث چې هغه هم د حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت شوي دي او د دي باب دريم (۸۶۰) حديث چې د نافع نه روايت شوي دي چې هغه هم په مسلم کې دي او څلورم (۸۶۱) حديث چې ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت شوي دي او د دي باب پنځم (۸۶۲) حديث چې د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه ابو داد روايت کړي دي. دغه ټول روايتونه په ښکاره په جمع تأخير باندي دلالت کوي خو ولي زمونږ د احنافو هم هغه جواب دي کوم چې مخکې تير شوي دي. چې دلته د جمع تاخير نه مراد جمع صوري ده نه جمع حقيقي.

(۱) دار قطني كتاب الصلوة ج۱صـ ۳۹۲ باب الجمع بين الصلوتين في السفر.

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۷۱ باب الجمع بين الصلوتين، نسائي كتاب المواقيت ج۱صـ ۹۹ باب الوقت الذي يجمع فيه المسافر بين المغرب والعشاء.

نيموي رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې بعضي راوي ربع الليل او بعضي هوي من الليل او بعض راوي قريباً من ربع الليل الفاظ راوړي دي او په ابن خزيمه کې دي حتي کان نصف الليل او قريبا من نصفه الفاظ دي او همدغه د اضطراب وجه ده برسيره په دي باندي د نافع د شاګردانو نه حفاظو الي ربع الليل الفاظ نه دي ذکر کړي او همدا وجه ده چې مصنف يعني امام نيموي رَحِمَهُ اللهُ وايي دي چې ( والمحفوظ بدونها ).

## ﴿ بَابُ مَا يَدُلُّ اَنَّ الْجَمْعَ بَيْنَ الصَّلَاتَيْنِ فِي السَّفَرِ كَانَ جَمْعًا صُورِيًا ﴾

### باب دې په بيان د هغه روايتونو کې چې په سفر کې د دوه ؤ مونځونو ترمنځ په صوري جمع باندي دلالت کوي

﴿۸۶۳﴾ عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي لِوَقتِهَا اِلَّا بِجَمعٍ وَ عَرَفَاتٍ رواه النسائي و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : حضرت عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وايي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د عرفات او د مزدلفي نه په غير مونځ په خپل وخت کې ادا فرمايلي دي . دا حديث نسائي روايت کړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۸۶۴﴾ و عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَتْ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي السَّفَرِ يُؤَخِّرُ الظُّهرَ وَ يُقَدِّمُ العَصرَ وَ يُؤَخِّرُ المَغرِبَ وَ يُقَدِّمُ العِشَاءَ رواه الطحاوي و احمد والحاكم و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا وايي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به په سفر کې د ماسپښين مونځ روسته کاوه او د مازيګر مونځ به ئي مخکې کاوه او د مابنام مونځ به ئي روسته کاوه او د ماسختن مونځ به ئي مخکې کاوه . دا حديث طحاوي رَحِمَهُ اللهُ احمد رَحِمَهُ اللهُ او حاکم رَحِمَهُ اللهُ روايت کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۸۶۵﴾ وَعَن كَثِيرِ بنِ قَارَوَنْدَ قَالَ سَأَلنَا سَالِمَ بنَ عَبدِ الله عَن صَلَاةِ اَبِيهِ فِي السَّفَرِ وَسَأَلنَاهُ هَل كَانَ يَجمَعُ بَينَ شَيءٍ مِن صَلَاتِهِ فِي سَفَرِهِ فَذَكَرَ اَنَّ صَفِيَّةَ بِنتَ اَبِي عُبَيدٍ كَانَت تَحتَهُ فَكَتَبَت اِلَيهِ وَهوَ فِي زَرَّاعَةٍ لَهُ اِنِّي فِي آخِرِ يَومٍ مِن اَيَّامِ الدُّنيَا وَ اَوَّلِ يَومٍ مِنَ الآخِرَةِ فَرَكِبَ فَاَسرَعَ السَّيرَ اِلَيهَا حَتَّى اِذَا

---

(۱) نسائي كتاب مناسك الحج ج۲ صـــ ۴۴ باب الجمع بين الظهر والعصر بعرفة .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۱۳ باب الجمع بين الصلوتين ، مسند احمد ج ۶ صـــ ۱۳۵، مستدرك حاكم .

كَانَتْ صَلَاةُ الظُّهرِ قَالَ لَه الْمُؤَذِّنُ الصَّلَاةَ يَا اَبَا عَبدِ الرَّحمٰنِ فَلَمْ يَلتَفِتْ حَتّٰى اِذَا كَانَتْ بَينَ الصَّلَاتَينِ نَزَلَ فَقَالَ اَقِمْ فَاِذَا سَلَّمتُ فَاَقِمْ فَصَلّٰى ثُمَّ رَكِبَ حَتّٰى اِذَا غَابَتِ الشَّمسُ قَالَ لَه الْمُؤَذِّنُ الصَّلَاةَ فَقَالَ كَفِعْلِكَ فِي صَلَاةِ الظُّهرِ وَالعَصرِ ثُمَّ سَارَ حَتّٰى اِذَا اشْتَبَكَتِ النُّجُومُ نَزَلَ ثُمَّ قَالَ لِلمُؤَذِّنِ اَقِم فَاِذَا سَلَّمْتُ فَاَقِمْ فَصَلّٰى ثُمَّ انصَرَفَ فَالتَفَتَ اِلَينَا فَقَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا حَضَرَ اَحَدَكُمُ الْاَمْرُ الَّذِي يَخَافُ فَوتَه فَلْيصَلِّ هٰذِهِ الصَّلَاةَ رواه النسائي و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : كثيربن قاروند ويلي دي چې مونږ د سالم بن عبدالله نه د ده د پلار د سفر د مانځه په باره كې پوښتنه وكړه او د هغه نه مونږدا پوښتنه هم وكړه چې هغه په خپل سفر كې د مانځه په يو ځئ كې جمع والي كړي دي هغه دا خبره بيان كړه چې صفيه بنت ابي عبيد د هغه په نكاح كې وه نو هغې خپل زوج ته په داسي حال كې خط وليكه چې هغه په خپل فصل كې ؤ چې بې شكه زه په اخري ورځې د دنيا كې او په اولې ورځې د اخرت كې يم نو هغه سور شو او د هغې په طرف ئې په تيز رفتاري سره سفر كاود تر دې پوري چې كله دماسپښين دمانځه وخت نزدې شونومؤذن هغه ته وويل اي ابو عبدالرحمن مونځ نو ابن عمر رضي الله عنه د ده خبري ته التفات ونه كړ تر دې چې كله د دوه ؤ مونځونو منځني وخت راغي راكښته شو نو وي ويل چې اقامت وكړه . بيا چې ما كله سلام واړاوه نو وي ويل چې اقامت وكړه بيا هغه د ماز يګر مونځ وكړ بيا سور شو تر دې پوري چې نمر ډوب شو نو مؤذن هغه ته وويل چې مونځ نو هغه ورته وويل چې داسي وكړه لكه څنګه چې دې په ماسپښين او ماز يګر كې كړي ؤ بيا هغه روان شو تر دې پوري چې كله ستوري زيات شو نو هغه د سورلئ نه راكښته شو او مؤذن ته ئې وويل چې اقامت ووايه كله چما د مانځه نه سلام وګرځاوه بيا ئې وويل چې اقامت ووايه هغه مونځ وكړ بيا ئې سلام واړاوه ما طرف ته متوجه شو او وي ويل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي ؤ كله چې يو ستاسي ته داسي كار پيښه شي چې د فوت كيدو نه ئې ېريږي نو دغسي مونځ دې وكړي . د دې حديث روايت نسائي كړي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿٨٦٦﴾ وعَن نَافِعٍ وَعَبدِ اللهِ بنَ وَاقِدٍ اَنَّ مُؤَذِّنَ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اَلصَّلَاةَ قَالَ سِرْ سِرْ حَتّٰى اِذَا كَانَ قَبلَ غُيُوبِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَصَلَّى المَغرِبَ ثُمَّ انتَظَرَ حَتّٰى غَابَ الشَّفَقُ فَصَلَّى العِشَاءَ ثُمَّ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا عَجِلَ بِه اَمرٌ صَنَعَ مِثلَ الَّذِي صَنَعتُ فَسَارَ فِي ذٰلِكَ اليَومِ وَاللَّيلَةِ مَسِيرَةَ

---

(۱) نسائي كتاب المواقيت ج۱ صـــ ۹۸ باب الوقت الذي يجمع فيه المسافر بين الظهر والعصر .

ثَلاَثٍ رواه ابوداود و الدار قطني و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: د نافع او د عبد الله بن واقد نه روايت دي چې د حضرت ابن عمر رضي الله عنه مؤذن وويل چې مونځ ابن عمر وويل چې څه څه تر هغه پورې چې د شفق د ډوبيدو اول وخت ؤ نو د سورلۍ نه راکښته شو د مابنام مونځ ئې وکړ بيا ئې انتظار وکړ تر دې پورې چې شفق غائب شو نو د ماسختن مونځ ئې ادا کړ بيا ئې وويل بې شکه رسول الله صلى الله عليه وسلم ته به چې کله د جلتۍ کار مخې ته شو هغه به همدغسې کول لکه ما چې وکړ په دې سفر کې ابن عمر رضي الله عنه په دې يوې شپې او يوې ورځې کې د درېو شپو او د درېو ورځو مسافه قطع کړې وه. د دې حديث روايت ابوداؤد او دار قطني کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿٨٦٤﴾ وَ عنِ ابنِ جَابِرٍ قَالَ حَدَّثَنِي نَافِعٌ قَالَ خَرَجْتُ مَعَ عَبدِ الله بنِ عُمَرَ رضي الله عنه فِي سَفَرٍ يرِيدُ أَرضًا له فَأَتَاه آتٍ فَقَالَ إِنَّ صَفِيةَ بِنتَ أَبِي عُبَيدٍ لِمَّا بِها فَانْظُرْ إِنْ تُدرِكها فَخَرَجَ مُسْرِعًا وَ مَعَه رَجُلٌ مِن قُرَيشٍ يسَايرُه وَ غَابَتِ الشَّمسُ فَلَم يصَلِّ الصَّلاَةَ وَكَانَ عَهدِي بِه وَهوَ يحَافِظُ عَلَى الصَّلاَةِ فَلَمَّا أَبطَأَ قُلتُ الصَّلاَةَ يرحَمُك الله فَالتَفَتَ إِلَيَّ وَ مَضَى حَتَّى إِذَا كَانَ فِي آخِرِ الشَّفَقِ نَزَلَ فَصَلَّى المَغرِبَ ثُمَّ أَقَامَ العِشَاءَ وَ قَد تَوَارَى الشَّفَقُ فَصَلَّى بِنَا ثُمَّ أَقبَلَ عَلَينَا فَقَالَ إِنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم كَانَ إِذَا عَجِلَ بِه السَّيرُ صَنَعَ هٰكَذَا رواه النسائي و ابوداود والطحاوي والدار قطني و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: د ابن جابر رضي الله عنه نه روايت دي هغه وېلي دي چې ماته نافع حديث بيان کړي هغه وېلي دي چې زه په يو سفر کې د عبدالله بن عمر رضي الله عنه سره وم هغه خپلې ځمکې ته تلل غوښتل يو راتلونکي راغي ورته وې ويل چې بې شکه صفيه بنت ابي عبيد (د ابن عمر رضي الله عنه ښځه) د خپل کوم تکليف په وجه ئې (ته غوښتې ئې) ؤګوره فکر وکړه که په ژوند. کې ئې. ؤګورې نو ابن عمر رضي الله عنه په تيزئې سره راؤته او د ده سره د قريشو يو کس ؤ چې په جلتۍ ورسره روان ؤ نمر پرېوته او دوې لا مونځ نه ؤ کړې او کله به چې د ده زما سره ملاقات ؤ ده به په مانځه باندې پابندي کوله نو

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۱۷۱ باب الجمع بين الصلوتين، دار قطني کتاب الصلوة ج۱ص۳۹۳ باب الجمع بين الصلاتين في السفر.

(۲) نسائي کتاب المواقيت ج۱ص۹۹ باب الوقت الذي يجمع فيه المسافر بين المغرب والعشاء، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۱۷۱ باب الجمع بين الصلوتين، دار قطني کتاب الصلوة ج۱ص۳۹۳ باب الجمع بين الصلاتين في السفر، طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص۱۱۲ باب الجمع بين الصلاتين.

کله چې هغه تأخير وکړ نو ورته وي ويل چې مونځ الله جل شانه دي په تا رحم وکړي نو ماته ئي وکتل او روان شو تر دي پورې چې کله د شفق اخري وخت شو راخکته شو د ماښام مونځ ئي وکړ بيا ئي د ماسختن د پاره اقامت وکړ او په تحقيق شفق پټ شوي وُ نو مونږ ته ئي مونځ وکړ بيا مونږ طرف ته متوجه شو نو وي ويل چې بي شکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته به چې کله د جلتئ کار پيه شو نو دغسي به ئي کول. د دي حديث روايت نسائي ، ابوداؤد ، طحاوي او دار قطني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۶۸﴾ و عَن عَبدِ الله بنِ مُحَمَّدِ بنِ عُمَرَبنِ عَلِيِ بنِ اَبِي طَالِبٍ عَن اَبِيه عَن جَدِّه اَنَّ عَلِياً رَضِيَ اللهُ عَنهُ كَانَ اِذَا سَافَرَ سَارَ بَعدَ مَا تَغرُبُ الشَّمسُ حَتّٰى كَادَ اَن تَظلِمَ ثُمَّ يَنزِلُ فَيُصَلِّي المَغرِبَ ثُمَّ يَدعُو بِعَشَاءٍ فَيَتَعَشّٰى ثُمَّ يُصَلِّي العِشَاءَ ثُمَّ يَرتَحِلُ وَ يَقُولُ هٰكَذَا كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَصنَعُ رواه ابوداود و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: د عبدالله بن محمد بن عمر بن علي بن ابي طالب نه د هغه د پلار په واسطه د هغه د نيکه نه روايت دي چې حضرت علي به چې کله سفر کاوه نو د نمر د پريوتو نه روسته به ته تردي پورې چې قريب وُ تياره شي بيا به راخکته شو د ماښام مونځ به ئي وکړ بيا به ئي طعام راوغوښته د شپي دودي به ئي وُخوړله بيا به ئي د ماسختن مونځ ادا کړ. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۸۶۹﴾ و عن اَبِي عُثمَانَ قَالَ وَفَدتُ اَنَا وَ سَعدُ بنُ مَالِك وَ نَحنُ نُبَادِرُ لِلحَجِّ فَكُنَّا نَجمَعُ بَينَ الظُّهرِ وَالعَصرِ نُقَدِّمُ مِن هٰذِه وَ نُؤَخِّرُ مِن هٰذِه وَ نَجمَعُ بَينَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ نُقَدِّمُ مِن هٰذِه وَنُؤَخِّرُ مِن هٰذِه حَتّٰى قَدِمنَا مَكَّة رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: ابو عثمان ويلي دي چې ما او ابن مالک يو ځاي سفر کاوه او مونږ به په جلتي سره د حج د پاره سفر کاوه او مونږ به د ماسپښين او مازيګر ترمنځ جمع کوله دا يو به مو رامخکي کړ او دا بل مو روسته کړ تر دي چې مکي ته راورسيدو . د دي حديث روايت طحاوي کړي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۷۴ باب متى يتم المسافر .

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۴ باب الجمع بين الصلاتين .

## دجمع صوري دلائل :

داپورته مرفوع او موقوف روايتونه دحنفيو ددې نقطه نظر تائيد کوي چې حضور صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او دحضرات صحابه کرامو رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې کوم ځاي مونځونو لره دخپل وختونو نه مقدم يا مؤخر کول نو دهغې نه مراد جمع صوري ده نه حقيقتا چې يو يې دبل په وخت کې ادا کول او داسې کله کيداي شي چې قرآني آيتونه دمونځ وختونه جدا جدا متعين کوي :

۱... ان الصلوة كانت على المؤمنين كتابا موقوتا. (النساء :۱۰۳)

۲... حافظوا على الصلوات والصلوة الوسطى. (البقره :۲۳۸)

۳... فويل للمصلين الذين هم عن صلوتهم ساهون. ( الماعون :۴-۵)

په دويم حديث کې " يؤخر الظهر ويقدم العصر " الفاظ جمع صوري باندې صريح دي . په دريم حديث کې " حتى اذا كان بين الصلاتين " نه معلومه شوه چې ديو مونځ وخت هم اونه وتلو او نه داخل شو لهذا جمع صوري شوه په څلورم حديث کې دي : " حتى اذا كان قبل غيوب الشفق " او دا بالکل واضح دي په پنځم حديث کې دي : " حتى اذا كان في آخر الشفق " گويا چې شفق مکمل نه وو غايب شوې لهذا دماښام وخت اوس باقي وو نو ځکه جمع صوري شوه په شپږم حديث کې دحضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او په اوم حديث کې دتابعينو رَحِمَهُ اللهُ جمع صوري باندې عمل مروي دي .

# ﴿ بَابُ الْجَمْعِ فِي الْحَضَرِ ﴾

## په حضر کې د دوه ؤ مونځونو د يو ځاي کولو باب

﴿۸۷۰﴾ عن ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ جَمَعَ رَسُولُ الله صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَيْنَ الظُّهرِ وَالعَصرِ وَالمَغرِبِ وَالعِشَاءِ بِالمَدِينَةِ فِي غَيرِ خَوفٍ وَلَا مَطَرٍ رواه مسلم و آخرون .

قَالَ النِّيمَوِي وَلِلعُلَمَاءِ تَاوِيلَاتٌ فِي هٰذَا الحَدِيثِ كُلُّهَا سَخِيفَةٌ إِلَّا الحَملَ عَلَى الجَمعِ الصُّورِي (۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّىٰ اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ماسپښين او ماز يگر او د ماښام او ماسختن مونځونه په مدينه منوره کې په غير څه ويرې او په غير د باران نه يو ځاي ادا فرمايلي دي . د دې حديث روايت مسلم او نورو محدثينو کړي دي .

---

(۱) مسلم كتاب للمسافرين ج۱ص ۲۴۶ باب جواز الجمع بين الصلاتين في السفر .

امام نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د محدثينو د پاره په دي حديث کې مختلف تأويلونه دي چې ټول ضعيف دي بغير د دېنه چې په جمع صوري باندې يې محمول کړي.

**بلاعذر جمع بين الصلاتين** :دحديث باب مفهوم بالكل ظاهر دې ليکن بحث په دې کې دې چې بغير دخوف او مطر نه جمع بين الصلاتين في الحضر دائمه و اربعو نه يو هم قائله نه دې امام ترمذي فرمايلي دي چې بالاتفاق دې حديث په ظاهر باندې عمل نشته.

**تشريح**:د نوموړي باب (٨٧٠) حديث چې ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئې روايت کړي دي امام نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د محدثينو د پاره په دي حديث کې مختلف تأويلونه دي خو ولي په حقيقت کې دا ټول کمزوري تأويلونه دي. د دي نه زيات صحيح تأويل دا دي چې په صوري جمع باندې محمول کړي شي.

## ﴿ بَابُ النَّهيِ عَنِ الْجَمعِ فِي الْحَضَرِ ﴾

## په حضر کې د دوه ؤ مونځونو د جمع کولو نه د نهي باب

﴿٨٧١﴾ عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مَا رَأَيتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ صَلَّى صَلَاةً إِلاَّ لِمِيقَاتِهَا إِلاَّ صَلَاتَينِ صَلَاةَ المَغرِبِ وَالعِشَاءِ بِجَمْعٍ وَصَلَّى يَومَئِذٍ قَبلَ مِيقَاتِهَا رواه الشيخان .[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه دي ليدلي چې په غير د خپل وخت نه ئي مونځ کړي دي په غير د دوه ؤ مونځونو نه چې يو د ماښام او د ماسختن مونځ په مزدلفه کې او بل د سهر مونځ ئې په دغه ورځ کې د خپل وخت نه مخکې کړي دي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿٨٧٢﴾ وَعَن أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَمَا أَنَّهُ لَيسَ فِي النَّومِ تَفرِيطٌ إِنَّمَا التَّفرِيطُ عَلَى مَن لَم يُصَلِّ حَتَّى يَجِيءَ وَقتُ الصَّلَاةِ الأُخرَى رواه مسلم و آخرون .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابو قتاده رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي خبردار په خوب کې نقصان نشته بې شکه نقصان په هغې کس باندې دي چې مونځ نه ادا کوي تر هغې پورې چې د بل مانځه وخت راشي. د دي حديث روايت مسلم او نورو محدثينو کړي دي.

١

(١) مسلم كتاب الحج ج١صـ ٤١٧ باب زيادة التغليس بصلوة الصبح ، بخاري كتاب المناسك ج١صـ ٢٢٨ باب من يصلي الفجر بجمع.

(٢) مسلم كتاب المساجد ج١صـ ٢٣٩ باب قضاء الصلوة الفائتة ...الخ ، طحاوي كتاب الصلوة ج١صـ ١١٤ باب الجمع بين الصلاتين .

﴿۸۸۳﴾ وَ عَن عُثمَانَ بنَ عَبدِ الله بن مَوهبٍ قَالَ سُئِلَ اَبُو هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ مَا التَفرِيطُ فِي الصَّلاَة قَالَ اَن تُؤَخِرَ حَتّٰى يجِيءَ وَقتُ الاُخرٰى رواه الطحاوي واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : عثمان بن عبدالله بن موهب ويلي دي چې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه پوښتنه وکړي شوه چې تفريط څه شي دي هغه ويل چې ته مونځ روسته کړي تر هغي پوري چې د بل مونځ وخت پري راشي. دا حديث طحاوي روايت کړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۸۸۴﴾ وَ عَن طَاوسٍ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لاَ يفُوتُ صَلاَة حَتّٰى يجِيءَ وَقتُ الاُخرٰى رواه الطحاوي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د طاؤس نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي مونځ نه قضاء کيږي تر هغي پوري چې د بل مانځه وخت راشي. دا حديث طحاوي روايت کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

# ﴿اَبوَابُ الجُمُعَة﴾

## ﴿بَابُ فَضلِ يومِ الجُمُعَة﴾

## د جمعي بابونه

## د جمعي دورځي د فضيلت باب

﴿۸۸۵﴾ عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ذَكَرَ يومَ الجُمُعَة فَقَالَ فِيه سَاعَة لاَ يوَافِقُها عَبدٌ مُسلِمٌ وَهوَ قَائِمٌ يصَلِّي يسأَلُ الله تعالى شَيئًا اِلَّا اَعطَاه آياه وَ اَشَارَ بِيدِه يقَلِّلُها رواه الشيخان.[3]

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د جمعي د ورځي فضيلت بيان فرمايه نو هغه وفرمايل چې په دي ورځ کې يو وخت دي چې برابر به نه شي د دي ساعت سره يو بنده مسلمان چې هغه په دي وخت کې ولاړ وي مونځ کوي غواړي د الله جل شانه نه يوي شئ مګر خو وربه کړي الله جل شانه دغه شي هغه ته او رسول اکرم صلى الله عليه وسلم په خپل مبارک

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۴ باب الجمع بين الصلوتين.

(۲) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ص ۱۱۴ باب الجمع بين الصلوتين.

(۳) بخاري كتاب الجمعة ج۱ص ۱۲۸ باب الساعة التي في يوم الجمعة، مسلم كتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۱.

لاس باندي اشاره وفرمايله او د هغه وخت لږوالي ئي بيان ؤفرمايه . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

﴿۸۷۶﴾ وَعَنه اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَيرُ يومٍ طَلَعَتْ عَلَيه الشَّمسُ يومَ الجُمُعَة فِيه خُلِقَ آدَمُ وَفِيه اُدْخِلَ الجَنَّةَ وَفِيه اُخرِجَ مِنها وَلاتَقُومُ السَّاعَةَ اِلاَّ فِي يومِ الجُمُعَةِ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابي هريره رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي بهتره ورځ چې په هغې نمر ختلي وي د جمعي ورځ ده په دي ورځ کې حضرت ادم عَلَيْهِ السَّلَامُ پيدا کړي شوي دي او په دي ورځ کې جنت ته ننوتي دي او په دي ورځ کې د جنت نه راويستل شوي دي او قيامت به قائم نشي مګر خو د جمعي په ورځ کې . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۸۷۷﴾ وعن اَبِي لُبَابَة البَدرِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَيدُ الاَيامِ يومَ الجُمُعَة وَاَعظَمُها عِندَ الله وَهوَ اَعظَمُ عِندَ الله مِن يومِ الفِطرِ وَيومِ الاَضحٰى وَفِيه خَمسُ خِلالٍ خَلَقَ الله عز وجل فِيه آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَاَهبَطَ الله فِيه آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِلَى الاَرضِ وَفِيه تَوَفَّي الله آدَمَ عَلَيْهِ السَّلَامُ وَفِيه سَاعَة لاَيسأَلُ العَبدُ فِيها شَيئًا اِلَّا آتَاه الله آياه مَا لَم يسأَلَ حَرَامًا وَفِيه تَقُومُ السَّاعَة مَا مِن مَلَك مُقَرَّبٍ وَلاَسَمَاءٍ وَلاَاَرضٍ وَلاَرِياحٍ وَلَا جِبَالٍ وَلاَبَحرٍ اِلاَّ هنَّ يشفَقنَ مِن يومِ الجُمُعَة رواه احمد وابن ماجه وقال العراقي اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابي لبابه بدري رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي . د ورځو سرداره ورځ د جمعي ورځ ده او د ورځو ډيره لويه ورځ د الله جل شانه په نزد د جمعي ورځ ده او دغه ورځ د الله جل شانه په نزد ډيره لويه ده دواړه اختر دورځي نه او د لوئ اختر د ورځي نه او په دي ورځ کې پنځه شيان دي په دي ورځ کې الله جل شانه ادم عَلَيْهِ السَّلَامُ پيدا کړي دي او په دي ورځ کې الله جل شانه آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ ځمکي ته راکوز کړي دي او په دي ورځ کې الله جل شانه آدم عَلَيْهِ السَّلَامُ وفات کړي دي او په دي ورځ کې يو وخت دي چې سوال به ونه کړي د الله جل شانه ځيني بنده د يو شئ مګر الله جل شانه به هغه شي بنده ته ورکړي ترڅو پوري چې بنده د حرام شئ سوال : الله جل شانه نه وي کړي . او په دي ورځ کې به قيامت قائميږي او هيڅ يوه مقربه ملائکه او فرشته نشته او نه اسمان او

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۲.

(۲) مسند احمد ج۳ صـــ ۴۳۰ ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۷۷ باب فضل الجمعة .

نه څمکه او نه بادونه او نه غرونه او نه درياب مګر خو د جمعي د ورځي نه يريږي . د دي حديث روايت احمد او ابن ماجه کړي دي . او عراقي ويلي دي اسناد ئي حسن دي .

﴿۸۴۸﴾ و عَن عَبدِ الله بنِ سَلاَمٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ قُلتُ وَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ اِنَّا لَنَجِدُ فِي كِتَابِ الله فِي يومِ الجُمُعَة سَاعَةً لاَ يوَافِقُهَا عَبدٌ مُؤمِنٌ يصَلِّي يسأَلُ الله فِيها شَيئًا اِلَّا قَضِي لَه حَاجَتُه قَالَ عَبدُ الله فَأَشَارَ اِلَى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَو بَعضَ سَاعَة فَقُلتُ صَدَقتَ أَو بَعضَ سَاعَة قُلتُ أَي سَاعَة هِي قَالَ آخِرُ سَاعَة مِن سَاعَاتِ النَّهارِ قُلتُ اِنَّها لَيسَتْ سَاعَةَ الصَّلاَة قَالَ بَل اِنَّ العَبدَ المُؤمِنَ اِذَا صَلَّى ثُمَّ جَلَسَ لاَ يحبِسُه اِلاَّ الصَّلاَة فَهوَ فِي الصَّلاَة رواه ابن ماجه و اسناده حسن .[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن سلام رضي الله عنه ويلي دي چې ما عرض وکړ په داسي حال چې رسول الله صلى الله عليه وسلم تشريف فرماؤ چې بې شکه مونږ د الله جل شانه په کتاب کې دا موندلي دي چې د جمعي په ورځ کې يو ساعت دي چې موافق او برابر به نه شي د دغه ساعت سره يو مؤمن بنده چې مونځ وکړي د الله جل شانه نه يو څه وغواړي مګر د ده حاجت به پوره کړي شي عبدالله ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ما طرف ته اشاره وفرمايله او يا د ساعت يوه حصه ده ما عرض وکړو چې تاسي رښتيا ويلي دي او يا د ساعت يوه برخه ده ماعرض وکړ چې هغه کوم وخت دي هغه وفرمايل چې د ورځي د ساعتونو نه اخري ساعت دي ما عرض وکړ چې دغه خو د مانځه وخت نه دي هغه وفرمايل چې هو بې شکه بنده مؤمن چې کله مونځ وکړي بيا کيني د مونځ نه په غير ده لره بل هيڅ يو شئ بند کړي نه وي نو هغه په مانځه کې دي . د دي حديث روايت ابن ماجه کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۸۴۹﴾ وَ عَن أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ أَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ فِي الجُمُعَة سَاعَةً لاَ يوَافِقُهَا عَبدٌ مُسلِمٌ يسأَلُ الله عز و جل فِيها خَيرًا اِلَّا أَعطَاه آياه وَهِي بَعدَ العَصرِ رواه احمد و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابوسعيد رضي الله عنه او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې بې شکه په جمعه کې يو وخت او ساعت دي چې موافق او برابر به نه

---

(۱) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۸۱ باب ماجاء في الساعة التي ترجى في الجمعة .

(۲) مسند احمد ج۲صـــ ۲۷۲.

شي د دغه ساعت سره يو بنده مسلمان چې سوال وکړي الله جل شانه نه د خير مګر خو وربه کړي الله جل شانه هغه ته هغه شئ او دغه ساعت د مازيګر د مانځه روسته دي . د دي حديث روايت احمد رحمه الله کړي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۸۸۰﴾ وَ عَن جَابِرٍ رضي الله عنه عَن رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ يومُ الجُمُعَةِ اِثنَتَا عَشرَةَ سَاعَةً لاَ يوجَدُ فِيها عَبدٌ مُسلِمٌ يسأَلُ الله شَيئاً اِلاّ آتَاه اِياه فَالتَمِسُوها آخِرَ سَاعَةٍ بَعدَ العَصرِ رواه النسائي و ابوداود و اسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : د حضرت جابر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د جمعي په ورځ کې دولس ساعته دي موجود به نه کړي شي په دغه ساعت کې يو مسلم بنده چې د الله جل شانه نه سوال وکړي يو شئ مګر وربه کړي الله جل شانه هغه شئ دي بنده ته نو ؤلټوئ دغه ساعت په اخري ساعت کې د مازيګر نه روسته . د دي حديث روايت ابوداؤد او نساني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۸۸۱﴾ وعن اَنَسِ بنِ مَالِك رضي الله عنه قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم عُرِضَتْ عَلَيَّ الاَيامُ فَعُرِضَ عَلَيَّ فِيها يومُ الجُمُعَةِ فَاِذَا هي كَمِرآةٍ بَيضَاءَ فَاِذَا فِي وَسَطِها نُكتَةٌ سَودَاءُ فَقُلتُ مَا هٰذِه قِيلَ السَّاعَةُ رواه الطبراني في الاوسط و اسناده صحيح(۲)

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي پيش کړي شوي وي ماته ورځې چې په دي ورځو کې ماته د جمعي ورځ هم پيش کړي شوي وه نو ناګهانه هغه ورځ لکه د آيني په شاني سپينه وه خو ولي د هغې په منځ کې تور والي ؤ نو ما وويل چې دا څه شي دي وويلي شو چې قيامت دي . د دي حديث روايت په اوسط کې طبراني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۸۸۲﴾ وَ عَنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم اِنَّ الله تَبَارَكَ وَ تَعَالَى لَيسَ بِتَارِكٍ اَحَدًا مِنَ المُسلِمِينَ يومَ الجُمُعَةِ اِلاَّ غُفِرَ لَه رواه الطبراني في الاوسط و اسناده صحيح .(۳)

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص۱۵۰ باب الاجابة اية ساعة هي في يوم الجمعة .

(۲) المعجم الاوسط ج ۸ ص. ۱۵۱ برقم ۷۳۰۳ ، مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۲ص۱۶۴ باب في الجمعة في السفر.

(۳) المعجم الاوسط ج ۵ ص ۴۱۲ برقم ۴۸۱۴ ، مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۲ ص ۱۶۴ باب في الجمعة في السفر.

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي بې شکه الله جل شانه تبارک وتعالی په غير د بخښني نه پرېښودونکي هيڅ يو کس د مسلمانانو لره نه وي مگر خوبخښنه به وکړي شي هغه ته د دي حديث روايت په اوسط کې طبراني کړي دي او اسنادئي صحيح دي.

﴿۸۸۳﴾ وَ عَن سَلَمَةَ بنِ عَبدِ الرَّحمٰنِ اَنَّ نَاسًا مِن اَصحَابِ رَسُولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِجتَمَعُوا فَتَذَاكَرُوا السَّاعَةَ الَّتِي فِي يومِ الجُمُعَة فَتَفَرَّقُوا وَ لَم يَختَلِفُوا اَنَّهَا آخِرُ سَاعَةٍ مِن يومِ الجُمُعَة رواه سعيد بن منصور في سننه و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حضرت سلمه بن عبدالرحمن نه روايت دي چې بې شکه د صحابه کرامو نه يو څه خلک راجمع شوي ؤ دوي په هغه ساعت کې مذاکره کوله کوم ساعت چې د جمعي په ورځ کې دي بيا د خبرو نه روسته دوي بيل بيل شو او دوي په دي کې اختلاف نه ؤ کړي چې هغه ساعت د جمعي د ورځي اخري ساعت دي . د دي حديث روايت سعيد بن منصور کړي په خپل سنن کې او اسناد ئي صحيح دي.

## دجمعې په ورځ مقبول وخت کوم يو دې ؟

په دې باره کې څو اقواله دي :

۱... دورځي آخرينې وخت يعني دغروب نه لږ مخکې عندالامام ابي حنيفه.

۲... دامام خطبي لپاره په ممبر اودريدلو نه پس تر اختتام صلاة پوري عندالامام الشافعي رَحِمَهُ اللَّهُ.

۳... دامام دجمعې په مونځ کې دسورة الفاتحه ويلو نه پس تر آمين ويلو پورې .

۴... دا خاص وخت دحضور صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په وخت کې وو ليکن اوس اوچت شوي دې . دا قول محدثينو رد کړې دی .

۵... دا وخت دجمعې په ورځ کې پټ دې او دليلة القدر او داسم اعظم په شان ددې تعين هم اوچت کړي شوې دی .

لهذا دجمعې په ورځ په کثرت سره دعاګانې غوختل پکار دي دباب درواياتونو نه دټولو نه داولني قول تائيد کيږي .

(۱) فتح الباري کتاب الجمعة ج۳ صـ ۷۲ باب الساعة في يوم الجمعة نقلا عن سعيد بن منصور .

## ﴿بَابُ التَّغْلِيظِ فِي تَرْكِهَا لِمَنْ عَلَيهِ الْجُمُعَةُ﴾

## باب په سختئ د ترک د جمعي کې دي په چا باندي چي جمعه واجب وي

﴿۸۸۴﴾ عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِقَومٍ يَتَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ لَقَد هَمَمْتُ اَنْ آمُرَ رَجُلاً يُصَلِّي بِالنَّاسِ ثُمَّ اُحرِقَ عَلَى رِجَالٍ تَخَلَّفُونَ عَنِ الْجُمُعَةِ بُيُوتَهُمْ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د داسي خلکو په باره کې فرمايلي دي څوک چې د جمعي د مانځه نه روسته والي کوي په تحقيق ما قوي اراده کړي چې يو کس ته حکم وکړم چې خلکو ته مونځ وکړي بيا د هغو کورونه وسېزم کوم چې د جمعي د مانځه نه روسته کيږي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۸۸۵﴾ وعنِ الحَكَمِ بنِ مِينَاءَ اَنَّ عَبدَ الله بنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ اَبَاهُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ حَدَّثَاهُ اَنَّهُمَا سَمِعَا رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ عَلَى اَعْوَادِ مِنبَرِهِ لَيَنتَهِيَنَّ اَقوَامٌ عَن وَدْعِهِمُ الْجُمُعَاتِ اَو لَيَخْتِمَنَّ الله عَلَى قُلُوبِهِم ثُمَّ لَيَكُونَنَّ مِنَ الْغَافِلِينَ رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : د حکم بن ميناء نه روايت دي چې حضرت عبدالله بن عمر او حضرت ابوهريره رضي الله عنهما هغه ته حديث بيان کړي دي چې د دي دواړو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه د لرګو په ممبر باندي اوريدلي ؤ چې فرمايلي ئي چې خامخا په تحقيق منع به شي خلک د پريښودل و د مونځونو د جمعو نه او يا به الله جل شانه د دوي په زړونو باندي مهر ولګوي بيا به خامخا دوي د غافلينو نه شي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۸۸۶﴾ عَن اَبِي الْجَعدِ الضَّمْرِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَن تَرَكَ ثَلَاثَ جُمَعٍ تَهَاوُنًا بِهَا طَبَعَ الله عَلَى قَلبِهِ رواه الخمسة و اسناده صحيح .[3]

---

(۱) مسلم كتاب المساجد صــ ۲۳۲ بيان فضل صلوة الجماعة وبيان التشديد في التخلف عنها ...الخ .

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۴.

(۳) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۵۱ باب التشديد في ترك الجمعة ، نسائي كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۰۲ باب التشديد في التخلف عن الجمعة ، ترمذي ابواب الجمعة ج۱صـــ ۱۱۲ باب ماجاء في ترك الجمعة من غير عذر ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات والسنة فيها صـــ ۸۰ باب فيمن ترك الجمعة من غير عذر ، مسند احمد ج۳صـــ ۴۲۴.

**ترجمه**: د ابو الجعد ضمري رضي الله عنه روايت دي او هغه صحابي دي چې په تحقيق رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د سستوب په وجه د درېو جمعو مونځونه پرېږدي الله جل شانه به د ده په زړه بانده مهر ولګوي. د دي حديث روايت پنځو محدثينو کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

**﴿۸۸۷﴾ و عن جَابِرِ بنِ عَبدِ الله رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم مَن تَرَكَ الجُمُعَةَ ثَلاثًا مِن غَيرِ ضَرُورَةٍ طَبَعَ اللهُ عَلَى قَلبِهِ رواه ابن ماجه و آخرون و اسناده صحيح.**[1]

**ترجمه**: حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د ضرورت نه په غير دري ځله د جمعي مونځ پرېږدي الله جل شانه به د ده په زړه باندي مهر ولګوي. د دي حديث روايت ابن ماجه او نورو محدثينو کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

**﴿۸۸۸﴾ وَ عَن أَبِي قَتَادَةَ رضي الله عنه أَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم قَالَ مَن تَرَكَ الجُمُعَةَ ثَلاثَ مَرَّاتٍ مِن غَيرِ ضَرُورَةٍ طُبِعَ عَلَى قَلبِهِ رواه احمد والحاكم واسناده حسن.**[2]

**ترجمه**: د ابي قتاده رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د جمعي مونځ په غير د ضرورت نه دري ځلي پرېږدي په زړه به ئي مهر ولګولي شي. د دي حديث روايت احمد او حاکم کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

دجمعي په پرېښودلو باندې زجر او توبيخ: دجمعې په فرضيت په باره کې ارشاد دې: "**يآايها الذين آمنوا اذا نودي للصلوة من يوم الجمعة فاسعوا الى ذكر الله ... الاية**" (الجمعة). دآيت مباركه او دپورتني احاديثو پر بناء باندې داځمه اربعو رحمه الله سره سره دپوره امت اتفاق دې. چې دجمعې مونځ فرض عين دې بغير دعذر ددې ترک کول ګناه کبيره دې.

په زړه باندې به يې مهر اولګولې شي: په متعددو احاديثو کې دا مضمون وارد دې چې کوم کس محض دغفلت او دتسابل دوجې نه بغير دعذر شرعي دري پېره دجمعې مونځ اونکړي نو الله تعالى به دده په زړه باندې مهر اولګوي يعنې داسي کس قصاوت قلب کې مبتلا کيږي دکوم دوجې نه به دده په زړه کې دخير خبره نه ننوځي، او دطبع نه مراد دکفر مهر نه لکه څنګه چې په آيت کريمه کې دې (**ختم الله على قلوبهم و على سمعهم .... الاية**) ځکه چې دترک جمعې دوجې نه سړې کافر کيږي

(۱) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ج۱ ص ۸۰ باب فيمن ترك الجمعة من غير علر.

(۲) مسند احمد ج ۵ ص ۳۰۰، مستدرك حاكم كتاب الجمعة ج۱ ص ۲۸۰ باب التشديد في ترك الجمعة.

نه .(الدر المنضود :۲/۴۰۳)

## ﴿بَابُ عَدَمِ وُجُوبِ الجُمُعَةِ عَلَى العَبدِ وَالنِّسَاءِ وَالصِّبْيَانِ وَالْمَرِيضِ﴾

## باب په عدم وجوب د جمعه کې دي چې په غلام (مرئ) ښځو ماشومانو او مریض باندې د جمعې مونځ واجب نه دي

﴿۸۸۹﴾ عَن طَارِقِ بنِ شِهَابٍ عَنِ النَّبِي ﷺ قَالَ اَلجُمُعَةُ حَقٌّ وَاجِبٌ عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ فِي جَمَاعَةٍ اِلَّا اَرْبَعَةً عَبْدٌ مَمْلُوكٌ اَوِ امْرَأَةٌ اَو صَبِيٌّ اَو مَرِيضٌ رواه ابوداود و اسناده مرسل جيد.[1]

**ترجمه** : د حضرت طارق بن شهاب نه روايت دي چې نبي اکرم ﷺ فرمايلي دي چې جمعه حق واجب ده په هر مسلمان باندې په جماعت سره مګر څو په څلورو کسانو باندې نه ده واجب. مرئ، ښځه، ماشوم او مريض. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي دي او اسناد ئې مرسل جيد دي.

**مسئلة الباب** : د ائمه اربعه رحمه الله اتفاق دې چې غلام، ښځه، نابالغ ماشوم او دمريض په ذمه باندې جمعه لازم نه ده صرف د امام احمد رحمه الله نه يو روايت دې چې په غلام باندې هم لازم دي دداود ظاهري په نزد په غلام باندې هم جمعه لازمه ده (رحمة الامه، ص: ۵۷) ليکن دباب حديث دجمهور تائيد کوي.

**قوله " واسناده مرسل جيد "** : په اصل کې دحضرت طارق بن شهاب رضي الله عنه په باره کې صحيح دادې چې هغه حضور ﷺ لره په حالت دايمان کې کتلې وو ليکن هيڅ حديث يې ترې نه دې اوريدلې. اوس لازمي خبره ده چې دده په هر روايت کې به دصحابي واسطه وي. دلته هم داشوي ده چې ديو صحابي واسطه ده ليکن هغه څوک دې؟ دهغه ذکر نه دې کړې شوې لهذا سندا دا روايت مرسل شو ليکن مرسلِ صحابي کوم چې دجمهور په نزد مقبول دې او حجت دې بعضې حضراتو هغه واسطه ابوموسى اشعري رضي الله عنه لره ګرځولې ده ليکن صحيح خبره داده چې ذکر يې نه دې شوې لهذا مرسل دې. (التعليق الحسن، ملخصا)

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۳ باب الجمعة للمملوك والمرأة.

## ﴿بَابُ اَنَّ الجُمُعَةَ غَيرُ وَاجِبَةٍ عَلَى المُسَافِرِ﴾

## باب د جمعي مونځ په مسافر باندي واجب نه دي

﴿٨٩٠﴾ عَنِ الاَسوَدِ بنِ قَيسٍ عَن اَبِيهِ قَالَ اَبصَرَ عُمَرُ بنُ الخَطَّابِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ رَجُلاً عَلَيه هيئة السَّفَرِ فَسَمِعَه يقُولُ لَولَا اَنَّ اليومَ يومَ الجُمُعَة لَخَرَجتُ فَقَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اُخرُج فَاِنَّ الجُمُعَةَ لاَتَحبِسُ عَنِ السَّفَرِ رواه الشافعي في مسنده و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: د اسود بن قيس نه روايت دي چې زما پلار ويلي دي چې حضرت عمربن الخطاب رضي الله عنه يو كس وليده چې په هغه باندي د سفر اثر ؤ نو د هغه نه ئي اوريدلي ؤ چې ويل ئي كه چرته نن ورځ د جمعي ورځ نه وي نو زه به په سفر تلي وم نو حضرت عمر رضي الله عنه وويل لاړ شه بې شكه جمعه د سفر نه ځوك نه منع كوي. د دي حديث روايت شافعي رحمه الله په خپل مسند كې كړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

**مسئلة الباب**: دائمه اربعو په نزد مسافر باندې جمعه واجب نه ده كه دآذان آواز واوري او كه نه. د حديث الباب نه ددې تائيد كيږي همدارنګه دطبراني په روايت كې دي: ليس على المسافر جمعة.

## ﴿بَابُ عَدَمِ وُجُوبِ الجُمُعَةِ عَلَى مَن كَانَ خَارِجَ المِصرِ﴾

## كوم كس چې د ښار نه بهر وي په هغه باندي د جمعي د مانځه د نه واجيدو باب

﴿٨٩١﴾ عن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا زَوجِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَت كَانَ النَّاسُ يَنتَابُونَ (٣٢٢) الجُمُعَةَ مِن مَنَازِلِهِم وَالعَوَالِي اَلحَدِيث رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې خلك به د خپلو ځايونو نه او د خواو شا كليو نه د جمعي مانځه ته په نمبر سره راتلل. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

﴿٨٩٢﴾ وَ عَن حُمَيدٍ قَالَ كَانَ اَنَسٌ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي قَصرِهِ اَحيانًا يجَمِّعُ وَ اَحيانًا لَا يجَمِّعُ رواه مسدد في مسنده الكبير و اسناده صحيح و ذكره البخاري تعليقًا وَزَادَ وَهوَ بِالزَّاوِيَةِ عَلَى فَرسَخَينِ.[3]

---

(١) مسند امام شافعي الباب الحادي عشر في صلاة الجمعة ج١ص ١٥٠ رقم الحديث ٤٣٥.

(٢) بخاري كتاب الجمعة ج١ص ١٢٣ باب من اين تؤتى الجمعة، مسلم كتاب الجمعة ج١ص ٢٨٠.

(٣) فتح الباري كتاب الجمعة ج٢ص٣٢ باب من اين تؤتى الجمعة نقلاعن للمسندالكبير للمسدد تعليقاكتاب الجمعة ج١ص١٢٣ باب من اين تؤتى الجمعة.

**ترجمه** : حُمید وېلي دي چې حضرت انس رضي الله عنه به په خپل کور کې وُ کله به ئې د جمعې مونځ کاوه او کله به ئې د جمعې مونځ نه کاوه . د دې حدیث روایت مسدد په خپل مسند کې کړی دی او اسناد ئې صحیح دی او بخاري تعلیقًا ذکر کړی دی او دا الفاظ ئې زیات کړي دي چې هغه د دوه فرسخه (شپاړس کلو میټره) په فاصله کې په زاویه نومې ځای کې وُ .

﴿۸۹۳﴾ وَعَن اَبِي عُبَيدٍ مَولَى ابنِ اَزهَرَ قَالَ شَهِدتُّ العِيدَ مَعَ عُثمَانَ فَجَاءَ فَصَلّٰى ثُمَّ انصَرَفَ فَخَطَبَ وَقَالَ اِنَّه قَدِ اجتَمَعَ لَكُم فِي يَومِكُم هٰذَا عِيدَانِ فَمَن اَحَبَّ مِن اَهلِ العَالِيَةِ اَن يَنتَظِرَ الجُمُعَةَ فَلْيَنتَظِرهَا وَمَن اَحَبَّ اَن يَرجِعَ فَقَد اَذِنتُ لَه رواه مالك والبخاري في كتاب الاضاحي .[1]

**ترجمه** : ابو عُبید مولی بن ازهر وېلي زه د حضرت عثمان رضي الله عنه سره د اختر مانځه ته حاضر شوم نو هغه راغې مونځ ئې وکړ بيائې سلام واړاوه نو خطبه ئې ووېله او وې وېل چې په تحقیق سره ستاسې دپاره ستا بې په دې ورځ دوه اخترونه یو ځای شوي د خواوشا د کلو د خلکو نه چې څوک د جمعې د مانځه انتظار خوښوي نو د جمعې د مانځه انتظار دې وکړي او څوک چې واپس تلل خوښوي نو ما هغه ته اجازت ورکړی دی. د دې حدیث روایت مالک او بخاري په کتاب الاضاحي کې کړی دی .

﴿۸۹۴﴾ وَعَن حُذَيفَةَ رضي الله عنه قَالَ لَيسَ عَلٰى اَهلِ القُرٰى جُمُعَةٌ اِنَّمَا الجُمَعُ عَلٰى اَهلِ الاَمصَارِ مِثلُ المَدَائِنِ رواه ابو بكر بن ابي شيبة و اسناده مرسل .[2]

**ترجمه** : حضرت حذیفه رضي الله عنه وېلي دي چې د باندو په خلکو باندې جمعه نشته بې شکه جمعه د مدائن په شان د ښارونو په خلکو باندې شته . د دې حدیث روایت ابوبکر بن ابي شيبه کړی دی او اسناد ئې مرسل دی .

﴿۸۹۵﴾ وَعَنِ الشَّافِعِي قَالَ وَقَد كَانَ سَعِيدُ بنُ زَيدٍ رضي الله عنه وَاَبُو هُرَيرَةَ رضي الله عنه يَكُونَانِ بِالشَّجَرَةِ عَلٰى اَقَلِّ سِتَّةِ اَميَالٍ يَشهَدَانِ الجُمُعَةَ وَيَدَعَانِهَا وَكَانَ يَروِي اَنَّ اَحَدَهُمَا كَانَ يَكُونُ بِالعَقِيقِ يَترُكُ الجُمُعَةَ وَيَشهَدُهَا وَكَانَ يَروِي اَنَّ عَبدَ اللهِ بنِ عَمرِو بنِ العَاصِ رضي الله عنه كَانَ عَلٰى مِيلَينِ مِنَ الطَّائِفِ يَشهَدُ الجُمُعَةَ وَيَدَعُهَا رواه البيهقي في المعرفة باسناده الي الشافعي .[3]

---

(۱) موطاامام مالك كتاب العيدين ص۱۶۵ باب الامر بالصلوة قبل الخطبة بخاري كتاب الاضاحي ج۲ص۸۳۵ باب مايؤكل من لحوم الاضاحي وما يتزود منها.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۱۰۱ باب من قال لاجمعة ولا تشريق الا في مصر جامع .

(۳) معرفة السنن والآثار كتاب الجمعة ج۱ص ۳۱۵ رقم الحديث ۹۳ ـــ ۶۲۹۲.

**ترجمه** : شافعي رَحِمَهُ الله ويلي دي چې سعيد بن زيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دواړه په سبحه نومي مقام کې ؤ چې د شپږو ميلونه په لړه فاصله کې دي دواړه به جمعي ته حاضريدل او کله به ئي د جمعي مونځ پريښوده او امام شافعي رَحِمَهُ الله دا روايت هم کړي ؤ چې يو په دوي کې د عُقيق په مقام کې اوسيده د جمعي مونځ به ئي پريښوده او کله به د جمعي مانځه ته راته. او هغه دا روايت هم کړي ؤ چې عبدالله بن عمرو بن العاص رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د طائف نه په دوه ميله فاصله کې ؤ جمعي ته به کله راته او کله به ئي د جمعي مونځ پريښوده هم. د دي حديث روايت بيهقي په معرفت کې تر شافعي رَحِمَهُ الله پوري په خپل اسناد سره بيان کړي دي.

**مسئلة الباب** : دښار نه بهر کس باندې جمعه

هغه کس چې دښار نه بهر يا په ښار کې دننه اوځي نو په هغه باندې آيا جمعه واجب ده يا نه؟

۱... دائمه ثلاثه رَحِمَهُ الله په نزد خارج مصر باندې داذان په اوريدو سره جمعه واجب ده.

۲... دحنفيو رَحِمَهُ الله په نزد خارج مصر اوځيدونکو باندې جمعه واجب نه ده که اذان واوري او که نه.

**دائمه ثلاثه رَحِمَهُ الله دلائل :**

۱...عن عائشة : " قَالَتْ كَانَ النَّاسُ يَنْتَابُونَ الْجُمُعَةَ مِن مَنَازِلِهِمْ ومن القرى ". دخلکو دکلو نه ښار ته دجمعي اداکولو لپاره راتلل دحنفيو په خلاف دجمهور حجت دې ځکه چې حنفيه اهل قريه باند جمعه واجب نه ګڼي حال دا چې دمديني منورې باندېچيان ښار ته صرف دجمعې لپاره راتلل كما قاله القرطبي وغيره. (التعليق الحسن)

عن عبدالله بن عمرو عن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال : الجمعة على كل من سمع النداء (ابوداود رقم :۱۰۵۶)

**دحنفيو دلائل** : ۱. دعائشي رضي الله عنها مذكور حديث "كان الناس ينتابون الجمعة ...."

الحديث. که په اهل قريه والا باندې دجمعې مونځ واجب کيدو نو هغه به ځانله ځانله راتللو پر ځاي يو ځاي په جمع راتلل.

۲. دباب دويم حديث : "كَانَ أَنَسٌ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فِي قَصْرِهِ أَحيانًا يُجَمِّعُ" ، که خارج دمصر نه جمعه واجب وې نو حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ به هميشه لپاره جمعې لپاره راتللو.

۳. دعثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول : " مَن أَحَبَّ مِن أَهلِ العَالِيَة أَن يَنْتَظِرَ الجُمُعَة " الخ که په اهل قريه والا باندې دجمعې مونځ واجب وې نو هغوي ته به دجمعې مونځ نه مخکې دواپس تللو اجازت نه وې.

۴. دحذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قول : " ليس على اهل القرى جمعة " ، غير مدرک بالقياس قول صحابي ، حديث مرفوع په درجه کې دي.

**ائمه ثلاثو ته داستدلال جوابونه :**

۱... دعائشې رضی الله عنها نه استدلال صحیح نه دې ، حافظ ابن حجر رحمه الله او نور شافعیه هم دې لره غلط ګرځولې دې ځکه چې دحنفیو په مسلک باندې صریح دې نه دجمهور.

۲... "الجمعة علی کل من سمع النداء" پخپل ظاهر باندې محمول نه دې ورنه داهل مصر په هغه خلکو جمعه واجب نه ده پکار ځوک چې د اذان آواز وانه وري دحنفیو رحمه الله په نزد ددې حدیث محمل په فناء مصر کې داوشدونکو خلکو دي یعنې دیو ښار مضافات په دې معامله کې ددې ښار په حکم کې دي.

## ﴿بَابُ اِقَامَةِ الْجُمُعَةِ فِي الْقُرٰى﴾

## په کلو کې د جمعې د مانځه د قائمولو باب

﴿۸۹۶﴾ عنِ ابنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه قَالَ اِنَّ اَوَّلَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِي الْاِسْلَامِ بَعْدَ جُمُعَةٍ جُمِّعَتْ فِي مَسْجِدِ رَسُولِ اللهِ صلی الله علیه وسلم بِالْمَدِينَةِ لَجُمُعَةٌ جُمِّعَتْ بِجَوَاثَا قَرْيَةٍ مِن قُرَى الْبَحْرَيْنِ قَالَ عُثْمَانُ قَرْيَةٌ مِن قُرٰى عَبْدِ الْقَيْسِ رواه ابوداود و اسناده صحيح.

قَالَ النِّيمَوِي قَوْلُه قَرْيَةٌ مِن قُرَى الْبَحْرَيْنِ اَو قَرْيَةٌ مِن قُرَى عَبْدِ الْقَيْسِ تَفْسِيْرٌ مِن جِهَةِ الرَّاوِي لاَ مِن كَلاَمِ ابنِ عَبَّاسٍ رضی الله عنه وَالْقَرْيَةُ قَد تُطْلَقُ عَلَى الْمُدُنِ وَكَانَتْ بِجَوَاثَا آثَارُ الْمَدِينَةِ . وَقَد قَالَ اَبُو عُبَيْدِ الْبَكْرِي فِي مُعْجَمِهِ هِيَ مَدِينَةٌ بِالْبَحْرَيْنِ لِعَبْدِ الْقَيْسِ.[1]

**ترجمه :** حضرت ابن عباس رضی الله عنه ویلي دي چې بې شکه د جمعې اول مونځ چې په اسلام کې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مسجد کې ادا شوي د دې نه روسته اولني مونځ په بجواثا نومي ځاي کې شوي دي جواثا د بحرین د کلو نه یو کلي دي او عثمان ویلي دي او د عبد قیس د کلونه یو کلي دي. د دې حدیث روایت ابوداؤد کړي او اسناد ئې صحیح دي.

نیموي رحمه الله ویلي دي چې دا قول من قري البحرين او قرية من قرئ عبد قيس دا د راوي تفسیر دي او د ابن عباس رضی الله عنه کلام نه دي ، یعني جواثا د بحرین د کلو نه یو کلي دي او یا د عبد قیس د کلو نه یو کلي دي. دا د راوي تفسیر دي د ابن عباس رضی الله عنه کلام نه دي. او د قري اطلاق کله په

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱صـ ۱۵۳ باب الجمعة في القرى.

ښار باندي کيږي او په جواثا کې ځيني اثار د ښار موجود ؤ او ابوعبيد البکري په خپل معجم کې ويلي دي چې دا په بحرين کې يو ښار ؤ د عبد قيس.

﴿٨٩٤﴾ و عَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ كعبِ بنِ مَالِك وَكانَ قَائِدَ اَبِيه بَعدَ مَا ذَهَبَ بَصَرُه عَن اَبِيه كعبِ بنِ مَالِك اَنَّه كانَ اِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ يومَ الجُمُعَة تَرَحَّمَ لِاَسعَدِ بنِ زُرَارَة فَقُلتُ لَه اِذَا سَمِعتَ النِّدَاءَ تَرَحَّمتَ لِاَسعَدِ بنِ زُرَارَة قَالَ لِاَنَّه اَوَّلُ مَن جَمَّعَ بِنَا فِي هزمِ النَّبِيتِ مِن حَرَّة بَنِي بَيَاضَة فِي نَقِيعٍ يقَالُ لَه نَقِيعُ الخَضِمَاتِ قُلتُ كم اَنتُم يومَئِذٍ قَالَ اَربَعُونَ رواه ابوداود و آخرون و قال الحافظ في التلخيص اسناده حسن و لابن ماجه فيه قَالَ اَي بُنَيّ كانَ اَوَّلُ مَن جَمَّعَ بِنَا صَلاَة الجُمُعَة قَبلَ مَقدَمِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بِمَكة.

قَال النِّيمَوِي اِنَّ تَجمِيعَهمْ هٰذَا كانَ بِرَأيِهم قَبلَ اَن تُشرَعُ الجُمُعَة لَا بِاَمرِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كمَا يدُلُّ عَلَيه مُرسَلُ ابنِ سِيرِينَ اَخرَجَه عَبدُ الرَّزَّاقِ.[1]

**ترجمه**: عبدالرحمن بن کعب بن مالک د خپل پلار د نظر د ختميدو نه روسته د هغه قائد ؤ ده د خپل پلار کعب بن مالک نه روايت کړي چې هغه به کله د جمع اذان واوريده نو اسعد بن زراره ته به ئې دا الفاظ استعمالول او ربه ئې ورته ويل نو ما هغه ته وويل چې کله ته اذان واورې نو اسعد بن زراره ته د ترحمه الفاظ استعمالوي يعني رَحِمَهُ اللهُ ورته وائي هغه وويل دا اول شخص دي چې مونږ ته ئې په حره د بني بياضه هزم انيت د نفيع کې چې دي ته نفيع الخضمات ويلي شي د يو ځاي نوم دي د جمعي مونځ کړي ؤ ما ورته وويل چې تاسي په دغه ورځ څو کسان وئ هغه وويل څلويښت کسان ؤ . د دي حديث روايت ابوداؤد او نورو محدثينو کړي دي او حافظ په تلخيص کې ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي او په ابن ماجه کې د دي حديث الفاظ دا دي چې اي بچوريه دا اول هغه کس دي چې ده د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د مکي مکرمي نه د هجرت کولو نه مخکې ئې مونږ ته د جمعي مونځ کړي ؤ.

نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د دوي دا د جمعي مونځ کول د جمعي د شروع نه مخکې په خپله رأيه وه او د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په امر نه وه لکه چې د ابن سيرين رَحِمَهُ اللهُ مرسل په دي باندي دلالت کوي.

---

(١) ابوداؤد كتاب الصلوة ج١ صـــ ١٥٣ باب الجمعة في القرى ، ابن ماجة ، ابواب اقامة الصلوات صـــ ٧٧ باب فرض الجمعة ، صحيح ابن خزيمة كتاب الجمعة ج ٣ صـــ ١١٣ برقم ١٧٢٤.

دا حدیث عبدالرزاق خارج کړي دي .

﴿۸۹۸﴾ و عن كعب بنِ عُجْرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَمَّعَ اَوَّلَ جُمُعَة حِينَ قَدِمَ الْمَدِينَةَ فِي مَسجِدِ بَنِي سَالِمٍ فِي مَسجِدِ عَاتِكة رواه عمر بن شبة في اخبار المدينة و لم اقف على اسناده .

قَالَ النِّيمَوِي اِنَّ كَثِيْرًا مِن اَهلِ التَّارِيخِ وَالسِّيَرِ اِخْتَارُوا مَا فِي هٰذَا الْخَبَرِ لٰكِنَّه يعَارِضُ بِمَا رَوَاه البُخَارِي في رواية حَتّٰى نَزَلَ بِهِمْ فِي بَنِي عَمرِو بنِ عَوفٍ وَ ذٰلِك يومُ الْاِثْنَيْنِ مِن شَهرِ رَبِيعِ الْاَوَّلِ وَ فِي رِوَايَة فَاَقَامَ فِيهِم اَرْبَعَ عَشَرَةَ لَيلة .

قَالَ النِّيمَوِي وَ بَنُو سَالِمٍ كَانَتْ مَحَلَّة مِن مَحَلاَّتِ الْمَدِينَةِ بِشَيءٍ مِنَ الْفَصْلِ .[1]

**ترجمه** : د كعب بن عُجره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كله مديني منوري ته تشريف راوړ نو اول ئي د بني سالم په مسجد مسجد عاتكه كې د جمعي مونځ وكړ . دا حديث عمر بن شبة په اخبار مدينه كې روايت كړي دي او په اسناد ئي پوه نه يم .

نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي ډيرو سيرت ليكونكو او مؤرخينو دا خبره غوره كړي ده كومه چې په دي حديث كې ده خو ولي د دي سره هغه حديث معارض دي كوم چې بخاري په يو روايت كې نقل كړي دي . تر دي پوري چې هغه د دوي سره په بني عمرو بن عوف كې خكته شو او دا د ربيع الاول د مياشتي د ګل ورځ وه او په يو روايت كې دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په هغو كې څوارلس ورځي قيام فرمايلي ؤ .

او نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې بنو سالم د مديني منوري د محلو نه يوه محله وه په څه لږ فاصله سره .

﴿۸۹۹﴾ وَ عَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّهم كَتَبُوا اِلٰى عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَسْاَلُونَ عَنِ الْجُمُعَة فَكَتَبَ جَمِّعُوا حَيثُ مَا كُنْتُمْ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و سعيد ابن منصور وابن خزيمة والبيهقي و قال هذا الاثر اسناده حسن .

قَالَ الْعَينِي معنَاه جَمِّعُوا حَيثُ مَا كُنْتُمْ مِنَ الْاَمصَارِ اَلَا تَرٰى اَنَّها لَا تَجُوزُ فِي الْبَرَارِي .قَال وَ فِي الْبَابِ آثَارٌ اُخرٰى لَا تَقُومُ بِمِثْلِهَا الْحُجَّة .[2]

---

(۱) تاريخ المدينة المنوّرة عمر بن شبة ج۱صـــ ۶۸.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصّلوات ج۲صـــ ۱۰۱ باب من كان يري الجمعة في القرى وغيرها . صحيح ابن خزيمة صــــ ، معرفة السنن والآثار كتاب الجمعة ج ۴ صــــ ۳۲۲ رقم الحديث ۶۳۳۴ عملي ج۳ صــــ ۵۲ ، للتخيص الحبير ۲صــــ ۵۴.

**ترجمه** : د حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې خلکو حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته خط وليکه او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه ئې د جمعې په باره کې پوښتنه وکړه هغه وليکل د جمعې مونځ وکړئ هر ځاي کې چې ئې تاسي د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه ، سعيد بن منصور ، ابن خزيمه او بيهقي کړي دي او ويلي ئې دي چې دا اثر د دي اسناد حسن دي عيني ويلي دي چې د دي حديث معنى دا ده چې د جمعې مونځ کوئ په هر ځاي کې چې ئې تاسي د ښارونو نه آيا تاسي نه گورئ چې په ځنګلونو کې د جمعې مونځ روانه دي .

او نيموي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په دي باب کې نور اثار هم شته خو په داسي اثارو باندي حجت او دليل نشي قائميدي .

## په کلو کې دجمعې مونځ جائز دې يا ناجائز؟

په کلو او بانډو کې د جمعې د مانځه مسئله د فقهي د مهمو مسائلو نه يو مهمه او مختلف فيه مسئله ده او په دي مسئله کې مذهبي اختلاف په لاندي ډول سره بيانيږي .

(۱) مذهب: په دي باره کې د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ قول دا دي د ده په نزد باندي په هر لوئي او واړه کلي او بانډه کې د جمعې مونځ صحيح دي او غير مقلدين هم د دي قائل دي بلکه غير مقلدينو په دي مسئله کې زياته غلو او د حد نه تجاوز کړي دوي فقط په کلي نه بلکه په ځنګل کې هم د جمعې د مونځ قائل دي. (۱)

(۲) مذهب: د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ او د امام مالک رَحِمَهُ اللهُ مشهور قول دا دي چې په ښار او قريه دواړو کې د جمعې مونځ صحيح دي خو ولي د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ نه په دي باره کې څه صريح قول نه دي نقل شوي .

(۳) مذهب: د حنفي مذهب صاحبانو په نزد باندي د جمعې د مانځه د صحت لپاره ښار او لوي کلي شرط دي په وړو کلو او بانډو کې د جمعې مونځ جائز نه دي بيا د حنفي مذهب صاحبانو په خپل منځ کې د ښار په تعين کې د قديم او حديث قول په اعتبار سره اختلاف دي بلکه د ديوبند او زمونږ د علماؤ ترمنځ هم په دي کې اختلاف دي .

(۱) حضرت تهانوي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د نورو شرائطو نه په غير د خلکو د شمار په اعتبار سره چې دري زره ابادي وي . (۲) مفتي کفايت الله صاحب رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې ابادي دوه نيم زره وي خو ولي د ژوند ضروريات پکې سرته رسيږي لکه مثلا ، کولال دکانو نه د وړو مشين ، موچي ،

---

(۱) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲٦٦.

اهنگر، دهوبي، شفاخانه هسپتال، ډاکخانه، او مکتب (سکول) او داسې نور او د يو مسجد نه زيات مسجدونه وي نو هلته د جمعې مونځ صحيح دي. (۱)

**په کلو کې د جمعې د مونځ د صحت دليلونه**: د الله جل شانه فرمان دي: (واذا نودي للصلوٰة من يوم الجمعة فاسعوا الي ذکرالله وذروا البيع) په کلو کې د جمعې د مانځه د صحت قائلين په دليل کې وائي چې (فاسعوا) مطلق دي په دي کې د ښار او يا د قريې څه ذکر نشته نو د دي وجهې نه د جمعې مونځ په هر ځاي کې جائز دي. احنافو په جواب کې ويلي دي چې سعي د ندا پوري موقوفه ده او په دي کې دا بيان نه دي شوي چې نداء (اذان) کول چرته پکار دي او چرته نه دي پکار او کله چې په قريه کې نداء نه وي نو هلته سعي هم واجب نه ده. (۲)

**د حضرت نانوتوي رحمه الله استدلال**: حضرت مولانا محمد قاسم نانوتوي رحمه الله د دي ايت کريمه نه د احنافو مذهب ثابت کړي دي او ويلي ئې دي چې زه دومره زياته پوهه نلرم خو ولي دومره ويلي شم چې په کلو کې د جمعې د مانځه عدم جواز د قرآن شريف نه ثابت دي. قرآنکريم کې فرمان دي (يآايها الذين امنوا اذا نودي للصلوٰة من يوم الجمعة فاسعوا الى ذکرالله) معنى دا چې اي مؤمنانو کله چې مانځه ته د جمعې اذان وکړي شي نو منډه وکړئ د الله جل شانه ذکر ته.

په دي ايت کريمه کې د جمعې د مانځه د پاره د سعي حکم ورکړي شوي دي چې، د سعي معنى منډه وهل او په جلتئ سره تلل دي او د سعي نوبت هغه وخت راتلاي شي چې هلته د لري مسافي کټ کول وي او په کلو کې داسې نه کيږي.

بيا ئې فرمايلي دي (وذروا البيع) يعني اخستل او خرڅول پريلأدئ معلومه شوه چې د جمعې حکم د هغه ځاي د پاره دي چې چرته لوي بازار او منډئ وي نو هلته د خريد وفروخت په معاملو کې خلک ډير زيات مصروف وي په کلو کې دا داسې مصروف کيدو بازار چرته دي او وريسې الله جل شانه فرمايلي (فاذا قضيت الصلوٰة فانتشروا في الارض وابتغوا من فضل الله) يعني معنى دا چې د مانځه نه روسته په ځمکه کې خواره شئ او د امدن په خپلو ذرائعو کې ورته د مصروف کيدو حکم شوي د دي نه دا هم خيال ته راځي چې په دي سلسله کې داسې يو مقام او ځاي پکار دي چې هلته په

(۱) خزائن السنن ج ۲ صـ ۱۷۵.

(۲) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲۶۱.

کثیر تعداد سره مشاغل او ذرائع وي او دا په ورو کلو کې چرته وي .(۱)
د دي باب اولني حدیث (۸۹۶) حدیث چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه ئي روایت کړي دي . امام شافعي رحمه الله په دي. دلیل نیولي دي چې په قریه کې د جمعي مونځ صحیح دي او دلیل وربان‌دي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه (۸۹۶) نمبر حدیث دي . حنفي مذهب حضراتو د دي په جواب کې ویلي دي (۱) جواب : چې لفظ د قریه د راوي تفسیر دي او دا ځکه چې همدغه روایت په بخاري ج۱ ص ۱۲۲ کې دي او په هغې کې دغه لفظ نشته . (۲)

(۲) جواب: د قریه لفظ مصر او ښار ته هم ویلي شي په قرآن کریم کې دي ( اخرجنا من هذه القرية الظالم اهلها ) (پ ۵) د دي قری نه مراد مکه مکرمه ده . دویم مقام ( واسئل القرية التي كنا فيها ) (پ ۱۳) او د دي نه مراد مصر دي دریم مقام ( لولا نزل هذا القرآن علي رجل من القريتين عظيم )(پ۲۵) او د دي نه مراد مکه او طائف دي .
او زمخشري په کشاف کې لیکلي دي چې عرب مدیني او ښار ته قریه وائي . او امام بیهقي په سنن کبری ج۳ ص۱۷۹ کې. لیکلي دي چې (قال رسول الله صلى الله عليه وسلم الجمعة واجب علي كل قرية وان لم يكن فيها الا اربعة يعني بالقرئ المدائن) یعني معنی دا چې نبي کریم صلى الله عليه وسلم فرمایلي دي چې جمعه په هره قریه باندي واجب ده اګر که نه وي په دي کې مګر خو څلور کسان مراد د قری نه مدائن او ښارونه دي .(۳)
او بله خبره دا ده چې کله رسول اکرم صلى الله عليه وسلم مدیني ته هجرت وکړ نو په کومه ورځ چې ورسیده دغه ورځ د جمعي ورځ وه او رسول اکرم صلى الله عليه وسلم د ټولو نه مخکې د جمعي مونځ په مدینه منوره کې په بنوسالم کې کړي ؤ او په دي باندي د ټولو محدثینو او مؤرخینو اتفاق دي او په قباء کې ئي څوارلس اویا څلریشت ورځي قیام فرمایلي دي خو ولي په دغه ورځو کې ئي هلته د جمعي مونځ نه دي کړي او د مسجد نبوي صلى الله عليه وسلم نه روسته ئي د ټولو نه مخکې چې د جمعي مونځ ادا کړي دي هغه په جواثا کې ؤ او جواثا د بحرین د قریو نه یوه قریه وه .

---

(۱) حاشیه درس ترمذي ج ۲ صـ ۲٦٧.
(۲) بخزائن السنن ج ۱ صـ ۱۷۷.
(۳) خزائن السنن ج ۲ صـ ۱۷۷-۱۷۸.

(۳) د دي باب دويم (۸۹۷) حديث چې عبد الرحمن بن كعب ئې روايت كړي دي او په دي باندي د جواز قائلينو استدلال كړي ويلي ئې دي چې په كوم كلي كې څلويښت كسان وي نو هلته د جمعي مونځ صحيح دي. احنافو حضراتو د دي په جواب كې ويلي دي چې دغه كار صحابه كرامو په خپله مرضي او په خپله رأيه كړي دي.

برسيره پر دي باندي په مصنف عبد الرزاق ج۱ص۱۵۹كې په صحيح سند سره د محمد بن سيرين رَحِمَهُ اللّٰهُ نه په تفصيل سره حديث روايت شوي دي چې په هغي كې په صراحت سره دا خبره شوي ده چې دغه د جمعي مونځ صحابه كرامو په خپل اجتهاد سره كړي ؤ ولي ځكه چې تر دغه وخته پوري لا د جمعي احكام هم نه ؤ نازل شوي. نو د دي وجهي نه په دغه واقعه باندي استدلال صحيح نه دي. (۱)

(۴) د دي باب (۸۹۸) حديث چې كعب بن عجره ئې روايت كړي دي دا هم د شرافعو مستدل دي او په دي كې تصريح شوي ده چې نبي اكرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اول د قباء نه راغي بني سالم محلي ته او هلته ئې د جمعي مونځ ادا كړ او د بني سالم دغه محله يو وركوټي شان كلي ؤ. امام نيموي رَحِمَهُ اللّٰهُ ويلي دي چې د بني سالم محله د مديني منوري په مضافاتو كې داخله وه ګويا كې په دي محله كې د جمعي مونځ كول داسي ؤ لكه چې په مدينه منوره كې ئې كړي وي همدغه وجه ده چې د سير په كتابونو كې داسي الفاظ دي: (اول جمعة صلاها بالمدينة) يعني معنى دا چې د دغه بني سالم د محلي نه ئې تعبير په مديني سره كړي دي. (۲)

(۵) د دي باب اخري (۸۹۹) حديث چې ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ ئې روايت كړي دي هغه هم د جواز د قائلينو مستدل دي ولي چې په هغي كې د حضرت عمر رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ خپلو عاملينو ته خط ليږلي ؤ چې (جمعوا حيث ما كنتم)

علامه عيني د مصنف د حديث په جواب كې ويلي دي چې د حيث لفظ دلته په خپله ظاهري معني باندي محمول نه دي ځكه چې د دي ظاهري مقتضي دا ده چې په صحراګانو كې هم د جمعي مونځ جائز دي سره د دي چې د دي په عدم جواز باندي د امت اجماع شوي ده نو د دي وجهي نه دا حكم عُمالو او حكامو ته ؤ چې هغوي عمومًا په ښارونو او مركزي ځايونو كې اوسيدل. (۳)

---

(۱) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲۶۹-۲۷۰.
(۲) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲۷۰-۲۷۱.
(۳) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲۷۱.

# ﴿بَابُ لاَ جُمُعَةَ اِلَّا فِي مِصْرٍ جَامِعٍ﴾

## فقط په لويو ښارونو کې د جمعې د مانځه باب

﴿۹۰۰﴾ عَن جَابِرِ بنِ عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ فِي حَدِيثٍ طَوِيلٍ فِي حَجَّةِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَأَجَازَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَتَّى اَتَى عَرَفَةَ فَوَجَدَ القُبَّةَ قَد ضُرِبَت لَه بِنَمِرَة فَنَزَلَ بِهَا حَتَّى اِذَا زَاغَتِ الشَّمسُ اَمَرَ بِالقَصوَاءِ فَرُحِلَتْ لَه فَاَتَى بَطْنَ الوَادِي فَخَطَبَ النَّاسَ اِلى اَن قَالَ ثُمَّ اَذَّنَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى الظُّهرَ ثُمَّ اَقَامَ فَصَلَّى العَصْرَ وَلَم يُصَلِّ بَينَهُمَا شَيئاً رواه مسلم .[1]

قَالَ النِّيمَوِي وَكَانَ ذٰلِك يومُ الجُمُعَة .

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د حج په سلسله کې په يو اوږد حديث کې ويلي دي نو مخکې لاړ رسول الله صلى الله عليه وسلم تر دې چې عرفات ته ورسيد نو يو قبه ئې وليده چې د ده د پاره د يو کرهي لرونکي څادر نه جوړه شوي وه نو هلته تشريف فرما شو تر دې پورې چې د نمر زوال وشو نو د قصواي نومي اوه په باره کې ئې امر وفرمائي نو د ده صلى الله عليه وسلم د پاره په قصواء باندې کجاوه کېښودل شوه نو بطن وادي ته ئې تشريف ويوړ نو خلکو ته ئې خطبه وويله تر دې پورې چې حضرت جابر ويلي دي چې بيا ئې اذان وکړ بيا ئې اقامت وکړ نو د ماسپښين مونځ ئې وکړ بيا ئې اقامت وکړ نو د مازيګر مونځ ئې وکړ او د دې دواړو مونځونو په منځ کې ئې هيڅ مونځ ونکړ. د دې حديث روايت مسلم کړې دي.

نيموي رحمه الله ويلي دي چې دا د جمعې مونځ وُ .

﴿۹۰۱﴾ وَ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه قَالَ اِنَّ اَوَّلَ جُمُعَة جُمِّعَت بَعدَ جُمُعَة فِي مَسجِدِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي مَسجِدِ عَبدِ القَيسِ بِجَوَاثَى مِنَ البَحرَينِ رواه البخاري .

قَالَ النِّيمَوِي اِنَّ هٰذَا الاَثَرُ يستَفَادُ مِنه اَنَّ الجُمُعَة تَخُصُّ بِالمُدُنِ كَالمَدِينَة وَ جَوَاثَا وَ لاَ تَجُوزُ فِي القُرٰى .[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مسجد کې د جمعې

(۱) مسلم كتاب الحج ج۱ صــ ۳۹۶ باب حجة النبي صلى الله عليه وسلم .

(۲) بخاري كتاب الجمعة ج۱ صــ ۱۲۲ باب الجمعة في القرى والمدن .

نه پس د تیولو نه مخکې د بحرین په جواثي نومي ځاي کې د ابن قیس په مسجد کې د جمعي مونځ شوي وُ . د دي حدیث روایت بخاري کړي دي .
نیموي رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې د دي حدیث اثر نه دا خبر فهمېږي چې د جمعي مونځ د ښارونو پوري خاص دي لکه مدینه او جواثي او په کلو او قریو کې د جمعي مونځ نه دي روا .

﴿۹۰۲﴾ وَعَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمٰنِ السُّلَمِي عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ لَا تَشْرِيقَ وَلَا جُمُعَةَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ رواه عبد الرزاق و ابوبکر بن ابي شيبة والبيهقي في المعرفة وهو اثر صحيح .[1]

**ترجمه** : د ابو عبد الرحمن السلمي نه روایت دي چې حضرت علي کرم الله وجهه ویلي دي چې جمعه او تشریق په غیر د مصر جامع نه ( مسجد جامع ) نه صحیح نه دي . د دي حدیث روایت عبدالرزاق ، ابن ابي شیبه او بیهقي په معرفت کې روایت کړي دي او دا اثر صحیح دي .

﴿۹۰۳﴾ وَعَنِ الْحَسَنِ وَ مُحَمَّدٍ أَنَّهُمَا قَالَا الْجُمُعَةُ فِي الْأَمْصَارِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ او د محمد بن سیرین رَحِمَهُ اللهُ ویلي دي چې جمعه په ښارونو کې ده . د دي حدیث روایت ابوبکر بن ابي شیبه کړي دي او د دي اسناد صحیح دي .

**تشریح : د احنافو د پاره په کلو کې د جمعي د عدم جواز دلیلونه** : د دي باب ټول روایتونه د (۹۰۰ حدیث نه نیولي تر ۹۰۳) حدیث پوري دا ټول د احنافو مستدل دي (۱) د دي باب اولني (۹۰۰) حدیث چې حضرت جابر بن عبد الله ئي روایت کړي دي په دي کې په دي خبره باندي تصریح شوي ده او دا خبره په صحیحو روایتونو ثابته شوي ده چې د حجة الوداع په کال په عرفات باندي د ؤدریدو ورځ د جمعي ورځ ده او دا خبره هم ټولو روایتونو په متفقه طور کړي ده چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په عرفات کې د جمعي مونځ نه وُ ادا کړي بلکه د ماسپښین مونځ ئي ادا فرمایلي وُ غیر د دي نه د دي بله هیڅ وجه نشي کیدي چې د جمعي د پاره ښار شرط دي .(۳)

---

(۱) مصنف عبدالرزاق کتاب الجمعة ج۳ص ۱۶۸ باب القری الصغار برقم ۵۱۷۷ ، مصنف ابن ابي شيبة کتاب الصلوات ج۲ص ۱۰۱ من قال لا جمعة ولا تشريق ...الخ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳ص ۱۷۹ باب عدد الذين اذا كانوا في قرية ...الخ . معرفة السنن والآثار كتاب الجمعة ج ۴ ص ۳۲۲ رقم الحديث ۶۳۳۰.
(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۱۰۱ باب من قال لا جمعة ولا تشريق الا في مصر جامع .
(۳) درس ترمذي ج ۲ ص ۲۷۲-۲۷۳.

د دي باب دويم (۹۰۱) حديث هم د احنافو د پاره مستدل دي. او دا ځکه چې د جمعي مونځ په اول سن هجري کې او يا د دي نه هم مخکې فرض شوي ؤ او په جواثي کې د بنو عبدالقيس د جمعي د مانځه واقعه د هجرت نه شپږ کاله روسته ؤه او دا ښکاره خبره ده چې مسلمانانو او صحابه کرامو د شپږو کلونو په دوران کې اسلام تر لرو لرو کلو پوري رسولي ؤ او بي شماره کلي د مسلمانانو په قبض کې راغلي ؤ نو د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ د روايت مطابق چې د مسجد نبوي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه په غير په بل هيڅ ځاي کې د جمعي مونځ نه ؤ قائم شوي دا د دي خبري واضح دليل دي چې په وړو وړو کلو کې د جمع مونځ جائز نه دي.

(۳) د دي باب دريم (۹۰۲) حديث چې حضرت ابي عبدالرحمن السلمي د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت کړي په هغه حديث کې تصريح شوي ده چې تشريق او جمع دواړه په غير د مصر جامع نه په بل ځاي کې صحيح نه دي د بخاري ج ا ص ۱۲۲ حاشيه نمبر ۸ کې دي: استدل ابوحنيفة رَحِمَهُ اللهُ بما رواه عبدالرزاق عن علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قال لا جمعة ولا تشريق الا في مصر جامع (۱) وكذا رواه ابن ابي شيبة عن طريق حجاج الخ وروي ايضًا بسند صحيح حدثنا جرير عن منصور الخ قال النووي حديث علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ متفق علي ضعفه فكانه لم يطلع الا على الاثر الذي فيه الحجاج ولم يطلع على طريق جرير عن منصور فانه سند صحيح ولو اطلع لم يقل بما قاله. كذا في العيني وقال ابن الهمام وكفي بعلي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قدوة اماما. يعني امام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ د عبدالرزاق په روايت باندي چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه ئي روايت شوي استدلال کړي دي چې نه جمع شته او نه تشريق مګر په جامع مصر او ښار کې همدغسي د دي حديث روايت ابن ابي شيبه د حجاج د لاري نه کړي او همدغسي ابي شيبه هم د دي حديث روايت په صحيح سند سره کړي دي نا جرير عن منصور الخ پس په تحقيق دا صحيح مسند دي. نووي رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ حديث اتفاقي ضعيف دي ګويا که نووي رَحِمَهُ اللهُ نه ؤ خبر مګر په هغه روايت چې په هغي کې حجاج ؤ او د جرير عن منصور په طريقه خبر نه ؤ که چرته خبر وي نو دا خبره به ئي نه کوله. په عيني کې همدغسي دي او ابن الهمام ويلي دي چې علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ کافي دي د قدوت او امامت په لحاظ سره. (۲)

---

(۱) درس ترمذي ج ۲ ص ۲۷۳-۲۷۴.

(۲) بخاري ج ۱ ص ۱۲۲، حاشيه نمبر۸.

(۴) د باب اخري (۹۰۳) حديث چې حسن بصري رَحِمَهُ اللهُ او محمد بن سيرين رَحِمَهُ اللهُ روايت کړي دي او فتوی ئې صادره کړي ده چې د جمعې مونځ فقط او فقط په ښارونو کې وي .

# ﴿بَابُ الْغُسلِ لِلْجُمُعَةِ﴾

## د جمعې د پاره د غسل باب

﴿۹۰۴﴾ عَن عَبدِ الله رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِذَا اَرَادَ اَحَدُكُم اَن يَأتِيَ الجُمُعَةَ فَليَغتَسِلْ رواه الشيخان .(۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله رَضِيَ اللهُ عَنهُ وېلي دي چې ما د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اورېدلي دي چې فرمايل ئې کله چې يو ستاسي د جمعې مانځه ته د راتلو اراده وکړي نو غسل دي وکړي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

﴿۹۰۵﴾ وَ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا زَوجِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَت كَانَ النَّاسُ يَتَنَاوَبُونَ الجُمُعَةَ مِن مَنَازِلِهِم وَالعَوَالِي فَيَأتُونَ فِي الغُبَارِ فَيُصِيبُهُمُ الغُبَارُ وَالعَرَقُ فَيَخرُجُ مِنهُمُ العَرَقُ فَأَتَى رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِنسَانٌ مِنهُم وَ هُوَ عِندِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَو اَنَّكُم تَطَهَّرتُم لِيَومِكُم هٰذَا رواه الشيخان .(۲)

**ترجمه**: حضرت عائشي صديقي رَضِيَ اللهُ عَنهَا د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مطهري زوجي فرمايلي دي خلک به د جمعې مانځه ته د خپلو ځايونو او د خواو شا اطرافو نه نوبت په نوبت په ګردونو کې راتلل او بدن به ئې د خولو او ګردونو نه ډک ؤ نو خولي به تري راوتي د دوي نه يو کس رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ته په داسي حال کې راغي چې هغه ځما سره تشريف فرماؤ نو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ؤفرمايل کاش چې تاسو د دي خپلي ورځي د پاره ځان صفا کړي وي . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي .

﴿۹۰۶﴾ وَ عَنهَا اَنَّهَا قَالَت كَانَ النَّاسُ اَهلَ عَمَلٍ وَ لَم تَكُن لَهُم كُفَاةٌ فَكَانُوا يَكُونُ لَهُم تَفَلٌ فَقِيلَ لَهُم لَو غَتَسَلتُم يَومَ الجمعة رواه الشيخان .(۳)

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۷۹ واللفظ له ، بخاري كتاب الجمعة ج۱صـــ ۱۲۰ باب فضل الغسل يوم الجمعة .

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۰ ، بخاري كتاب الجمعة ج۱صـــ ۱۲۳ باب من اين توتي الجمعة .

(۳) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۰ ، بخاري كتاب الجمعة ج۱صـــ ۱۲۳ باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس .

**ترجمه**: حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې خلک محنت کش او مزدور کارۀ او د دوي د پاره څه کتلي شوي جمع کړي شوي مال نه چې ؤ نو د دي وجهي نه به ئي د جمعي پ ورځ هم کار کاوه نو د دوي نه به بوي ته نو دوي ته ويلي شوي ؤ چې کاش تاسو د جمعي په ورځ غسل کولي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۹۰۷﴾ وَعَن سَمُرَةَ بنِ جُندُبٍ رضي الله عنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم مَن تَوَضَّأَ يومَ الجُمُعَة فَبِهَا وَنِعمَت وَمَنِ اغتَسَلَ فَالغُسلُ اَفضَلُ رواه الثلاثة و قال الترمذي حديث حسن [1]

**ترجمه**: حضرت سمُره بن جند رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې د جمعي په ورځ اودس وکړي ښه خبره ده او څوک چې غسل وکړي نو غسل افضل دي. د دي حديث روايت دريؤ محدثينو کړي دي او ترمذي ويلي دي چې حديث حسن دي.

﴿۹۰۸﴾ وَعَن عِكرِمَةَ اَنَّ اُنَاسًا مِن اَهلِ العِرَاقِ جَاءُوا فَقَالُوا يا ابنَ عَبَّاسٍ اَتَرٰى الغُسلَ يومَ الجُمُعَة وَاجِبًا قَالَ لَا وَلٰكِنَّه اَطهرُ وَخَيرٌ لِمَنِ اغتَسَلَ وَمَن لَم يغتَسِل فَلَيسَ عَلَيه بِوَاجِبٍ وَسَاُخبِرُكم كيف بُدِأَ الغُسلُ كَانَ النَّاسُ مَجهودِينَ يلبَسُونَ الصُّوفَ وَيعمَلُونَ عَلٰى ظُهورِهم وَكَانَ مَسجِدُهم ضَيقًا مُقَارِبُ السَّقفِ اِنَّمَا هوَ عَرِيشٌ فَخَرَجَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم فِي يومٍ حَارٍ وَعَرِقَ النَّاسُ فِي ذٰلِك الصُّوفِ حَتّٰى ثَارَت مِنهم رِياحٌ آذٰى بِذٰلِك بَعضُهم بَعضًا فَلَمَّا وَجَدَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم تِلك الرِّيحَ قَالَ اَيها النَّاسُ اِذَا كَانَ هٰذَا اليومُ فَاغتَسِلُوا وَليمُسَّ اَحَدُكم اَفضَلَ مَا يجِدُ مِن دُهنِه وَطِيبِه قَالَ ابنُ عَبَّاسٍ رضي الله عنه ثُمَّ جَاءَ الله تَعَالٰى ذِكرُه بِالخَيرِ وَلَبِسُوا غَيرَ الصُّوفِ وَكُفُوا العَمَلَ وَوُسِّعَ مَسجِدُهم وَذَهَبَ بَعضُ الَّذِي كَانَ يؤذِي بَعضُهم بَعضًا مِنَ العَرَقِ رواه ابوداود والطحاوي و قال الحافظ اسناده حسن. [2]

**ترجمه**: د عکرمه نه روايت دي چې يو څه خلک د عراق نه راغلي ؤ نو وي ويل چې اي ابن عباس! ستا په خيال د جمعي په ورځ غسل واجب دي هغه وويل چې نه خو ولي دا کار ښه پاکيزه او بهتر دي

(۱) ترمذي ابواب الجمعة ج۱ص۱۱۱ باب في الوضوء يوم الجمعة، ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ص۵۱ باب الرخصة في ترك الغسل يوم الجمعة، نسائي كتاب الجمعة ج۱ص۲۰۵ باب الرخصة في ترك الغسل يوم الجمعة.

(۲) ابوداؤد كتاب الطهارة ج۱ص۵۱ باب الرخصة في ترك الغسل يوم الجمعة، طحاوي كتاب الطهارة ج۱ص۸۳ باب غسل يوم الجمعة

چې چا غسل وکړ او که غسل ئې ونه کړنو واجب پرې نه دي او زه به تاسو خبر کړم چې غسل څنګه شروع کړې شو خلک محنت کش ؤ د وړئ جامې به ئې اغوستلي په خپلو شاګانو باندې به ئې پېټي وړل د دوي مسجد تنګ او چت ئې ټيټ ؤ نو رسول الله ﷺ په يوه ګرمه ورځ کې تشريف راوړ او خلک په وړئ کې خوله شوي ؤ تر دې پورې چې د دوي نه بوي خاته نو د دې وجهې نه څينو څينو ته تکليف رساوه نو کله چې رسول الله ﷺ دغه بوي محسوس کړ وې فرمايل اې خلکو کله چې دغه ورځ شي نو غسل کوئ او پورې کوي دې يو ستاسې د بهتر هغه خپلې خوشبوي او تيلونه چې ورسره وي حضرت ابن عباس رضي الله عنه ووېلي چې بيا الله جل شانه د جمعې ذکر په ښه او بهترې طريقې سره وکړ او خلکو د وړئ نه په غير نورې هې جامې اغوستې او د کارونو نه بند شو او مسجد ئې پراخه شو . او بعضې هغه بوي ختم شو چې ضرر به رساوه بعضو بعضو نه د خولې په وجه. د دې حديث روايت ابوداؤد او طحاوي کړې او حافظ ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي.

**﴿۹۰۹﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بنِ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اَلْغُسْلُ يومَ الْجُمُعَة رواه البزار و اسناده صحيح.**[1]

**ترجمه :** حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې د سنت د طريقې نه دې غسل د جمعې په ورځ د دې حديث روايت بزار کړې دې او اسناد ئې صحيح دي.

## د جمعې غسل واجب دې يا مسنون؟

نبي اکرم ﷺ غسل د جمعې د ادابو نه ګڼړلې دې خو ولې د ائمه ؤ ترمنځ په غسل کې اختلاف دې چې آيا غسل مستحب دې که مؤکد سنت دې او که واجب دې په دې باره کې درې مذهبه دي :

(۱) مذهب : امام محمد رحمه الله په مبسوط کې ويلي دي چې د جمعې غسل حسن دي.

(۲) مذهب : اهل ظواهر د جمعې د ورځې غسل واجب ګڼړي او د امام شافعي رحمه الله او د امام احمد رحمه الله نه هم يو روايت د وجوب نقل شوي دي او ابن قيم رحمه الله ويلي دي چې د جمعې د ورځې د غسل وجوب د وترو د وجوب نه زيات قوي دي او امام مالک رحمه الله طرف ته هم د جمعې د ورځې د غسل وجوب منسوب شوي دي.[2]

---

(۱) كشف الاستار عن زوائد البزار ابواب الجمعة ج۱صـــ ۳۰۱ باب من السنة الغسل يوم الجمعة .

(۲) توضيح السنن ج ۲ صــ ۵۵۳.

(٣) مذهب: د احنافو او د اکثرو اهل علمو دي. د احنافو او د اکثرو اهل علمو په نزد د جمعي د ورځي غسل سنت مؤکد دي قاضي عياض مالکي ابن عبدالبر مالکي او خطابي شافعي او نور عام امامان او فقيهان. (١)

**دباب په حديثونو باندي د امامانو استدلال**: (١) د دي باب په اولني (٩٠٤) حديث کي چي د عبدالله رضي الله عنه نه ئي روايت شوي د **فليغتسل** د امر په صيغه سره تصريح شوي او دا ښکاره خبره ده چي د امر مفهوم وجوب دي دغه په ښکاره د وجوب د مدعيانو مستدل دي خو ولي د جمهورو علماؤ په نزد ځرنګه چي د جمعي په ورځ غسل کول واجب نه دي نو د دي وجهي نه دغه حديث او د دي په شان نور ټول حديثونه په سنت باندي محمول دي ځکه چي د دي نه په غير د ډيرو نورو حديثونو نه ثابته ده چي د جمعي په ورځ غسل واجب نه دي خو بيا هم علماؤ ليکلي دي چي د جمعي په ورځ غسل نه کول مکروه دي.

(٢) د دي باب دويم په (٩٠٥) حديث کي چي د حضرت عائشي رضي الله عنها ئي روايت شوي دي د (**لو انکم تطهرتم ليومکم هذا**) الفاظ راغلي دي چي د دي الفاظو مقتضي دا ده چي غسل واجب نه دي خو که غسل وکړئ نو بهتره ده او دا حديث د جمهورو مستدل دي.

(٣) د دي باب په دريم (٩٠٦) حديث کي، چي د حضرت عائشي رضي الله عنها ئي روايت شوي دي داسي الفاظ راغلي دي چي (**لو اغتسلتم يوم الجمعة**) د دي الفاظو معنی عدم وجوب دي.

(٤) د دي باب په څلورم (٩٠٧) حديث کي چي سمره ابن جندب رضي الله عنه ئي روايت کړي دي د (**فبها ونعمت**) الفاظ راغلي دي. نو په (**فبها**) لفظ کي (**ها**) د ضمير مرجع يا خو (سنت) دي او يا خو (خصلت) دي او يا خو (**فريضت**) دي: که (**ها**) ضمير مرجع (سنت) شي نو د (**ها**) حرف جاره دي او په محذوف فعل پوري متعلق دي او د نعمت فاعل سنت دي نو معنی ئي دا شوه چي (**بالسنة اخذ ونعمت السنت**) او که په (**فبها**) کي د (**ها**) ضمير مرجع خصلت شي نو مفهوم به ئي داسي شي چي **فبهذه الخصلة الفضل ونعمت الخصلة هي** او که په (**فبها**) کي (**ها**) ضمير مرجع فريضت شي نو مدلول به ئي داسي شي **فبا الفريضة اخذ ونعمت الفريضة**.

---

(١) معارف السنن ج ٤ ص ٣٢١.

(۵) د دي باب په پنځم (۹۰۸) حديث کې چې د عکرمه نه ئي روايت شوي دي او د دي حديث مفهوم او مدلول بالکل واضح دي چې غسل واجب نه دي.
(٦) د دي باب په شپږم (۹۰۹) حديث کې چې حضرت عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئي روايت کړي دي الفاظ ئي دا دي چې (**من السنة الغسل يوم الجمعة**) په دي کې د غسل په سنتيت باندي حکم شوي دي او په خپل مفهوم کې په دي خبره باندي صريح الدلالت دي چې د جمعي غسل واجب نه دي بلکه سنت دي.
او بعضو علماؤ ويلي دي چې د دي احاديثو نه د جمعي د ورځي د غسل وجوب استفاده شوي او د عکرمه روايت د حکم د وجوب د پاره ناسخ دي.
**(آيا د جمعي د ورځي غسل به د جمعي د مانځه د پاره کولي شي او که د جمعي د ورځي د پاره به کولي شي)**: په دي باره کې دوه قوله راغلي دي. (۱) يو قول دا امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ دي: د امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندي د جمعي غسل د جمعي د مانځه د پاره دي او جمهورو هم دا خبره صحيح ګڼړلي ده او دا ځکه چې د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا او د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په حديث کې داسي الفاظ راغلي دي (**اذا جاء احدكم الجمعة فليغتسل**) يعني کله چې يو ستاسي جمعي ته حاضر شي نو غسل دي وکړي.
او دويم قول د حسن ابن زياد رَحِمَهُ اللهُ دي او د ده په نزد د جمعي غسل د جمعي د ورځي د پاره دي[۱] داؤد ظاهري امام محمد رَحِمَهُ اللهُ او په يو روايت کې د امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ رأيه هم دا ده لکه چې بنائي دا خبره کړي ده او وجه ئي ورته داسي ويلي ده چې د جمعي ورځ د ټولو ورځو نه اشرفه او افضله ده نو د دي وجهي نه په دغه ورځ کې غسل سنت وګرځولي شو چې د فضيلت اظهار ئي وشي او بله وجه ئي دا ده چې په احاديثو کې د غسل اضافت د جمعي ورځي ته شوي دي نو دغه اضافت په دي خبره باندي دلالت کوي چې غسل د جمعي د ورځي د پاره دي نه د جمعي د مانځه د پاره.
او د دي اختلاف په نتيجه کې د دينه د يو څو مسائلو استنباط کيدي شي چې په لاندي ډول سره بيانيږي.
(۱) په بنايه کې ويلي شوي دي چې کوم يو کس د جمعي په ورځ غسل وکړي او د ده اودس مات شي او بيا په نوي اودس باندي د جمع مونځ وکړي نو د امام ابويوسف رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندي د ده د جمعي د غسل ثواب ونه شو او د حسن بن زياد په نزد باندي د ده د غسل ثواب وشو. او معارف

---

[۱] معارف ص ۳۲۹ مع تغير يسير.

السنن هم په ج۴ص۳۲۱ کښ مختصره شان اشاره کړي ده او ويلي دي چې **وثمرة الخلاف فيمن لا جمعة عليه وفيمن احدث بعد الغسل** يعني د خلاف فائده په ګوهغه چا مرتب ده چې جمع وربانديفرض نه وي او يا په هغه چا باندي فائده مرتب ده چې غسل نه ورسته بي اودسه شي.

(۲) په کافي نوم کتاب کښ راغلي دي چې که چرته يو کس د جمعي د ورځي د صبا نه مخکښ اودس او غسل وکړي او پ دي اودس او غسل باندي د جمع مونځ اداء کړي نو د امام ابويوسف رحمه الله په نزد باندي ده ته د غسل فضيلت حاصل شو او د حسن ابن زياد رحمه الله په نزد باندي ده ته د غسل فضيلت حاصل نه شو.

(۳) په درمختار کښ راغلي دي چې په کومو خلکو باندي د جمعي مونځ واجب نه وي لکه مسافر او ښځه او غلام شو په دوي باندي د حسن رحمه الله د قول په بناء غسل سنت دي او بنا په قول د امام ابويوسف رحمه الله باندي په دوي باندي غسل سنت نه دي. (۱)

## ﴿بَابُ السِّوَاكِ لِلجُمُعَةِ﴾
## د جمعي د پاره د مسواک باب

﴿۹۱۰﴾ **عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي جُمُعَةٍ مِنَ الجُمَعِ مَعَاشِرَ المُسلِمِينَ اَنَّ هٰذَا يومٌ جَعَلَه الله لَكم عِيدًا فَاغتَسِلُوا وَعَلَيكم بِالسِّوَاكِ رواه الطبراني في الاوسط والصغير و اسناده صحيح.** (۲)

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې د جمعو نه په يوه جمعه کښ فرمايلي ژ چې اي د مسلمانانو ډلي بي شکه دا يوه ورځ ده چې الله جل شانه دا ورځ ستاسي اختر ګرځولې ده نو بناءً تاسو غسل وکړي او مسواک ووهئ. د دي حديث روايت په اوسط الصغير کښ طبراني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

(۱) توضيح السنن ج ۲ صـــ ۵۵۵-۵۵۶.

(۲) مجمع الزوائد کتاب الصلوة ج۲صـــ ۱۷۳ باب حقوق الجمعة من الغسل والطيب ونحو ذلك ، المعجم الصغير للطبراني ج۱صـــ ۱۲۹ ، المعجم الاوسط ج۴ صـــ ۲۵۹ برقم ۳۴۵۷.

**مسئلة الباب** :د جمعې په ورځ خصوصيت سره مسواک کول مسنون دي تاسو په دې مذکوره حديث کې " عليکم بالسواک " کې اوګورئ صيغه دامر ده ليکن بالاتفاق وجوب مراد نه دي بلکې استحباب يعنې سنيت مراد دې داهل ظواهرو په نزد هم.

# ﴿ بَابُ الطِّيبِ وَالتَّجَمُّلِ يومَ الجُمُعَة ﴾

## د جمعې په ورځ د زينت او د خوشبوۍ لګولو باب

﴿۹۱۱﴾ عَن سَلمَانَ الفَارِسِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَا يغتَسِلُ رَجُلٌ يومَ الجُمُعَة وَ يتَطهرُ مَا استَطَاعَ مِنَ الطُّهرِ وَ يدَّهنُ مِن دُهنِهِ اَو يمُسُّ مِن طِيبِ بَيتِهِ ثُمَّ يخرُجُ فَلَا يفَرِّقُ بَينَ اثنَينِ ثُمَّ يصَلِّي مَا كتِبَ لَه ثُمَّ ينصِتُ اِذَا تَكَلَّمَ الاِمَامُ اِلَّا غُفِرَ لَه مَا بَينَه وَ بَينَ الجُمُعَة الأخرٰى رواه البخاري .(۱)

**ترجمه** : حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه وايي دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي غسل به ونه کړي يو سړي په ورځ د جمعې او پاکي به حاصله نکړي څومره ئې چې د پاکئ د حاصلولو طاقت وي او د خپل د استعمال والا تيلو نه به تيل ونه لګوي او يا به د کور د استعمال والا خوشبوي نه خوشبوي ونه لګوي او بيا راوځي خو د دوه ؤ کسانو تر منځ جدائي رانه ولي چې کوم ځاي ورته پيدا شي په هغه ځاي کې بيا مونځ وکړي څومره چې ورته ليکلي شوي مقرر کړي شوي دي بيا چپ شي کله چې امام خبرې کوي مګر خو بخښنه به ورته وکړي شي د هغه ګناهونو چې د دې جمعې نه تر بلې جمعې پورې دي. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۹۱۲﴾ وَ عَنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يا سَلمَانُ هل تَدرِي مَا يومُ الجُمُعَة قُلتُ هوَ الَّذِي جَمَعَ الله فِيه اَبَاكَ اَو اَبَوَيكَ قَالَ لَا وَلٰكِن اُحَدِّثُكَ عَن يومِ الجُمُعَة مَا مِن مُسلِمٍ يتَطهرُ وَ يلبَسُ اَحسَنَ ثِيابِهِ وَ يتَطَيبُ مِن طِيبِ اَهلِهِ اِن كَانَ لَهم طِيبٌ وَ اِلَّا فَالمَاءُ ثُمَّ يأتِي المَسجِدَ فَينصِتُ حَتّٰى يخرُجَ الاِمَامُ ثُمَّ يصَلِّي اِلَّا كَانَت كفَّارَةً لَه بَينَه وَ بَينَ الجُمُعَة الأخرٰى مَا اجتَنَبَ المَقتَلَةَ وَ ذٰلِك الدَّهرُ كلُّه رواه الطبراني و قال الهيثمي اسناده حسن .(۲)

---

(۱) بخاري كتاب الجمعة ج۱ص ۱۲۱ باب الدّهن للجمعة .

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۶ ص ۲۳۷ رقم الحديث ۶۰۸۹ مجمع الزوائد كتاب الصلوٰة ج۲ص ۱۷۴ باب حقوق الجمعة.

**ترجمه**: او حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي اي سلمانه آيا پوهيږې چې د جمعې ورځ څه شي دي ما وويل دا هغه ورځ ده چې په هغې کې الله جل شانه ستا والد او يا والدين جمع کړي وُ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې نه زه تاته د جمعې د ورځې په باره کې بيان کوم چې نه به وي يو مسلمان چې ځان به پاک کړي او هې جامې واغوندي او د خپل اهل د خوشبوي نه ځان خوشبويه کړي که خوشبوي ورسره وي او که نه وي نو په او بو غسل وکړي بيا مسجد ته لاړ شي نو چپ اوسي تر دي چې امام راوځي بيا مونځ وکړي مگر خوکيږي دا کفاره د پاره د ده د دي جمعې نه تر بلې جمعې پورې تر څو پورې چې د تکليف د رسولو د ځاى نه ځان بچ کړي دغه ثواب ورته په ټوله زمانه کې ورسيږي. د دي حديث روايت طبراني کړي دي او هيثمي ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي.

(۹۱۳) وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَمَسَّ مِنْ طِيبٍ إِنْ كَانَ عِنْدَهُ وَلَبِسَ مِنْ أَحْسَنِ ثِيَابِهِ ثُمَّ خَرَجَ وَعَلَيْهِ السَّكِينَةُ حَتَّى يَأْتِيَ الْمَسْجِدَ فَيَرْكَعُ إِنْ بَدَا لَهُ وَلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا ثُمَّ أَنْصَتَ إِذَا خَرَجَ إِمَامُهُ حَتَّى يُصَلِّيَ كَانَتْ كَفَّارَةً لَهُ لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْأُخْرَى رواه احمد والطبراني واسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت ابو ايوب رضي الله عنه ويلي دي چې ما د نبي کريم صلی الله علیه وسلم نه اوريدلي دي چې فرمايل ئې څوک چې د جمعې په ورځ غسل وکړي او خوشبوئې پورې کړي که خوشبوي ورسره وي او هې جامې واغوندي بيا د اطمنان او وقار په حالت کې راوځي تر دي پورې چې مسجد ته لاړ شي که د مانځه موقع وه مونځ وکړي او چاته تکليف ونه رسوي بيا چپ وي چې کله امام راوځي تر څو پورې چې د امام سره مونځ وکړي وي به کفاره د پاره د ده د هغې گناه نه چې د دي جمعې نه تر بلې جمعې پورې دي. د دي حديث روايت احمد رحمه الله او ترمذي رحمه الله کړي او اسناد ئې صحيح دي.

**مسئلة الباب**: خوشبو لگول او خائسته ميسر شده جامې اغوستل د جمعې د آدابو نه دي.

---

(۱) مسند احمد ج ۵ ص ۴۲۰، المعجم الكبير للطبراني ج۴ص ۱۴۱ رقم الحديث ۴۰۰۷، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۲ص ۱۷۱ باب حقوق الجمعة ...الخ.

# ﴿بَابٌ فِي فَضْلِ الصَّلَاةِ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ﴾

## د جمعې په ورځ په نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې د درود ويلو د فضيلت باب

﴿۹۱۴﴾ عَنْ أَوْسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَفْضَلِ أَيَّامِكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فِيهِ خُلِقَ آدَمُ وَ فِيهِ قُبِضَ وَ فِيهِ النَّفْخَةُ وَ فِيهِ الصَّعْقَةُ فَأَكْثِرُوا عَلَيَّ مِنَ الصَّلَاةِ فِيهِ فَإِنَّ صَلَاتَكُمْ مَعْرُوضَةٌ عَلَيَّ قَالَ قَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ وَكَيْفَ تُعْرَضُ صَلَاتُنَا عَلَيْكَ وَقَدْ أَرِمْتَ قَالَ يَقُولُونَ بَلِيتَ قَالَ إِنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ حَرَّمَ عَلَى الْأَرْضِ أَجْسَادَ الْأَنْبِيَاءِ رواه الخمسة الا الترمذي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت اوس بن اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وايي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې ستاسې د افضلو او بهترو ورځو نه ورځ د جمعې ده په دې کې حضرت آدم عَلَيْهِ السَّلَام پيدا شوي دي او په دې کې وفات کړې شوي دي او په دې کې به په شپيلۍ کې پو کې کولې شي او په دې کې به دويم ځل شپيلۍ وهلې شي نو په دې ورځ کې په ما باندې په کثرت سره درود ووائي ځکه چې ستاسې درود ماته پيش کولې شي اوس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وويل چې خلکو عرض وکړ اې د الله جل شانه رسوله ځنګه به زمونږ درود تاته پيش کړې شي حال دا چې ته به خاوره شوې ئې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې بې شکه الله جل شانه حرام کړې په زمکه باندې د انبياؤ عليهم السلام جسدونه مبارک بدنونه.
د دې حديث روايت د ترمذي نه په غير پنځو محدثينو کړې دې او اسناد ئې صحيح دي.

## د جمعې په ورځ د درود شريف لوستلو اهميت

دجمعې ورځ، دورځو سرداره ده او زمونږ رسو الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دټولو مخلوقاتو سردار دې په دې ورځ باندې په حضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ باندې ددرود او سلام ډير زيات فضيلت راغلې دی خلاد بن کثير ډير لوې بزرګ تير شوې دې دوفات نه څه وخت مخکې دده په بالاخانه کې يو کاغذ اوموندل شو چې په هغې کې يې ليکلي وو : "دا دخلاد بن کثير لپاره ددوزخ داور نه دنجات ذريعه ده" نو چې دده دکوروالا نه پوښتنه ددې په باره کې اوکړې شوه نو هغوي ورته اويل چې خلاد به دجمعې په ورځ زر (۱۰۰۰) پيره درود ويل : "اللهم صل على محمدن النبي الامي" دجمعې په ورځ دمازديګر

(۱) ابوداؤدكتاب الصلوة ج۱ص۱۵۰باب تفريع ابواب الجمعة،نسائي كتاب الجمعة ج۱ص ۲۰۳ باب اكثار الصلوة علي النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يوم الجمعة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۷۷ باب في فضل الجمعة ، مسند احمد ج۴ص۸، مستدرك حاكم كتاب الجمعة ج۱ص ۲۷۸ باب الامر بكثرة الصلاة في الجمعة .

مونځ نه پس اتيا (۸۰) پيره ددرود ويلو فضيلت هم وارد شوې دى په يو روايت کې دي چې د جمعې په ورځ سل پيره ددرود ويلو والا لپاره الله تعالى سل حاجتونه پوره کوي.

# ﴿بَابُ مَن اَجَازَ الجُمُعَةَ قَبلَ الزَّوَالِ﴾

## دزوال نه مخکې د جمعي د مانځه د اجازت باب

﴿۹۱۵﴾ عَن سَلمَةَ بنِ الاكوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ الجُمُعَةَ ثُمَّ نَنصَرِفُ وَ لَيسَ لِلحِيطَانِ ظِلٌّ نَستَظِلُّ بِهِ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه**: حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د جمعې مونځ وکړ بيا مونږ فارغ شو واپس راتلو او د ديوالونو سوري نه ؤ چې د هغې سوري طلب مو کړې وي. د دې حديث روايت شيخينو کړې دي.

﴿۹۱۶﴾ عَن سَهلٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ مَا كنَّا نَقِيلُ وَلَا نَتَغَدّٰى اِلَّا بَعدَ الجُمُعَةِ رواه الجماعة و زاد مسلم في رواية و احمد والترمذي في عهد رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ.[2]

**ترجمه**: حضرت سهل رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ نه قيلوله کړې وه او نه مو د غرمې ډوډۍ خوړلې وه مګر خو د جمعې د مانځه نه پس. د دې حديث روايت د محدثينو يو جماعت کړې او مسلم په يو روايت کې د احمد لفظ او ترمذي د (في عهد رسول الله صلى الله عليه وسلم) الفاظ زيات کړې دي. يعني مسلم په يو روايت کې واحمد لفظ زيات کړې او ترمذي په يو روايت کې دا په زمانه د رسول الله صلى الله عليه وسلم الفاظ زيات کړې دي.

﴿۹۱۷﴾ وَ عَن اَنَسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كنَّا نُصَلِّي مَعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ الجُمُعَةَ ثُمَّ نَرجِعُ اِلَى القَائِلَةِ فَنَقِيلُ رواه احمد والبخاري[3]

**ترجمه**: حضرت انس رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم سره د جمعې مونځ کاوه

---

(۱) بخاري كتاب المغازي ج۲ص۔ ۵۹۹ باب غزوة الحديبية ، مسلم كتاب الجمعة ج۱ص۔ ۲۸۳ .

(۲) بخاري كتاب الجمعة ج ۱ص۔ ۱۲۸ باب قول الله عزوجل فاذا قضيت الصلوة ...الخ ، مسلم كتاب الجمعة ج۱ص۔۲۸۳ ، ترمذي ابواب الجمعة ج۱ص۔۱۱۸ باب في القائلة يوم الجمعة ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۵۵ باب وقت الجمعة ، مسند احمد ج۵ ص۔ ۳۳۶ ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص۔ ۱۰۶ باب من كان يقيل بعد الجمعة .

(۳) مسند احمد ج۳ص۔ ۲۳۷ ، بخاري كتاب الجمعة ج۱ص۔ ۱۲۸ باب القائلة بعد الجمعة .

يا د قيلولي او ارام ځاي ته واپس راغلو نو قيلوله مو وکړه . د دي حديث روايت احمد او بخاري کړي دي .

﴿۹۱۸﴾ وَعَن جَعفَرٍ عَن اَبِيه اَنَّه سَأَلَ مَتٰى كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي الجُمُعَةَ قَالَ كَانَ يُصَلِّي ثُمَّ نَذهبُ اِلٰى جِمَالِنَا فَنُرِيحُها زَادَ عَبدُ الله فِي حَدِيثِه حِينَ تَزُولُ الشَّمسُ يَعنِي النَّوَاضِحَ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت جعفر د خپل پلار په ذريعه روايت کړي دي چې هغه پوښتنه کړي وه چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به کله د جمعي مونځ کاوه هغه ويلي دي چې هغه به د جمعي مونځ وکړ بيا به مونږ خپلو اوښانو طرف ته راغلو نو مونږ به هغوي ته ارام ورکړو عبدالله په خپل حديث کې دا الفاظ زيات کړي دي چې کله به چې د نمر زوال وشو . معنى دا چې مراد اوبه راوړونکي اوه دي . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۹۱۹﴾ وَ عَن عَبدِ الله بنِ السِّيدَانِ السُّلَمِي قَالَ شَهِدتُّ يَومَ الجُمُعَةِ مَعَ اَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَكَانَت صَلَاتُه وَخُطبَتُه قَبلَ نِصفِ النَّهَارِ ثُمَّ شَهِدتُّها مَعَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَكَانَت صَلَاتُه وَ خُطبَتُه اِلٰى اَن اَقُولَ اِنتَصَفَ النَّهَارُ ثُمَّ شَهِدتُّها مَعَ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَكَانَت صَلَاتُه وَ خُطبَتُه اِلٰى اَن اَقُولَ زَالَ النَّهَارُ فَمَا رَأَيتُ عَابَ ذٰلِكَ وَلَا اَنكَرَه رواه الدار قطني و آخرون و اسناده ضعيف .[2]

**ترجمه** : عبدالله بن السيدان السلمي ويلي دي چې زه د جمعي په ورځ د حضرت ابوبکر رضي الله عنه سره د جمعي د مانځه د پاره حاضر شوي وم د هغه مونځ او د هغه خطبه د زوال نه مخکې ؤ بيا زه د جمعي مانځه ته د حضرت عمر رضي الله عنه سره حاضر شوي ؤم د هغه مونځ او خطبه تر هغه وخته پوري وه چې ورځ نيمائي شوه (زوال) وشو بيا ځه د حضرت عثمان رضي الله عنه سره د جمعي د مانځه د پاره حاضر شوي وم نو د هغه مونځ او د هغه خطبه تر دي وخته پوري ؤه چې ما ويل چې د ورځي زوال وشو نو مانه دي ليدلي چې دا ئي عيب وګڼړه او يا ئي بد وګڼړه . د دي حديث روايت دار قطني او نورو محدثينو کړي او اسناد ئي ضعيف دي .

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـ ۲۸۳ وفي نسخة المسلم عندي " عن جعفر عن ابيه انه سال جابر بن عبدالله متى كان ...الخ

(۲) سنن الدار قطني كتاب الجمعة ج۲صـ ۱۷ باب صلاة الجمعة قبل نصف النهار .

﴿٩٢٠﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ سَلِمَةَ قَالَ صَلَّى بِنَا عَبْدُ اللهِ يعني ابن مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اَلْجُمُعَةَ ضُحًى وَقَالَ خَشِيتُ عَلَيْكُمُ الْحَرَّ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده ليس بالقوي .[1]

**ترجمه** : عبدالله بن سلمه ويلي دي چې مونږ ته عبدالله يعني بن مسعود رضي الله عنه د څاښت په وخت کې د جمعې مونځ وکړ او وې ويل چې زه په تاسي باندي د ګرمۍ نه يريږم. د دي حديث روايت ابي بکر بن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي قوي نه دي.

﴿٩٢١﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ سُوَيْدٍ قَالَ صَلَّى بِنَا مُعَاوِيَةُ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ اَلْجُمُعَةَ ضُحًى رواه ابوبكر بن ابي شيبة و سعيد بن سويد ذكره ابن عدي في الضعفاء .[2]

**ترجمه** : سعيد بن سُويد ويلي دي چې مونږ ته حضرت معاويه رضي الله عنه د څاښت په وخت کې د جمعې مونځ وکړ. د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه کړي دي او سعيد بن سويد لره ابن عدي په ضعيفانو کې شمارلي دي.

﴿٩٢٢﴾ وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ كَانَ سَعِيدٌ يَقِيلُ بَعْدَ الْجُمُعَةِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده صحيح و هذا الاثر لا حجة لهم فيه .[3]

**ترجمه** : مصعب بن سعد ويلي دي چې سعد به د جمعې نه روسته قيلوله کوله. د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي صحيح دي وهذا الاثر لا حجة لهم فيه. يعني: په دي اثر کې د هغوي د پاره هيڅ دليل نشته.

## دجمعې دمونځ وخت کله شروع کيږي ؟

دماسپخين مونځ بالاتفاق دزوال نه مخکې صحيح نه دي، ليکن د زوال نه مخکې د جمعې د مانځه په صحت کې اختلاف : د زوال نه مخکې د جمعې د مانځه د ادا کولو په صحت کې دوه مذهبه منقول دي.

(١) مذهب : د صحابه کرامو، تابعينو د مذاهبو د امامانو او د جمهورو علماؤ په نزد د زوال نه مخکې د جمعې مونځ جائز نه دي د جمهورو علماؤ په نزد باندي د جمعې د مانځه وخت همغه دي کوم چې د ماسپښين د مانځه وخت دي.

---

(١) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج٢صـ ١٠٧ باب من كان يقيل بعد الجمعة ...الخ .

(٢) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج٢ص١٠٧باب من كان يقيل بعد الجمعة ...،الكامل في ضعفاء الرجال لابن عدي ج٣ ص١٢٤٣.

(٣) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج٢صـ ١٠٦ باب من كان يقيل بعد الجمعة ...الخ .

(۲) مذهب: د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د بعضي اهل ظواهرو په نزد د زوال نه مخکې د جمعې مونځ کول جائز دي د دوي په نزد باندي د جمعې وخت د لوي څاښت نه شروع کيږي.
د اهل ظواهرو او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ دليلونه: که څه هم د دې باب اته واړه روايتونه بنا بر ظاهر د اهل ظواهرو او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د پاره د زوال نه مخکې د جمعې د مانځه د صحت دليلونه دي خو ولې که په غور او جوړ نظر ورته وُکتې شي او حقيقت په نظر کې ونيول شي نو د نومړو احاديثو نه يو هم د دوي په مدعى باندي دليل نه شي کيدې. چې تفصيل ئې لاندې راتلونکې دې.
(۱) د دې باب اولني (۹۱۵) حديث چې سلمه ابن الاکوع ئې روايت کړې دې او اهل ظواهرو او امام احمد رَحِمَهُ اللهُ پرې دليل نيولې دې او وېلې ئې دي چې کله مونږ د جمعې مونځ وکړ او واپس راتلو نو د ديوالو سورې نهٔ چې د هغې په سورې سره مو فائده اخستې وې احنافو د دې په جواب کې وېلې دي چې د دې مبارک حديث مقصد دا دې چې د مدينې منورې د وړو وړو ديوالونو دومره سورې نهٔ چې مونږ په دې کې تللې وې. لکه چې د شيخينو د حديث نه چې (ثم نرجع نتتبع الفئ او د مسلم د روايت نه چې (وما نجد فيأ نستظل به او د بخاري د حديث د الفاظو نه چې (ثم ننصرف ليس للحيطان ظل نستظل به) دې داسې معلوميږي چې د مطلق سورې نفي مراد نه ده بلکه د دومره اندازه سورې نفي مراد ده چې په هغې کې تلل وکړې شي.
(۲) د دې باب دويم (۹۱۶) حديث چې سهل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئې روايت کړې دې دا هم د زوال نه مخکې د جمعې د صحت د مدعيانو د پاره دليل دې او هغه دا دې چې لکه څنګه چې د قيلولې او د خوراک وخت د زوال نه مخکې دې نو د دې نه معلومه شوه چې دې خلکو د جمعې مونځ هم د زوال نه مخکې کړې وُ. حنفي مذهب علماؤ د دې جواب داسې کړې دې چې صحيح او درسته خبره ده چې د غداء لغوي معنى د زوال نه مخکې خوراک ته وېلې شي خو ولې د غداء اطلاق د زوال نه په روسته خوراک هم عرفًا او توسعًا شوې دې.
لکه چې د دې مثال د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دې فرمان کې راغلې دې او د پيش نمې په باره کې ئې فرمايلې دي (هلموا الي الغداء المبارك) يعني راځئ مبارک پيش نمې ته او د دې نه دا استدلال هيڅ وخت نشي کيدې چې د پيش نمې او د سحر طعام دې ئې د نمر د ختو نه روسته خوړلې وي.(۱)

---

(۱) درس ترمذي ج ۲ صـ ۲۷۷.

او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ د استدلال په مقابل کې امام بخاري رَحِمَهُ اللهُ د جمعې په وخت باندې په دې حديث باندې استدلال کړي دي چې حضرت عايشې رضی الله عنها ويلي دي : و كانوا اذا راحوا راحوا الى الجمعة في هيئتهم ، معنی دا چې کله به راتله ديو جمعې ته په يو هيئت او يو شان کې به راتلل په دې حديث شريف کې د جمعې د پاره په رواح سره تعبير شوي دي او رواح د زوال نه وروسته راتلو ته ويلې شي. (١)

او ابن حجر رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې په دې حديث کې د جمعې د مانځه د قبل زوال د پاره هيڅ دليل موجود نه دي ځکه چې په حديث شريف کې د قبل زوال خبره د دې د پاره شوي ده چې د مانځه نه مخکې د جمعې د مانځه د پاره انتظار د جمعې د پاره په مسجد کې کيناستل او د مانځه نه مخکې د جمعې د مانځه د پاره تياري کول او بيا د جمعې د مانځه د اداء د وجهې نه ئې خپل روزانه معمول چې د زوال نه مخکې طعام خوړلي او د زوال نه مخکې قيلوله کول ؤ هغه ئې بدل کړل او د زوال نه روسته ئې کړل او دا تري مراد نه ده چې مونځ ئې د قيلولي او د طعام د خوراک په وخت کې وکړ او قيلوله او طعام خوري ئې د خپل وخت نه روسته کړل. او زين ابن منير دا دعوه کړي ده او د ده د دې دعوي نه دا خبره ثابتيږي چې د جمعې مونځ د زوال نه روسته شوي دي او دا ځکه چې د دوي عادت دا ؤ چې دوي به د زوال نه مخکې طعام خوړ او د طعام پسې به ئې قيلوله کوله او خاص د جمعې د ورځې په مناسبت صحابي دا خبرداري ورکړي دي چې مونږ د جمعې د پاره د تياري کولو د مشغوليت په وجه طعام او قيلوله روسته کړي ؤ .

د دې باب دريم (٩١٧) حديث چې حضرت انس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئې روايت کړي دي او د قبل زوال د مدعيانو مستدل دي د دې جواب همغه دي کوم چې د باب په اولني حديث کې تير شوي دي . او (٩١٨) حديث د حضرت جعفر چې د خپل پلار نه ئې روايت کړي او دعبدالله بن السيدان السلمي ( ٩١٩) حديث چې د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ او د بعض اهل ظواهرو مستدل دي د دې حديث نه احنافو جواب کړي دي چې عبدالله بن السيدان غير معروف يعني مجهول العدالة دي . مصنف ويلي دي چې اسناد ئې ضعيف دي(٢)

او د باب (٩٢٠) حديث چې عبدالله بن سلمه ئې روايت کړي دي حنفي مذهب علماؤ د دې په جواب کې ويلي دي چې د عبدالله بن سلمه نه په غير د سعيد بن سويد په طريقه باندې (٩٢١) حديث دي

---

(١) درس ترمذي ج٢ صـــ ٢٧٧-٢٧٨.

(٢) درس ترمذي ج ٢ صـــ ٢٧٨.

چې په دي کې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په ځاي باندي د حضرت معاويه رضي الله عنه ذکر شوي دي او عبدالله بن سلمه رضي الله عنه صدوق دي خو ولي د عمر په اخر کې د هغه حافظه ګډوډه شوي وه او سعيد بن سويد ابن عدي په ضعفاؤ کې شمارلي دي.

او د باب (۹۲۲) حديث چې مصنف روايت کړي دي د دي حديث په باره کې به خپله مصنف ويلي دي چې د دوي د پاره په دي اثر کې هيڅ دليل نشته.

# ﴿بَابٌ فِي التَّجمِيعِ بَعدَ الزَّوَالِ﴾

## دزوال نه روسته د جمعي د مونځ کولو باب

﴿۹۲۳﴾ عَن عَمرِو بنِ عَبَسَة رضي الله عنه قَالَ قُلتُ يا نَبِي الله أَخبِرنِي عَنِ الصَّلاة قَالَ صَلِّ صَلاة الصبُحَ ثُمَّ اقصِرْ عَنِ الصَّلاة حَتَّى تَطلُعَ الشَّمسُ وَ تَرتَفِعُ فَإنَّها تَطلُعُ بَينَ قَرنَي شَيطَانٍ وَ حِينَئِذٍ يسجُدُ لَها الكفَّارُ ثُمَّ صَلِّ فَإنَّ الصَّلاة مَشهودَة مَحضُورَة حَتَّى يستَقِلَّ الظِّلُّ بِالرُّمحِ ثُمَّ اقصِر عَنِ الصَّلاة فَإنَّ حِينَئِذٍ تَسجُرُ جَهنَّمُ فَإذَا اَقبَلَ الفَيءُ فَصَلِّ فَإنَّ الصَّلاة مَشهودَة مَحضُورَة حَتَّى تُصَلِّي العَصرَ الحديث رواه احمد وآخرون.[1]

**ترجمه** : حضرت عمرو بن عبسه رضي الله عنه ويلي دي چې ما عرض وکړ چې اي د الله جل شانه نبي صلى الله عليه وسلم ! ماته د مانځه په باره کې خبر راکړه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د سهر مونځ وکړه بيا د مانځه نه منع شه تر دي پوري چې نمر راوخيژي او بنه راپورته شي ځکه په تحقيق نمر د شيطان د دوه ؤ ښکرونو ترمنځ راخيژي او په دغه وخت کې کفار نمر ته سجده کوي بيا مونځ وکړه ځکه بې شکه مونځ ګواهي ورکوي او حاضر کړي شوي دي تر هغي پوري چې سوري د نيزي نه کم شي بيا د مونځ نه منع شه بې شکه په دغه وخت کې جهنم ګرمېږي بيا چې نمر واوړي (زوال) وشي نو مونځ وکړه بې شکه چې مونځ ګواهي ورکوي او حاضر کړي شوي دي تر هغي پوري چې د مازيګر مونځ وکړي. الحديث.

د دي حديث روايت احمد رحمه الله او مسلم کړي دي.

---

(۱) مسند احمد ج۳ص۱۱۱، مسلم کتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۶ باب الاوقات الّتي نهي عن الصلوة فيها.

﴿۹۲۴﴾ وَ عَنۡ عَبۡدِ اللهِ بنِ عَمرٍ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ اَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَقتُ الظُّهرِ اِذَا زَالَتِ الشَّمسُ وَكَانَ ظِلُّ الرَّجُلِ كَطُولِهٖ مَالَم تَحضُرِ العَصرُ الحديث رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د ماسپښين وخت چې کله د نمر زوال وشي سوري د هر سړي د ده د اوږدوالي په اندازه تر څو پورې چې د مازيګر وخت نه وي داخل شوي الحديث. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۹۲۵﴾ وَ عَنۡ جَابِرِ بن عَبدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ قَالَ سَالَ رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ عَنۡ وَقتِ الصَّلَاةِ فَلَمَّا دَلَكَتِ الشَّمسُ اَذَّنَ بِلَالٌ الظُّهرَ فَاَمَرَهٗ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ فَاَقَامَ الصَّلَاةَ الحديث اخرجه الطبراني في الاوسط و قال الهيثمي اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ويلي دي چې يو سړي د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم نه د مانځه د وخت په باره کې پوښتنه وکړه نو کله چې نمر کولأ شو زوال وشو نو حضرت بلال رضي الله عنه د ماسپښين اذان وکړ نو ده ته رسول الله صلى الله عليه وسلم امر وکړ نو د مانځه اقامت ئې وکړ الحديث. دا حديث طبراني په اوسط کې خارج کړي دي او هيثمي ويلي دي چې اسناد ئې حسن دي.

﴿۹۲۶﴾ وَعَنۡ سَلَمَةَ بنِ الاَكوَعِ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ قَالَ كُنَّا نَجمَعُ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ اِذَا زَالَتِ الشَّمسُ ثُمَّ نَرجِعُ نَتَتَبَّعُ الفَيۡءَ رواه الشيخان .[3]

**ترجمه** : حضرت سلمه بن الاكوع رضي الله عنه ويلي چې مونږ د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم سره د جمعې مونځ وکړ کله چې نمر واوخوت بيا مونږ راواپس شو چې لټاوه مونږ سوري. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۹۲۷﴾ وَ عَنۡ اَنَسِ بنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنۡهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيۡهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُصَلِّي الجُمُعَةَ حِينَ تَمِيلُ الشَّمسُ رواه البخاري .[4]

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د جمعې

---

(۱) مسلم كتاب المساجد ج۱صــ ۲۲۳ باب الاوقات الصلوات الخمس .

(۲) المعجم الاوسط ج ۷صــ ۴۰۳ ، مجمع الزوائد كتاب الصلوة ج۱صــ ۳۰۴ باب الوقت نقلا عن الطبراني في الاوسط.

(۳) مسلم كتاب الجمعة ج۱صــ ۲۸۳ ، بخاري كتاب المغازي ج۲صــ ۵۹۹ باب غزوة الحديبية .

(۴) بخاري كتاب الجمعة ج۱صــ ۱۲۳ باب وقت الجمعة اذا زالت الشمس .

مونځ کړي وُ کله چې نمر مائل شوي وُ . د دي حديث روايت بخاري کړي دي .

**﴿۹۲۸﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ صَلَّى الْجُمُعَةَ فَنَرْجِعُ وَمَا نَجِدُ فَيْأً نَسْتَظِلُّ بِهِ رواه الطبراني في الاوسط و قال في التلخيص اسناده حسن .**[1]

**ترجمه**: جابر بن عبد الله رضي الله عنه ويلي دي نبي اکرم صلى الله عليه وسلم کله چې نمر زائل شو نو د جمعي مونځ ئي اداء کړنو مونږ راواپس شو او مونږ دومره سوري وُنه مونده چې په هغې کې لاړ شو . د دي حديث روايت په اوسط کې طبراني کړي دي او په تلخيص کې ئي ويلي دي چې اسنادئي حسن دي.

**﴿۹۲۹﴾ وَعَنْ مَالِكِ بْنِ أَبِي عَامِرٍ أَنَّهُ قَالَ أَرَى طِنْفِسَةً لِعَقِيلِ بْنِ أَبِي طَالِبٍ يَوْمَ الْجُمُعَةِ تُطْرَحُ إِلَى جِدَارِ الْمَسْجِدِ فَإِذَا غَشِيَ الطِّنْفِسَةَ كُلَّهَا ظِلُّ الْجِدَارِ خَرَجَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ فَصَلَّى الْجُمُعَةَ قَالَ ثُمَّ نَرْجِعُ بَعْدَ صَلَاةِ الْجُمُعَةِ فَنَقِيلُ قَائِلَةَ الضُّحَى رواه مالك في الموطأ و اسناده صحيح .**[2]

**ترجمه** : مالک بن ابي عامر ويلي دي چې ما د جمعي په ورځ د عقيل ابن ابي طالب رضي الله عنه څادر ليده چې د مسجد ديوال طرف ته راځوړند وُ نو کله چې ټول څادر لره د ديوال سوري پټ کړ حضرت عمر بن الخطاب رضي الله عنه راؤته نو د جمعي مونځ ئي وکړ مالک بن ابي عامر ويلي دي چې بيا راوپس شو مونږ د جمعي د مانځه نه روسته نو د څاښت په شان قيلوله مو وکړه . د دي حديث روايت مالک په مؤطا کې کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

**﴿۹۳۰﴾ وَعَنْ أَبِي الْعَنْبَسِ عَمْرِو بْنِ مَرْوَانَ عَنْ أَبِيهِ قَالَ كُنَّا نُجَمِّعُ مَعَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ إِذَا زَالَتِ الشَّمْسُ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده حسن .**[3]

**ترجمه** : عمرو بن مروان د خپل پلار نه روايت کړي دي دوي ويلي دي چې مونږ مونځ وکړ د حضرت علي رضي الله عنه سره کله چې د نمر زوال شوي وُ . د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

## دجمعه بعد الزوال دلائل

علامه حلبي رحمه الله په کبري کې ليکلي دي چې د زوال نه روسته د جمعي مونځ د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د زماني نه نيولي تر نن ورځي پوري د يو بل نه په ميراث راپاتي دي او همدا قول د

---

(۱) المعجم الاوسط ج ۷ صـ ۲۲۷ برقم ۶۴۳۹ ، تلخيص الحبير كتاب الجمعة ج ۲ صـ ۵۴.
(۲) مؤطا امام مالک كتاب وقوت الصلوة صـ ۶ باب وقت الجمعة .
(۳) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـ ۱۰۸ باب من كان يقول وقتها زوال الشمس ...الخ .

جمهورو صحابهؤ تابعينو او تبع تابعينو دي او امام شعراني ليکلي چې د دريؤ امامانو قول دا دي چې د جمعي مونځ صحيح نه دي مګر د ماسپښين په وخت کې ميزان الکبرى ج۱ص ۲۴۴ امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په کتاب الام کې ج۱ص ۱۷۲ ليکلي دي چې زه د هرکوم کس سره ملاقي شوي يم د هغه پدي خبره کې اختلاف نشته چې د جمعي مونځ به نشي کولي تر څو چې د نمر زوال وشي . امام نووي رَحِمَهُ اللهُ د مسلم شرح کې ج۱ص ۲۸۳ کې ليکلي دي چې جمهورو صحابهؤ تابعينو او تبع تابعينو ، امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ ويلي دي چې د جمعي مونځ روانه دي مګر مګر پس نمر د زوال نه .

**د جمهورو علماؤ دليلونه** : (۱) د دي باب اولني (۹۲۳) حديث دي چې د عمرو بن عبسه نه ئي روايت شوي دي او په دي مبارک حديث کې دا الفاظ راغلي دي ( فاذا اقبل الفئ فصل ) يعني کله چې سوري رامخي ته شي نو مونځ وکړه او د دي باب دويم (۹۲۴) حديث دي چې حضرت عبد الله بن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئي روايت کړي او په دي کې په دي الفاظو باندي تصريح شوي ده چې د ماسپښين وخت هغه دي کله چې زوال وشي .

همدغسي د دي باب دريم (۹۲۵) حديث چې حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئي روايت کړي دي چې په دي مبارک حديث کې داسي الفاظ منقول دي نو کله چې نمر مائل شو نو حضرت بلال رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د ماسپښين اذان وکړ او ده ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د مانځه د اقامت امر وکړو .

او د دي باب څلورم (۹۲۶) حديث دي چې حضرت سلمه ابن الاکوع رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ئي روايت کړي دي چې مونږ د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د جمعي مونځ وکړ کله چې زوال وشو او بيا راواپس شو او سوري مو لټاوه . لنډه دا چې په دي باب کې اته مبارک حديثونه ذکر شوي دي او دا ټول جمهورو علماؤ دليلونه دي چې مفهوم او معنى ئي په ترجمه کې واضحه شوي ده .

## ﴿ بَابُ الاَذَانَيْنِ لِلْجُمُعَةِ ﴾

## د جمعي د پاره د دوهؤ آذانونو باب

﴿۹۳۱﴾ عَنِ السَّائِبِ بنِ يزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ الاَذَانَ يومَ الجُمُعَةِ كَانَ اَوَّلُه حِينَ يجلِسُ الإِمَامُ يومَ الجُمُعَةِ عَلَى المِنبَرِ فِي عَهدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِي بَكرٍ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَلَمَّا كَانَ فِي خلَافَةِ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَ كثرُوا اَمَرَ عُثمَانُ يومَ الجُمُعَةِ بِالاَذَانِ الثَّالِثِ فَأُذِّنَ بِهِ عَلَى الزَّورَاءِ فَثَبَتَ الاَمرُ

عَلٰى ذٰلِكَ رواه البخاري والنسائي و ابوداود .[1]

**ترجمه** : د حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه ويلي دي چې بې شكه د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د حضرت ابوبكر او د حضرت عمر رضي الله عنهما په زمانه كې به د جمعي اذان په هغه وخت كې كيده چې كله به امام په ممبر باندې كيناسته بيا كله چې د حضرت عثمان رضي الله عنه د خلافت وخت شو او خلک ډير شو نو حضرت عثمان رضي الله عنه د جمعي د ورځي په دريم اذان باندي حكم وكړ نو د زوراء په مقام باندي دغه دويم اذان وكړي شو نو په همدي باندي دا كار جاري پاتي شو . د دي حديث روايت بخاري، نسائي او ابوداوُد كړي دي .

**مسئلة الباب** : د دي باب اولني (۹۳۱) حديث چې حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه ئي روايت كړي دي په دي مبارک حديث كې د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مباركه زمانه كې د هغه صلى الله عليه وسلم د جمعي په ورځ كې د اذان د معمول بيان كيږي نبي اكرم صلى الله عليه وسلم به چې كله تشريف راوړ او په ممبر به تشريف فرما شو نو اذان به ويلي شو د جمعي د مانځه اولني اذان هغه دي چې د مانځه د وخت د شروع كيدو نه روسته ويلي شو د دي وخت مقرر شوي نه ؤ د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د زماني مباركي نه روسته د حضرت ابوبكر او د حضرت عمر رضي الله عنهما د خلافت په دور كې هم په همدي باندي عمل كيده خو ولي كله چې حضرت عثمان رضي الله عنه خليفه شو او هغه وكتل چې د يوي خوا د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په مباركه زمانه كې د مسلمانانو شمار لږ ؤ او د بلي خوا نه هغوي مسجد ته نزدي اوسيدل او بله خبره دا هم وه چې خلک به د رسول اكرم صلى الله عليه وسلم په دور حيات كې د رسالت په دربار كې همه وقت حاضر ؤ او برسيره پردي اكثره مسلمانان د مسجد نه لري علاقو ته خواره شوي او هلته ئي سكونت اختيار كړي ؤ او هر څوک په خپلو خپلو كارونو كې مصروف شوي ؤ نو د دي وجهي نه حضرت عثمان رضي الله عنه دا مناسبه وګڼړله چې كله د مانځه وخت راشي نو اذان ويلي شي د دي د پاره چې د لري علاقو خلک هم خطبي ته حاضر شي او دغسي د دي وخت اذان ته اول اذان ويلي كيږي نو بنا پردي دويم اذان نه مراد همدغه اول اذان دي او په حديث كې د دي اذان نه په دريم اذان سره تعبير شوي دي اگر چې په ظاهري لحاظ سره دا اول اذان دي ځكه چې د دي اذان وقوع د ټولو نه مخكې ده خو ولي د رسول الله اكرم صلى الله عليه وسلم په زمانه كې دوه اذانونه مقرر ؤ چې د خطبي اذان او بل تكبير يعني اقامت او دا اذان د هغه دواړو نه روسته شروع شوي دي نو د دي

---

(۱) بخاري كتاب الجمعة ج۱ صــ ۱۲۴ باب الاذان يوم الجمعة ، نسائي كتاب الجمعة ج۱ صــ ۲۰۷ باب الاذان للجمعة ، ابوداؤد كتاب الصلوٰة ج۱ صــ ۱۵۵ باب النداء يوم الجمعة .

وجهي نه ورته دريم اذان ويلي شي. او دغه دريم اذان هم سنت دي او دي ته بدعت نه شي ويل کيدي ځکه چې د خلفاء راشدينو افعال او مقرر شوي طريقي هم په سنتو کې شمار دي د وجهې د دي فرمان د رسول الله ﷺ نه وعليکم بسنتي وسنت خلفاء الراشدين ) الحديث.

خلاصه دا چې دجمعې دمونځ داولني اذان شروع دحضرت عثمان رضي الله عنه په دور خلافت کې شوي وه دغه شان دحضرت عثمان رضي الله عنه په وخت کې کيدل بيا ورته دخليفه راشد سنت وويل شو ليکن ديته دصحابه کرامو رضي الله عنهم دموافقت او مکمل سکوت سره داجماعي مسئلي درجه حاصله شوه.

## ﴿ بَابُ التَّاذِينِ عِندَ الخُطبَةِ عَلَى بَابِ المَسجِدِ ﴾

﴿۹۲۲﴾ عَنِ السَّائِبِ بنِ يزِيدَ رضي الله عنه قَالَ كَانَ يؤَذِّنُ بَينَ رَسُولِ الله ﷺ اِذَا جَلَسَ عَلَى المِنبَرِ يومَ الجُمُعَةِ عَلَى بَابِ المَسجِدِ وَ أَبِي بَكرٍ رضي الله عنه وَ عُمَرَ رضي الله عنه رواه ابوداود. قال النيموي على باب المسجد غير محفوظ.[1]

**ترجمه** : حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم ﷺ به چې کله د جمعې په ورځ په ممبر باندي تشريف فرما شو نو د ده مخې مبارکي ته به د مسجد په دروازه باندي اذان ويلي شو او د ابوبکر رضي الله عنه او د عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې هم دغسي ؤ. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي دي.

او نيموي رحمه الله ويلي دي چې ( على باب المسجد ) الفاظ غير محفوظ دي.

## دجمعې اذان په مسجد کې دننه صحيح دي

عام طور سره فقهاؤ داخل دمسجد لره مکروه او خلاف اولى ليکلي دي ليکن دجمعې داذان ثاني په باره کې دوه روايته دي .دباب په رواياتو کې " على باب المسجد " دلفظ نه په ظاهره دا په ذهن کې راځي چې دا اذان خارج دمسجد نه وو چنانچې څه وخت مخکې داهل بدعت له طرفنه دا فتنه راوچته شوي وه چې اذان ثاني په مسجد کې کول بدعت او مکروه تحريمي دي ليکن دراروان باب په رواياتو کې " على المنبر " نه ظاهره همدغه ده چې دا اذان به دمنبر سره امام ته نيزدې ويل کيدو او فقهاؤ هم " بين يدى الإمام " يعني امام ته مخامخ اذان ثاني لره دامت تعامل ګرځولې دي.

---

(۱) ابوداؤد کتاب الصّلوة ج۱ص ۱۵۵ باب النداء يوم الجمعة.

(وګورئ البحر الرائق: ۱۵۷/۲، حلبي کبير، ص: ۴۸۳)
**دفع تعارض**: ددې دواړو په حديثو کې په ظاهره تعارض دې دکوم دلرې کولو طريقه چې امام نيموي رحمه الله دترجيح په صورت کې اختيار کړې ده يعني د" على باب المسجد " اضافه په دې روايت کې غير محفوظ ده.
په اصل کې سائب بن يزيد رضي الله عنه نه زهري او دزهري نه روايت کونکي ډير دي دهغې نه يونس، عقيل، ماجشون، ابن ابي ذئب، صالح او سليمان"عندالباب" نه دې ويلې، صرف محمد بن اسحاق "عندالباب" ويلې دی نو ځکه دا اضافه محفوظ نه ده همدرانګه دراروان باب په روايت کې دي چې حضور صلى الله عليه وسلم به دمنبر نه دکوزيدو سره اقامت شروع کولو، که چرې مؤذن به دروازې سره اذان ويلو نو محل اقامت ته په رسيدو کې به دخلکو څټونو باندې اوړيدو کوم هغه ممنوع دي.

## ﴿بَابُ مَا يَدُلُّ عَلَى التَّاذِينِ عِنْدَ الْخُطْبَةِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ عِنْدَ الْإِمَامِ﴾

## دا باب دې په بيان د هغه حديث کې چې د جمعې په ورځ په اذان کولو باندې دلالت کوي د امام سره د خطبې په وخت کې

﴿۹۲۲﴾ عَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ قَالَ كَانَ بِلَالٌ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ يُؤَذِّنُ إِذَا جَلَسَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَوْمَ الْجُمُعَةِ فَإِذَا نَزَلَ أَقَامَ ثُمَّ كَانَ كَذٰلِكَ فِي زَمَنِ أَبِي بَكْرٍ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا رواه النسائي واحمد واسناده صحيح.[1]

**ترجمه**: حضرت سائب بن يزيد رضي الله عنه ويلي چې د جمعې په ورځ به کله رسول الله صلى الله عليه وسلم په ممبر باندې تشريف فرما شو نو حضرت بلال رضي الله عنه به اذان وايه نو کله به چې راخکته شو اقامت به ئې وکړ يا دغسې د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما په زمانه کې وُ. د دې حديث روايت نسائي رحمه الله او احمد رحمه الله کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

(۱) نسائي کتاب الجمعة ج۱ص ۲۰۷ باب الاذان للجمعة، مسند احمد ج۳ص ۴۴۹.

# ﴿بَابُ النَّهيِ عَنِ التَّفرِيقِ وَالتَّخَطِّي﴾

## د خلکو تر منځ د جدائي او د خلکو د پاسه د قدمونو اوچتولو نه د نهي باب

﴿۹۳۴﴾ عَن سَلمَانَ الفَارِسِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَنِ اغتَسَلَ يومَ الجُمُعَة وَ تَطهرَ بِمَا استَطَاعَ مِن طُهر ثُمَّ ادَّهَنَ اَو مَسَّ مِن طِيبٍ ثُمَّ رَاحَ فَلَم يفَرِّق بَينَ اثنَينِ فَصَلَّى مَا كتِبَ لَه ثُمَّ إِذَا خَرَجَ الإِمَامُ اَنصتَ غُفِرَلَه مَا بَينَه وَبَينَ الجُمُعَة الأُخرٰى رواه البخاري .[1]

**ترجمه** : حضرت سلمان فارسي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي څوک چې د جمعي په ورځ غسل وکړي او ځان ښه پاک کړي څومره ئي چې طاقت وي او بيا تيل پوري اويا خوشبوئي ولګوي بيا لاړ شي او د وه ؤ کسانو ترمنځ جدائي رانه ولي نو مونځ وکړي کوم چې په ده باندي فرض کړي شوي دي بيا کله چې امام راؤوځي بيا هغه چپ شي اؤبه بخهل شي ده ته هغه ګناهونه کوم چې ددي او دراتلونکي جمعي تر منځ شوي دي . د دي حديث روايت بخاري کړي دي .

﴿۹۳۵﴾ وَ عَن اَبِي الزَّاهرِية قَالَ كنتُ مَعَ عَبدِ الله بن بُسرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ صَاحِبِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يومَ الجُمُعَة فَجَاءَ رَجُلٌ يتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ فَقَالَ عَبدِ اللهِ بنِ بُسرٍ جَاءَ رَجُلٌ يتَخَطَّي رِقَابَ النَّاسِ يومَ الجُمُعَة وَالنَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يخطُبُ فَقَالَ لَه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِجلِس فَقَد آذَيتَ رواه ابوداود والنسائي واسناده حسن .[2]

**ترجمه** : ابو زاهريه ويلي دي چې زه د عبدالله بن بسر رَضِيَ اللهُ عَنهُ سره د جمعي په ورځ ؤم چې د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ صحابي دي يو سړي راغي چې د خلكو په څټونو باندي ئي قدمونه اوچتول نو عبدالله بن بُسر ويلي دي چې يو سړي د جمعي په ورځ راغي چې د خلكو په څټونو باندي ئي قدمونه اوچتول په داسي حال كې چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ خطبه ويله نو هغه ته نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ؤفرمايل چې كينه خلكو ته دي تكليف وركړ . د دي حديث روايت ابوداؤد او نسائي كړي دي او اسناد ئي حسن دي .

**يوه غلطه طريقه** : داولني صف دفضيلت حاصلولو لپاره دا طريقه اختيارول انتهائي غلطه ده چې دخلكو په څټونو باندې واوړي يا يو چاره دځپل ځاي نه پاڅوي او ځپله كيني بلكې ددې

(۱) بخاري كتاب الجمعة ج۱صـ ۱۲۴ باب لا يفرق بين اثنين يوم الجمعة .

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۵۹ باب تخطي رقاب الناس يوم الجمعة،نسائي كتاب الجمعة ج۱ص۲۰۷ باب النهي عن تخطي رقاب الناس .

صحیح طریقه تبکیر الی الجمعه ده دکوم فضیلت چې په احادیثو کې راغلې دی یعنې دوخت په اول کې له ټولو نه وړاندې مسجد ته رسیدل او ددې فضیلت حاصلول.

تخطي رقاب، اکرام مسلم خلاف دي بلکې په دې کې ایذاء مسلم دی کوم چې حرام دې که هغه دجمعې ورځ وي او که غیر دجمعې ورځ. البته که په مخکینې صف کې خالي ځای باقي وي نو دهغې دپوره کولو لپاره دتخطي رقاب اجازت شته.

او جمهور علماء په دې باندې متفق دي چې د خلکو په څټونو باندې اوښتل مکروه دي خو ولې ځینو تحریمي مکروه ګنړلي دي او بعضو تنزیهي مکروه ګنړلي دي اول قول ته ترجیح ورکړې شوې ده خو د امام د پاره څه ناڅه ګنجائش شته.

## ﴿ بَابُ السُّنَّةِ قَبلَ صَلَاةِ الجُمُعَةِ وَ بَعدَهَا ﴾

## د جمعې د مانځه نه مخکې او روسته د سنتو باب

**﴿۹۲۶﴾ عَن اَبِي هرِيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اغتَسَلَ ثُمَّ اَتَى الجُمُعَةَ فَصَلَّى مَا قُدِرَلَه ثُمَّ اَنصَتَ حَتّٰى يفرُغَ مِن خُطبَتِهٖ ثُمَّ يصَلِّي مَعَه غُفِرَ لَه مَا بَينَه وَ بَينَ الجُمُعَةِ الاُخرٰى وَفَضلَ ثَلَاثَةِ آيامٍ رواه مسلم.**[1]

**ترجمه**: د حضرت ابوهریره رضي الله عنه نه روایت دی چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي څوک چې غسل وکړي او بیا د جمعې مانځه ته ورشي او کوم مونځ چې ورته مقرر شوي دي هغه وکړي او بیا چپ شي تر څو پورې چې امام د خپلې خطبې نه فارغ شي او بیا د امام سره مونځ وکړي نو ؤبه بخښلې شي ده ته هغه ګناهونه چې د دې او د راتلونکې جمعې تر منځ دي. او درې ورځې اضافه. د دې حدیث روایت مسلم کړی دی.

**﴿۹۲۷﴾ وَ عَنه قَالَ قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَن كَانَ مِنكم مُصَلِّياً بَعدَ الجُمُعَةِ فَليصَلِّ اَربَعًا رواه الجماعة الا البخاري.**[2]

---

(۱) مسلم کتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۳ فصل من اغتسل او توضاء واتی الجمعة ...الخ.

(۲) مسلم کتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۸ فصل فی اربع رکعات او الرکعتین بعد الجمعة، ترمذی ابواب الجمعة ج۱ص ۱۱۷ باب فی الصلوة قبل الجمعة وبعدها، ابوداؤد کتاب الصلوة ج ص ۱۶۱ باب الصلوة بعد الجمعة، نسائی کتاب الجمعة ج۱ص ۲۱۰ باب عدد الصلوة بعد الجمعة فی المسجد، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۸۰ باب ماجاء فی الصلوة بعد الجمعة، مسند احمد ج۲ص ۲۴۹.

**ترجمه** : او حضرت ابو هريره رضي الله عنه وېلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي څوک چې تاسو کې د جمعي نه روسته مونځ کولو والا وي نو څلور رکعته دي اداء کړي. دا حديث د بخاري نه په غير د محدثينو يو جماعت روايت کړي دي.

﴿۹۳۸﴾ وَ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم كَانَ يُصَلِّي بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ رواه الجماعة.(۱)

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د جمعي د مانځه نه روسته دوه ركعته مونځ اداء فرمايلي ؤ. دا حديث د محدثينو جماعت روايت کړي دي.

﴿۹۳۹﴾ وَ عَنْ عَطَاءٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ رضي الله عنه قَالَ كَانَ اِذَا كَانَ بِمَكَّةَ فَصَلَّى الْجُمُعَةَ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ تَقَدَّمَ فَصَلّٰى اَرْبَعًا وَ اِذَا كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ صَلَّى الْجُمُعَةَ ثُمَّ رَجَعَ اِلٰى بَيْتِهٖ فَصَلّٰى رَكْعَتَيْنِ وَ لَمْ يُصَلِّ فِي الْمَسْجِدِ فَقِيْلَ لَهٗ فَقَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يَفْعَلُ ذٰلِكَ رواه ابوداود و قال العراقي اسناده صحيح.(۲)

**ترجمه** : د عطاء نه روايت دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه وېلي دي چې كله هغه په مكه مكرمه كې ؤ د جمعي مونځ ئي وكړ نو مخكې شو دوه ركعته مونځ ئي وكړ بيا مخكې لاړ نو څلور ركعته ئي او كله چې په مدينه منوره كې ؤ د جمعي مونځ به ئي وكړ بيا به خپل كور ته واپس شو نو دوه ركعته به ئي وكړل او په مسجد كې به ئي سنت او يا نفل مونځ نه كاوه نو د ده نه پوښتنه وشوه چې ته ولي داسي كوي نو هغه وويل چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم دغسي كول. د دي حديث روايت ابوداؤد كړي دي او عراقي وېلي دي چې اسناد ئي صحيح دي.

﴿۹۴۰﴾ وَ عَنْ جَبَلَةَ بْنِ سُحَيْمٍ عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّهٗ كَانَ يُصَلِّي قَبْلَ الْجُمُعَةِ اَرْبَعًا لَا يَفْصِلُ بَيْنَهُنَّ بِسَلَامٍ ثُمَّ بَعْدَ الْجُمُعَةِ رَكْعَتَيْنِ ثُمَّ اَرْبَعًا رواه الطحاوي و اسناده صحيح.(۳)

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱ص۲۸۸ فصل في اربع ركعات اوا ركعتين بعد الجمعة واللفظ له، بخاري كتاب الجمعة ج۱ص۱۲۸ باب الصّلوة بعد الجمعة وقبلها . ترمذي ابواب صلوة الجمعة ج۱ص ۱۱۷ باب في الصّلوة قبل الجمعة وبعدها ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۱ باب الصلوة بعد الجمعة نسائي كتاب الجمعة ج۱ص ۲۱۰ باب صلوة الامام بعد الجمعة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ص ۸۰ باب ماجاء في الصلوة بعد الجمعة ، مسند احمد ج۲ص ۱۱.

(۲) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۰ باب الصّلوة بعد الجمعة .

(۳) طحاوي كتاب الصّلوة ج۱ص ۲۳۱ باب التطوع بالليل والنهار كيف هو .

**ترجمه** : د جبله ابن سحیم د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه نه روایت کړي دي چې عبد الله بن عمر رضي الله عنه د جمعي نه مخکې څلور رکعته اداء کړي وُ او د دي څلورو رکعتونو په منځ کې ئې په سلام سره جدائي نه وه کړي بیا ئې د جمعي نه روسته دوه رکعته وکړل بیا ئې څلور رکعته کړي وُ. د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۹۲۱﴾ وَ عَن خَرشَةَ بنِ الحُرِّ اَنَّ عُمَرَ رضي الله عنه كَانَ يَكرَهُ اَن يُصَلِّي بَعدَ صَلَاةِ الجُمُعَةِ مِثلَهَا رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د خرشه ابن الحر نه روایت دي چې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د جمعي د مانځه نه پس د جمعي په مثل یعني دوه رکعته مونځ کول بنه نه ګڼړل اهـ د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۹۲۲﴾ وَعَنْ عَلقَمَةَ بنِ قَيسٍ اَنَّ ابنَ مَسعُودٍ رضي الله عنه صَلَّي يومَ الجُمُعَةِ بَعدَ مَا سَلَّمَ الإمَامُ اَربَعَ رَكعَاتٍ رواه الطبراني و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د عقلمه بن قیس نه روایت دي چې حضرت ابن مسعود رضي الله عنه د جمعي په ورځ د امام د سلام نه روسته څلور رکعته مونځ کړي وُ. د دي حدیث روایت طبراني کړي او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۹۲۳﴾ وَ عَن اَبِي عَبدِ الرَّحمٰنِ السُّلَمِي قَالَ كَانَ عَبدُ الله رضي الله عنه يَامُرُنَا اَن نُصَلِّي قَبلَ الجُمُعَةِ اَربَعًا رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح.[3]

**ترجمه** : ابو عبد الرحمن السلمي ویلي دي چې عبد الله رضي الله عنه به مونږ ته حکم کاوه چې مونږ د جمعي نه مخکې څلور رکعته مونځ وکړو. د دي حدیث روایت عبد الرزاق کړي او اسناد ئې صحیح دي

﴿۹۲۴﴾ وَ عَنه قَالَ عَلَّمَ ابنُ مَسعُودٍ رضي الله عنه النَّاسَ اَن يُصَلُّوا بَعدَ الجُمُعَةِ اَربَعًا فَلَمَّا جَاءَ عَلِي بنُ اَبِي طَالِبٍ رضي الله عنه عَلَّمَهم اَن يُصَلُّوا سِتًّا رواه الطحاوي و اسناده صحيح.[4]

---

(۱) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۳۳ باب التطوع بعد الجمعة.

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ صـ ۳۶۰ رقم الحديث ۹۵۵۴.

(۳) مصنف عبدالرزاق كتاب الجمعة ج۳ صـ ۲۴۷ باب الصّلاة قبل الجمعة وبعدها برقم ۵۵۲۵.

(۴) طحاوي كتاب الصلوة ج۱ صـ ۲۳۳ باب التطوع بعد الجمعة.

**ترجمه** : ابو عبدالرحمن السلمي ويلي دي چې ابن مسعود رضي الله عنه خلکو ته د جمعې نه روسته د څلورو رکعتونو تعليم ورکاوه نو کله چې حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه راغي نو هغه خلکو ته د شپږو رکعتونو تعليم ورکاوه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دی او اسناد ئې صحيح دی.

**﴿۹۴۵﴾ وَ عَنه قَالَ قَدِمَ عَلَينَا عَبدِ اللهِ رضي الله عنه فَكَانَ يصَلِّي بَعدَ الجُمُعَة أربَعًا فَقَدِمَ بَعدَه عَلِي رضي الله عنه فَكَانَ إذَا صَلَّى الجُمُعَة صَلَّى بَعدَهَا رَكعَتَينِ وَ أربَعًا فَأعجَبَنَا فِعلُ عَلِي رضي الله عنه فَاختَرنَاه رواه الطحاوي و اسناده صحيح.**[1]

**ترجمه** : او ابو عبدالرحمن السلمي ويلي دي چې مونږ ته عبدالله رضي الله عنه راغي نو د جمعې نه روسته ئې څلور رکعته وکړل نو د دې نه روسته حضرت علي رضي الله عنه راغي نو هغه چې کله د جمعې مونځ وکړ نو د جمعې نه روسته ئې دوه او څلور رکعته وکړل نو زمونږ د حضرت علي رضي الله عنه عمل خوښ شو نو همدغه مو غوره وګاڼه. د دې حديث روايت طحاوي کړي دی او اسناد ئې صحيح دی.

**﴿۹۴۶﴾ وَ عَنه عَن عَلِي رضي الله عنه أنَّه قَالَ مَن كَانَ مُصَلِّيًا بَعدَ الجُمُعَة فَليصَلِّ سِتًّا رواه الطحاوي و اسناده صحيح.**[2]

**ترجمه** : د ابو عبدالرحمن السلمي نه روايت دی چې حضرت علي رضي الله عنه ويلي دي کوم کس چې د جمعې نه روسته مونځ کوي نو شپږ رکعته دې کوي. د دې حديث روايت طحاوي کړي دی او اسناد ئې صحيح دی.

## د جمعې سنن قبليه او بعديه

په ذکر شوي باب کې د (۹۳۶ حديث نه تر ۹۴۶) حديث پورې د جمعې د سنتو په باره کې بحث کيږي د جمعې د سنتو په حقله اختلاف :

د جمعې دوه قسمه سنت دي: (۱) د جمعې د مانځه مخکې سنت. (۲) د جمعې د مانځه نه روسته سنت.

د جمعې د مانځه نه مخکې سنتو کې درې مذهبه دي:

(۱) د احنافو حضراتو په نزد د جمعې د مانځه نه مخکې څلور رکعته سنت دي.

(۲) د امام شافعي رحمه الله په نزد باندې د جمعې نه مخکې دوه رکعته سنت دي.

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۳ باب التطوع بعد الجمعة.

(۲) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ص ۲۳۳ باب التطوع بعد الجمعة.

(۳) د مالکيو په نزد د فجر نه علاوه رواتب نشته او د ابن تيميه رَحِمَهُ اللهُ په نزد د جمعي د مانځه نه مخکې بالکل سنت نه شته . (۱)

او د غــي د جمعي د مانځه نه روسته سنتو کې هم اختلاف دي په دي باره کې اصلاً دوه مذهبه دي:

(۱) د امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد څلور رکعته دي او د امام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد باندي د جمعي د مانځه نه روسته فقط دوه رکعته سنت دي.

**(۲) د احنافو مذهب:** احناف په خپل منځ کې سره مخالف دي د امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد د جمعي د مانځه نه روسته څلور رکعته سنت دي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ اللهُ او امام محمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد د جمعي د مانځه نه روسته شپږ رکعته سنت دي او په همدي باندي فتوی شوي دي .

(۳) د مالکيو په نزد د فجر نه علاوه رواتب نشته.

## دسنن قبليه يو څو دليلونه :

۱... حديث د عبد الله بن مغفل رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مرفوعا : " بين کل اذانين صلاة " (متفق عليه) د دې حديث په عموم کې د جمعې اذان او سنت هم راځي .

۲... د باب حديث نمبر ۹۴۱ " عَن عَبدِ الله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّه كانَ يصَلِّي قَبلَ الجُمُعَة أربَعًا لا يفصِلُ بَينَهنَّ بِسَلامٍ " .... الخ .

۳... حديث نمبر ۹۴۲... " كانَ عَبدُ الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يامُرُنا أن نُصَلِّي قَبلَ الجُمُعَة أربَعًا" .

۴... حديث د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ بسند ضعيف : " كان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يركع قبل الجمعة اربع ركعات". (معارف السنن :٤/٤١٤)

دسـنن بعديه يو څو دليلونه :

۱. حديث نمبر ۹۳۸: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَن كانَ مِنكم مُصَلِّياً بَعدَ الجُمُعَة فَليصَلِّ أربَعًا.

۲... حديث نمبر ۹۳۹: "أنَّ النَّبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كانَ يصَلِّي بَعدَ الجُمُعَة رَكعَتَينِ" .

۳... عمل د ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: " عن عطاء انه رأي ابن عمر يصلي بعد الجمعة ... قال : فيركع ركعتين ثم يمشي انفس من ذلک فيركع اربع ركعات" . (ابوداود : ۲/۱۶۱)

---

(۱) معارف السنن ج ٤ صـــ ٤١٢.

۴... حدیث نمبر ۹۴۱ عمل دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ایضا .

۵... حدیث نمبر ۹۴۶ عمل د علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ : "کان اذا صلی الجمعة صلی بعدها رکعتین واربعا".

بهرحال... د جمعې سونځ نه پس حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څلور رکعته لوستل او ددې په باره کې دحضور صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ یو قولي حدیث هم دې ، طرفینو همدې لره واخیست او حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ شپږ رکعته کول امام ابویوسف رَحِمَهُ اللهُ همدې لره اختیار کړې دی او اکثرو مشائخو په همدې باندې فتوی ورکړه البته کول یې ناخوښه ګڼل نو ځکه فقهاء فرمایي چې اول څلور رکعته او هغې نه پس دې دوه رکعته اولوستلې شي .

# ﴿بَابٌ فِي الخُطبَةِ﴾

## د خطبې په باره کې باب

﴿۹۲۷﴾ عَنِ ابنَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يخطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يقعُدُ ثُمَّ يقُومُ كمَا تَفعَلُونَ الآنَ رواه الجماعة .[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به په ولاړه خطبه فرمایله بیا به کیناستو بیا به پاڅیده لکه چې اوس ئې تاسو کوئ . د دي حدیث روایت الجماعت کړي دي .

﴿۹۲۸﴾ وَعَنه قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يخطُبُ خُطبَتَينِ يقعُدُ بَينَهمَا رواه البخاري .[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به دوه خطبې ویلې د دواړو خطبو ترمنځ به کیناسته . د دي حدیث روایت بخاري کړي دي .

﴿۹۲۹﴾ وَعَن جَابِرِ بنِ سُمرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَتْ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطبَتَانِ يجلِسُ بَينَهمَا يقرَأُ القُرآنَ وَيذَكرُ النَّاسَ رواه الجماعة الا البخاري .[3]

---

(۱) بخاري کتاب الجمعة ج۱ص ۱۲۵ باب الخطبة قائمًا ، مسلم کتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۳ ، ترمذي ابواب الصلوة الجمعة ج۱ص ۱۱۳ باب ماجاء في الجلوس بين الخطبتين ، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۶ باب الجلوس اذا صعد المنبر ، نسائي کتاب الجمعة ج۱ص ۲۰۹ باب الفصل بين الخطبتين ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوة ص ۷۹ باب ماجاء في الخطبة يوم الجمعة مسند احمد ج۲ ص ۳۵.

(۲) بخاري کتاب الجمعة ج۱ص ۱۲۷ باب القعدة بين الخطبتين يوم الجمعة .

(۳) مسلم کتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۳ ، ترمذي ابواب صلوة الجمعة ج۱ص ۱۱۳ باب ماجاء في الجلوس بين الخطبتين ، ابوداؤد کتاب الصلوة ج۱ص ۱۵۶ باب الخطبة قائمًا ، نسائي کتاب الجمعة ج۱ص ۲۰۹ باب السكوت في القعدة بين الخطبتين ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۷۹ باب ماجاء في الخطبة يوم الجمعة ، مسند احمد ج ۵ ص ۹۰.

**ترجمه** : حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه ويلي دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به دوه خطبي ويلې د دواړو ترمنځ به كيناسته د قرآن كريم تلاوت به ئي پكې كاوه او خلكو ته به ئي نصيحت كاوه. د دي حديث روايت د بخاري نه په غير جماعت كړي دي.

**﴿۹۵۰﴾ وَعَنْ سِمَاكٍ قَالَ اَنْبَأَنِي جَابِرٌ رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ اللهِ صلى الله عليه وسلم كَانَ يَخْطُبُ قَائِمًا ثُمَّ يَجْلِسُ ثُمَّ يَقُومُ فَيَخْطُبُ قَائِمًا فَمَنْ نَبَّأَكَ اَنَّهُ كَانَ يَخْطُبُ جَالِسًا فَقَدْ كَذَبَ وَاللهِ صَلَّيْتُ مَعَهُ اَكْثَرَ مِنَ اَلْفَيْ صَلَاةٍ رواه مسلم.**[1]

**ترجمه**: سماك ويلي دي چې ماته حضرت جابر رضي الله عنه خبر راكړي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم به په ولاړه خطبه ويله بيا به كيناست بيا به پاڅيده نو په ولاړه به ئي خطبه ويله نو چا چې تاته خبر دركړي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په ناسته خطبه ويلي ده په تحقيق دروغ ئي ويلي دي په الله جل شانه قسم دي چې په تحقيق ما د هغه سره د دوه ؤ زرو نه زيات مونځونه كړي دي. د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

**﴿۹۵۱﴾ وَعَنْ جَابِرِ بنِ سَمُرَةَ رضي الله عنه قَالَ كُنتُ اُصَلِّي مَعَ رَسُولِ اللهِ صلى الله عليه وسلم فَكَانَتْ صَلَاتُهُ قَصْدًا وَخُطْبَتُهُ قَصْدًا رواه مسلم وآخرون.**[2]

**ترجمه** : حضرت جابر بن سمره رضي الله عنه ويلي دي چې ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره مونځ كاوه نو د رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ درميانه ؤ او خطبه ئي هم په درميانه حالت كې وه. د دي حديث روايت مسلم كړي دي او نورو محدثينو كړي.

**﴿۹۵۲﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بنِ اَبِي اَوْفَى رضي الله عنه قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صلى الله عليه وسلم يُطِيلُ الصَّلَاةَ وَيُقْصِرُ الْخُطْبَةَ رواه النسائي واسناده حسن.**[3]

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن اوفى رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به مونځ اوږداوه او خطبه به ئي لنډوله. د دي حديث روايت نسائي كړي دي او اسناد ئي حسن دي.

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۳.

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۳ فصل في الخطبة والصلوة قصدا.

(۳) نسائي كتاب الجمعة ج۱ص ۲۰۹ باب ما يستحب من تقصير الخطبة.

﴿۹۵۳﴾ وَ عَنِ الحُكمِ بنِ حَزنِ الكُلَفِي قَالَ قَدِمتُ إِلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سَابِعَ سَبعَةٍ أَو تَاسِعَ تِسعَةٍ فَلَبِثنَا عِندَه أَيَّامًا شَهِدنَا فِيهَا الجُمُعَةَ فَقَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مُتَوَكِّأً عَلَى قَوسٍ أَو قَالَ عَلَى عَصَا رواه احمد وابوداود واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : حكم بن حزن الكلفي ويلي دي چې زه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم سره حاضر شوم چې د اوو كسانو نه اوم او يا د نهو كسانو نه نهم كس وم مونږ د ده سره ډيري ورځي تيري كړي په دي موده كې مونږ هم په جمعه كې حاضر شو نو رسول الله صلى الله عليه وسلم خطبه په داسي حال كې فرمايله چې په قوس او يا به ئي په همسا تكيه لګولي وه . د دي حديث روايت احمد رحمه الله او ابوداوُد رحمه الله كړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۹۵۴﴾ وَ عَنِ ابنِ شِهَابٍ قَالَ بَلَغَنَا أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَبدَأُ فَيَجلِسُ عَلَى المِنبَرِ فَإِذَا سَكَتَ المُؤَذِّنُ قَامَ فَخَطَبَ الخُطبَةَ الأُولَى ثُمَّ جَلَسَ شَيئًا يَسِيرًا ثُمَّ قَامَ فَخَطَبَ الخُطبَةَ الثَّانِيَةَ حَتَّى إِذَا قَضَاهَا إِستَغفَرَ اللهَ ثُمَّ نَزَلَ فَصَلَّى قَالَ ابنِ شِهَابٍ وَ كَانَ إِذَا قَامَ أَخَذَ عَصًا فَتَوَكَّأَ عَلَيهَا وَ هُوَ قَائِمٌ عَلَى المِنبَرِ ثُمَّ كَانَ أَبُوبَكرٍ الصِّدِّيقِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يَفعَلُونَ ذٰلِكَ رواه ابوداود في مراسيله و هو مرسل جيد .[2]

**ترجمه** : ابن شهاب ويلي دي چې مونږ ته دا خبره رسيدلي ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به اول په ممبر باندي تشريف فرما شو چې كله به مؤذن د اذان نه چپ شو رسول اكرم صلى الله عليه وسلم به پاڅيده اوله خطبه به ئي وفرمايله بيا به لږ شاني كيناست بيا به پاڅيده نو دويمه خطبه به ئي وويله تر دي پوري چې كله به ئي پوره كړه نو استغفرالله به ئي وويله بيا به راخكته شو نو مونځ به ئي وكړ ابن شهاب ويلي دي چې كله به رسول الله صلى الله عليه وسلم پاڅيده نو امسا به ئي راواخسته په هغي به ئي تكيه وهله په داسي حال كې چې دا به په ممبر باندي ولاړ ؤ بيا به ابوبكر الصديق رضي الله عنه او حضرت عمر رضي الله عنه او حضرت عثمان رضي الله عنه هم همدغسي كول . د دي حديث روايت ابوداوُد په خپلو مرسلو حديثونو كې كړي دي او دا مرسل جيد دي .

---

(۱) مسند احمد ج ۴ صـــ ۲۱۲ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۵۶ باب الرجل يخطب على قوس .

(۲) مراسيل ابي داؤد ، ملحقة بسنن ابي داؤد صـــ ۷ باب ماجآء في الخطبة يوم الجمعة .

## دجمعې دخطبې يو څو مسائل

**اولنې مسئله** : جمهور علماء او دائمه اربعو رحمهم الله په نزد دجمعې خطبه واجب او دصحت صلوة لپاره شرط دې .

**دويمه مسئله** : حنفيه ، مالکيه او دجمهور علماء په نزد ضروري خطبه اولنۍ ده او دويمه خطبه سنت ، او امام شافعي رحمه الله دخطبتينو دوجوب قائله دې حال دا چې دامام احمد رحمه الله نه هم مشهور روايت همدغه دې .

**دريمه مسئله** : حتى المقدرت په اودريدو سره خطبه ورکول دامام مالک او دامام شافعي رحمه الله په نزد واجب ده ، ليکن دامام ابوحنيفه او داحمد رحمه الله په نزد دا سنت ده .

**څلورمه مسئله** : جلوس بين الخطبتين دجمهور علماء په نزد سنت او دامام شافعي رحمه الله په نزد واجب ده .

**پنځمه مسئله** : دامام شافعي رحمه الله، احمد او دمالک رحمه الله قول راجح کې دخطبې پنځه ارکان دي : حمد وثناء صلاة وسلام على النبي صلى الله عليه وسلم ، التذکير يعنې وعظ او نصيحت او وصيت بالتقوى ، القراءة ، الدعاء للمؤمنين والمؤمنات . بعضي حضراتو ددريو شيانو اضافه کړې ده خطبه په عربي کې کېدل ، جهرا ويل ، او په مسجد کې کيدل وغيره .

امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالک رحمه الله په يو روايت کې فرمايي حقيقي خطبه مطلق ذکر ده يعنې ذکر الله کما قال الله تعالى : "اذا نودي للصلوة من يوم الجمعة فاسعوا الى ذکر الله " ، لهذا ددوي په نزد صرف تهليل يا تسبيح يا تحميد کافي دي . په دې کې شک نشته چې دامت تعامل دشروع نه په دې اجزاؤ باندې مشتمل دخطبې ورکول دي ليکن دحضرت عثمان په باره کې ثابت دي چې اولنۍ خطبه دخلافت دالحمدلله دويلو نه پس دوي باندې رقت طاري شو او آواز يي کيناست او بغير داستغفارنه يي پري نور زياتوالي اونکړ او دمنبر نه راکوز شو او مونځ يي اوداېولو او داسي مجمع صحابو کې شوې وه .

صاحبين فرمايي : " لابد من کلام يسمى خطبة عادة " يعنې داسي مختصر کلام کوم ته چې په عرف کې خطبه ويلې کيږي کم ازکم دتشهد مقدار وي.

**شپږمه مسئله** : دحضرت جابر بن سمره رضي الله عنه په حديث کې دي چې دحضور صلى الله عليه وسلم مونځ او خطبه دواړه به معتدل وو يعنې ددوي خطبه دومره اوږده نه وه چې اوريدونکي به ترې ستړي شو او ددواړو دمعتدل کيدو لپاره دا ضروري نه ده چې دواړه دې برابر وي بلکې مونځ دجمعې دخطبې نه نسبة اوږده پکار ده ، دعبدالله بن مغفل په حديث کې همدا وارد دي همدارنګه دمسلم شريف ديو

روایت الفاظ دادي : " ان طول صلاة الرجل وقصر خطبته مئنة من فقهه " دیو کس مونځ اوږدیدل او دخطبي مختصر کیدل دده دفقیه کیدو نښه ده .

**اوم مسئله** : دجمهور علماء او دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد مطلق مسلک دادي چې خطیب ته پکار دي چې په یو لرګي باندې يي تيک لګولي اودريدلې وي ، ددې حکمت دا ليکلې شوې دې چې په دې سره لاسونو لره دعبث کار نه او دحرکت نه منع کیدل دي او دسکون کیفیت حاصلیدل دي .پاتې شوه مسئله دحنفیه نو دحنفیه فقهاء داحنافو کلام اګر چې ددې په باره کې مختلف دي لیکن په رد المختارکي په حواله دقهستاني دي لره په مثل دقیام للخطبه سنت ګرځولې دې.دغه شان دائمه اربعو قول ددې په سنیت باندې متفق شو (رد المحتار :٢/٤٣١-٤٣٥، البحر الرائق :٢/١٤٦-١٤٨، رحمة الامة ،ص :٦٠)

## ﴿بَابُ كَرَاهَةِ رَفْعِ الْيَدَيْنِ عَلَى الْمِنْبَرِ﴾

## په منبر باندې د لاسونو د اوچتولو د کراهت باب

﴿١٥٥﴾ عَنْ حُصَيْنٍ عَنْ عُمَارَةَ بْنِ رُوَيْبَةَ قَالَ رَأَى بِشْرَ بْنَ مَرْوَانَ عَلَى الْمِنْبَرِ رَافِعًا يَدَيْهِ فَقَالَ قَبَّحَ اللهُ هَاتَيْنِ الْيَدَيْنِ لَقَدْ رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا يَزِيدُ عَلَى أَنْ يَقُولَ بِيَدِهِ هٰكَذَا وَ أَشَارَ بِإِصْبَعِهِ الْمُسَبِّحَةِ رواه مسلم و آخرون .[1]

**ترجمه** : د حصین نه روایت دي چې عماره بن رویبه ویلي دي ده بسر بن مروان په منبر باندې په داسې حال کې ولیده چې اوچتوونکي ؤ لاسونو خپلو لره نو عماره بن رُویبه وویل چې قبیح ( محروم ) دې کړي الله جل شانه دا دواړه لاسونه په تحقیق ما لیدلي ؤ رسول الله صلی الله علیه وسلم چې د دې نه زیات نه ؤ چې خپل لاس مبارک ئي داسې فرمایلي وي او اشاره به ئي وکړه په خپله مسبحه ګوتې سره . د دې حدیث روایت مسلم او نورو محدثینو کړې دې .

**مسئلة الباب** : دبعضې خطباء او دمقررينو دا عادت وي چې هغه دبيان په وخت کې لاسونه بار بار خوځوي او حرکت ورکوي دا شئ خلاف سنت دې .(الدرالمنضود :٢/٣٣)

---

(١) مسلم كتاب :الجمعة ج١ص ٢٨٧ فصل في الاشارة في الخطبة بالمسبحة .

# ﴿بَابُ التَّنَفُّلِ حِينَ يخطُبُ الإمَامُ﴾

## د امام د خطبي په وخت کې د نفلو کولو باب

﴿۹۵۶﴾ عَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ يومَ الجُمُعَة وَالنَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يخطُبُ فَقَالَ صَلَّيتَ قَالَ لَا قَالَ فَصَلِّ رَكعَتَينِ رواه الجماعة. [1]

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي يو سړي د جمعي په ورځ مسجد ته داخل شو او نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ خطبه فرمايله نو نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل تا مونځ کړي سړي وويل چې نه نو رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وُفرمايل چې دوه رکعته مونځ وکړه . د دي حديث روايت د محدثينو جماعت کړي.

﴿۹۵۷﴾ وَعَنه قَالَ جَاءَ سُلَيك الغَطفَانِي يومَ الجُمُعَة وَرَسُولُ الله يخطُبُ فَجَلَسَ فَقَالَ لَه يا سُلَيك قُم فَاركَع رَكعَتَينِ وَتَجَوَّز فِيهِمَا ثُمَّ قَالَ إِذَا جَاءَ أَحَدُكم يومَ الجُمُعَة وَالإِمَامُ يخطُبُ فَليركَع رَكعَتَينِ وَليتَجَوَّز فِيهِمَا رواه مسلم و آخرون. [2]

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې سليک غطفاني د جمعي په ورځ راغي او رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ خطبه فرمايله نو سليک کيناسته نو ده ته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وفرمايل چې اي سليکه پاڅه دوه رکعته مونځ وکړه او زر تير شه په دي دوه وُ رکعتونو مختصرئي کړه بيا ئي وفرمايل چې کله يو ستاسي د جمعي مانځه ته راشي او امام خطبه وائي نو دوه رکعته دي وکړي او په دي دواړو رکعتونو کې دي لنډوالي وکړي. د دي حديث روايت مسلم او نورو محدثينو کړي دي.

﴿۹۵۸﴾ وَعَن سُلَيك رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ : قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا جَاءَ أَحَدُكم وَالإِمَامُ يخطُبُ فَليصَلِّ رَكعَتَينِ خَفِيفَتَينِ رواه احمد والطبراني و اسناده صحيح. [3]

---

(۱) بخاري كتاب الجمعة ج۱ص۔ ۱۲۷ باب اذا رأي الامام رجلًا جآء وهو يخطب ...الخ ، مسلم كتاب الجمعة ج۱ص۔۲۸۷ فصل من دخل المسجد والامام يخطب ....الخ ، ترمذي ابواب صلوة الجمعة ج۱ص۔ ۱۱۴ باب في الركعتين اذا جآء الرجل والامام يخطب ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۔ ۱۵۹ باب اذا دخل الرجل والامام يخطب ، نسائي كتاب الجمعة ج۱ص۔۲۰۸ باب مخاطبة الامام رعيته وهو علي المنبر ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص۔ ۷۹ باب ماجآء فيمن دخل المسجد والامام يخطب، مسند احمد ج۳ص۔ ۳۰۸.

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱ص۔ ۲۸۷ فصل من دخل المسجد والامام يخطب .

(۳) مسند احمد ج۳ ص۔ ۳۱۷ المعجم الكبير للطبراني ج ۷ ص۔ ۱۶۱ رقم الحديث ۶۶۹۷.

**ترجمه** :حضرت سليک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي کله چې يو ستاسي راشي او امام خطبه وائي نو دوه رکعته خفيف او مختصر مونځ دي وکړي . د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ او طبراني کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

## د جمعي د خطبي په وخت کې مونځ کول

د جمعي د خطبي په دوران کې د مونځ کولو په باره کې د ائمهؤ ترمنځ اختلاف دي چې په لاندي ډول سره بيانيږي .

## د جمعي د خطبي په دوران کې د مونځ په باره کې مذهبي اختلاف :

(۱) مذهب: د کوفي فقهاؤ او مالکيانو احنافو دا مذهب دي چې د جمعي د خطبي په دوران کې هيڅ قسم خبري او يا مونځ جائز نه دي د جمهورو صحابه کرامو او تابعينو هم دغه مذهب دي .

(۲) مذهب : حنابلهؤ او شوافعو ويلي دي کوم خلک چې د جمعي په ورځ د خطبي په وخت کې راشي د هغوي د پاره د تحية المسجد دوه رکعته مونځ کول مستحب دي او د دي باب ټول روايتونه د حنابلهؤ او د شوافعو د پاره دليلونه دي .

جمهورو علماؤ د دي جواب کې ويلي دي چې د دي سړي نوم کوم کس ته چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خطبي په دوران کې د دوهؤ رکعتونو حکم کړي ؤ سليک بن هدبهؤ او يا سليک بن عمرو غطفاني ؤ او دا ډير فقير ؤ نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خلکو نه د ده د پاره چنده غوښتله نو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده ته حکم کړي ؤ چې دا ؤدريږي او دوه رکعته مونځ وکړي چې خلک د ده فقر په خپلو سترګو وګوري او خلک ده ته صدقه ورکړي لکه چې د نسائي په ج۱ص ۱۵۸ کې يو روايت راغلي دي يو سړي د جمعي په ورځ د فقر د بدحالئ په شکل کې راغي نو نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته ؤفرمايل چې تا مونځ کړي هغه ورته وويل چې نه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته وفرمايل چې دوه رکعته مونځ وکړه او تيزي ئي ورکوله په صدقه باندي . **الحديث** .

او د فتح الباري په ج۲ص ۳۲۶ کې روايت دي : چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې (**ان هذا الرجل دخل المسجد علي هيئة بذة الخ** ) يعني بي شکه دغه سړي مسجد ته د غريبئ په شکل کې راغلي ؤ نو ماده ته حکم وکړ چې مونځ وکړي او زه اميد کوم چې هر سړي د ده په حال خبر شي الخ او د موارد الظمان په ص ۱۵۰ کې به يو روايت کې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې دوه رکعته مونځ وکړه او بيا د دي په شان مونځ ونکړي ، (**ارکع رکعتين ولا تعودن لمثل هذا** ) د دي پورته روايتونو نه معلومه شوه چې دا يوه جزئي واقعه ده او کليه قاعده او ضابطه نه ده او بعض

راويانو دا ديوې قاعدې په شکل کې پيش کړې دي.
او نسائي په سنن کبرى کې ويلي دي چې دا واقعه په مانځه کې د خبرو کولو د نسخ نه مخکې وه نو کله چې په مانځه کې خبرې منسوخ شوې نو په خطبه کې هم خبرې منسوخ شوې ځکه چې خطبه د جمعې د مانځه جزء دي او شرط ئې دي. (۱) او دار قطني يو روايت نقل کړې دي چې (نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه بنده کړه تر دې پورې چې هغه سړې د مانځه نه فارغ شو او يا ئې دا چې د دې سړي مونځ د خطبې د شروع کيدو نه مخکې ؤ. (۲)

## ﴿بَابٌ فِي الْمَنْعِ مِنَ الْكَلَامِ وَالصَّلَاةِ عِنْدَ الْخُطْبَةِ﴾

## د جمعې د خطبې په وخت کې د مانځه او د خبرو کولو نه د منع باب

﴿۶۵۹﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا قُلْتَ لِصَاحِبِكَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ أَنْصِتْ وَالْإِمَامُ يَخْطُبُ فَقَدْ لَغَوْتَ رواه الشيخان. (۳)

**ترجمه**: د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ نه روايت دي چې رسول اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي کله چې ته خپل ملګري ته د جمعې په ورځ ووائې چې چپ شه په داسې حال کې چې امام خطبه لولې نو بې فائده خبره دې کړې ده. د دې حديث روايت شيخينو کړې دي.

﴿۶۶۰﴾ وَعَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ دَخَلَ عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ مَسْعُودٍ الْمَسْجِدَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَجَلَسَ إِلَى جَنْبِ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَسَأَلَهُ عَنْ شَيْءٍ أَوْ كَلَّمَهُ بِشَيْءٍ فَلَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ أُبَيٌّ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَظَنَّ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّهَا مُوجِدَةٌ فَلَمَّا انْفَتَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ صَلَاتِهِ قَالَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ يَا أُبَيُّ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَرُدَّ عَلَيَّ قَالَ إِنَّكَ لَمْ تَحْضُرْ مَعَنَا الْجُمُعَةَ قَالَ وَلِمَ قَالَ تَكَلَّمْتَ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ فَقَامَ ابْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ فَدَخَلَ عَلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذٰلِكَ لَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَدَقَ أُبَيٌّ أَطِعْ أُبَيًّا رواه ابو يعلي واسناده صحيح. (۴)

---

(۱) نسائي ج۱ص ۱۵۷، ۴ حاشيه.
(۲) معارف السنن ج ۴ ص ۳۷۷-۳۷۸.
(۳) بخاري كتاب الجمعة ج۱ص ۱۲۷ باب الانصات يوم الجمعة، مسلم كتاب الجمعة ج۱ص ۲۸۱ فصل في عدم ثواب من تكلم والامام يخطب ...الخ.
(۴) مسند ابي يعلي ج۳ص ۳۳۵ رقم الحديث ۱۷۹۹، مجمع الزوائد ج۲ص ۱۸۵.

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ویلي دي چې عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مسجد ته ننوتې ؤ او نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه لوستله نو د أبي بن کعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خوا ته کیناست نو د هغه نه ئې د یو شئ پوښتنه وکړه او یا ئې د هغه سره څه خبره وکړه نو حضرت أبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هغه ته جواب ورنه کړ نو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ګمان وکړ چې أبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپه شوي دي نو کله چې نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د خپل مانځه نه خلاص شو نو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې اې أبي څه شي منع کړې وې ته چې ماته دې جواب راکړې وې أبي وویل چې ته مونږ سره د جمعې په ورځ حاضر نه وې ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې هغه څنګه أبي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وویل چې ما خبرې کولې او نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خطبه لوستله نو ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پاڅیده او نبي کریم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته ورغې نو دا خبره ئې ورته یاده کړه نو رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمایل چې أبي رښتیا ویلي دي او د ابي اطاعت وکړه. د دې حدیث روایت ابو یعلی کړي دی او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۹۶۱﴾ وَعَنْ ثَعْلَبَةَ بْنِ أَبِي مَالِكٍ الْقَرَظِيِّ قَالَ إِنَّ جُلُوسَ الْإِمَامِ عَلَى الْمِنْبَرِ يَقْطَعُ الصَّلَاةَ وَكَلَامُهُ يَقْطَعُ الْكَلَامَ وَقَالَ إِنَّهُمْ كَانُوا يَتَحَدَّثُونَ حِينَ يَجْلِسُ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عَلَى الْمِنْبَرِ حَتَّى يَسْكُتَ الْمُؤَذِّنُ فَإِذَا قَامَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَلَى الْمِنْبَرِ لَمْ يَتَكَلَّمْ أَحَدٌ حَتَّى يَقْضِيَ خُطْبَتَيْهِ كِلْتَيْهِمَا ثُمَّ إِذَا نَزَلَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ الْمِنْبَرِ وَقَضَى خُطْبَتَيْهِ تَكَلَّمُوا رواه الطحاوي و اسناده صحيح(۱)

**ترجمه** : ثعلبه ابن ابي مالک قرظي ویلي دي په منبر باندې د امام کیناستل مونځ قطع کوي او د هغه خبرې (خطبه ویل) خبرو لره قطع او ختموي ثعلبه ابن ابي مالک ویلي دي چې بې شکه هغوي به خبرې کولې کله به چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر باندې کیناست تر هغې پورې چې مؤذن به چپ شو نو کله به چې حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ په منبر باندې أودریدهٔ هیچا به خبرې نه کولې تر دې پورې چې دواړه خطبې به ئې پوره کړې بیا به چې کله حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خطبه پوره کړه او د منبر نه به راکوز شو خلکو به خبرې کولې. د دې حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئې صحیح دي.

---

(۱) طحاوي کتاب الصلوة ج۱ـــ ۲۵۴ باب الانصات عند الخطبة.

# ﴿بَابُ مَا يقرأُ بِهٖ فِي صَلَاةِ الجُمُعَةِ﴾

## باب دې په بيان د هغه څه کې چې د جمعې په مانځه کې به ئې لوستلې کېږي

﴿۹۶۲﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ يقرأُ فِي صَلَاةِ الفَجرِ يومَ الجُمُعَةِ آلٓمّٓ تَنزِيل السَّجدَةَ وَ هل اَتٰى عَلَى الإنسَانِ حِينٌ مِنَ الدَّهرِ وَاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ يقرأُ فِي صَلَاةِ الجُمُعَةِ سُورَةَ الجُمُعَةِ وَالمُنَافِقِينَ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم به د جمع په ورځ د سهر په مانځه کې د (الم تنزيل السجده او هل اتى على الانسان) سورتونه لوستل او د جمعې په مانځه کې به ئې د جمعې سورت او د منافقون سورتونه لوستل. د دې حديث روايت مسلم کړې دې.

﴿۹۶۳﴾ وَعَنِ ابنِ اَبِي رَافِعٍ قَالَ استَخلَفَ مَروَانُ اَبَاهرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ عَلَى المَدِينَةِ وَ خَرَجَ اِلَى مَكَّةَ فَصَلّٰى لَنَا اَبُوهرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يومَ الجُمُعَةِ فَقَرَأَ بَعدَ سُورَةِ الجُمُعَةِ فِي الرَّكعَةِ الآخِرَةِ اِذَا جَاءَكَ المُنَافِقُونَ قَالَ فَأَدرَكتُ اَبَاهرَيرَةَ حِينَ انصَرَفَ فَقُلتُ لَه اِنَّكَ قَرَأتَ بِسُورَتَينِ كَانَ عَلِيُّ بنُ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يقرَأُهمَا بِالكوفَةِ فَقَالَ اَبُوهرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اِنِّي سَمِعتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يقرَأُ بِهِمَا يومَ الجُمُعَةِ رواه مسلم.[2]

**ترجمه**: د ابن ابي رافع نه روايت دې هغه وايي دې چې مروان ابي هريره په مدينه منوره کې امير مقرر کړې ؤ او په خپله مکې مکرمې ته تللې ؤ نو مونږ ته ابوهريره رضي الله عنه د جمعې مونځ وکړ نو وې لوسته د جمعې د سررت نه روسته په اخر رکعت کې (اذا جاءک المنافقون سورت) ابن ابي رافع وايي دي چې کله ابوهريره رضي الله عنه سلام واړاوه ما ورسره وکتل نو ما ورته ووېل چې تا دوه سورتونه لوستلي تلاوت کړي دي حضرت علي رضي الله عنه به دا دواړه سورتونه په کوفه کې تلاوت کول نو حضرت ابوهريره رضي الله عنه وېلي دي چې ما رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اورېدلي دي چې لوستل به ئې دا دواړه سورتونه په جمع کې. د دې حديث روايت مسلم کړې دې.

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱ صـ ۲۸۸ فصل في قراءة الٓمّٓ تنزيل ...الخ.

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱ صـ ۲۸۷ فصل في قراءة سورة الجمعة والمنافقين.

﴿۹۶۴﴾ وَ عَنِ النُّعمَانِ بنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يقرَأُ فِي العِيدَينِ وَفِي الجُمُعَة بِسَبِّحِ اسمَ رَبِّكَ الاَعلىٰ وَ هل اَتَاكَ حَدِيثُ الغَاشِية قَالَ وَاِذَا اجتَمَعَ العيد وَالجُمُعَة فِي يومٍ وَاحِدٍ يقرَأُ بِهِمَا اَيضًا فِي الصَّلاَتَينِ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به په دواړو اخترونو او په جمعه کې د سبح اسم ربك الاعلىٰ او د هل اتاك حديث الغاشيه سورتونه تلاوت کول نعمان بن بشير ويلي دي او کله به چې جمعه او اختر په يوه ورځ کې يو ځاي شو همدا دوه سورتونه به ئي په دواړو مونځونو کې تلاوت کول د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۹۶۵﴾ وَ عَن عُبَيدِ الله بن عَبدِ الله قَالَ كَتَبَ الضَّحَّاك بنُ قَيسٍ اِلَى النُّعمَانِ بنِ بَشِيرٍ يسئَلُه اَيّ شَيءٍ قَرَأَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يومَ الجُمُعَة سِوَي سُورَة الجُمُعَة فَقَالَ كَانَ يَقرَأُ هل اَتَاكَ حَدِيثُ الغَاشِية رواه مسلم .[2]

**ترجمه** : عبيد الله بن عبد الله ويلي دي چې ضحاک بن قيس حضرت نعمان بن بشير ته خط وليکه پوښتنه ئي تري وکړه چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ د جمعي په ورځ د جمعي د سورت نه په غير بل کوم شي تلاوت کړي ؤ نو نعمان بن بشير وويل چې هغه - هل اتاک حديث الغاشيه تلاوت فرمايلي ؤ . د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۹۶۶﴾ وَ عَن سَمُرَة بنِ جُندُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ يقرَأُ فِي الجُمُعَة بِسَبِّحِ اسمَ رَبِّكَ الاَعلىٰ وَهل اَتَاكَ حَدِيثُ الغَاشِية رواه احمد والنسائي و ابوداود واسناده صحيح .[3]

**ترجمه** : د حضرت سمره ابن جندب رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې بي شکه نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ به جمعه کې سبح اسم ربك الاعلى الذي خلق فسوىٰ او هل اتاك حديث الغاشيه ) تلاوت کول . د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللهُ ، نسائي رَحِمَهُ اللهُ او ابوداؤد کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۸ فصل في قراءة الم تنزيل .....الخ .

(۲) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۸۸ فصل في قراءة الم تنزيل .....الخ .

(۳) مسند احمد ج ۵ صـــ ۱۳ ، نسائي كتاب الجمعة ج۱صـــ ۲۱۰ باب القراءة في صلوة الجمعة بسبح اسم ربك الاعلى ...الخ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـــ ۱۶۰ باب ما يقرأ في الجمعة .

**مسئلة الباب** : افضل دادي چې دجمعې په مونځ کې سورة الجمعه او سورة المنافقون ي سورة الاعلى او سورة الغاشيه دې وويلې شي . البته حنفيه دا وايي چې دې لره دې متعين اونه ګڼلې شي بلکې کوم سورتونه چې په حديث کې راغلي دي هغې لره په مونځ کې احيانا په نيت دسنيت ويل مندوب او مستحب او موجب دبرکت دي .

## ﴿أَبْوَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ﴾

## د دواړو اخترونو د مانځه بابونه

مسئلة الابواب : داخترونو مونځ دامام ابوحنيفه رَحِمَهُ اللهُ په نزد واجب على الاعيان دې ، دامام مالک او دامام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په نزد سنت او دامام احمد رَحِمَهُ اللهُ په نزد فرض کفايه دې .(رحمة الامة ص ٦٢)

## ﴿بَابُ التَّجَمُّلِ يَوْمَ الْعِيدِ﴾

## د اختر په ورځ د ښائست د حاصلولو باب

**﴿٦٦٧﴾ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يَلْبِسُ بُرْدَةَ الْأَحْمَرِ فِي الْعِيدَيْنِ وَالْجُمُعَةِ رواه ابن خزيمة باسناد صحيح.**[1]

**ترجمه** : د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دې چې نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په دواړو اخترونو او د جمعې په ورځ د سرو کربښو والا جامې اغوستې . د دې حديث روايت په صحيح سند سره ابن خُزيمه کړې دې .

**﴿٦٦٨﴾ عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَلْبِسُ يَوْمَ الْعِيدِ بُرْدَةً حَمْرَاءَ رواه الطبراني في الاوسط واسناده صحيح.**[2]

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به د اختر په ورځ سره پټه لرونکې جامې اغوستې.ددې حديث روايت په اوسط کې طبراني کړې دې او اسنادئې صحيح دې .

**وضاحت** : د هريو مذهب او دين والاؤ د پاره په کال کې د خوشحالئ څو ورځې مقررې وي خو ولې اسلام په پوره کال کې د خوشحالئ دوه ورځې مقررې کړې دي او دا دوه ورځې هم د عظيم الشان

---

(۱) وايضا اخرجه البيهقي في سنن الكبرى كتاب صلوة العيدين ج٣ص ـــ ٢٨٠ باب الزينة للعيدين .

(٢) المعجم الاوسط ج ٨ ص ـــ ٢٩٥ برقم ٧۶٠٥ ، مجمع الزوائد ابواب العيدين ج٢ص ـــ ١٩٨ باب اللباس يوم العيد.

عبادتونو د مکمل کولو په وخت کې روا او مشروع شوي دي لکه چې د لوي اختر په ورځ کې د حج تکميل شوي دي او د واړه اختر په ورځ د رمضان المبارک د روژې تکميل شوي دي . (۱)
په ذکر شوي باب کې په دواړو روايتونو (۹۶۷ ـ ۹۶۸) حديثونو کې د رسول اکرم ﷺ د تجمل او د ښه لباس د اغوستو معمول بيان شوي دي . د جمعې او د عيدين لپاره حتى الوسع زينت اختيارول او عمده لباس اچول محمود او مطلوب دي خو په شرط د دې چې د ذهنه تکبر او د نورو په تحقير کې مبتلا نه وي .

## ﴿بَابُ اِستِحبَابِ الاَكلِ قَبلَ الخُرُوجِ يومَ الفِطرِ وَبَعدَ الصَّلَاةِ يومَ الاَضحٰى﴾
## د واړه اختر په ورځ عيدګاه ته د تلو نه مخکې او د لوئ اختر په ورځ د مانځه نه روسته د خوراک کولو د استحباب باب

﴿۹۶۹﴾ عَن اَنَسِ بنِ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله ﷺ لَا يغدُو يومَ الفِطرِ حَتّٰى يَاكُلَ تَمَرَاتٍ رواه البخاري وفي رواية له ويَاكُلُهنَّ وِترًا . (۲)
**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رضي الله عنه وېلي دي رسول اکرم ﷺ به د واړه اختر په ورځ تشريف نه وړ تر څو پورې چې کجورې به ئې وخوړې . د دې حديث روايت بخاري کړې دی او په يو روايت د بخاري کې دي چې هغه په طاق شماره کجورې خوړلې .

﴿۹۷۰﴾ وَعَن بُرَيدَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِيَّ ﷺ كَانَ لَا يخرُجُ يومَ الفِطرِ حَتّٰى يطعَمَ وَكَانَ لَا يَاكُلُ يومَ النَّحرِ شَيئًا حَتّٰى يرجِعَ فَيَاكُلُ مِن اَضحِيتِهٖ رواه الدار قطني وآخرون واسناده حسن . (۳)
**ترجمه** : د حضرت بريده رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي اکرم ﷺ به د واړه اختر په ورځ تشريف نه وړ تر هغې پورې چې خوراک به ئې وکړ او د لوي اختر په ورځ به ئې هيڅ خوراک نه کاوه تر هغې پورې چې واپس به شو د عيدګاه نه نو د خپلې قربانۍ نه به ئې خوراک کاوه . د دې حديث روايت دار قطني او نورو محدثينو کړې دی او اسناد ئې حسن دي .

(۱) درس ترمذي ج ۲ صـ ۳۰۶.
(۲) بخاري كتاب العيدين ج۱صـ ۱۳۰ باب الاكل يوم الفطر قبل الخروج .
(۳) دار قطني كتاب العيدين ج۲صـ ۴۵ ، مستدرك حاكم كتاب العيدين ج۱صـ ۲۹۴ ، ترمذي ابواب العيدين ج۱صـ ۱۲۰ باب الاكل يوم الفطر قبل الخروج .

﴿۹۷۱﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ قَالَ مِنَ السُّنَّةِ اَن لَّا تَخرُجَ يومَ الفِطرِ حَتّٰى تَخرُجَ الصَّدَقَةَ وَتَطعَمَ شَيئًا قَبلَ اَن تَخرُجَ رواه الطبراني في الكبير والدارقطني والبزار و قال الهيثمي و اسناد الطبراني حسن.[1]

**ترجمه**: حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ ويلي دي د سنت طريقي نه ده دا خبره چې د واړه اختر په ورځ به عيدگاه ته نه وځي تر څو پوري چې صدقه وباسي او څه وخوري مخکې د وتو نه عيدگاه ته. د دي حديث روايت طبراني کړي په کبير کې او دار قطني کړي او بزار کړي او هيثمي ويلي دي چې د طبراني اسناد حسن دي.

﴿۹۷۲﴾ وَعَن عَطَاءٍ اَنَّهُ سَمِعَ ابنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ يَقُولُ اِنِ استَطَعتُم اَن لَا يَغدُوَ اَحَدُكُم يومَ الفِطرِ حَتّٰى يَطعَمَ فَليَفعَل قَالَ فَلَم اَدَعْ اَن آكُلَ قَبلَ اَن اَغدُوَ مُنذُ سَمِعتُ ذٰلِكَ مِنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ فَآكُلُ مِن طَرَفِ الصَّرِيفَةِ الاُكلَةَ وَاَشرَبُ اللَّبَنَ وَالمَاءَ فَقُلتُ عَلٰى مَا تَاَوَّلَ هٰذَا قَالَ سَمِعَهُ اَظُنُّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ كَانُوا لَا يَخرُجُونَ حَتّٰى يَمتَدَّ الضُّحٰى فَيَقُولُونَ نَطعَمُ لِئَلَّا نَعجِلَ عَن صَلَاتِنَا رواه احمد و قال الهيثمي رجاله رجال الصحيح.[2]

**ترجمه**: د عطاء نه روايت دي ده د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ نه اوريدلي دي چې ويل ئي که چرته ستاسي طاقت وي چې ؤ نه وځي يو ستاسي د واړه اختر په ورځ تر هغي چې طعام وخوري نو ودي کړي دا کار عطاء ويلي دي چې ما خوراک نه ؤ پريښي مخکې د وتلو نه عيدگاه ته د کوم وخت نه چې ما د ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ نه دا خبره اوريدلي وه نو خوړه به ما ډوډئ د چپاتي د يوي څنډې نه يوه مړئ او سکل به ما شوده او اوبه ابن جريج ويلي دي چې ما وويل چې حضرت ابن عباس رَضِيَ اللّٰهُ عَنهُ دا د کوم ځاي نه راخستي ده عطا ويلي دي چې ځما دا گمان دي چې هغه به د نبي اکرم صَلَّى اللّٰهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ نه اوريدلي وي عطاء ويلي دي چې خلک به د گرمئ تر شروع کيدو پوري عيدگاه ته وتل نو خلکو به ويل چې مونږ ډوډئ خورو د دي د پاره چې په مانځه کې جلتي ونه کړو. د دي حديث روايت احمد رَحِمَهُ اللّٰهُ کړي دي او هيثمي ويلي دي چې د دي رجال صحيح رجال دي.

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني ج۱۱ص ۱۴۲ رقم الحديث ۱۱۲۹۶، دار قطني كتاب العيدين ج۲ص ۴۵، كشف الاستار عن زوائد البزار، ابواب صلاة العيدين ج۱ص ۳۱۲ باب الاكل يوم الفطر قبل الصلاة رقم الحديث ۶۵۱، مجمع الزوائد ابواب العيدين ج۲ص ۱۹۹ باب الاكل يوم الفطر قبل الخروج.

(۲) مسند احمد ج۱ص ۳۱۳، مجمع الزوائد كتاب العيدين ج۱ص ۱۹۸ باب الاكل يوم الفطر قبل الخروج.

**وضاحت**: د ذکر شوي باب (۹۶۹ نه تر ۹۷۲) پوري به واړه اختر کې د افطار مسنونيت او په لوي اختر کې د امساک استحباب بيانيږي کوم چې د جمهورو مسلک دي. (۱)

د جمهورو علماؤ په نزد د واړه اختر په ورځ د اختر د مانځه نه مخکې لږ څه خوراک سنت دي او د دي باب په اول (۹۶۹) حديث کې چې حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ئې روايت کړي په دي خبره باندي تصريح شوي ده چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم به (**يأكل تمرات**) يعني هغه صلى الله عليه وسلم به طاق شماره کجوري د اختر د مانځه نه مخکې خوړي. او د طاق مرتبي اطلاق په عربي محاوراتو کې د دريؤ نه نيولي تر اوو پوري کيږي او په هر يو کار کې د طاق مرتبي لحاظ ساتل بهتر دي ځکه چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي (ان الله وتر يحب الوتر) يعني: الله طاق واحد لا شريک ذات دي او طاق مرتبي ئې خوښي دي. او د کجورو تخصيص خو يا د دي وجهي نه ؤ چې هغه وخت سره همدا کجوري موجودي وي.

او بعضو علماؤ ئې حکمت دا خودلي چې کجوري خوږي دي او خوږ شي د سترګو نظر ته قوت ورکوي او بيا خاص کر د نهري په حالت کې او خواږه د ايمان تقضى هم ده معبرينو علماؤ ليکلي دي چې په خوب کې څوک خواږه وګوري نو تعبير ئې دا دي چې د ايمان خوږوالي به ئې نصيب شي نو د دي وجهي نه په ښه او خوږ شئ باندي افطار بهتر دي.

او د لوي اختر په ورځ د اختر تر مانځه پوري څه نه خوړل او امساک مستحب دي لکه چې د دي باب په (۹۷۰) حديث باندي دا خبره ثابته شوي ده او دغه امساک د هر چا د پاره مستحب دي برابره خبره ده چې قرباني ئې کړي وي او که قرباني ئې نه وي کړي. (۲)

او د دي باب (۹۷۱) حديث چې ابن عباس رضي الله عنه ئې روايت کړي دي د دي مفهوم او مضمون د لفظي ترجمي نه ښکاره او واضح شوي دي.

او د دي باب بل (۹۷۲) حديث چې عطاء ئې روايت کړي په دي مبارک حديث کې د واړه اختر په ورځ د اختر د مانځه نه مخکې څه ناڅه خوراک سنت او يا مستحب دي او د استحباب وجه ئې کيدي شي دا وي چې د رمضان المبارک په مياشت کې خلک د الله جل شانه په حکم د ورځي د خوراک سکاک نه بالکل بند شوي دي کله چې د الله جل شانه له طرف نه په دي ورځ کې ده ته د خوراک سکاک اجازت وشو او په دي کې د هغه رضا او خوشحالي ده.

---

(۱) درس ترمذي ج ۲ صـ ۳۲۳.

(۲) درس ترمذي ج ۲ صـ ۳۲۳-۳۲۴.

# ﴿بَابُ الْخُرُوجِ إِلَى الْجَبَانَةِ لِصَلَاةِ الْعِيدِ﴾

﴿۹۷۳﴾ عَنْ أَبِي سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى إِلَى الْمُصَلَّى الحديث رواه الشيخان. (۱)

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم به د واړه اختر او لوي اختر په ورځ عيدګاه ته تشريف وړ. الحديث. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

## داختر مونځ دې په عيدګاه کې وکړې شي

اصل دادې چې داختر مونځ په صحراء يعني عيدګاه کې اوکړي الا بعذر مثل المطر چنانچې دراروان باب په حديث کې دي چې يو پيره په مدينه منوره کې داختر په ورځ باران وو دکوم دوجې نه چې حضور صلى الله عليه وسلم د عيدګاه په ځاي په مسجد کې اوفرمايلو.

جمهور علماء او ائمه ثلاثه رحمه الله (ابوحنيفه، مالک، او احمد رحمه الله) مذهب هم همدغه دې. په دې کې دامام شافعي رحمه الله اختلاف دې هغه فرمايي چې په اختر کې هم اصل همدغه دې چې اختر لره دې په مسجد کې ادا کړې شي، که ټول خلک په مسجد کې راتللې شي.

ويلې کيږي چې حضور صلى الله عليه وسلم داختر دمونځ لپاره خروج الى المصلي دضيق مسجد دوجې نه وه. (الدر المنضود:۲/٤٦٢ بتغير) ليکن دروایاتو اطلاق دجمهور مؤيد دې، همدارنګه حضرت علي رضي الله عنه په دور کې دضيق مسجد علت باقي نه وو بيا هم هغه عيدګاه ته تللو دغه شان په بلاد اسلاميه کې دشروع نه تر خروج الى المصلي لصلاة العيد معمول دې. (التعليق الحسن)

# ﴿بَابُ صَلَاةِ الْعِيدِ فِي الْمَسْجِدِ لِعُذْرٍ﴾

## په مسجد کې د عذر دوجهې نه د اختر د مانځه کولو باب

﴿۹۷۴﴾ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ أَصَابَ النَّاسَ مَطَرٌ فِي يَوْمِ عِيدٍ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِهِمْ فِي الْمَسْجِدِ رواه ابن ماجه و ابوداود وفي اسناده عيسى بن عبد الاعلى وهو مجهول. (۲)

---

(۱) بخاري كتاب العيدين ج۱صـ ۱۳۱ باب الخروج الى المصلي، مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱صـ ۲۹۰.

(۲) ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ج صـ ۹۳ باب ماجاء في صلوة العيد في المسجد اذا كان مطر، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ ۱۶۴ باب يصلي بالناس في المسجد اذا كان يوم مطر.

**ترجمه** : حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مبارکه زمانه کې خلکو ته د اختر په ورځ باران رامخي ته شو نو خلکو ته نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مسجد کې د اختر مونځ وکړ. د دې حديث روايت ابن ماجه او ابوداؤد کړي دي او د دې په اسناد کې عيسي ابن عبد الاعلي دي او هغه مجهول دي.

﴿۹۷۵﴾ وَعَنْ حَنَشٍ قَالَ قِيلَ لِعَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ ضُعفَةً مِنَ النَّاسِ لَا يستَطِيعُونَ الخُرُوجَ اِلَى الجَبَّانَة فَاَمَرَ رَجُلًا يصَلِّي بِالنَّاسِ اَربَعَ رَكعَاتٍ رَكعَتَينِ لِلعَيدِ وَ رَكعَتَينِ لِمَكَانِ خُرُوجِهِم اِلَى الجَبَّانَة رواه ابوبكر بن ابي شيبة و آخرون و اسناده ضعيف.[1]

**ترجمه** : حنش ويلي دي چې د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته وويلي شو چې بې شکه کمزوري خلک عيدګاه ته د وتلو طاقت نه لري نو حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يو کس ته امر وکړ چې خلکو ته څلور رکعته مونځ وکړي دوه رکعته د اختر او دوه رکعته عيدګاه ته د دوي د وتلو په ځاي. د دې حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه او نورو محدثينو کړي دي او اسناد ئې ضعيف دي.

## ﴿بَابُ صَلَاةِ العِيدَينِ فِي القُرٰى﴾
## په کلو کې د اخترونو د مونځ باب

﴿۹۷۶﴾ قَالَ البُخَارِي اَمَرَ اَنَسُ بنُ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَولَاهُ ابنَ اَبِي عُتبَةَ بِالزَّاوِيةِ فَجَمَعَ اَهلَه وَ بَنِيه وَ صَلّٰى كَصَلَاةِ اَهلِ المِصرِ وَتَكبِيرِهِم اِنتَهٰى وَ هوَ مُعَلَّقٌ.[2]

**ترجمه** : بخاري ويلي دي چې امر کړي وُ انس بن مالک رَضِيَ اللهُ عَنْهُ خپل ازاد کړي شوي غلام ابن ابي عتبه ته په زاويه کې نو جمعه کړي وُ خپل اهل او ځامن او د اختر مونځ ئې کړي وُ په شان د مانځه د ښار والاؤ او د تکبير د دوي. انتهي دا حديث معلق دي.

﴿۹۷۷﴾ وَعَن عَبدِ اللهِ بنِ اَبِي بَكرِ بنِ اَنَسِ بنِ مَالِك قَالَ كَانَ اَنَسُ بنُ مَالِك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اِذَا فَاتَته صَلَاةُ العِيدِ مَعَ الاِمَامِ جَمَعَ اَهلَه يصَلِّي بِهِم مِثلَ صَلَاةِ الاِمَامِ فِي العِيدِ رواه البيهقي و اسناده غير صحيح.[3]

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۱۸۴ باب القوم يصلون في المسجد كم يصلون.

(۲) بخاري كتاب العيدين ج۱ص ۱۳۴ باب اذا فاته العيد يصلي ركعتين وكذلك النساء.

(۳) سنن الكبرى للبيهقي كتاب صلوة العيدين ج۳ص ۳۰۵ باب صلوة العيدين سنة اهل الاسلام ...الخ

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن ابي بکر بن انس بن مالک ويلي دي چې ژ انس بن مالک رضي الله عنه چې کله به فوت شو د هغه نه مونځ د اختر د امام سره نو راجمع به ئي کړ اهل خپل مونځ به ئي وکړ هغو ته په شان د مانځه د امام په اختر کې . د دې حديث روايت البيهقي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۹۸۸﴾ وَعَن بَعضِ آلِ أَنَسٍ رضي الله عنه أَنَّ أَنَسًا كَانَ رُبَّمَا جَمَعَ أَهلَهُ وَحَشَمَهُ يَومَ العِيدِ فَيُصَلِّي بِهِم عَبدُ اللهِ بنِ أَبِي عُتبَةَ مَولَاهُ رَكعَتَينِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة ورجاله ثقات لكن بعض آل انس رضي الله عنه مجهول .[1]

**ترجمه** : د حضرت انس بن مالک رضي الله عنه په ال کې د يو کس نه روايت دي چې بې شکه انس رضي الله عنه به کله کله خپل خپلوان او غلامان د اختر په ورځ کې راجمع کړل نو مونځ به وکړ دوي ته عبدالله بن ابي عتبه د انس بن مالک ازاد کړي شوي غلام دوه رکعته . د دې حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبه کړي دي او رجال ئي ثقه دي لکن بعضې آل انس رضي الله عنه مجهول دي .

## په کلي کې داختر مونځ کيدې شي يا نه ؟

۱. دائمه ثلاثه رحمه الله ( امام مالک ، امام شافعي ، امام احمد رحمه الله ) په نزد کيدې شي .

۲. دحنفيو رحمه الله په نزد په کلي او بانديچو کې داختر مونځ صحيح نه دي . (رحمة الامة ، ص: ٦٢)

**دائمه ثلاثه رحمه الله استدلال** : په کتاب کې دحضرت انس رضي الله عنه عمل درو مختلفو انداز سره مروي دې چې دوي ته به چې کله داختر مونځ نه ملاويدو نو هغه به دخپل اهل خانې سره اختر کولو .

جوابونه :

۱... اولنې روايت په بخاري شريف کې معلق دې او دامام بخاري رحمه الله طرز معلوم دادې چې عموما دکومو په روايتو په سند کې چې لږ شان تامل وو هغه به يې معلق روايت کولو ، غرض ددې روايت سند قوي نه وو .

۲... په دويم روايت کې دعبدالله بن ابي بکر ، بن انس توثيق معلوم نه شو همدارنگه دحضرت انس نه دده سماع هم معلومه نه ده .

۳... په دريم روايت کې بعض آل انس مجهول دې ، که مراد عبدالله بن ابي بکر دې نو دهغه حال مو بيان کړ .

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۱۸۳ باب الرجل تفوته الصلوة في العيد كم يصلي .

# ﴿بَابُ لَا صَلَاةَ العِيدِ فِي القُرٰى﴾

## باب نشته مونځ د اختر په کلو کې

﴿۹۷۹﴾ عَن أَبِي عَبدِ الرَّحمٰنِ السَّلَمِي عَن عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لَا تَشرِيقَ وَلَا جُمُعَةَ إِلَّا فِي مِصرٍ جَامِعٍ رواه عبدالرزاق و آخرون و هو اثر صحيح.[1]

**ترجمه**: د ابي عبدالرحمن السلمي نه روايت دي چې حضرت علي رضي الله عنه ويلي دي چې نه اختر شته او نه جمعه شته په غير د ښار لوي نه. دا حديث عبدالرزاق او نورو محدثينو روايت کړي دي او دغه اثر صحيح دي.

**په مسئلة الباب کې د حنفيو استدلال**: د حنفيو په نزد صلاة العيد في القرى صحيح نه دي د باب روايت اثر د علي رضي الله عنه دې اګر چې موقوف دې ليکن د غير مدرک بالقياس کيدو د وجې نه په حکم کې مرفوع دې. همدرانګه د خليفه راشد قول دې " وقد قال النبي صلى الله عليه وسلم عليکم بسنتي وسنة الخلفاء الراشدين " دريم دا چې د جمعې لپاره د مصر شرط د احاديث او د نص قرآني سره مؤيد دې نو په صلاة عيد کې بطريق اولى به دا شرط وي. اثر د علي رضي الله عنه سند، اثر د انس رضي الله عنه بدرجها قوي دې لهذا په همدې باندې به عمل کيږي.

**قوله " لاتشريق "**: دا د شروق نه وتلي دي او دد نه صلاة العيد مراد دې چې هغه هم د شروق شمس يعنې طلوع آفتاب نه پس ادا کيږي.

# ﴿بَابُ صَلَاةِ العِيدَينِ بِغَيرِ أَذَانٍ وَلَا نِدَاءٍ وَ لَا إِقَامَةٍ﴾

## باب مونځ د دواړو اخترونو په غير د اذان، اواز او اقامت نه

﴿۹۸۰﴾ عَن عَطَاءٍ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عَن جَابِرِ بنِ عَبدِ اللهِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَا لَم يَكُن يُؤَذَّنُ يَومَ الفِطرِ وَلَا يَومَ الأَضحٰى رواه الشيخان.[2]

**ترجمه**: د عطاء نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه او حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې د واړه اختر او د لوي اختر د ورځ اذان به نه ويل کيده. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

---

(۱) مصنف عبدالرزاق کتاب الجمعة ج۳ص ۱۶۸ باب القرى الصغار برقم ۵۱۷۷.

(۲) بخاري کتاب العيدين ج۱ص ۱۳۱ باب المشي والرکوب الى العيد بغير اذان ولا اقامة مسلم کتاب صلوة العيدين ج۱ص ۲۹۰

﴿۹۸۱﴾ وَ عَن جَابِرِ بنِ سُمرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ صَلَّيتُ مَعَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ العِيدَينِ غَيرَ مَرَّةٍ وَلاَ مَرَّتَينِ بِغَيرِ آذَانٍ وَلاَ إِقَامَة رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې د اختر مونځ كړي ما د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ سره يو ځل او دوه ځله نه په غير د اذان او اقامت نه. د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

﴿۹۸۲﴾ وَ عَن جَابِرِ بنِ عَبدِ الله الاَنصَارِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ لَا آذَانَ لِلصَّلَاة يومَ الفِطرِ حِينَ يخرُجُ الإِمَامُ وَلَا بَعد مَا يخرُجُ وَلَا إِقَامَة وَلَا نِدَاءَ وَلَاشَيءَ وَلانِدَاءَ يومَئِذٍ وَلَا إِقَامَة رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : د حضرت جابر بن عبدالله انصاري رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې نشته اذان د پاره د مانځه د ورځي د واړه اختر نه د امام د راتلو په وخت كې او نه د امام د راتلو نه روسته نه اقامت شته نه اواز شته او نه كوم بل يو شي په دي ورځ نه اذان ؤ او نه اقامت. د دي حديث روايت مسلم كړي دي.

**مسئلة الباب**: دنورو مونځونو برعكس داخترونو مونځ بغير داذان او اقامت دي عندالائمه الاربعه. البته " الصلاة جامعة " په شان داعلاناتو په ذريعې سره خلكو ته خبر وركول پكار دي.

(بداية المجتهد ،ص: ١٧٤، ورحمة الامة ، ص: ٦٣)

## ﴿بَابُ صَلَاةِ العِيدَينِ قَبلَ الخُطبَة﴾

## باب دي په مانځه د اخترونو كې مخكې د خطبي نه

﴿۹۸۳﴾ عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَ اَبُو بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يصَلُّونَ العِيدَ قَبلَ الخُطبَة رواه الشيخان.[3]

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ او ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنهُ او عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ به مونځ كاوه د اخترونو مخكې د خطبي نه. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

﴿۹۸۴﴾ وَ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ شَهِدتُ العِيدَ مَعَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَ اَبِي بَكر وَ عُمَرَ وَ عُثمَانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُم فَكُلُّهم كَانُوا يصَلُّونَ قَبلَ الخُطبَة رواه الشيخان.[4]

---

(۱) مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱صـــ ۲۹۰ .

(۲) مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱صـــ ۲۹۰ .

(۳) بخاري كتاب العيدين ج۱صـــ ۱۳۱ باب الخطبة بعد العيد ، مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱صـــ ۲۹۰ .

(٤) بخاري كتاب العيدين ج۱صـــ ۱۳۱ باب الخطبة بعد العيد ، مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱صـــ ۲۸۹.

**ترجمه :** حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې زه حاضر شوي يم د اختر د مانځه د پاره د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او د ابوبكر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او د حضرت عثمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره دوي ټولو چې مونځ به ئې كاوه د خطبې نه مخكې . د دې حديث روايت شيخينو كړې دې .

**﴿۹۸۵﴾ وَ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ يَوْمَ الْفِطْرِ وَالأَضْحٰى إِلَى الْمُصَلّٰى فَأَوَّلُ شَيْءٍ يَبْدَأُ بِهِ الصَّلَاةُ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَيَقُومُ مُقَابِلَ النَّاسِ وَالنَّاسُ جُلُوسٌ عَلٰى صُفُوفِهِمْ فَيَعِظُهُمْ وَ يُوصِيهِمْ وَ يَأْمُرُهُمْ فَإِنْ كَانَ يُرِيدُ أَنْ يَقْطَعَ بَعْثًا قَطَعَهُ أَوْ يَأْمُرَ بِشَيْءٍ أَمَرَ بِهِ ثُمَّ يَنْصَرِفُ فَقَالَ أَبُو سَعِيدٍ فَلَمْ يَزَلِ النَّاسُ عَلٰى ذٰلِكَ حَتّٰى خَرَجْتُ مَعَ مَرْوَانَ وَ هُوَ أَمِيرُ الْمَدِينَةِ فِي أَضْحٰى أَوْ فِطْرٍ فَلَمَّا أَتَيْنَا الْمُصَلّٰى إِذَا مِنْبَرٌ بَنَاهُ كَثِيرُ بْنُ الصَّلْتِ فَإِذَا مَرْوَانُ يُرِيدُ أَنْ يَرْتَقِيَهُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ فَجَبَذْتُهُ بِثَوْبِهِ فَجَبَذَنِي فَارْتَفَعَ فَخَطَبَ قَبْلَ الصَّلَاةِ فَقُلْتُ لَهُ غَيَّرْتُمْ وَاللهِ فَقَالَ أَبَا سَعِيدٍ قَدْ ذَهَبَ مَا تَعْلَمُ فَقُلْتُ مَا أَعْلَمُ وَاللهِ خَيْرٌ مِمَّا لَا أَعْلَمُ فَقَالَ إِنَّ النَّاسَ لَمْ يَكُونُوا يَجْلِسُونَ لَنَا بَعْدَ الصَّلَاةِ فَجَعَلْتُهَا قَبْلَ الصَّلَاةِ رواه البخاري.**(1)

**ترجمه :** حضرت ابوسعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ۇ رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې راواته به د واړه اختر په ورځ او د لوي اختر په ورځ عيدګاه ته اول شئ چې شروع به ئې پرې كوله مونځ ۇ بيا به ئې سلام واړاوه نو ۇ به دريده مخامخ خلكو ته او خلک به ناست ۇ په خپلو صفرنو باندې نو هغو ته به ئې وعظ او نصيحت وكړ او هغو ته به ئې امر كاوه په ځينو كارونو باندې او كه چرته به ئې اراده وه چې يو ډله جهاد ته وليږي نو د هغې تعين به ۇ فرمايه او كه په يو شي باندې امر وكړي نو په هغې به ئې امر ۇ فرمايه بيا به ئې واپس تشريف ويوړ ويلي دي ابو سعيد رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چې هميشه خلک په دې باندې ۇ تر دې پورې، چې زه د مروان سره راووتم او دا په مدينه كې امير ۇ په لوي اختر او يا په واړه اختر كې كله چې مونږ عيدګاه ته راغلو نو ناڅاپه منبر ۇ چې هغه كثير بن الصلت جوړ كړي او تيار كړي ۇ نو كله چې مروان اراده وكړه چې وروخيژي منبر ته مخكې د مانځه نه نو ما هغه راكش كړ د جامو نه نو هغه زه راكش كړم نو په منبر اوچت شو نو خطبه ئې مخكې د مانځه نه وويله نو ما هغه ته وويل چې قسم دې چې تاسو سنت طريقې ته تغير وركړ نو هغه وويل اې ابا سعيده په كوم شي چې ته پوهيدې هغه تير شوي دي نو ما وويل قسم دې په الله په كوم شئ چې زه پوهيږم هغه بهتر دې د

---

(1) بخاري كتاب العيدين ج: صــ ۱۳۱ باب الخروج الي المصلّي بغير منبر واللفظ له مسلم كتاب العيدين ج۱صــ۲۹۰.

هغې نه چې زه پرې نه پوهېږم نو هغه وويل چې خلک مونږ ته د مانځه نه روسته نه کيناستل نو ما خطبه د مانځه نه مخکې کړه. د دې حديث روايت بخاري کړې دې.

## داخترونو خطبه

۱. داخترونو خطبه سنت ده په خلاف د جمعې چې هغه واجب ده او شرط هم ځکه په مونځ باندې مقدم ده او خطبه عيدين بالاتفاق د مونځ نه مؤخر ده، په نورو احکامو کې د جمعې د خطبې په شان ده.
۲. دټولو نه مخکې مونځ باندې د خطبې تقديم حضرت عثمان رضي الله عنه کړې وو ليکن دده دتقديم منشا دا وه چې دهغه زمانې پورې د مسلمانانو ډير کثرت پيدا شوې وو اخيره پورې به عيدګاه ته خلک راتلل نو هغوی په دې خيال سره چې دخلکو داختر مونځ فوت نشي مونځ يې د خطبې نه مؤخر کړې وو. (بداية المجتهد، ص: ۱۷۴ بتغير)
ليکن دباب حديث دابن عباس رضي الله عنه نه معلوميږي چې حضرت عثمان به هم داختر مونځ مقدم کولو او خطبه به يې مؤخر يا هغه طرفته تقديم دخطبې نسبت کول صحيح نه دي، همدارنګه که چرته مخکې حضرت عثمان رضي الله عنه داسې کړې وي نو حضرت ابوسعيد رضي الله عنه مروان بن حکم باندې نکير ولې وکړ؟
دمروان په باره کې ليکلي دي چې هغه پخپله خطبه کې اهل بيت وعلي رضي الله عنه واصحاب علي رضي الله عنه باندې تعريض کول او دهغه مذمت به يې کولو ځکه چې ډير خلک ددې خطبې اوريدلو نه بغير به پاسيدل چې کله ده دا اوکتل نو يا يې بل حرکت دا وکړ چې خطبه يې په مونځ باندې مقدم کړ ځکه چې بغير د مونځ نه خو خلک نه شو واپس کيدې نو ځکه مجبورا به دوې خطبه اوريدله.
(الدر المنضود: ۲/۴۵۵-۴۵۶)

## ﴿بَابُ مَا يقرَأُ فِي صَلَاةِ العِيدَينِ﴾

## باب څه شي به ئي لوسته په مانځه د اخترونو کې

﴿۹۸۶﴾ عَن عُبَيدِ الله بنِ عَبدِ الله اَنَّ عُمَرَ بنَ الخَطَّابِ رضي الله عنه سَأَلَ اَبَا وَاقِدِ اللَّيثِي رضي الله عنه مَا كَانَ يقرَأُ بِهِ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم فِي الاَضحٰى وَالفِطرِ فَقَالَ كَانَ يقرَأُ فِيهِمَا بِقَافِ وَالقُرآنِ المَجِيد وَاقتَرَبَتِ السَّاعَةُ وَانشَقَّ القَمَرُ روه مسلم (۱)

---

(۱) مسلم كتاب صلوة العيدين ج۱ ص ۲۹۱ فصل في قراءة ق والقرآن المجيد.

**ترجمه** : د عبيدالله ابن عبدالله نه روايت دي چې حضرت عمر بن خطاب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ پوښتنه کړې وه ابو واقد ليثي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ته چې څه شي به لوسته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د لوي اختر او د واړه اختر په مانځه کې ابو واقد وويل چې هغه به په دې دواړو مونځونو کې قٓ والقرآن المجيد او اقتربت الساعة وانشق القمر ) تلاوت کول. دا حديث مسلم روايت کړي دي.

﴿۹۸۷﴾ وَ عَنِ النُّعْمَانِ بنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يقرأُ فِي العِيدَيْنِ وَ فِي الجُمُعَةِ بِسَبِّحِ اسمَ رَبِّكَ الأعلىٰ وَ هل أتاكَ حَدِيثُ الغَاشِيةِ قَالَ وَ إِذَا اجْتَمَعَ العِيدُ وَالجُمُعَةِ فِي يومٍ وَاحِدٍ يقرَأُ بِهِمَا أيضًا فِي الصَّلَاتَيْنِ رواه مسلم.[1]

**ترجمه** : حضرت نعمان بن بشير رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به تلاوت كاوه په دواړو اخترونو او په جمع کې د ( سبح اسم ربك الاعلىٰ ) سورت او د هل أتك حديث الغاشيه سورت او نعمان بن بشير ويلي دي چې كله به اختر او جمعه په يوه ورځ کې سره جمع شول تلاوت كول به ئې دا دواړه په دواړو مونځونو کې. د دې حديث روايت مسلم كړي دي.

﴿۹۸۸﴾ وَ عَن سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يقرأُ فِي العِيدَيْنِ بِسَبِّحِ اسم ربك الاعلي و هل اتاك حديث الغاشية رواه احمد وابن ابي شيبة والطبراني في الكبير واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به تلاوت كول په دواړو اخترونو کې د سبح اسم ربك الاعلىٰ سورت او د هل أتك حديث الغاشيه سورت. د دې حديث روايت احمد او ابن ابي شيبه او طبراني په كبير کې كړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

## دااختر مونځ مستحب قرأت

۱. امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ په اخترونو کې په اولني ركعت کې سوره ق او دويم ركعت کې سورة القمر يا په اولني ركعت کې سورة الاعلى او دويم کې الغاشيه لره غوره كوي.

۲. امام مالک رَحِمَهُ اللهُ او احمد رَحِمَهُ اللهُ په اولني کې الاعلى او دويم کې الغاشيه لره لوستل مستحب ګرځوي. (رحمة الامة ، ص: ۶۳)

---

(۱) مسلم كتاب الجمعة ج۱صـ ۲۸۸ فصل في قراءة سورة الجمعة والمنافقين ....الخ.

(۲) مسند احمد ج ۵ صـ ۷ ، مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـ ۱۷۶ باب ما يقرا به في العيد ، المعجم الكبير للطبراني ج ۷ صـ ۱۸۳ رقم الحديث ۶۷۷۳ .

۳... امام ابو حنيفه رحمه الله فرمايي چې په جمعه او اخترونو کې د حضور صلى الله عليه وسلم د عمل په اقتداء کې سورة الاعلى او سورة الغاشيه لوستل مستحب او باعث داجر دي ليکن کله کله نور سورتونه هم ويل پکار دي ترڅو چې دلزوم او دتخيص احتمال نه وي. (رد المختار :۱۷۳/۲)

# ﴿بَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بِثِنْتَيْ عَشَرَةَ تَكْبِيرَةً﴾

## باب، مونځ د دواړو اخترونو د دولسو تکبيرونو سره

﴿۹۸۹﴾ عَن عَمرِو بنِ شُعَيبٍ عَن اَبِيه عَن جَدِّهِ اَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم كَبَّرَ فِي عِيدٍ ثِنْتَي عَشَرَةَ تَكبِيرَةً سَبعاً فِي الاُولى وَ خَمساً فِي الآخِرَةِ رواه احمد وابن ماجه والدارقطني والبيهقي و اسناده ليس بالقوي.[1]

**ترجمه** : د عمرو بن شعيب نه د شعيب په واسطه د شعيب نيکه روايت کړي دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم په اختر کې دولس تکبيرونه ويلي ؤ اوه تکبيرونه په اول رکعت کې او پنځه تکبيرونه په اخر رکعت کې. د دي حديث روايت احمد ابن ماجه دار قطني او بيهقي کړي دي. او اسناد ئي قوي نه دي.

﴿۹۹۰﴾ وَ عَن عَمرِوبنِ عَوفٍ المُزَنِي اَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم كَبَّرَ فِي العِيدَينِ فِي الاُولى سَبعًا قَبلَ القِرَاءَةِ رواه الترمذي وابن ماجه و اسناده ضعيف جدا.[2]

**ترجمه** : د عمرو بن عوف المزني نه روايت دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم د اخترونو په اول رکعت کې د قرأت نه مخکې اوه تکبيرونه ويلي دي. د دي حديث روايت ترمذي او ابن ماجه کړي دي او اسناد ئي ډير ضعيف دي.

﴿۹۹۱﴾ وَ عَن عَائِشَةَ رضي الله عنها اَنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم كَبَّرَ فِي الفِطرِ وَالاَضحٰى سَبعًا و خَمسًا سِوَي تَكبِيرَةِ الرُّكُوعِ رواه ابن ماجه و ابوداود و في اسناده ابن لهيعة و فيه كلام مشهور.[3]

---

(۱) مسند احمد ج ۲صـ ۱۸۰ ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـ ۹۲ باب ماجاء في كم يكبر الامام في صلوة العيدين ، دارقطني كتاب العيدين ج۲صـ ۴۸ ، سنن الكبرى للبيهقي كتاب الصلوة ج۳صـ ۲۸۶ باب التكبير في صلوة العيدين .

(۲) ترمذي ابواب العيدين ج۱صـ ۱۱۹ باب في التكبير في العيدين ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـ ۹۲ باب ماجآء في كم يكبر الامام في صلوة العيدين .

(۳) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـ ۹۲ باب ماجآء في كم يكبر الامام في صلوة العيدين ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱صـ۱۶۳ بـاب التكبير في العيدين .

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به واړه او لوي اختر کې تکبيرونه ويلي ؤ اوه او پنځه به غير د تکبير د رکوع نه . د دي حديث روايت ابن ماجه او ابوداؤد کړي او په اسناد کې ئي ابن لهيعه دي او د ده په باره کې مشهوري خبري دي .

﴿۹۹۲﴾ وَ عَن سَعدِ المُؤَذِّنِ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُكَبِّرُ فِي العِيدَينِ فِي الأُولىٰ سَبعًا قَبلَ القِرَاءَةِ وَفِي الآخِرَةِ خَمسًا قَبلَ القِرَاءَةِ رواه ابن ماجه و اسناده ضعيف .[1]

**ترجمه** : د سعد المؤذن نه روايت دي چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ؤ چې تکبيرونه ئي ويلي دي د دواړو اخترونو په اول رکعت کې اوه تکبيرونه مخکې د قرأت نه او په اخر رکعت کې پنځه تکبيرونه مخکې د قرأت نه . د دي حديث روايت ابن ماجه کړي دي او اسناد ئي ضعيف دي .

﴿۹۹۳﴾ وَ عَن نَافِعٍ مَولىٰ عَبدِ الله بنِ عَمرٍو رضي الله عنه قَالَ شَهِدتُّ الاَضحىٰ وَالفِطرَ مَعَ اَبِي هُرَيرَةَ رضي الله عنه فَكَبَّرَ فِي الرَّكعَةِ الأُولىٰ سَبعَ تَكبِيرَاتٍ قَبلَ القِرَاءَةِ وَ فِي الأُخرىٰ خَمسَ تَكبِيرَاتٍ قَبلَ القِرَاءَةِ رواه مالك و اسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه ازاد شوي غلام نافع ويلي دي چې زه په لوئ او واړه اختر کې د حضرت ابي هريره رضي الله عنه سره حاضر شوي وم نو هغه تکبير ويلي ؤ په اول رکعت کې اوه تکبيرونه مخکې د قرأت نه او په اخر رکعت کې پنځه تکبيرونه مخکې د قرأت نه . د دي حديث روايت مالک کړي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۹۹۴﴾ وَعَن عَمَّارِ بنِ اَبِي عَمَّارٍ اَنَّ ابنَ عَبَّاسٍ رضي الله عنه كَبَّرَ فِي عِيدٍ ثِنتَي عَشرَةَ تَكبِيرَةً سَبعًا فِي الأُولىٰ وَخَمسًا فِي الآخِرَةِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة و اسناده حسن .[3]

**ترجمه** : د عمار ابن ابي عمار نه روايت دي چې حضرت ابن عباس رضي الله عنه تکبير ويلي دي په اختر کې دولس تکبيرونه اوه په اول رکعت کې او پنځه په اخر رکعت کې . د دي حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

**داختر دتکبيرونو حکم او تعداد: اولنۍ مسئله** : دتکبيرات عيدين حنفيه او مالکيه په نزد واجب دي او د امام شافعي رحمه الله او د احمد رحمه الله په نزد مسنون دي . ( الدرالمنضود : ۲/۴۵۸)

---

(۱) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۹۲ باب ماجآء في كم يكبر الامام في صلوة العيدين .

(۲) مؤطا امام مالك كتاب العيدين صـــ ۱۴۴ باب ماجآء في التكبير والقراءة في صلوة العيدين .

(۳) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲صـــ ۱۷۶ باب في التكبير في العيدين واختلافهم فيه .

**دویمه مسئله**: دزاید تکبیراتو تعداد څومره دی؟

۱.دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله په نزد په اولني رکعت کې اوه تکبیرونه دي قبل القراءة او دویم رکعت کې پنځه تکبیرونه قبل القراءت، لیکن امام شافعي رَحِمَهُ الله په نزد په اولني رکعت کې اوه تکبیرونه دتحریمې نه علاوه دي.

۲.دحنفیو په نزد ټول زائد تکبیرونه شپږ دي: اولني رکعت کې دري تکبیرونه قبل القراءة او په دویم رکعت کې دري تکبیرونه بعد القرأت او قبل الرکوع.(بدایة المجتهد، ص: ۱۷۵، البحر الرائق: ۲/۱۶۱)

**دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله دلائل**: دباب ټول روایتونه دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله مستدل دي دکوم نه چې یو څو مرفوع او یو څو موقوف دي.

**جوابونه**: ۱. داولني روایت سند قوي نه دې، راوي عبدالله بن عبدالرحمن طائفي متکلم فیه دې.

۲. دویم روایت کې راوي کثیر بن عبدالله مزني باندې سخته جرح کړې شوې ده. ۳. دریم روایت کې ابن لهیه باندې کلام دې. ۴.څلورم روایت کې عبدالرحمن بن سعد متکلم فیه دي. ۵.دآخردوه روایتونه قابل داستدلال دي، په هغې کې دائمه ثلاثه رَحِمَهُمُ الله مطابق دولس تکبیرونه مروي دي، لیکن دابن عباس آثار ددې په باره کې مختلف فیه دي ځکه چې دلته دهغه نه دولس تکبیرونه مروي دي او درارروان باب په اثر کې دحنفیه په شان اته تکبیرونه مروي دي دامام مالک رَحِمَهُ الله او احمد رَحِمَهُ الله په نزد په اولني رکعت کې دتکبیر تحریمې سره اوه تکبیرونه دي.

## ﴿بَابُ صَلَاةِ الْعِيدَيْنِ بِسِتِّ تَكْبِيرَاتٍ زَوَائِدَ﴾

## باب د مانځه د اخترونو د شپږو تکبیرونو زوائدو سره

﴿۶۹۵﴾ عَنْ أَبِي عَائِشَةَ جَلِيسٍ لِأَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ أَنَّ سَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ سَأَلَ أَبَا مُوسَى الْأَشْعَرِيَّ وَحُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا كَيْفَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ فَقَالَ أَبُو مُوسَى كَانَ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا تَكْبِيرَةً عَلَى الْجَنَائِزِ فَقَالَ حُذَيْفَةُ صَدَقَ فَقَالَ أَبُو مُوسَى كَذٰلِكَ كُنْتُ أُكَبِّرُ فِي الْبَصْرَةِ حَيْثُ كُنْتُ عَلَيْهِمْ قَالَ أَبُو عَائِشَةَ وَأَنَا حَاضِرٌ وَسَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ رواه ابوداود و اسناده حسن.[1]

**ترجمه**: د حضرت ابوهریره د ملګري ابي عائشه نه روایت دي چې سعید ابن العاص د ابو موسی اشعري او دحذیفه بن الیمان رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا پوښتنه کړې وه چې څنګه ؤ تکبیرونه د رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

(۱) ابوداؤد کتاب الصلوٰة ج۱ص۱۶۳ باب التکبیر في العیدین.

په لوي اختر او واړه اختر کښې نو وويل ابو موسى رضي الله عنه چې ؤ رسول اکرم صلى الله عليه وسلم چې تکبير به ئي وايه څلور تکبيرونه په شان د تکبيرونو جنازو باندي نو حذيفه رضي الله عنه وويل چې ابوموسى ريښتيا ويلي دي نو ابو موسى وويل چې همدغسي ؤم زه چې تکبيرونه به مي ويل په بصره کښې څو پوري چې زه په هغوي باندي حاکم ؤم او ابو عائشه ويلي دي او زه حاضر وم د سعيد بن العاص سره .د دي حديث روايت ابو داؤد کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

﴿۹۹۶﴾ وَ عَن عَلقَمَةَ وَالاَسوَدِ قَالَا كَانَ ابنُ مَسعُودٍ رضي الله عنه جَالِسًا وَ عِندَه حُذَيفَةُ رضي الله عنه وَ اَبُومُوسٰى الاَشعَرِي رضي الله عنه فَسَاَلَهم سَعِيدُ بنِ العَاصِ رضي الله عنه عَنِ التَّكبِيرِ فِي صَلَاةِ العِيدِ فَقَالَ حُذَيفَةُ سَلِ الاَشعَرِي فَقَالَ الاَشعَرِي سَل عَبدَ اللهِ فَاِنَّه اَقدَمُنَا وَ اَعلَمُنَا فَسَأَلَه فَقَالَ ابنُ مَسعُودٍ يكَبِّرُ اَربَعًا ثُمَّ يقرَأُ ثُمَّ يكَبِّرُ فَيركَعُ فَيقُومُ فِي الثَّانِية فَيقرَأُ ثُمَّ يكَبِّرُ اَربَعًا بَعدَ القِرَاءَةِ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : علقمه او اسود ويلي دي چې ابن مسعود رضي الله عنه ناست ؤ او د ده سره حذيفه رضي الله عنه او ابوموسى اشعري رضي الله عنه ؤ نو پوښتنه وکړه د دي دواړو نه سعيد بن العاص رضي الله عنه د اختر د تکبيرونو په باره کښې نو وويل حذيفه رضي الله عنه چې د اشعري نه پوښتنه وکړه نو وويل اشعري رضي الله عنه چې پوښتنه وکړه د عبدالله نه ځکه چې عبدالله زمونږ نه ډير مخکښې دي او زمونږ نه ډير عالم دي نو پوښتنه وکړه سعيد رضي الله عنه د عبد الله رضي الله عنه نه نو وويل ابن مسعود رضي الله عنه چې هغه څلور تکبيرونه ويلي دي بيا ئي قرأت لوستلي دي بيا ئي تکبير ويلي دي رکوع ئي کړي ده نو پاڅيدلي دي په دوئم رکعت کښې نو قرأت ئي لوستلي دي بيا ئي څلور تکبيرونه ويلي دي د قرأت نه روسته . د دي حديث روايت عبد الرزاق کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۹۹۷﴾ وَعَن كردُوسٍ قَالَ اَرسَلَ الوَلِيدُ اِلٰى عَبدِ اللهِ بنِ مَسعُودٍ وَ حُذَيفَةَ وَ اَبِي مُوسَى الاَشعَرِي وَ اَبِي مَسعُودٍ رضي الله عنهم بَعدَ العَتَمَةِ فَقَالَ اِنَّ هٰذَا عِيدٌ لِلمُسلِمِينَ فَكَيفَ الصَّلَاةُ فَقَالُوا سَلْ اَبَا عَبدِ الرَّحمٰنِ فَسَاَلَه فَقَالَ يقُومُ فَيكَبِّرُ اَربَعًا ثُمَّ يقرَأُ بِفَاتِحَةِ الكِتَابِ وَ سُورَةٍ عَنِ المُفَصَّلِ ثُمَّ يكَبِّرُ اَربَعاً يركَعُ فِي آخِرِهِنَّ فَتِلكَ تِسعٌ فِي العِيدَينِ فَمَا اَنكَرَه اَحَدٌ مِنهُمْ الطبراني في الكبير واسناده حسن .[2]

(۱) مصنف عبدالرزاق کتاب صلوة العيدين ج۳ صـــ ۲۹۳ باب التكبير في الصلاة يوم العيد برقم ۵۶۸۷ .

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ صـــ ۳۵۰ رقم الحديث ۹۵۱۴ .

**ترجمه** : کردوس ويلي دي چې وليد خط اوپيغام وليږه عبدالله بن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ،حذيفه، ابو موسى اشعري او ابو مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ ته د شپې په يوه برخه کې نو هغه ويلي وُ چې دا اختر دي د مسلمانانو څه طريقه به وي د مانځه نو هغو ورته وويل چې پوښتنه وکړه د ابوعبدالرحمن نه نو پوښتنه ئي وکړه د ابو عبدالرحمن نه نو ابوعبدالرحمن وويل چې هغه وُدريده نو څلور تکبيرونه ئي وويل بيا ئي فاتحه د کتاب ولوستله او د مفصل نه ئي يو سورت ولوست بيا ئي تکبير نه وويل څلور په اخر کې ئي رکوع وکړه دا نبنه تکبيرونه دي په اخترونو کې نو انکار نه دي کړي د دي يو د دوي. د دي حديث روايت طبراني کړي په کبير کې او اسناد ئي حسن دي.

﴿۹۹۸﴾ وَعَنْ عَلْقَمَةَ وَالْأَسْوَدِ أَنَّ ابْنَ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَانَ يُكَبِّرُ فِي الْعِيدَيْنِ تِسْعًا أَرْبَعًا قَبْلَ الْقِرَاءَةِ ثُمَّ يُكَبِّرُ فَيَرْكَعُ وَفِي الثَّانِيَةِ يَقْرَأُ فَإِذَا فَرَغَ كَبَّرَ أَرْبَعًا ثُمَّ رَكَعَ رواه عبد الرزاق و اسناده صحيح[1]

**ترجمه** : د علقمه او اسود نه روايت دي چې حضرت ابن مسعود وُ چې تکبير به ئي وايه په اخترونو کې اوه تکبيره څلور تکبيرونه مخکې د قرأت نه بيا به ئي تکبير ووايه نو رکوع به ئي وکړه او په دويم رکعت کې به ئي قرأت ولوست چې کله به د قرأت نه فارغ شو نو تکبير به ئي ووايه څلور تکبيرونه بيا به ئي رکوع کوله د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۹۹۹﴾ وعَن كردُوسٍ قَالَ كَانَ عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يُكَبِّرُ فِي الْأَضْحَى وَالْفِطْرِ تِسْعًا تِسْعًا فَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا ثُمَّ يُكَبِّرُ وَاحِدَةً فَيَرْكَعُ بِهَا ثُمَّ يَقُومُ فِي الرَّكْعَةِ الْآخِرَةِ فَيَبْدَأُ فَيَقْرَأُ ثُمَّ يُكَبِّرُ أَرْبَعًا ثُمَّ يَرْكَعُ بِإِحْدَاهِنَّ رواه الطبراني في الكبير و اسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : کردوس ويلي دي چې عبدالله بن مسعود به تکبير وايه په لوي اختر او واړه اختر کې نبنه نبنه تکبيرونه شروع به ئي وکړه نو څلور تکبيره به ئي وويل بيا به ئي يو تکبير ووايه نو رکوع به ئي وکړه په هغي باندي بيا به پاڅيده اخري رکعت ته نو شروع به ئي وکړه قرأت به ئي ولوست بيا به ئي تکبير ووايه څلور تکبيرونه بيا به ئي د دي څلورو تکبيرونو نه په يو تکبير سره رکوع وکړه د دي حديث روايت طبراني کړي په کبير کې او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۱۰۰۰﴾ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ شَهِدْتُ ابْنَ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ كَبَّرَ فِي صَلَاةِ الْعِيدِ بِالْبَصْرَةِ تِسْعَ تَكْبِيرَاتٍ وَالَى بَيْنَ الْقِرَاءَتَيْنِ قَالَ وَشَهِدْتُ الْمُغِيرَةَ بْنَ شُعْبَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ فَعَلَ مِثْلَ ذٰلِكَ رواه عبد

---

(۱) مصنف عبدالرزاق كتاب صلوة العيدين ج۳صـــ ۲۹۳ باب التكبير في الصلاة يوم العيد برقم ۵۶۸۶ .

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ صـــ ۳۵۰ رقم الحديث ۹۵۱۳.

الرزاق و قال الحافظ في التلخيص اسناده صحيح .[1]

**ترجمه** : عبدالله بن الحارث ويلي دي چې زه د ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره حاضر وم ده تكبير ووايه په مانځه د اختر كې په بصره كې نهه تكبيرونه او پې درپې والي ئي وكړ د دوارو قرء تونو په منځ كې ده ويلي دي چې زه د مغيره ابن شعبه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ سره هم حاضر وم چې د دي په شان كار ئي وكړ . د دي حديث روايت عبدالرزاق كړي دي او حافظ په تلخيص كې ويلي دي چې اسناد ئي صحيح دي .

## دا احنافو دقول ترجيح :

۱- امام احمد بن حنبل رحمة الله عليه فرمايلي دي چې دا خترونو په تكبيراتو كي دنبي عليه السلام نه هيڅ يو صحيح او قوي حديث نـ دي نقل شوي .(التعليق الحسن لالاني رقم الحديث ۹۸۹)

ټولو ائمه دصحابه كرامو اقوالو طرف ته رجوع كړي ده .(بداية المجتهد ،ص :۱۷۵)

۲ - دصحابه كرامو نه حضرت ابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه دباب حديث نمبر ۹۹۴ كي دائمه ثلاثه په شان دولس (۱۲ )تكبيرونه نقل شوي دي . ليكن په شرح احياء كي ددوي نه هم شپږ زائد تكبيرونه نقل شوي دي .(الدرالمنثور :۲\۵۹۱ ) پاتي شو دحضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل نوپه هغي كي هم اختلاف دي .حديث نمبر ۹۹۰ كي دولس (۱۲ )اوحديث نمبر ۱۰۰۱ كي د تكبيرافتتاح اودركوع تكبير سره ددوي نه نهه تكبيرونه نقل دي .چه دهغي نه شپږ تكبيرونه زائد دي .

۳- حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ (حديث نمبر ۹۹۶ ) دنبي عليه السلام نه په اولني ركعت كي سره دتكبير تحريمه ،څلور تكبيرونه اوپه دويم ركعت كي سره دركوع دتكبيرنه څلور تكبيرات نقل كړي دي .ياددي حديث تصديق حضرت حذيفه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ هم نقل كړي دي .احنافو دي لره اخيستلي دي ممكنه ده چي ددي په سند باندي دابو عائشه نامي راوي دوجي نه څه كلام وي ليكن واضحه دي وي چي ډيرو علماؤ ددي توثيق كړې دى .(التعليق الحسن )

۴- دحضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عمل په ټولو رواياتو كي يوشان نقل شوي دي .يعني په اولني ركعت كي دتكبير تحريمي سره څلور تكبيرونه اوپه دويم ركعت كي سره دركوع دتكبير نه څلور تكبيرونه .حضرت حذيفه ،ابو موسى اشعري ،ابو مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ددي عمل تصديق كړي دي اوابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرمائيل چي ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُ زمونږ نه ډير مخكي اوډير پوهه دي .

همدغه شان دمغيره بن شعبه نه هم ددي مثل نقل شوي دي .

ددي وجوهاتو په بناء باندي داخترونو دتكبيراتو تعداد شپږ ګرځول اولى دي .تكبيرتحريمه او د

---

(۱) مصنف عبدالرزاق كتاب صلوة العيدين ج۳ص ۲۹۴ باب التكبير في الصلاة برقم ص ۵۶۸۹.

رکوع تکبیر ددي نه علاوه دي . والله اعلم .

## ﴿ بَابُ تَرْكِ التَّنَفُّلِ قَبلَ صَلاَةِ العِيدِ وَبَعدَهَا ﴾

**باب دي په پرېښودلو د نفلو کې مخکې د مانځه د اختر نه او روسته د مانځه د اختر نه**

﴿۱۰۰۱﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَومَ الفِطرِ فَصَلَّى رَكعَتَينِ لَم يُصَلِّ قَبلَهَا وَلاَ بَعدَهَا رواه الجماعة .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د واړه اختر په ورځ راووت نو دوه رکعته مونځ ئې وکړ مونځ ئې نهٔ کړي مخکې د اختر نه او نه روسته د اختر نه . د دې حدیث روایت د محدثینو یو جماعت کړي دي .

﴿۱۰۰۲﴾ وَ عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ خَرَجَ يَومَ عِيدٍ فَلَم يُصَلِّ قَبلَهَا وَلاَ بَعدَهَا وَ ذَكَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَعَلَهُ رواه احمد والترمذي والحاكم و اسناده حسن .[2]

**ترجمه** : د حضرت ابن عمر رضي الله عنه روایت دي چې هغه د اختر په ورځ راؤوت نو مونځ نهٔ وکړي مخکې د مانځه د اختر نه او نه روسته د مانځه د اختر نه او هغه یاده کړه دا خبره چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم همداسې کړي ؤ . د دې حدیث روایت احمد رحمه الله ، ترمذي رحمه الله او حاکم کړي او اسناد ئې حسن دي .

﴿۱۰۰۳﴾ وعن اَبِي سَعِيدٍ الخُدرِيِّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لاَ يُصَلِّي قَبلَ العِيدِ شَيئاً فَاِذَا رَجَعَ اِلَى مَنزِلِهِ صَلَّى رَكعَتَينِ رواه ابن ماجه و اسناده حسن .[3]

**ترجمه** : حضرت ابو سعید خدري ویلي دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم به مونځ نه کاوه مخکې د اختر نه هیڅ یو شئ او کله به ئې چې واپس خپل کور ته تشریف راوړ دوه رکعته مونځ به ئې وکړ . د

---

(۱) بخاري كتاب العيدين ج۱ص ۱۳۵ باب الصّلوة قبل العيد وبعدها ، مسلم كتاب العيدين ج۱ص ۲۹۱ ، ترمذي ابواب العيدين ج۱ص ۱۲۰ باب لا صلوة قبل العيدين ولا بعدهما ، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱ص ۱۶۴ باب الصّلوة بعد صلوة العيد ، نسائي كتاب صلوة العيدين ج۱ص ۲۳۵ باب الصّلوة قبل العيدين وبعدها ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ص ۹۳ باب ماجآء في الصّلوة قبل صلوة العيد وبعدها ، مسند احمد ج۱ص ۳۵۵.

(۲) مسند احمد ج۲ص ۵۲ ، ترمذي ابواب العيدين ج۱ص ۱۲۰ باب لا صلوة قبل العيدين ولا بعدهما ، مستدرك حاكم كتاب العيدين ج۱ص ۲۹۵ باب لا يصلي قبل العيد ولا بعدها .

(۳) ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ص ۹۳ باب ما جآء في الصّلوة قبل صلوة العيد وبعدها .

دي حديث روايت ابن ماجه کړي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۱۰۰۴﴾ و عن ابن مسعود رضي الله عنه قال ليس من السنة الصلاة قبل خروج الإمام يوم العيد رواه الطبراني و اسناده صحيح[1]

**ترجمه**: حضرت ابي مسعود رضي الله عنه ويلي چې نه دي د سنت طريقې نه مونځ مخکې د وتو د امام ته په ورځ د اختر. د دي حديث روايت طبراني کړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۱۰۰۵﴾ و عن ابن سيرين أن ابن مسعود و حذيفة رضي الله عنهما كانا ينهيان الناس أو قال يجلسان من يريانه يصلي قبل خروج الإمام في العيد رواه الطبراني و اسناده مرسل قوي.[2]

**ترجمه**: د ابن سيرين رحمه الله نه روايت دي چې حضرت ابن مسعود او حضرت حذيفه رضي الله عنهما به خلک منع کول او يا ئې ويلي دي چې کينول به دي دواړو هغه کس چې وبه ليده دوي هغه لره چې مونځ به ئې کاوه مخکې د راوتو د امام نه په ورځ د اختر. د دي حديث روايت طبراني کړي دي او اسناد ئې مرسل قوي دي.

## داختر په ورځ نفلونه:

۱-داختر په ورځ ده اختر د مونځ نه مخکې يا وروستو نفل مونځ کول داحنافو په نزد مکروه دي. دامام او غيرامام د ټولو دپاره، قبل العيد خو مطلقا او بعد الصلاة صرف په عيد ګاه کې، په کور کې يې لوستلې شي.

۲- د امام شافعي رحمه الله په نزد کراهت مطلقا صرف د امام په حق کې دي او مقتدي د پاره مطلقا جائز دي.

۳-امام احمد رحمه الله په نزد د اختر د مونځ نه که مخکې وي او که روستو مطلقا جائز نه دي. (رحمة الامة، ص۶۳).

۴-دعلامه ابن رشد او دامام مالک رحمه الله په نزد کراهت په هغه وخت کې دي چې کله داختر مونځ، په عيد ګاه کې وي او که چرته په جومات کې دځه عذر يعني باران وغيره دوجې نه وي نو بيا مکروهه نه دي. [بداية المجتهد، ص ۱۷۷]

ليکن دسحنون رحمه الله مطابق په عيد ګاه کې مطلقا منع دي او په کور کې مطلقا جائز دي [المدونة ص ۱۰۴].

---

(۱) المعجم الكبير للطبراني ج ۱۷ ص ۲۴۸ رقم الحديث ۵۰۰۰۰ (۶۹۲)

(۲) المعجم الكبير للطبراني ج ۹ ص ۳۵۳ رقم الحديث ۹۵۲۴.

**دليلونه :**

دائمه ثلاثه مستدل په بنيادي طور باندي دباب اولني حديث دي .ان النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خرج **يوم الفطر فصل ركعتين لم يصل قبلها ولا بعدها......الخ** . امام احمد دي لره مطلقا په نفي باندي حمل كوي ،امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ فرمائي كه نبي عليه السلام امام وو ځكه يي نه دي لوستلي ليكن خلكو لره يي دلوستلو نه منع نه ده فرمائيلي .

امام مالک رَحِمَهُ اللهُ فرمائي درسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ر اوتل عيد ګاه طرف ته وو لهذا كراهت به هم دهغي سره خاص وي .

۲-احنافو ددوو احاديثو په مينځ كي تطبيق اختيار كړي دي .

(الف)په اولني حديث كي مطلقانفي ده برابره خبره ده كه په عيد ګاه كي وي اوكه په كور .

(ب)دحضرت ابو سعيد خدري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ دحديث مطابق رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داختر دمونځ نه مخكي نفل خو چرته نه وولوستلي ليكن كورته دراتللو نه پس يي دوه ركعته لوستلي دي .معلومه شوه چه په عيدګاه كي مطلقامكروهه دي اوپه كوركي داختر دمونځ نه مخكي مكروهه دي اودمونځ نه پس مكروه نه دي .

## ﴿ بَاب الذِّهَابِ إِلَى الْمُصَلَّى فِي طَرِيقٍ وَالرُّجُوعِ فِي طَرِيقٍ أُخْرَى ﴾

## باب د تلو دي عيدګاه ته په يوه لاره او دواپس راتلو دي په بله لاره

**﴿۱۰۰۶﴾** عن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدٍ خَالَفَ الطَّرِيقَ رواه البخاري.[1]

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې ؤ نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ چې كله به د اختر ورځ شوه نو لاره به ئي بدله وله . ذ دي حديث روايت بخاري كړي دي .

**﴿۱۰۰۷﴾** و عن أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا خَرَجَ إِلَى الْعِيدِ يرجِعُ فِي غَيْرِ الطَّرِيقِ الَّذِي خَرَجَ فِيهِ رواه احمد والترمذي و ابن حبان والحاكم و اسناده صحيح.[2]

---

(۱) بخاري كتاب العيدين ج۱ص ۱۳۴ باب من خالف الطريق .

(۲) مسند احمد ج۲ص ۳۳۸ ، ترمذي ابواب العيدين ج۱ص ۱۲۰ باب ما جاء في خروج النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الى العيد في طريق ...الخ ، صحيح ابن حبان باب العيدين ج ۵ ص ۲۰۷ رقم الحديث ۲۸۰۳ ، مستدرك حاكم كتاب العيدين ج۱ص۲۹۴ باب لا يصلي قبل العيد ولا بعدها .

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه ويلي دي چې ؤ نبي اکرم صلی الله علیه وسلم چې کله به ئي عيد گاه ته تشريف ويوړ واپس به راته په غير د هغې لاري چې تشريف به ئي وړي ؤ په هغې کې . د دي حديث روايت احمد ، ترمذي ابن حبان او حاکم کړي دي او اسناد ئي صحيح دي .

﴿۱۰۰۸﴾ وَعَنِ ابنِ عُمَرَ رضي الله عنه اَنَّ النَّبِي صلی الله علیه وسلم اَخَذَ يومَ العِيدِ فِي طَرِيقٍ ثُمَّ رَجَعَ فِي طَرِيقٍ آخَرَ رواه ابوداود وابن ماجه واسناده حسن .[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم شروع کړي وه په ورځ د اختر په يوه لاره کې يعني تشريف ئي وړيؤ او راواپس شوي ؤ په بله لاره . د دي حديث روايت ابوداؤد او ابن ماجه کړي دي او اسناد ئي حسن دي .

## لاره بدله کړئ او عيد گاه ته لاړ شئ :

فقهاؤ دلاري اختلاف لره مستحب ليکلي دي ، علماؤددې ډير حکمتونه ليکلي دي .مثلا شهادة الطريقين وسكانهما من الثقلين يعني په ورځ دقيامت به دادواړه لاري اوددي لاري اوسيدونکي دده په حق کي به گواهي ورکوي .داسلام پشان اوشوکت ظاهريدل وي او"حصول البركة للطريقين" .(الدر المنضود ٤٦٠ تفسير).

# ﴿بابُ تَكبِيرَاتِ التَّشرِيقِ﴾
## باب دي د تکبيرونو د تشريق

﴿۱۰۰۹﴾ عن اَبِي الاَسوَدِ قَالَ كانَ عَبدُ الله رضي الله عنه يكبِّرُ مِن صَلاَةِ الفَجرِ يومَ عَرَفَةَ اِلى صَلاَةِ العَصرِ مِن يومِ النَّحرِ يقُولُ اَللّٰه اَكبَرُ اَللّٰه اَكبَرُ لا اله الا الله والله اكبر الله اكبر وَلِلّٰه الحَمدُ رواه ابن ابي شيبة واسناده صحيح .[2]

**ترجمه** : ابوالاسود ويلي دي چې عبدالله رضي الله عنه به تکبير وايه د مانځه د سهر د ورځي د عرفي نه تر مانځه د مازيگر د ورځي د اختر پوري او داسي تکبير به ئي وايه : اَللّٰه اَكبَرُ اَللّٰه اَكبَرُ لا اله الا

---

(۱) ابوداود کتاب الصلوة ج۱ص ۱۶۳ باب يخرج الي العيد في طريق ويرجع في طريق ، ابن ماجة ابواب الصلوات ص۹۳ باب ماجاء في الخروج يوم العيد من طريق ...الخ ، مسند احمد ج۲ص ۱۰۹.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص ۱۹۵ باب التكبير من اي يوم هو الى اي ساعة .

الله والله اکبر الله اکبر وَلِلّٰهِ الْحَمْدُ ترجمه : الله جل شانه د ټولو نه لوي دي الله ټولو نه لوي دي د الله جل شانه په غير بل د عبادت مستحق او معبود نشته او الله د ټولو نه لوي دي الله د ټولو نه لوي دي او خاص الله لره هر يو حمد او ثنا ده .

﴿۱۰۱۰﴾ وَعَنْ شَقِيقٍ عَنْ عَلِيٍّ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ أَنَّهُ كَانَ يُكَبِّرُ بَعْدَ صَلَاةِ الْفَجْرِ يَوْمَ عَرَفَةَ إِلَى صَلٰوةِ الْعَصْرِ مِنْ آخِرِ أَيَّامِ التَّشْرِيقِ بَعْدَ الْعَصْرِ رواه ابو بكر بن ابي شيبة واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : د شقيق نه روايت دي چې حضرت علي رضي الله عنه به تکبير وايه پس د مانځه د سهر د ورځې د عرفې نه تر مانځه د مازيګره پورې د اخري ورځې ، ورځو د تشريق پورې د مازيګر د مانځه نه روسته به ئې هم تکبير وايه . د دې حديث روايت ابوبكر بن ابي شيبه كړې دې او اسناد ئې صحيح دې .

## دتکبیرات تشریق په تعداد کې دصاحبینو قول غوره دي

دائمه ثلاثو په نزد تکبيرات تشريق سنت اوداحنافو په نزددراجح قول مطابق واجب دي .ددې په اولني وخت کې او په آخرني وخت په باره کې دالاندې مذکوره اقوال دي .

۱- دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دعرفې په ورځ دسحرنه واخله تر ديوم النحر مازيګره پورې ټول داته مونځونو نه پس به تکبير تشريق لوستلې کيږي (رحمة الامة ،ص۶۰ )

۲- دامام مالک او شافعي رحمه الله به نزد ديوم النحر دماسپخين نه پس واخله ترد ايام تشريق دآخري ورځې پورې يعنې دد يارلسم ذوالحجه دسحره پورې به لوستلې کيږي .

۳- دصاحبينو په نزد ديوم عرفې دسحر نه واخله ترد ايام تشريق دآخري ورځې مازيګره پورې ټول ددرېشو مونځونو نه پس لوستلې کيږي .(البحرالرائق ۲\۱۶۰ ) همدغه امام احمد رحمه الله هم فرمايلي دي (بداية المجتهد ،ص۱۷۸ ) دشوافعو په نزد هم په دې باندې معمول ليکلې شوې دي (رحمة الامة،ص۶۵ )

### دامام صاحب دليل:

(۱)عمل دابن مسعود رضي الله عنه .(۲)په اوچت آواز سره تکبيرلوستل خلاف اصل دي .لهذا په حکم باندې اکتفاء کول احوط دي .

### دصاحبينو دليل :

(۱)عمل دحضرت علي رضي الله عنه .(۲)همدغه قول دعمر رضي الله عنه هم دي او په عباداتو کې په زياتو

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الصلوات ج۲ص۱۶۵باب التكبير من اي يوم هو الى اي ساعة .

باندي عمل کول احوط دي (البحر الرائق ۱۶۵).

# ﴿أَبْوَابُ صَلٰوةِ الْكُسُوفِ﴾

## دنمر دتندر نیولو مونځ :

دکسوف معني ده بې نوره کیدل .دفقهاؤ په نزد مشهور دادي چي کسوف خاص دي دنمر سره او خسوف دسپوږمي سره لیکن توسعادیو استعمال په دویم کي کیږي .صلاة الکسوف په جماعت سره سنت مؤکده دي بالاتفاق .(رحمة الامة ،ص ۶۵)

نمر تندر نیول او سپوږمي تندر نیول دالله دقدرت دوه نښې دي .په دي کي انفرادي طور باندي ،نفل مونځ ،صدقې دعاګاني او ذکرونه کول پکار دي .

## ﴿بَابُ الْحَثِّ عَلَى الصَّلٰوةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْاِسْتِغْفَارِ فِي الْكُسُوفِ﴾

## باب دي په تیزولو کې په صلاة ، صدقه او استغفار باندي د نمر په توریدو کې

﴿۱۰۱۱﴾ عَنْ أَبِي مَسْعُودٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ: النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ مِنَ النَّاسِ وَلٰكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهُمَا فَقُومُوا فَصَلُّوا رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : حضرت ابو مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې بې شکه نمر او سپوږمئ نه توريږي په مرګ د هيڅ يو کس د خلکو نه خو ولي دا دوه نښې دي د نښو د قدرت د الله جل شانه نه نو کله چې تاسو دا دواړه وګورئ نو پاڅئ او مونځ وکړئ.ددي حديث روايت شيخينو کړي دي .

﴿۱۰۱۲﴾ وَعَنِ الْمُغِيرَةِ بْنِ شُعْبَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ قَالَ اِنْكَسَفَتِ الشَّمْسُ يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ فَقَالَ النَّاسُ اِنْكَسَفَ لِمَوْتِ إِبْرَاهِيمَ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ اللهِ لَا يَنْكَسِفَانِ لِمَوْتِ أَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَإِذَا رَأَيْتُمُوهَا فَادْعُوا اللهَ وَصَلُّوا حَتّٰى يَنْجَلِيَ رواه الشيخان.(۲)

---

(۱) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص ۱۴۲ باب الصلوة في كسوف الشمس ، مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۲۹۹ فصل صلوة الكسوف ركعتان ...الخ .

(۲) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص ۱۴۲ باب الصلوة في كسوف الشمس ، مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۳۰۰ فصل صلوة الكسوف ركعتان ...الخ .

**ترجمه** : حضرت مغیره بن شعبه رضی الله عنه ویلي دي چې تور شوي ؤ نمر په هغه ورځ چې وفات شوي ؤ ابراهیم رضی الله عنه نو خلکو به ویل چې تور شوي دي نمر د وجهې د مرګ د ابراهیم رضی الله عنه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې بې شکه نمر او سپوږمۍ دوه نښې دي د نښو د قدرت د الله جل شانه نه دا نه توريږي د وجهې د مرګ د چا نه او نه د وجهې د ژوند د چانه نو کله چې تاسو دا وګورئ نو د الله جل شانه نه دعاء وغواړئ او مونځ وکړئ تر هغې پورې چې روښانه شي. د دې حدیث روایت شیخینو کړې دی.

﴿۱۰۱۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ الله لَا يَنْخَسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ فَاِذَا رَأَيْتُمْ ذٰلِكَ فَاذْكُرُوا الله وَكَبِّرُوا وَصَلُّوا وَتَصَدَّقُوا رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : د حضرت عائشې رضی الله عنها نه روایت دی چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې بې شکه نمر او سپوږمۍ دوه نښې د نښو د قدرت د الله جل شانه نه دي چې نه توريږي د وجهې د مرګ د چا نه او نه د وجهې د ژوند د چانه نو کله چې ګورئ تاسې دا نو الله جل شانه یاد کړئ او تکبیر ووائې او مونځ وکړئ او صدقه ورکړئ. د دې حدیث روایت شیخینو کړې دی.

﴿۱۰۱۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّهُ كَانَ يُخْبِرُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَنَّ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ لَا يَخْسِفَانِ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنَّهُمَا آيَتَانِ مِنْ آيَاتِ الله فَاِذَا رَأَيْتُمُوهُمَا فَصَلُّوا رواه الشيخان.(۲)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رضی الله عنه د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نه حدیث بیان کړې دې چې بې شکه نمر او سپوږمۍ نه توريږي د وجهې د مرګ د چانه او نه د وجهې د ژوند د چا نه لیکن دا دواړه نښې د نښو د قدرت د الله جل شانه نه نو کله چې تاسې دا اوګورئ نو مونځ وکړئ. د دې حدیث روایت شیخینو کړې دی.

﴿۱۰۱۵﴾ وَعَنْ اَبِي مُوسٰى رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ خَسَفَتِ الشَّمْسُ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَزِعًا يَخْشٰى اَنْ تَكُونَ السَّاعَةَ فَاَتَى الْمَسْجِدَ فَصَلّٰى بِاَطْوَلِ قِيَامٍ وَرُكُوعٍ وَسُجُودٍ مَا رَأَيْتُهُ قَطُّ يَفْعَلُهُ وَقَالَ هٰذِهِ الْآيَاتُ الَّتِي يُرْسِلُ الله لَا تَكُونُ لِمَوْتِ اَحَدٍ وَلَا لِحَيَاتِهِ وَلٰكِنْ يُخَوِّفُ الله بِهَا عِبَادَهُ فَاِذَا رَأَيْتُمْ شَيْئًا مِنْ ذٰلِكَ

---

(۱) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص ۱۴۲ باب الصدقة في الكسوف ، مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۲۹۵ فصل في صلوة الكسوف ركعتان ...الخ.

(۲) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص ۱۴۲ باب الصلوة في كسوف الشمس ، مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۱۹۹ فصل صلوة الكسوف ركعتان ....

فَافْزَعُوا اِلٰى ذِكْرِ اللهِ وَدُعَائِهٖ وَاِسْتِغْفَارِهٖ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : حضرت ابو موسى اشعري رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې تور شوي ؤ نمر نو پاڅيده نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د ويري په حالت كې هغه ويريده چې قيامت نه شي نو مسجد ته ئي تشريف راوړ نو مونځ ئي وكړ په اوږد قيام او په اوږده ركوع او په اوږدي سجدي سره ما نه ؤ ليدلي هغه هيڅكله چې داسي ئي كول او وي ئي فرمايل چې دا هغه نهي دي چې ليږي ئي الله جل شانه نه كيږي هغه د وجهي د مرگ د چانه او نه د وجهي د ژوند د چانه خو دلي ويروي الله جل شانه په دي باندي بنده گان خپل نو كله چې تاسي د دي نه يو څه شي وگورئ نو ؤيريږئ او د الله جل شانه ذكر طرف ته د الله جل شانه نه د دعا غوښتلو طرف ته او استغفار طرف ته متوجه شئ. د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

﴿۱۰۱۶﴾ وَعَنْ اَسْمَاءَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا قَالَتْ لَقَدْ اَمَرَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِالْعِتَاقَةِ فِيْ كُسُوْفِ الشَّمْسِ رواه البخاري.(۲)

**ترجمه** : حضرت اسماء رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ويلي دي چې نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ امر كړي ؤ په ازادولو د غلام او مرئ سره د نمر په تورېدو كې. د دي حديث روايت بخاري كړي دي.

## ﴿ بَابُ صَلٰوةِ الْكُسُوْفِ بِخَمْسِ رُكُوْعَاتٍ فِيْ كُلِّ رَكْعَةٍ ﴾

## باب د مانځه د كسوف دي په پنځو ركوع گانو سره په هر ركعت كې

﴿۱۰۱۷﴾ عَنْ اُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اِنْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِمْ فَقَرَأَ سُوْرَةً مِنَ الطُّوَلِ وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ قَامَ الثَّانِيَةَ فَقَرَأَ سُوْرَةً مِنَ الطُّوَلِ وَرَكَعَ خَمْسَ رَكَعَاتٍ وَسَجَدَ سَجْدَتَيْنِ ثُمَّ جَلَسَ كَمَا هُوَ مُسْتَقْبِلَ الْقِبْلَةِ يَدْعُوْ حَتّٰى انْجَلٰى كُسُوْفُهَا رواه ابوداؤد في اسناده لين.(۳)

**ترجمه** : حضرت ابي بن كعب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې تور شوي ؤ نمر په زمانه د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كې او بې شكه نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د دي مونځ وكړ نو تلاوت ئي كړ يو سورت د طوالو سورتونو نه او پنځه ركوع گاني ئي وكړي او سجده ئي وكړه دوه سجدي بيا دويم ركعت ته پاڅيده

---

(۱) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص۱۴۵ باب الذكر في الكسوف ، مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۲۹۹ فصل صلوة الكسوف ركعتان....

(۲) بخاري ابواب الكسوف ج۱ص ۱۴۴ باب من احب العتاقة في كسوف الشمس .

(۳) ابوداؤد كتاب الكسوف ج۱ص ۱۶۷ باب من قال اربع ركعات .

نو تلاوت ئې کړيو سورت د طوالو نه او رکوع ئې وکړه پنځه رکوع ګاني او سجده وکړه دوه سجدې بيا کيناست چې مخ ئې قبلې ته ؤ دعاء ئې کوله تر دې پورې چې ختم شو توروالې د نمر. د دې حديث روايت ابوداود کړې او په اسناد کې ئې لين او کمزوري ده.

﴿۱۰۱۸﴾ وعَن عَبدِالرَّحمٰنِ بنِ اَبِي لَيلى قَالَ اِنكَسفَتِ الشَّمسُ فَقَامَ عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَرَكَعَ خَمسَ رَكعَاتٍ وَسَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكعَةِ الثَّانِيَةِ مِثلَ ذٰلِك ثُمَّ سَلَّمَ ثُمَّ قَالَ مَا صَلاَّهَا اَحَدٌ بَعدَ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ غَيرِي رواه ابن جرير وصححه.(۱)

**ترجمه** : عبدالرحمن ابن ابي ليلى ويلي دي چې تور شوي ؤ نمر نو پاڅيده حضرت علي رضي الله عنه نو پنځه رکوع ګاني او دوه سجدې ئې وکړې بيا ئې فعل وکړ په دويم رکعت کې په مثل د دې بيا ئې سلام واړاوه بيا ئې وويل نه دې کړې دا مونځ هيچا پس د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه په غير څما نه. د دې حديث روايت جرير کړې او صحيح ئې ګڼړلې دې.

﴿۱۰۱۹﴾ وعَنِ الحَسَنِ قَالَ نُبِّئتُ اَنَّ الشَّمسَ كَسَفَت وَعَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ بِالكوفَة فَصَلّٰى بِهِم عَلِي بنُ اَبِي طَالِبٍ خَمسَ رَكعَاتٍ ثُمَّ سَجَدَ سَجدَتَينِ عِندَ الخَامِسَة ثُمَّ قَامَ فَرَكَعَ خَمسَ رَكعتٍ لَم سَجَدَ سَجدَتَينِ عِندَ الخَامِسَة قَالَ عَشرُ رَكعَاتٍ وَاَربَعُ سَجَدَاتٍ رواه ابن جرير.

قَالَ النِّيمَوِي اِتِّصَالُ الحَسَنِ بِعَلِي ثَابِتٌ بِوُجُوه لٰكِنَّه لَم يشهد هٰذِه الوَاقِعَة عَلٰى مَا يقتَضِيه قَولُه نُبِّئتُ(۲)

**ترجمه** : حسن ويلي دي چې ماته خبر راکړې شوي چې نمر تور شوي ؤ او حضرت علي رضي الله عنه په کوفه کې ؤ نو حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه مونځ وکړ حلکو ته پنځه رکوع ګاني او بيا ئې دوه سجدې د پنځمې رکوع سره بيا پاڅيده پنځه رکوع ګاني ئې وکړې بيا ئې سجده وکړه دوه سجدې د پنځمې رکوع سره بيا ئې وويل چې لس رکوع ګاني او څلور سجدې دي. د دې حديث روايت ابن جرير کړې دې.

نيموي رحمه الله ويلي دي چې د علي رضي الله عنه پورې د حسن اتصال په ډيرو وجوهو سره ثابت دې خو ولې دغې واقعې ته حاجر شوي نه دې او د دې خبرې ثبوت د دې قول کيږي چې نُبِّئتُ دې د دې جملې تقاضا دا ده چې هغه دې واقعه کې نه و شريک شوې.

---

(۱) ابوداؤد کتاب الکسوف ج۱ص ۱۶۷ باب من قال اربع رکعات.

(۲) ابوداؤد کتاب الکسوف ج۱ص ۱۶۷ باب من قال اربع رکعات.

## مسئلة الابواب الخمسة ، دصلاة الكسوف كيفيت :

دصلاة الكسوف دكيفيت په باره كي دالاندي اختلاف دي .

۱- دصلاة الكسوف طريقه داحنافو په نزد هغه ده كومه چي دنورو مونځونو ده .په اوږد قرأت سره بهصرف دوه ركعته لوستلې كيږي اوپه هر ركعت كي به يوه ركوع وي .

۲- دائمه ثلاثوپه نزد دصلاة الكسوف طريقه دنورو مونځونو نه بالكل بدله ده .ددوي په نزد دصلاة الكسوف دوه ركعتونه دي په هر ركعت كي دوه ركوع ګاني اودوه پري ولاړه (قيام)دي .يوه ركوع به اوكړي اوبيابه قيام طرف ته لاړشي ددويم قيام نه پس به بيادويمه ركوع اوكړي شي سجدي اوتشهد وغيره دنوروموانځونوپه شان دی .

### دائمه ثلاثه دليلونه :

مؤلف رحمه الله دركوع په شميره كي پينځه بابونه راوړي دي .په اولني باب كي دپينځو ركوع ګانو والاروايات دي ،په دويم كي دڅلورو ركوع ګانو والا،په دريم كي دري ركوع ګانو والا،په څلورم كي دوو ركوع ګانو والا،اوپه پينځم كي ديو ركوع والا روايات دي .

**دائمه ثلاثومستدلات** :د "باب كل ركعته بركوعين" دري رواياتونه دي .

(۱)حديث دعائشي رضى الله عنها نمبر ۱۰۲۶ ، "فاستكمل اربع ركعات في اربع سجدات" .

(۲)حديث دابن عباس رضي الله عنه نمبر ۱۰۲۷ .

(۳)حديث دجابر رضي الله عنه ۱۰۲۸ ، "فكانت اربع ركعات واربع سجدات" .

ائمه ثلاثورحمهم الله دركوع ګانو والارواياتو لره راجح اونورو رواياتو لره معلل اووهم درواتو مقرر كړي دي .

### داحنافو دليلونه :

داحنافو دليلونه په پينځم باب ، "باب كل ركعات بركوع واحد" كي مذكور دي .

(۱)حديث دابي بكره رضي الله عنه نمبر ۱۰۲۹ فصلى بنا ركعتين (بخاری) په نسائي كي دي ركعتين كما تصلون اوپه ابن حبان كي دي ركعتين مثل صلاتكم .

(۲)حديث عبد الرحمن بن سمرة رضي الله عنه ۱۰۳۰ فقرأ سورتين وركع ركعتين (مسلم)اوپه نسائي كي دي فصلى ركعتين واربع سجدات .

(۳)حدیث قبیصة الهلالی رضی الله عنه مرفوعا: "فاذارأیتموها فصلوا کاحدث صلاة صلیتموها من المکتوبة" (ابوداؤد ونسائی بسند صحیح)

(۴)حدیث سورة بن جندب رضی الله عنه نمبر ۱۰۳۲ :" فصلی فقام بنا کاطول ما قام بنا في صلاة قط ".....الحدیث (ابوداؤد ونسائی بسند صحیح)

(۵) حدیث عبد الله بن عمر رضی الله ۱۰۳۳ : " فقام رسول الله لم یکن یرکع ثم رکع فلم یکن یرفع ثم رفع " .... الحدیث.

(٦)حدیث محمود بن لبید رضی الله عنه نمبر ۱۰۳۴ : "ثم رکع ثم اعتدل ثم سجد ....الحدیث .(احمد بسند حسن).

(۷)حدیث نعمان بن بشیر نمبر ۱۰۳۵ : "ان رسول الله صلی فی کسوف الشمس نحوا من صلاتکم یرکع ویسجد ".(احمد ونسائی بسند صحیح)

(۸) حدیث نعمان رضی الله عنه نمبر ۱۰۳٦ مرفوعا: " فصلوا کاحد ث صلاة صلیتموها". (نسائی بسند صحیح)

په دي کي په فعلی اوقولي دواړقسمه روایات دي .نبي کریم صلی الله علیه وسلم صلاة کسوف لره دسحر د مونځ په شان لوستلو حکم کړي دي .اوپه دي کي ئي هیڅ دیوي نوي طریقي تلقین نه دي فرمائیلې .

**ائمه ثلاثوته جوابونه اودرکوع گانو دتعداد توجیه .**

۱- روایات حدیثیه درکوع اوقیام دتعدادو په باره کي ډیر مختلف دي ، دیونه واخله تر دپینځو رکوع گانو پوري ثابت دي .اوډیرو سندونه هم صحیح دي .لیکن دادنبي کریم صلی الله علیه وسلم خصوصیت وو .ځکه چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم په دي مونځ کي دعجائبو اود غرائبو مشاهده فرمائیلي ده اودعالم آخرت بعض مناظر نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته اوخودلي شوه .جنت اوددي نعمتونه جهنم اودهغي مصیبتونه ،ځکه به نبي کریم صلی الله علیه وسلم دعاغوښتله اوکله پناه غوښتله اوکله به نبي کریم صلی الله علیه وسلم دمونځ په حالت کي مخکي طرف ته تللو دجنت دونود شاخونو دنیولو دپاره اوکله به دجهنم د یعني شعلو دبچ کیدلو نه به روستو تللو اوددي خبرو باوجود به قرأت اوقیام دومره اوږد وو چي دمعمول به بالکل خلاف وو .نوځکه بعضي بعضي صحابه کرامو لره به کله کله دنبي علیه السلام دعایادپناه غوستلو دوجي نه داشبه کیدله چي شاید به اوس رکوع ته تللي وي بیابه پته اولگیده چي نه دي تللي .لهذا اودریدلو به لیکن

ددقیام مقدار به ډیر اوږد وو ځکه به مختلفو خلکو ته ددي نوبت راتللو نو داوجه شوه دراصل دتعدد رکوع په مجمع کي دداسي خبري پیش راتلل څه لري نه ده دلته زمونږ په زمانه کي چې په کوم جماعت کي رش ،ګڼوالي اودخلقو ډیر والي وي مثلاداختر په مونځونو کي په عید ګاه کي دننه ددي قسمه غلطي نوبت راتللي شي .

۲- فعلی روایاتونه ګویاچي مختلف اومتعارض دي لیکن قولي روایاتو دتعارض نه سالم دي .په دي کي نبي علیه السلام صرف امت لره دیونه دزیاتو رکوع ګانو تعلیم نه دي بلکه ددي خلاف ئي تصریح فرمائیلي ده چي دامونځ دسحر دمونځ په شان اداء کړي .که چرته دیونه زیاتي رکوع ګاني دمونځ جزء وو نو بیابه نبي علیه السلام داحکم نه وو کړي .

## داحنافو وجوه ترجیح :

۱- دډیرو رکوع ګانو والا ټول روایاتونه فعلي دي بلکه دیو رکوع والا روایات فعلي اوقولي دي .

۲-دروایاتو په متعارض کیدلو په وخت کي به قیاس اواصل لره کتلې کیږي په یورکعت کي هم یو رکوع معلومه ده .

۳-احناف دډیرو رکوع ګانو والاروایاتونولره صحیح ګڼلو سره دتطبیق لاره اختیار کړي ده بلکه دائمه ثلاثو په قول باندي دیو رکوع والا روایات اودوونه زیاتو رکوع ګانو والا روایاتو لره پریخودلي کیږي .

۴- ډیرو رکوع ګانو واله غیر معلومي واقعه ده دنبي علیه السلام ددینه سکوت (خاموشي )فرمایل داصل طرف ته درجوع خبر ورکوي چي هغه یوه رکوع ده .

## ﴿بَابُ كُلُّ رَكعَةٍ بِأَربَعِ رُكوعَاتٍ﴾

## باب هر رکعت په څلورو رکوع ګانو سره

﴿۱۰۲۰﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ أَنَّه صَلّٰى فِي كسُوفٍ قَرَأَ ثُمَّ رَكعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكعَ ثم قَرَأَ ثُمَّ رَكعَ ثُمَّ سَجَدَ قَالَ وَالأُخرٰى مِثلَهَا رواه مسلم وآخرون وفي روايةٍ صَلّٰى ثَمَانَ رَكعَاتٍ فِي أَربَعِ سَجَدَاتٍ .(۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نمر د تورېدو په باره کې مونځ کړي ؤ هغه قرأت ولوست بیا ئي رکوع وکړه بیا ئي قرأت ولوست بیا ئي رکوع وکړه بیا ئي

---

(۱) مسلم كتاب الكسوف ج۱ص۲۹۹ فصل صلوة الكسوف ركعتان ....الخ .

قرأت ولوست بيا ئي ركوع وكړه بيا ئي قرأت ولوست بيا ئي ركوع وكړه بيا ئي سجده وكړه ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي او بل ركعت ئي د دي په شان وكړ . د دي حديث روايت مسلم كړي دي او نورو محدثينو كړي دي او په يو روايت كې دي چې هغه اته ركوع گاني په څلورو سجدو كې وكړي.

﴿۱۰۲۱﴾ وَعَن عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَسِفَتِ الشَّمسُ فَصَلَّى عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ لِلنَّاسِ فَقَرَأَ يٰسٓ أَو نَحوَهَا ثُمَّ رَكَعَ نَحوًا مِن قَدرِ السُّورَةِ ثُمَّ رَفَعَ رَأسَه فَقَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه ثُمَّ قَامَ قَدرَ السُّورَةِ يَدعُو وَيُكَبِّرُ ثُمَّ رَكَعَ قَدرَ قِرَاءَتِه أَيضًا ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه ثُمَّ قَامَ أَيضًا قَدرَ السُّورَةِ ثُمَّ رَكَعَ قَدرَ ذٰلِكَ أَيضًا حَتّٰى صَلّٰى أَربَعَ رَكَعَاتٍ ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَامَ إِلَى الرَّكعَةِ الثَّانِيَةِ فَفَعَلَ كَفِعلِه فِي الرَّكعَةِ الأُولٰى ثُمَّ جَلَسَ يَدعُو وَيَرغَبُ حَتّٰى انكَسَفَتِ الشَّمسُ ثُمَّ حَدَّثَهُم أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَذٰلِكَ فَعَلَ رواه احمد واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې نمر ته تندر ورسولي شو نو مونځ وكړ حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ خلكو ته نو تلاوت ئي كړ سورت يس او يا د دي په شان بل سورت بيا ئي ركوع وكړه په مثل د اندازي د سورت بيا ئي سر اوچت كړ نو وي ويل چې (سمع الله لمن حمده) بيا ؤدريده په اندازه د سورت دعا ئي وكړ او تكبير ئي ووايه بيا ئي ركوع وكړه په اندازه د قرأت همدارنگه بيا ئي وويل سمع الله لمن حمده بيا همدارنگه ؤدريده په اندازه د سورت بيا ئي ركوع وكړه په اندازه د سورت همدارنگه تر دي پوري چې څلور ركوع گاني ئي وكړي بيا ئي سمع الله لمن حمده وويله بيا ئي سجده وكړه بيا پاڅيده دويم ركعت ته نو فعل ئي وكړ په مثل د فعل خپل په اول ركعت كې بيا كيناست دعاء ئي وكړه او ترغيب ئي وركړ تر دي پوري چې روښانه شو نمر بيا ئي هغو ته حديث بيان كړ چې بي شكه رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ همدغسي فعل كړي ؤ . د دي حديث روايت احمد كړي او اسناد ئي صحيح دي.

(۱) مسند احمد ج۱ ص ۱۴۳.

# ﴿بَابٌ ثَلَاثُ رُكُوعَاتٍ فِي كُلِّ رَكْعَةٍ﴾

## باب دري ركوع ګاني په هر ركعت كې

﴿۱۰۲۲﴾ عَنْ جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ انْكَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمَ مَاتَ إِبْرَاهِيمُ بْنُ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ النَّاسُ إِنَّمَا انْكَسَفَتْ لِمَوْتِ إِبْرَاهِيمَ فَقَامَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَصَلَّى بِالنَّاسِ سِتَّ رَكَعَاتٍ بِأَرْبَعِ سَجَدَاتٍ الحديث رواه مسلم.(۱)

**ترجمه** : حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې تندر نيولي ؤ نمر په زمانه د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كې په هغه ورځ كې چې ابراهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرزند ارجمند وفات شوي ؤ نو خلكو به ويل چې نمر تندر نيولي د وجهي د وفات د ابرهيم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه نو نبي اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ودريده مونځ ئې وكړ خلكو ته شپږ ركوع ګاني په څلورو سجدو كې الحديث. روايت د دي حديث مسلم كړي دي.

﴿۱۰۲۳﴾ وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى سِتَّ رَكَعَاتٍ فِي أَرْبَعِ سَجَدَاتٍ رواه النسائي واحمد واسناده صحيح.(۲)

**ترجمه** : د حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنْهَا روايت دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ كړي شپږ ركوع ګاني په څلورو سجدو كې. د دي حديث روايت نسائي او احمد رَحِمَهُ اللهُ كړي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۱۰۲۴﴾ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ صَلَّى فِي كُسُوفٍ فَقَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ قَرَأَ ثُمَّ رَكَعَ ثُمَّ سَجَدَ وَالْأُخْرَى مِثْلُهَا رواه الترمذي وصححه.(۳)

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي كريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وكړ په توريدو د نمر كې نو قرأت ئې وكړ بيا ئې ركوع وكړه بيا ئې قرأت وكړ بيا ئې ركوع وكړه بيا ئې قرأت وكړ بيا ركوع وكړه بيا ئې سجده وكړه او بل ركعت ئې د دي ركعت په شان وكړ. د دي حديث روايت ترمذي كړي دي او صحيح ئې ګڼلي دي.

---

(۱) مسلم كتاب الكسوف ج۱ص۲۹۷ فصل صلوة الكسوف ركعتان ...الخ.

(۲) نسائي كتاب الكسوف ج۱ص۲۱۵ باب كيف صلوة الكسوف، مسند احمد ج۳ص۳۱۸ عن جابر.

(۳) ترمذي ابواب صلوة الكسوف ج۱ص۱۲۵ باب في صلوة الكسوف.

# ﴿ بَابُ كُلِّ رَكعَةٍ بِرُكوعَينِ ﴾
## باب هر ركعت په دوه ؤ ركوع ګانو سره

﴿۱۰۲۵﴾ عَن عَائِشَةَ زَوجِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَت خُسِفَتِ الشَّمسُ فِي حَيٰوةِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَخَرَجَ إِلَى المَسجِدِ فَصَفَّ النَّاسُ وَرَاءَه فَكَبَّرَ فَاقتَرَأَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً ثُمَّ كَبَّرَ فَرَكَعَ رُكوعًا طَوِيلًا ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه فَقَامَ وَلَم يَسجُد وَقَرَأَ قِرَاءَةً طَوِيلَةً هِيَ أَدنٰى مِنَ القِرَاءَةِ الأُولٰى ثُمَّ كَبَّرَ وَرَكَعَ رُكوعًا طَوِيلًا هُوَ أَدنٰى مِنَ الرُّكوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ قَالَ سَمِعَ اللهُ لِمَن حَمِدَه رَبَّنَا وَلَكَ الحَمدُ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ قَالَ فِي الرَّكعَةِ الآخِرَةِ مِثلَ ذٰلِكَ فَاستَكمَلَ أَربَعَ رَكَعَاتٍ فِي أَربَعِ سَجَدَاتٍ وَانجَلَتِ الشَّمسُ قَبلَ أَن يَنصَرِفَ رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بي بي حضرت عائشي رَضِيَ اللهُ عَنهَا ويلي دي چې تور كړي شوي ؤ نمر په ژوند د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كې نو هغه مسجد ته تشريف راوړ نو صف جوړ خلكو روسته د ده نه نو تكبير ئي ووايه نو قرأت ولوسته رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ په اوږد قرأت سره بيا ئي تكبير وكړ نو ركوع ئي وكړه په اوږده ركوع بيا ئي سمع الله لمن حمده وويله نو دريده او سجده ئي ونكړه او قرأت ئي ولوست په اوږد قرأت سره دا قرأت د مخكې قرأت نه لږ او كم ؤ بيا ئي تكبير ووايه او اوږده ركوع ئي وكړه چې د اولي ركوع نه كمه وه بيا ئي وويل چې ( سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد ) بيا ئي ؤويل سمع الله لمن حمده ربنا ولك الحمد بيا ئي سجده وكړه بيا ئي ؤويل په بل ركعت كې په مثل د دې نو پوره شوي څلور ركوع ګاني په څلورو سجدو كې نمر روښانه شو مخكې د سلام د ګرځولو نه . د دې حديث روايت بخاري كړي دي .

﴿۱۰۲۶﴾ وَعَن عَبدِ الله بنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ انخَسَفَتِ الشَّمسُ عَلٰى عَهدِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَصَلّٰى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا نَحوًا مِن قِرَاءَةِ سُورَةِ البَقَرَةِ ثُمَّ رَكَعَ رُكوعًا طَوِيلًا ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ القِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكوعًا طَوِيلًا وَهُوَ دُونَ الرُّكوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ

---

(۱) بخاري ابواب الكسوف ج۱صـــ ۱۴۲ باب خطبة الامام في الكسوف ، مسلم كتاب الكسوف ج۱صـــ ۲۹۶ فصل صلوة الكسوف وكعناه ...الخ .

سَجَدَ ثُمَّ قَامَ قِيَامًا طَوِيلاً وَهوَدُونَ الْقِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكوعًا طَوِيلاً وَهوَدُونَ الرُّكوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَفَعَ فَقَامَ قِيَامًا طَوِيلاً وَهودُونَ الْقِيَامِ الأَوَّلِ ثُمَّ رَكَعَ رُكوعًا طَوِيلا وَهوَدُونَ الرُّكوعِ الأَوَّلِ ثُمَّ سَجَدَ ثُمَّ انْصَرَفَ وَقَدْ تَجَلَّتِ الشَّمْسُ رواه الشيخان.(١)

**ترجمه** : حضرت عبد الله بن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې تور شوي ؤ تندر نيولي و نمر په زمانه د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كې نو مونځ وكړ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نو ودريده اوږد قيام ئي وكړ په مثل د قرآت د سورت بقري بيا ئي ركوع وكړه ركوع اوږده بيا اوچت شو نو ودريده په اوږدو ودريدو سره او دغه ودريدل د اولو ؤدريدو نه كم ؤ بيا ئي ركوع وكړه ركوع اوږده او دا ركوع د اولي ركوع نه كمه وه بيا ئي سجده وكړه بيا ودريده په اوږد قيام او دا ؤدريدل د اولو ؤدريدو نه كم ؤ بيا ئي ركوع وكړه ركوع اوږده او دا ركوع كمه وه د اولي ركوع نه بيا اوچت شو نو ودريدو په ؤدريدو اوږدو سره او دا ودريدل كمه ؤ د اولو ؤدريدو نه بيا ئي ركوع وكړه ركوع ؤلاده او دا ركوع كمه وه د ركوع اولني نه بيا ئي سجده وكړه بيا ئي سلام واړاوه او په تحقيق نمر روښانه شوي ؤ . د دي حديث روايت شيخينو كړي دي.

﴿١٠٢٧﴾ وَعَن جَابِرِ بنِ عبدِالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَسَفَتِ الشَّمْسُ عَلَى عَهدِ رَسُولِ الله فِي يومٍ شَدِيدِ الحَرِّ فَصَلَّى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصحَابِه فَأَطَالَ الْقِيَامَ حَتَّى جَعَلُوا يخِرُّونَ ثُمَّ رَكَعَ فَطَالَ ثُمَّ رَفَعَ فَأَطَالَ ثُمَّ رَكَعَ فَأَطَالَ ثُمَّ رَفَعَ فَأَطَالَ ثُمَّ سَجَدَ سجدَتَينِ ثُمَّ قَامَ فَصَنَعَ نَحوًا مِن ذٰلِك فَكَانَتْ أَرْبَعَ ركوعات واربع سَجَدَاتٍ رواه مسلم احمد وابوداود.(٢)

**ترجمه** : او حضرت جابر بن عبد الله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي تندر نيولي ؤ تور شوي ؤ نمر په زمانه د رسول اكرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په ورځ سخته گرمه كې نو مونځ وكړ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اصحابو خپلو ته نو اوږد ئي كړ قيام تر دي پوري چې شو صحابه كرام چې غورځيدل به بيا ئي ركوع وكړه نو اوږده ئي كړله ركوع بيا اوچت شو نو اوږد ئي كړ قيام بيا ئي ركوع وكړه نو اوږده كړ ركوع بيا اوچت شو نو اوږد قيام ئي وكړ بيا سجده وكړه دوه سجدي بيا ؤدريده نو عمل ئي وكړ په مثل د دي عمل نو شوي څلور ركوع گاني او څلور سجدي. د دي حديث روايت مسلم احمد او ابوداؤد كړي دي.

---

(١) بخاري ابواب الكسوف ج١ص ١٤٣ باب صلوة الكسوف جماعة ، مسلم كتاب الكسوف ج١ص ٢٩٨ فصل صلوة الكسوف ركعتان

(٢) مسلم كتاب الكسوف ج١ص ٢٩٧ فصل صلوة الكسوف ركعتان ...الخ ، مسند احمد ج٣ص ٣٧٤ ابوداؤد كتاب الكسوف ج١ص ١٦٧ باب من قال اربع ركعات . !

## ﴿بَابُ كُلُّ رَكعة بِرُكوعٍ وَاحِدٍ﴾
## باب هر رکعت په يوي رکوع سره

﴿۱۰۲۸﴾ عَن أَبِي بَكرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كُنَّا عِندَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَانكَسَفَتِ الشَّمسُ فَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَجُرُّ رِدَاءَه حَتَّى دَخَلَ المَسجِدَ فَدَخَلنَا فَصَلَّى بِنَا رَكعَتَينِ رواه البخاري والنسائي وزاد كما تُصَلُّونَ ابن حبان وَقَالَ رَكعَتَينِ مِثلَ صَلٰوتِكُم.(۱)

**ترجمه** : حضرت ابي بکره رضي الله عنه ويلي دي چې مونږ د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم سره وُ چې نمر تندر ونيو تور شو نو پاڅيده رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په داسي حال کې چې څادر مبارک ئي د ځان پسي راخکوده د وجهي د تلوار نه تر دي پوري چې ننوت مسجد ته نو مونږه هم مسجد ته ننوتو نو مونږ ئي وکړ مونږ ته دوه رکعته . د دي حديث روايت بخاري او نسائي کړي او نسائي دا الفاظ زيات کړي دي لکه څنګه ئي چې تاسو کوئ . او د دي حديث روايت ابن حبان کړي دي او ده دا الفاظ زيات کړي دي او ابو بکره ويلي دي (دوه رکعته په شان د مانځه ستاسي) .

﴿۱۰۲۹﴾ وَعَن عَبدِ الرَّحمٰنِ بنِ سَمُرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ بَينَمَا اَنَا اَرمِي بِأَسهمِي فِي حَيَاةِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ إِذَا انكَسَفَتِ الشَّمسُ فَنَبَذتُهنَّ وَقُلتُ لَأَنظُرَنَّ مَا يحدُثُ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي انكِسَافِ الشَّمسِ اليومَ فَانتَهيتُ إِلَيه وَهوَ رَافِعٌ يَدَيه يدعُو وَيكبِّرُ وَيحمَدُ وَيهلِّلُ حَتَّى جُلِيَ عَنِ الشَّمسِ فَقَرَأَ سُورَتَينِ وَرَكَعَ رَكعَتَينِ رواه مسلم والنسائي قَالَ فَصَلَّى رَكعَتَينِ وَأَربَعَ سَجدَاتٍ.(۲)

**ترجمه** : حضرت عبد الرحمن بن سمره رضي الله عنه ويلي دي په دغه وخت کې ما ويشتل کول په خپلو غشو باندي په ژوند د رسول الله صلی الله علیه وسلم کې چې ناڅاپه نمر تندر ونيو تور شو نو ما غشي وُغورځول او ما وويل چې خامخا ضرور به څه ګورم چې څه پيښې دې شي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ته په توروالي د نمر کې نن ورځ نو زه وُرسيدم هغه صلی الله علیه وسلم ته او هغه اوچتونکي وُ دواړو مبارکو لاسونو خپلو لره دعاء ئي کوله تکبير ئي فرمايه حمد او ثنا ئي ويله او لا اله الا الله ذکر ئي کاه تر

---

(۱) بخاري ابواب الکسوف ج۱ص ۱۴۱ باب الصلوٰة في کسوف الشمس ، نسائي کتاب الکسوف ج۱ص ۲۲۱ باب کيف صلوٰة الکسوف ، صحيح ابن حبان باب صلوٰة الکسوف ج ۵ ص ۲۱۵ برقم ۲۸۲۶.

(۲) مسلم کتاب الکسوف ج۱ص ۲۹۹ فصل صلوٰة الکسوف رکعتان ، نسائي کتاب الکسوف ج۱ص ۲۱۳ باب التسبيح والتکبير والدعا عند کسوف الشمس .

دي پوري چې د نمر نه توروالي ختم شو نو هغه دوه سورتونه ولوستل او دوه رکوع ئې وکړې د دي حديث روايت مسلم او نسائي کړي دي او نسائي دا الفاظ زيات کړي دي عبدالرحمن بن سمره ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم دوه رکوع او څلور سجدې وکړې.

(۱۰۲۰) وَعَن قَبِيصَةَ الهِلاَلِي رضي الله عنه قَالَ كَسَفَتِ الشَّمسُ عَلىٰ عَهدِ رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فَخَرَجَ فَزِعًا يَجُرُّ ثَوبَه وَاَنَا مَعَه يومَئِذٍ بِالمَدِينَة فَصَلّٰى رَكعَتَينِ فَاَطَالَ فِيهِمَا القِيَامَ ثُمَّ انصَرَفَ وَانجَلَت فَقَالَ هٰذِهِ الآيَاتُ يخَوِّفُ الله عز وجل بِها فَاِذَا رَأَيتُمُوهمَا فَصَلُّوا كَاَحدَثِ صَلوة صَلَّيتُمُوها مِنَ المَكتُوبَة رواه ابوداود والنسائي واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : قبيصه الهلالي رضي الله عنه ويلي دي چې تور شوې وُ نمر په زمانه د رسول اکرم صلى الله عليه وسلم کې نو بهر ئې د ويرې په حالت کې تشريف ويوړ چې راخکوده ئې څادر خپل او زه د ده سره په دغه ورځ په مدينه منوره کې وم نو مونځ ئې وکړ دوه رکعته او اوږد ئې کړ په دې دواړو رکعتونو کې قيام بيا ئې سلام واړاوه او نمر روښانه شو نو وي فرمايل چې دا نښې دي ويروي کوي الله جل شانه په دې سره کله چې تاسي دا نښې وګورئ نو مونځ وکړئ په شان د نزدې مونځ چې کړي تاسي د فرض مونځونو نه د دې حديث روايت ابوداوُد او نسائي کړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

(۱۰۲۱) وَعَن سَمُرَة بنِ جُندُبٍ رضي الله عنه قَالَ بَينَمَا اَنَا وَغُلاَمٌ مِنَ الاَنصَارِ نَرمِي غَرَضَينِ لَنَا حَتّٰى اِذَا كَانَتِ الشَّمسُ قِيدَ رُمحَينِ اَو ثَلاَثَة فِي عَينِ النَّاظِرِ مِنَ الاُفُقِ اسوَدَّت حَتّٰى آضَت كَاَنَّها تَنُومَة فَقَالَ اَحَدُنَا لِصَاحِبِه انطَلِق بِنَا اِلَى المَسجِدِ فَوَالله لَيحدُثَنَّ شَانُ هٰذِه الشَّمسِ لِرَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم فِي اُمَّتِه حَدَثًا قَالَ فَدُفِعنَا فَاِذَا هوَبَارِزٌ فَاستَقدَمَ فَصَلّٰى فَقَامَ بِنَا كَاَطوَلِ مَا قَامَ بِنَا فِي صَلوة قَطُّ لاَ نَسمَعُ لَه صَوتًا قَالَ ثُمَّ رَكَعَ بِنَا كَاَطوَلِ مَا رَكَعَ بِنَا فِي صلوة قَطُّ لاَ نَسمَعُ لَه صَوتًا قَالَ ثُمَّ سَجَدَ بِنَا كَاَطوَلِ مَا سَجَدَ بِنَا فِي صَلوة قَطُّ لاَ نَسمَعُ لَه صَوتًا ثُمَّ فَعَلَ فِي الرَّكعَة الاُخرٰى مِثلَ ذٰلِك رواه ابوداود والنسائي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه** : حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه ويلي دي په دغه وخت کې ما او يو هلک د انصارو خپلې دوه نښې ويشتلې تر دې پورې چې کله شو نمر په اندازه د دوه وُ نيزو او يا په اندازه د درېوُ

---

(۱) ابوداؤد کتاب الکسوف ج۱ص ۱۶۸ باب من قال اربع رکعات ، نسائي کتاب الکسوف ج۱ص ۲۱۹ باب کيف صلوة الکسوف .

(۲) ابوداؤد کتاب الکسوف ج۱ص ۱۶۸ باب من قال اربع رکعات ، نسائي کتاب الکسوف ج۱ص ۲۱۸ باب کيف صلوة الکسوف .

نیزو په سترګو د لیدو نکو کې د غاړي د اسمان نه نو نمر تور شو تر دي چې ؤګرځیده هغه لکه تنومه
. یعني د تنومه نومي بوټي د میوي په شان چې په دي بوټي او میوه دواړو کې لږ څه تور والي وي.
نو زمونږ یو کس خپل ملګري ته وویل چې بوزه مونږ مسجد ته پس قسم په الله جل شانه دي چې
خامخا به پیدا کړي د نمر دغه حالت رسول اکرم ﷺ ته په باره د امت خپل کې څه نوي خبره
راوي ویلي دي نو دیکه راکړي شوه مونږ ته د تیز رفتاري د وجهي نه. یعني تینډک او یا د تیندلک
ؤخوړ مونږ نو ناڅاپه نبي کریم ﷺ تشریف راوړؤ هغه راغي مخکې شو نو مونږ ځ ئي وکړ نو
اوږد قیام ئي وکړ مونږ سره چې داسي اوږد قیام ئي نه ؤ کړي مونږ سره په هیڅ مانځه هیڅ وخت نه
اوریده مونږ د هغه اواز راوي ویلي دي چې بیا ئي مونږ ته رکوع وکړه داسي اوږده رکوع چې نه ئي
اوه کړي داسي اوږده رکوع په هیڅ مانځه کې هیڅ وخت نه اوریده مونږ د هغه اواز راوي ویلي دي
چې بیا ئي سجده وکړه زمونږ سره داسي اوږده سجده چې نه ئي وه کړي مونږ سره داسي اوږده
سجده په هیڅ مانځه کې هیڅ وخت نه اوریده مونږ اواز د هغه بیا ئي فعل وکړ په مثل د دي فعل په
دویم رکعت کې. د دي حدیث روایت ابوداؤد او نسائي کړي او اسناد ئي صحیح دي.

﴿۱۰۳۲﴾ وَعَن عَبدِالله بنِ عَمرٍو رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اِنْكَسَفَتِ الشَّمسُ عَلى عَهدِ رَسُولِ الله ﷺ فَقَامَ رَسُولُ الله ﷺ لَم يكد يركعُ ثُمَّ رَكعَ فَلَم يكد يرفعُ ثُمَّ رَفعَ فَلَم يكد يسجُدُ ثُمَّ سَجَدَ فَلَم يكد يرفعُ ثُمَّ رَفعَ فَلَم يكد يسجُدُ ثُمَّ سَجَدَ فَلَم يكد يرفعُ ثُمَّ رَفعَ وَفَعَلَ فِي الرَّكعَة الأُخرٰى مِثلَ ذٰلِك رواه ابوداود وآخرون واسناده حسن.(۱)

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه ویلي دي چې تندر نیولي ؤ نمر په زمانه د رسول اکرم ﷺ کې نو ودریده په مانځه رسول الله ﷺ نزدي نه ؤ چې رکوع ئي کړي وي بیا ئي رکوع وکړه نزدي نه ؤ چې اوچت شوي وي د رکوع نه بیا اوچت شو نزدي نه ؤ چې سجده ئي کړي وي بیا ئي سجده وکړه نزدي نه ؤ چې اوچت شوي وي بیا اوچت شو نزدي نه ؤ چې سجده ئي کړي وي بیا ئي سجده وکړه نزدي نه ؤ چې اوچت شوي و بیا اوچت شو او فعل ئي وکړ په بل رکعت کې د دي په شان. د دي حدیث روایت ابوداؤد او نورو محدثینو کړي او اسناد ئي حسن دي.

﴿۱۰۳۳﴾ وعَن مَحمُودِ بنِ لَبِيدٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَسَفَتِ الشَّمسُ يومَ مَاتَ إبرَاهِيمُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ بنُ رَسُولِ الله ﷺ فَقَالُوا كَسَفَتِ الشَّمسُ لِمَوتِ إبرَاهِيمَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَقَالَ رَسُولُ الله ﷺ

---

(۱) ابوداؤد كتاب الكسوف ج۱ص۱۶۹ باب من قال يركع ركعتين.

اِنَّ الشَّمسَ وَالقَمَرَ آيَتَانِ مِن آيَاتِ الله عزوجل اَلاَ وَاِنَّهمَا لاَ يَنكسِفَانِ لِمَوتِ اَحَدٍ وَلالِحَيَاتِه فَاِذَا رَأَيتُمُوهَا كذٰلِك فَافزَعُوا اِلَى المَسَاجِدِ ثُمَّ قَامَ فَقَرَأَ فِيمَا نَرىٰ بَعضَ آلر كتَابٌ ثُمَّ رَكعَ ثُمَّ اعتَدَلَ ثُمَّ سَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ قَامَ فَفَعَلَ مِثلَ مَا فَعَلَ فِي الأُولىٰ رواه احمد واسناده حسن.[1]

**ترجمه**: حضرت محمود بن لبيد رضي الله عنه ويلي دي چې تندر نيولي و نمر په هغه ورځ چې وفات شوي وُ ابراهيم رضي الله عنه خوي د رسول الله صلى الله عليه وسلم نو خلكو ويل چې نمر تندر نيولي دي د وجهې د مرګ د ابراهيم رضي الله عنه نه نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې بې شكه نمر او سپوږمۍ دوه نښې دي د نښو د قدرت د الله جل شانه نه خبردار په تحقيق دا دواړه نه توريږي نه متغير كيږي د وجهې د مرګ د چا نه او نه د وجهې د ژوند د چانه نو كله چې تاسي دا دواړه په دغه حالت كې وګورئ نو وُړه ويږئ مسجد طرف ته لاړ شئ بيا په مانځه وُدريده نو تلاوت ئې كړ زمونږ په خيال دا (الر كتب) د سورت څه برخه بيا ئې ركوع وكړه بيا نيغ او برابر شو بيا ئې سجده وكړه دوه سجدې بيا ودريده نو عمل ئې وكړ په مثل: هغې چې په اول ركعت كې ئې كړي وُ . د دې حديث روايت احمد كړي او اسناد ئې حسن دي

﴿۱۰۳۴﴾ وَعَنِ النُّعمَانِ بنِ بَشِيرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى فِي كسُوفِ الشَّمسِ نَحوًا مِن صَلٰوتِكم يَركعُ وَيسجُدُ رواه احمد والنسائي واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شكه رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د كسوف مونځ كړي وُ په شان د مانځه ستاسي ركوع ئې وكړ او سجده ئې وكړه . د دې حديث روايت احمد او نسائي كړي دي او اسناد ئې صحيح دي.

﴿۱۰۳۵﴾ وَعنه اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَاخُسِفَتِ الشَّمسُ وَالقَمَرُ فَصَلُّوا كاَحدَثِ صَلٰوة صَلَّيتُمُوهَا رواه النسائي وزاد فِي رواية مِنَ المَكتُوبَة واسنادهما صحيح.[3]

**ترجمه**: او د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي كله چې نمر او سپوږمۍ تندرونيسي نو مونځ وكړئ په شان د نزدې مونځ چې كړي تاسو هغه اوس.

---

[1] مسند احمد ج ۵ صــ ۴۲۸.

[2] مسند احمد ج ۴ صــ ۲۷۱ ، نسائي كتاب الكسوف ج۱ صــ ۲۲۰ باب كيف صلوة الكسوف .

[3] نسائي كتاب الكسوف ج۱ صــ ۲۱۹ باب كيف صلوة الكسوف .

د دي حديث روايت نسائي كړي او نسائي په يو روايت كې دا الفاظ زيات كړي دي لكه چې تاسي اوس فرض مونځ كړي دي. او د دي دواړو اسناد صحيح دي.

## ﴿ بَابُ القِرَاءَ ةِ بِالجَهرِ فِي صَلٰوةِ الكُسُوفِ ﴾

## باب دي د قرأت په جهر سره په مانځه د كسوف كې

﴿۱۰۳۶﴾ عن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ جَهَرَ فِي الخُسُوفِ بِقِرَاءَتِه فَصَلّٰى اَربَعَ رَكعَاتٍ فِي رَكعَتَينِ وَاَربَعَ سَجَدَاتٍ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم په زور قرأت كړي دي په كسوف كې نو مونځ ئي كړي دي څلور ركوع ګاني په دوه ؤ ركعتونو كې او څلور سجدي دا حديث شيخينو روايت كړي دي.

## په صلاة الكسوف كي به قرأت سرا وي او كه جهرا؟

۱- دامام ابو حنيفه، مالک، شافعي او دجمهور فقهاؤ په نزد سرا قرأت مسنون دي.

۲- دامام احمد او صاحبينو په نزد جهري قرأت مسنون دي.

### دامام احمد او صاحبينو دليل :

(۱) حديث عائشه رضى الله عنها. جهر فى الكسوف بقرأته. په ترمذي كي دغه شان دي. " ان النبي صلى الله عليه وسلم صلى صلاة الكسوف وجهر بالقراءة فيهما ". (ترمذي شريف ۱\۱۲۶)

### دجمهورو دليلونه :

(۱) دراروان باب حديث سمرة رضى الله عنه نمبر ۱۰۳۸ : "لانسمع له صوتا".

(۲) حديث ابن عباس رضى الله عنه نمبر ۱۰۳۹ : "فلم اسمع له قراءة".

(۳) حديث محمود بن لبيد رضى الله عنه ۱۰۳۴ : فقرأ فيما نرى بعض (الركتب) په دي كي لفظ " فيما نرى " (زمونږ په خيال كي ده دومره قرأت كړې) نه خبر معلوميږي چې قرأت سرى وو څكه كه جهري وو نو صيغه جزم (يقين) په استعمال كيده.

---

(۱) مسلم كتاب الكسوف ج۱ص ۲۹۶ فصل صلوة الكسوف ركعتان، بخاري كتاب الكسوف ج۱ص ۱۴۵ باب الجهر بالقراءة في الكسوف.

## امام احمد او صاحبينو لره جواب :

په ابوداؤد شريف کي حديث دعائشي رضی الله عنها لفظونه دادي په (حزرت قراءته فرأيت قرأت الله قرأ سورة البقرة) کي دنبي کريم صلی الله عليه وسلم قرأت لره اوکتل نواندازه موا ولګوله چي نبي کريم صلی الله عليه وسلم به سورة بقرة لوستلې وي (ابوداؤد ۱ \ ۱۶۸ ) اوپه دويم حديث دعائشي رضی الله عنها کي دي "قرأ قراءة طويلة فجهر بها".
غرض په دي باب کي دعائشي رضی الله عنها نه جهراً اوسرا دواړه ثابت دي .

## دحضرت عائشي رضی الله عنها ذکر شوي روایاتونو کي تطبيق .

۱- په جهر والا روايت کي صلاة الکسوف نه مراد خسوف دسپوږمي وي لکه څنګه چي دبخاري ارمسلم په يو روايت کي دي جهر في الخسوف . بعضې آياتونو لره يي جهرا لوستلې ددې دپاره چي تعليم وي، طحاوي رحمة الله عليه دې تاويل لره خوښ کړې دي . [حاشية طحاوي على المراقي ص ۵۴۵]
متأخرينو دمقتديانو دسترې والي په صورت جهري قرأت لره اختيار کړي دي .(درس ترمذي )

## ﴿ بَابُ الاِخفَاءِ بِالقِرَاءَةِ فِي صَلٰوةِ الكُسُوفِ ﴾

## باب د پټ ويلو د قرأت په مانځه د کسوف کي

(۱۰۲۷) عن سَمُرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِيَ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلّٰى بِهِم فِي كُسُوفِ الشَّمسِ لَا نَسمَعُ لَه صَوتاً رواه الخمسة واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د حضرت سمره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ وکړ صحابه وُ ته په کسوف د نمر کې نه دي اوريدلي مونږ د هغه اواز . دا حديث پنځو محدثينو روايت کړي دي . او اسناد ئي صحيح دي .

(۱۰۲۸) وعنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ صَلَّيتُ اِلٰى جَنبِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يومَ كَسَفَتِ الشَّمسُ فَلَم اَسمَع لَه قِرَاءَةً رواه الطبراني واسناده صحيح.[2]

---

(۱) ترمذي ابواب صلوة الكسوف ج۱ص ۱۲۶ باب كيف القراءة في الكسوف ، ابوداؤد كتاب الكسوف ج۱ص۱۶۸ باب من قال اربع ركعات ، نسائي كتاب الكسوف ج۱ص ۲۲۲ باب ترك الجهر فيها بالقراءة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ج۱ص ۹۱ باب ماجاء في صلوة الكسوف مسند احمد ج ۵ ص ۱۴.
(۲) المعجم الكبير للطبراني ج۱۱ ص ۲۴۰ برقم ۱۱۶۱۲.

**ترجمه :** حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې مونځ کړيؤ ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم په خوا کې په هغه ورځ کې چې تور شوي ؤ نمر نو ما نه و اوريدلي قرأت د هغه . د دي حديث روايت طبراني کړي او اسناد ئې صحيح دي .

# ﴿ بَابُ صَلٰوةِ الْإِسْتِسْقَاءِ ﴾

## باب دي د مانځه د باران د غوښتو

﴿۱۰۲۹﴾ عَن عَبدِالله بنِ زَيدٍ رضي الله عنه قَالَ رَأَيتُ النَّبِيَّ صلى الله عليه وسلم يومَ خَرَجَ يستَسقِي قَالَ فَحَوَّلَ اِلَى النَّاسِ ظَهرَه وَاستَقبَلَ القِبلَةَ يدعُو ثُمَّ حَوَّلَ رِدَاءَه ثُمَّ صَلّٰى لَنَا رَكعَتَينِ رواه الشيخان وزاد البخاري جَهرَ فِيهِمَا بِالقِرَاءَةِ.[۱]

**ترجمه :** حصرت عبدالله بن زيد رضي الله عنه ويلي دي چې ما ليدلي ؤ نبي کريم صلى الله عليه وسلم په هغه ورځ چې د باندي راوتلي ؤ د پاره د باران د غوښتلو عبدالله بن زيد ويلي دي چې هغه خپله شاه مبارکه خلکو طرف ته واړوله او د قبلي په طرف ئې مخ مبارک ګرځولي ؤ دعا ئې کوله بيا ئې څادر مبارک واړاوه بيا ئې مونځ وکړ مونږ ته دوه رکعته . د دي حديث روايت شيخينو کړي دي او زيات کړي دي بخاري دغه الفاظ هغه په زوره قرأت ويلي ؤ په دواړو رکعتونو کې .

﴿۱۰۳۰﴾ وَعَنه قَالَ خَرَجَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم اِلَى المُصَلّٰى وَاستَسقٰى وَحَوَّلَ رِدَاءَه حِينَ اِستَقبَلَ القِبلَةَ وَبَدَأَ بِالصَّلٰوةِ قَبلَ الخُطبَةِ ثُمَّ استَقبَلَ القِبلَةَ فَدَعَا رواه احمد واسناده صحيح.[۲]

**ترجمه :** او عبدالله بن زيد رضي الله عنه ويلي دي چې تشريف راوړ رسول اکرم صلى الله عليه وسلم عيدګاه ته او د باران غوښتنه ئې وکړه او خپل مبارک څادر ئې ولاړ اوه کله ئې چې قبلي ته مخ کاوه او شروع ئې په مانځه وکړه مخکې د خطبي نه بيا ئې قبلي طرف ته مخ کړ نو دعا ئې وکړه . د دي حديث روايت احمدل کړي دي او اسناد ئې صحيح دي .

﴿۱۰۳۱﴾ وَعَنه قَالَ اِنَّ رَسُولَ الله صلى الله عليه وسلم اِستَسقٰى وَعَلَيهِ خَمِيصَة لَه سَودَاءُ فَاَرَادَ اَن يَاخُذَ بِأَسفَلِهَا فَيجعَلَه اَعلَاهَا فَثَقُلَت عَلَيهِ فَقَلَّبَهَا عَلَيهِ الاَيمَنَ عَلَى الاَيسَرِ وَالاَيسَرَ عَلَى الاَيمَنِ رواه احمد

---

(۱) بخاري ابواب الاستسقاء ج۱ص۱۳۹ باب کيف حول النبي صلى الله عليه وسلم ظهره الي الناس،مسلم کتاب صلوة الاستسقاء ج۱ص ۲۹۲ .
(۲) مسند احمد ج ۴ صـــ ۴۱.

وابوداود واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن زید رضي الله عنه وايي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د باران طلب او دعاء وكړه او په ده باندې د ده توره كمبله وه نو هغه اراده وكړه چې ونيسي لاندې طرف د دې كنبلې او وي ګرځوي او چت طرف د دې نو سخت شو په ده باندې دا كار نو هغه واړاوه ښيء طرف د كنبلې په چپ طرف باندې او چپ طرف د كنبلې په هې طرف د هغې باندې . د دې حديث روايت احمد او ابوداؤد كړي دي او اسناد ئې حسن دي .

(۱۰۲۲) وَعَن اَبِي هريرة رضي الله عنه قَالَ خَرَجَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم يومَ يستَسقِي فَصَلَّى بِنَا رَكعتَين بِلَا اَذَانٍ وَلَا اِقَامَة ثُمَّ خَطَبَنَا وَدَعَا الله وَحَوَّلَ وَجهه نَحوَ القِبلَة رَافِعًا يدَيه ثُمَّ قَلَّبَ رِدَاءَه فَجَعَلَ الاَيمَنَ عَلَى الاَيسَرِ وَالاَيسَرَ عَلَى الاَيمَنِ رواه ابن ماجة وآخرون واسناده حسن.[2]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي دي چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم د باندې تشريف راوړ په هغه ورځ چې د باران د پاره ئې دعاء كوله نو مونځ ئې وكړ مونږ ته دوه ركعته په غير د اذان او اقامت نه بيا ئې مونږ ته خطبه ولوستله او دعاء ئې وكړه د الله جل شانه نه او واړاوه مخ مبارك خپل په طرف د قبلې چې أوچتوونكي و دواړو لاسونو لره بيا ئې واړاوه څادر مبارك خپل نو وي ګرځاوه ښي طرف په چپ طرف باندې او چپ طرف په ښي طرف باندې . د دې حديث روايت ابن ماجه كړي او نورو محدثينو كړي او اسناد ئې حسن دي .

(۱۰۲۳) وَعَن عَائِشَة رضي الله عنها قَالَت شَكَا النَّاسُ اِلَى رَسُولِ الله صلى الله عليه وسلم قُحُوطَ المَطَرِ فَاَمَرَ بِمِنبَرٍ فَوُضِعَ لَه فِي المُصَلَّى وَوَعَدَ النَّاسَ يومَ يخرُجُونَ فِيه قَالَت عَائِشَة فَخَرَجَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم حِينَ بَدَا حَاجِبُ الشَّمسِ فَقَعَدَ عَلَى المِنبَرِ فَكَبَّرَ وَحَمِدَ الله عزوجل ثُمَّ قَالَ اِنَّكم شَكوتُم جَدبَ دِيارِكم وَاستِيخَارَ المَطَرِ عَن اِبَّانِ زَمَانِه عَنكم وَقَد اَمَرَكُمُ الله عزوجل اَن تَدعُوه وَوَعَدَكم اَن يستَجِيبَ لَكم ثُمَّ قَالَ الحمد لله رب العالمين الرحمن الرحيم ملك يوم الدين لَا اِلٰهَ اِلَّا الله يفعَلُ مَا يرِيدُ اَللّٰهمَّ اَنتَ الله لَا اِلٰهَ اِلَّا اَنتَ الغَنِي وَنَحنُ الفُقَرَاءُ اَنزِل عَلَينَا الغَيثَ وَاجعَل مَا اَنزَلتَ قُوَّة وَبَلَاغًا اِلَى حِينٍ ثُمَّ رَفَعَ يدَيه فَلَم يزَل فِي الرَّفعِ حَتّٰى بَدَا بَيَاضُ اِبطَيه ثُمَّ حَوَّلَ اِلَى

(۱) مسند احمد ج۴ص۴۱ ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ص۱۶۴ جامع ابواب صلوة الاستسقاء ...الخ .

(۲) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص۹۱ باب ماجاء في صلوة الاستسقاء .

النَّاسِ ظَهرَه وَقَلَّبَ اَو حَوَّلَ رِدَاءَه وَهوَ رَافِعٌ يَدَيه ثُمَّ اَقبَلَ عَلَى النَّاسِ وَنَزَلَ فَصَلّٰى رَكعَتَينِ فَاَنشَاَ الله سَحَابَةً فَرَعَدَت وَبَرَقَت ثُمَّ اَمطَرَت بِاِذنِ الله فَلَم يَاتِ مَسجِدَه حَتّٰى سَالَتِ السُّيولُ فَلَمَّا رَاٰى سُرعَتَهم اِلَى الكِنِّ ضَحِكَ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَت نَوَاجِذُه فَقَالَ اَشهدُ اَنَّ الله عَلٰى كُلِّ شَيءٍ قَدِيرٌ وَاَنِّي عَبدُالله وَرَسُولُه رواه ابوداود وقال هذا حديث غريب اسناده جيد.(۱)

**ترجمه** : او حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې شکايت وکړ خلکو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د باران د قحط په باره کې نو هغه امر وکړ د منبر په باره کې نو کښښودل شو ده ته په عيدګاه کې نو وعده ئي وکړه د خلکو سره يوه ورځ چې راوځي به خلک په دې ورځ کې حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي چې راوتې ؤ رسول الله صلی الله علیه وسلم په هغه وخت کې چې ښکاره شوې وه يوه برخه د نمر نو په منبر باندې کيناست نو تکبير ئي ووايه او حمد او ثناء ئي د الله جل شانه وويله بيا ئي وويل چې بې شکه تاسو شکايت کړې ؤ د خشکئ د ښارونو خپلو او د روسته کيدو د باران د خپل وخت نه د ستاسي نه او په تحقيق امر کړې تاسي ته الله جل شانه چې تاسي ئي د الله جل شانه نه وغواړئ او وعده ئي کړې ده تاسي سره چې قبوله به کړي دعاء ستاسي نو بيا ئي وويل :الحمد لله رب العالمين الرحمن الرحيم ملك يوم الدين لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله يفعَلُ مَا يرِيدُ اَللّٰهمَّ اَنتَ الله لَا اِلٰه اِلَّا اَنتَ الغَنِيُّ وَنَحنُ الفُقَرَاءُ اَنزِل عَلَينَا الغَيثَ وَاجعَل مَا اَنزَلتَ قُوَّةً وَبَلَاغًا اِلٰى حِينٍ ثُمَّ رَفَعَ يَدَيه فَلَم يزَل فِي الرَّفعِ حَتّٰى بَدَا بَيَاضُ اِبطَيه ثُمَّ حَوَّلَ اِلَى النَّاسِ ظَهرَه وَقَلَّبَ اَو حَوَّلَ رِدَاءَه وَهوَ رَافِعٌ يَدَيه ثُمَّ اَقبَلَ عَلَى النَّاسِ وَنَزَلَ فَصَلّٰى رَكعَتَينِ فَاَنشَاَ الله سَحَابَةً فَرَعَدَت وَبَرَقَت ثُمَّ اَمطَرَت بِاِذنِ الله فَلَم يَاتِ مَسجِدَه حَتّٰى سَالَتِ السُّيولُ فَلَمَّا رَاٰى سُرعَتَهم اِلَى الكِنِّ ضَحِكَ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى بَدَت نَوَاجِذُه فَقَالَ اَشهدُ اَنَّ الله عَلٰى كُلِّ شَيءٍ قَدِيرٌ وَاَنِّي عَبدُالله وَرَسُولُه رواه ابوداود وقال هذا حديث غريب اسناده جيد.

**ترجمه** : يعني هر حمد او ثنا الله جل شانه لره ده چې رب د ټول عالم دي رحمٰن او رحيم دي بادشاه د ورځي د جزا دي خاص تا ته عبادت کوو او خاص تا نه مدد غواړو نشته بل معبود مستحق د عبادت غير د الله جل شانه نه کوي هغه چې اراده ئي وکړي اي الله ته الله ئي نشته بل معبود غير ستا نه ته

(۱) ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۶۵ باب رفع اليدين في الاستسقاء .

غني ئي مونږ فقيران يو نازل كړه په مونږ باندي باران او ؤ گرځوه هغه چې نازل كړي دي تا قوت او رسيدونكي حاجتونو زمونږ ته تر يو وخته پوري بيا ئي اوچت كړل دواړه مبارك لاسونه نو هميشه پورته ؤ تر دي پوري چې ښكاره كيدل دواړه ترخونه د هغه بيا ئي خلكو ته شا كړه او واړي راوه څادر مبارك خپل او اوچت ؤ لاسونه مبارك د ده بيا خلكو ته مخامخ شو او راخكته شو نو مونځ ئي وكړ دوه ركعته نو راپيدا كړه الله وريځ ؤغريده او بريښنا شوه بيا باران وشو د الله جل شانه په اذن سره مسجد ته لانه ورسيدلي چې ناوي سيلابونه ؤبهيدل كله چې نبي اكرم ﷺ وليده چابكي د دوي بناګاهونو خپلو نه وي خندل تر دي پوري چې ښكاره شو مخامخ غاهونه مبارك د ده نو وي فرمايل چې زه ګواهي وركوم چې الله جل شانه په هر يو شئ باندي قدرت والا دي او بي شكه زه د الله جل شانه بنده او د ده رسول يم . د دي حديث روايت ابوداود كړي دي او ويلي ئي دي چې دا حديث غريب دي او اسناد ئي جيد دي .

﴿۱۰۲۲﴾ وَعَنِ إِسحَاقَ بنِ عَبدِالله بنِ كنَانَة قَالَ أرسَلَنِي أمِيرٌ مِنَ الأمَرَاءِ إلَى ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ أسئَلُه عَنِ الإستِسقَاءِ فَقَالَ ابنُ عَبَّاسٍ مَامَنَعَه أن يسألَنِي خَرَجَ رَسُولُ الله ﷺ مُتَوَاضِعًا مُبتَذِلًا مُتَخَشِعًا مُتَضَرِعًا فَصَلّى رَكعَتَينِ كمَا يصَلِي فِي العِيدَينِ وَلَم يخطُب خُطبَتَكم هٰذِهٖ رواه النسائي وابوداود واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : اسحاق بن عبدالله بن كنانه ويلي دي چې وليږلم زه يو امير د اميرانو نه ابن عباس رضي الله عنه ته چې پوښتنه وكړه د ده نه د استسقاء په باره نو ابن عباس رضي الله عنه وويل څه شي منع كړي ؤ هغه لره چې هغه زمانه پوښتنه كړي وي راوتلي ؤ رسول الله ﷺ عاجزي كوونكي زړه جامه اغوستونكي خشوع كونكي زاري كوونكي نو مونځ ئي وكړ دوه ركعته لكه چې مونځ به ئي كاوه په اختر كې او خطبه به ئي نه ويله ستاسي د خطبي په شان. د دي حديث روايت نسائي او ابوداؤد كړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

## داستسقاء يو څو مسائل :

استسقاء د سقيانه ماخوذ دي يعني باران او د استسقاء معنى ده د الله تعالى نه باران طلب كول د دي مشروعيت په شپږمه هجري كي شوي او دا د دي امت د خصوصياتو نه دي (الدر المنضود ۴۶۳)

[1] نسائي كتاب الاستسقاء ج۱ صـ ۲۲۶ باب كيف صلوة الاستسقاء ، ابوداؤد كتاب الصلوة ج۱ صـ ۱۶۵ جماع ابواب الاستسقاء ...

**اولني مسئله** : په دې خبره باندې دټولو اتفاق دې چې داستسقاء دپاره په خلاص ميدان کې الله تعالى ته ډيره زارې منت کول اودرحمت دباران دعا غوښتل سنت دې ليکن داستسقاء دپاره دخاص مونځ په باره کې اختلاف دې .

١_ دجمهورو علماؤ ائمه ثلاثو اوصاحبينو په نزد استسقاء دپاره مونځ په جماعت سره مشروع اوسنت دې .

٢_ دامام اعظم رَحِمَهُ اللّٰهُ په نزد ددې حقيقت دعا اواستغفار دې يعني سنت استسقاء صرف دمونځ سره خاص نه دې بلکه صرف ددعا اواستغفار سره هم داسنت اداکيږي .

## دائمه ثلاثو اوصاحبينو استدلال .

دباب په ډيرو رواياتونوچې په کومو کې "صلى لنا ركعتين" ، "بدأ بالصلاة" او "فصلى ركعتين كما يصلى في العيدين" وغيره لفظونه راغلي دي ددې نه داستسقاء دپاره دمونځ ثبوت ښکاره دې .

## دامام صاحب رَحِمَهُ اللّٰهُ دلائل :

١- قوله تعالى: (استغفروا ربكم انه كان غفارا يرسل السماء عليكم مدرارا) (نوح )دباران نازل کيدل لره يې په استغفار باندې مرتب کړې دې .

٢- په يو څوډير احاديثو کې په سند صحيح سره داستسقاءدپاره په دعااواستغفار باندې کافي کيدل نقل شوي دي .مثلا دجمعې دخطبې په دوران کې رفع رسول الله صلى الله عليه وسلم يديه فقال اللهم اغثنا ......."الخ (بخاري شريف ١٣٨\١ )"فدعا فمطرنا من الجمعة الى الجمعة" (بخارى شريف ١٣٨\١)وغيره .

٣- حضرت عمر رضى الله عنه داستسقاء دپاره دوتلو اومنبر باندې ودريدلواو (استغفرو ربكم ....الاية) تلاوت يې اوفرمايلو اوددعا اواستغفار نه علاوه يې هيڅ اونه کړل .(معارف السنن ٤٩٤\٤ )

## جمهورو ته جواب اوداحاديثو په مينځ کې تطبيق :

استسقاء دنبي عليه السلام نه تقريبا شپږځله نقل شوي ده ليکن په شپږو کې يوځل دمونځ ثبوت ملاويږي .نو بيامونځ ته سنت څنګه ويلي کيږي ځکه چې سنت دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دائمي معمول ياکم ازکم اکثر ته ويلي شي دلته دغه شان نه دي .لهذا په استسقاءکې کله مونځ اوکله دعا دواړه اوکله صرف دعااواستغفار مسنون دي .

**دویمه مسئله** : دائمه اربعو رحمهم الله په نزد د استسقاء په مونځ کې به قرأت جهرا وي کما في روایة البخاري : "جهر فیهما بالقراءة".

**دریمه مسئله** :دامام شافعي او داحمد رحمهم الله په نزد داستسقاء مونځ داخترونو په شان دولس تکبیرونو زوائدو باندې مشتمل وي ددوي استدلال حدیث دابن عباس رضي الله عنه : " **فصلی رکعتین کمایصلي في العیدین** " نه دې . امام مالک رحمه الله او ابویوف رحمه الله په نزد په دې کې زوائد تکبیرات نشته بلکې دنوروه ونځونو په شان صرف یوتکبیرتحریمه ده چونکه په اکثروروایاتوکې مطلق "رکعتینو" ذکر دې ځکه دابن عباس رضي الله عنه په حدیث کې به تشبیه په تکبیرات زوائد کې نه وي بلکې دمونځ په تعداد رکعات ، وخت مستحب ، خروج الی المیدان او عمومي اجتماع کې به وي . والله اعلم

**څلورمه مسئله** : په استسقاء کې "تحویل درداء" یعنې څادر اړول په غرض دتفاؤل ( یعنې چې په کوم حالت کې راشي په هغه حالت کې به واپس نه ځي ) دحضور صلی الله علیه وسلم نه ثابت دي . اوي دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد دا تحویل دامام او مقتدي دواړو لپاره مسنون دې ځکه چې په روایاتو کې صرف دحضور صلی الله علیه وسلم دتحویل رداء ذکر راغلې دی لهذا غیر مدرک بالقیاس امر لره به په همدې مورد باندې بند پریخودلې کیږي. (بدایة المجتهد ،ص: ۱۷۴).

**پینځمه مسئله** : تحویل درداء طریقه داده که چرته څادر ګول وي نو څادر چي کوم سر په ښي اړخ باندي وي نو هغه به ګس اړخ باندي کړي اوچي کوم په ګس اړخ باندي وي هغي لره به په ښي طرف باندي کړي که چرته څلور طرفه وي نو اعلی لره به په اسفل او اسفل لره به په اعلی کړي او که چرته قباوي نو هغي لره به اولټه کړي یعني دننه طرف به بهر اوبهرني طرف به دننه کړي (الدرالمنصود ۴۶۵\۲:)

**شپږمه مسئله** :دائمه ثلاثه (امام مالک ،شافعي واحمد )په نزد دمونځ نه پس خطبه اودخطبي دفارغ کیدو نه پس تحویل رداء ده اودامام ابو یوسف په نزد دمونځ نه پس خطبه اودویمه خطبه دتحویل رداء موقع ده(بدایة المجتهد ،ص :۱۷۴ )دخطبي نه پس قبلي ته مخ کول اودعا غوښتل بالاتفاق دي .

# ﴿بَابُ صَلٰوةِ الخَوفِ﴾

## باب دويرې مونځ

﴿۱۰۲۵﴾ عَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ اَقبَلنَا مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حَتّٰى اِذَا كُنَّا بِذَاتِ الرِّقَاعِ قَالَ كُنَّا اِذَا اَتَينَا عَلٰى شَجَرَةٍ ظَلِيلَةٍ تَرَكنَاهَا لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ فَجَاءَ رَجُلٌ مِّنَ المُشرِكِينَ وَسَيفُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مُعَلَّقٌ بِشَجَرَةٍ فَاَخَذَه فَاختَرَطَه ثُمَّ قَالَ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَتَخَافُنِي قَالَ لَا قَالَ فَمَن يَمنَعُكَ مِنِّي قَالَ اللهُ يَمنَعُنِي مِنكَ قَالَ فَتَهَدَّدَه اَصحَابُ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَاَغمَدَ السَّيفَ وَعَلَّقَه قَالَ ثُمَّ نُودِيَ بِالصَّلٰوةِ فَصَلّٰى بِطَائِفَةٍ رَكعَتَينِ ثُمَّ تَاَخَّرُوا وَصَلّٰى بِالطَّائِفَةِ الاُخرٰى رَكعَتَينِ قَالَ فَكَانَت لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَربَعُ رَكَعَاتٍ وَلِلقَومِ رَكعَتَانِ رواه مسلم والبخاري تعليقا.[1]

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې لاړو مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره تردې پورې چې ورسيدو مونږ ذات الرقاع ته حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي کله به چې مونږ سوري والا ونې ته ورغلو نو هغه به مو رسول الله صلى الله عليه وسلم ته پريښوده حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې د مشرکينو يو کس راغي او توره د رسول الله صلى الله عليه وسلم په ونه کې زوړنده وه نو هغه ئې راواخسته او د تيکي نه ئې راوويسته بيا ئې رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل چې آيا ته زمانه يريږې هغه ورته وفرمايل چې نه مشرک ورته وويل چې څوک به دې زما نه خلاص کړي هغه صلى الله عليه وسلم ورته وويل چې الله به مې درنه خلاص کړي جابر رضي الله عنه ويلي دي چې وراته دې مشرک لره اصحابو د رسول الله صلى الله عليه وسلم نو توره ئې په تيکي کې ننويستله او زوړند ئې کړله حضرت جابر رضي الله عنه وائي چې بيا اذان وکړې شو د ماښځه نو مونځ ئې وکړيو ډلې ته دوه رکعته بيا دوي روسته شول او مونځ ئې وکړ بلې ډلې ته دوه رکعته نو راوي وائي چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم څلور رکعته شو او د قوم دوه رکعته شو. د دې حديث روايت بخاري کړي دي تعليقًا.

﴿۱۰۲۶﴾ وَعَن عَبدِالله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ غَزَوتُ مَعَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجدٍ فَوَازَينَا العَدُوَّ فَصَافَفنَا لَهُم فَقَامَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يُصَلِّي لَنَا فَقَامَت طَائِفَةٌ مَعَه وَاَقبَلَت طَائِفَةٌ عَلٰى

---

(۱) مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱صــ ۲۷۹ باب صلوة الخوف ، بخاري كتاب المغازي ج۲صــ ۵۹۲ باب غزوه ذات الرقاع تعليقًا

الْعَدُوِّ فَرَكَعَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِمَنْ مَعَه وَسَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ انصَرَفُوا مَكَانَ الطَّائِفَةِ الَّتِي لَم تُصَلِّ فَجَاؤُا فَرَكَعَ رَسُولُ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِهِم رَكعَة وَسَجَدَ سَجدَتَينِ ثُمَّ سَلَّمَ فَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنهم فَرَكَعَ لِنَفسِه رَكعَة وَسَجَدَ سَجدَتَينِ رواه الجماعة.[1]

**ترجمه** : حضرت عبدالله بن عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ويلي دي چې ما غزا كوله د رسول اكرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د نجد په طرف باندي نو مخامخ شو مونږ د دشمن سره نو مونږ صفونه جوړ كړل دوي ته نو رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ پاڅيده مونږ ته ئي مونځ كاوه نو يوه ډله د ده سره ودريدله او بله ډله دشمن ته مخامخ شوه نو يوه ركوع وكړه رسول اكرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغه چاته چې د ده سره وو او دوه ئي سجدي وكړي بيا دوي واپس شو د هغه ډلي په ځاي چې مونځ ئي نه وو كړي نو هغو راغلل نو ركوع وكړه رسول اكرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هغو ته يوه ركوع او سجده ئي وكړه دوه سجدي بيا ئي سلام واړاوه نو پاڅيده هريو د دوي نه نو ركوع ئي وكړه ځانته يوه ركوع او سجده ئي وكړه دوه سجدي. د دي حديث روايت د محدثينو جماعت كړي دي.

﴿۱۰۲۷﴾ وَعَن نَافِعٍ أَنَّ عَبدَالله بنِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ كَانَ إِذَا سُئِلَ عَنِ صَلٰوة الخَوفِ قَالَ يَتَقَدَّمُ الإِمَامُ وَطَائِفَة مِنَ النَّاسِ فَيُصَلِّي بِهِمُ الإِمَامُ رَكعَة فَتَكونُ طَائِفَة مِنهم بَينَه وَبَينَ العَدُوِّ وَلَم يُصَلُّوا فَإِذَا صَلَّى الَّذِينَ مَعَه رَكعَة إِستَأخَرُوا مَكَانَ الَّذِينَ لَم يُصَلُّوا وَلَا يُسَلِّمُونَ وَيَتَقَدَّمُ الَّذِينَ لَم يُصَلُّوا فَيُصَلُّونَ مَعَه رَكعَة ثُمَّ يَنصَرِفُ الإِمَامُ وَقَد صَلَّى رَكعَتَينِ فَيَقُومُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنَ الطَّائِفَتَينِ فَيُصَلُّونَ لِأَنفُسِهِم رَكعَة رَكعَة بَعدَ أَن يَنصَرِفَ الإِمَامُ فَيَكونَ كُلُّ وَاحِدَة مِنَ الطَّائِفَتَينِ قَد صَلُّوا رَكعَتَينِ فَإِن كَانَ خَوفًا هُوَ أَشَدُّ مِن ذٰلِك صَلُّوا رِجَالًا قِيَامًا عَلٰى أَقدَامِهِم أَو رُكبَانًا مُستَقبِلِي القِبلَة وَغَيرَ مُستَقبِلِيهَا قَالَ مَالِك قَالَ نَافِعٌ لَا أَرٰى عَبدَالله بنَ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حَدَّثَه إِلَّا عَن رَسُولِ الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه مالك في الموطا ثم البخاري من طريقه في كتاب التفسير من صحيحه.[2]

قَالَ النِّيمَوِي إِنَّ صَلٰوة الخَوفِ لَهَا أَنوَاعٌ مُختَلِفَة وَصِفَاتٌ مُتَنَوِّعَة وَرَدَت فِيهَا أَخبَارٌ صَحِيحَة.

---

(۱) بخاري ابواب صلوة الخوف ج۱ص ۱۲۸ ، مسلم كتاب فضائل القرآن ج۱ص ۲۷۸ باب صلوة الخوف ، ترمذي ابواب الصّلوة والسجدة ج۱ص ۱۲۶ باب ماجاء في صلوة الخوف ، ابوداؤد كتاب الصّلوة ج۱ص ۱۷۶ باب من قال يصلي بكل طائفة ركعة ، نسائي كتاب صلوة الخوف ج۱ص ۲۲۹ ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلوات ص ۹۰ باب ماجاء في صلوة الخوف مسند احمد ج۲ص ۱۵۰.

(۲) مؤطا امام كتاب صلوة الخوف ص ۱۷۰ ، بخاري كتاب التفسير ج۲ص ۶۵۰ باب قوله عزوجلّ وَإِنْ خِفْتُمْ فَرِجَالًا...الخ

**ترجمه** : د نافع نه روایت دي چې د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنه نه چې کله د ویرې د مانځه په باره کې پوښتنه وکړې شوه وې ویل چې امام به د خلکو یوې ډلې ته مخکې شي نو دوي ته به امام مونځ وکړي یو رکعت نو شي به یوه ډله د دو نه د امام او د دشمن تر منځ او مونځ ئې نه وي کړي کله چې اوکړي مونځ یو رکعت هغه کسان چې د دوي سره دي نو روسته به شي دوي په ځاي د هغه کسانو چې هغو مونځ نه دي کړي او دوي به سلام نه ګرځوي او را مخکې به شي هغه کسان چې مونځ ئې نه دي کړي نو مونځ به وکړي د امام سره یو رکعت بیا به امام سلام وګرځوي او په تحقیق مونځ وکړه دوه رکعته او وبه دریږي هر یو د دې دواړو ډلو نه نو مونځ به وکړي ځانله ځانله یو یو رکعت روسته د سلام د امام نه نو شي به د هرې یوې ډلې د پاره دوه رکعته او که چرته وي ویره سخته د دې نه نو مونځ دې وکړي پیاده په ولاړه په خپلو قدمونو باندې او یا په سورلئ سره چې مخامخ وي قبلې ته او که نه وي مخامخ قبلې ته ویلي دي مالک چې نافع ویلي دي زه ګومان نه کوم چې حضرت عبدالله ابن عمر رضی الله عنه باندې چې حدیث بیان کړي مګر د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه د دې حدیث روایت مالک کړي په موطا کې بیا بخاري د دهٔ د طریقې نه په کتاب التفسیر کې د صحیح خپل نه.

ویلي دي نیموي رحمه الله چې د خوف د مانځه د پاره مختلف انواع دي او قسم قسم صفتونه دي د دې په باره کې صحیح اخبار راغلي دي.

## دصلوة خوف (ویرې مونځ) متعلق څلور بحثونه :

**اولني بحث** : دجمهورو دقول مطابق دټولو نه مخکې صلاة الخوف شپږمه هجري کې دغزوه ذات الرقاع په موقع باندې د "عسفان" په مقام کې لوستلې شوې وو.

**دویم بحث** :دجمهورو په نزد دا مونځ نه دې منسوح شوې بلکه اوس هم مشروع دې البته دامام ابو یوسف نه یو شاذ روایت دادې چې دامونځ دنبي کریم صلی الله علیه وسلم سره خاص وو .امام ابو یوسف رحمه الله دصلاة الخوف آیت (**واذا کنت فیهم فاقمت لهم الصلاة**) (النساء ۱۰۲)دمخاطب صیغې نه استدلال کړې دې چې کوم نبي کریم صلی الله علیه وسلم لره دې او دا امر غیر مدرک بالقیاس دې لهذا په مورد باندې به ددې انحصار کیږي (بدایة المجتهد ،ص.۱۴۲) لیکن دجمهور صحابه کرامو په نزد دنبي کریم صلی الله علیه وسلم نه پس صلاة الخوف لوستل ثابت دي او په آیت کې خطاب صرف نبي علیه السلام لره نه دې بلکه دټول امت ائمه لره عام دې البته دصیغې مخاطبې فائده داده چې کله تاسو موجود یې نو خپل امت لره دصلاة الخوف طریقه په خپله ولولې او وښائې یعني په تعلیم قولي باندې اکتفاء مه کوي.

**دریم بحث** :دصلاة الخوف دکولو په طریقه کي ډیر زیات روایات دي په دي کي ډیر صحیح شپاړس (١٦) روایات دي چي په خپل مینځ کي یو بل سره بدل دي ، جائز ټول دي البته داحنافو په نزد اولی طریقه هغه ده چي دهغي ذکر په دباب په حدیث نمبر ١٠٤٦ او حدیث نمبر ١٠٤٧ کي راغلي دي یعني امیر دلښکر به دوه جماعتونه جوړ کړي یو جماعت به ددښمن په مقابله کي ودریږي اویو جماعت به دامام شاته ودریږي ،امام به دوي ته یو رکعت ولولي .چي یو رکعت ولولي نو داجماعت به ددښمن په مقابله کي لاړ شي اوچي کوم جماعت ددښمن په مقابله کي ولاړ وو نو هغه به دامام شاته راشي اوامام به هغوي ته هم یو رکعت ولولي دامام به دوه رکعتونه وشي ځکه به هغه خپل مونځ په یو ازي والي کي پوره کړي اوسلام به واړوي اودادویم جماعت چي دکومو دامام سره یو رکعت لوستلي دي ددښمن په مقابله کي به لاړشي ددي نه پس به اوس اولني جماعت خپل پاتي رکعت په دغه ځای کي یا چي په کوم ځای کي جماعت شوي وي هلته به لاړ شي اواوبه لولي اوسلام دي واړوي بیا ددي نه پس دویم جماعت هم خپل پاتي شوي رکعت به دغه شان ولولي اومونځ به پوره کړي .

په دي طریقه کي خو به تلل په حالت دمونځ کي لازم راشي لیکن مخکي والي په امام باندي لازم نه راځي کوم چي دجمهورو په طریقه کي موندلي کیږي .دائمه ثلاثه په نزد اولی صورت دادي چي کله اولني جماعت دامام سره یو رکعت ولولي نو هغه په دغه وخت کي به خپل دویم رکعت ځانله ولولي اوسلام به واړوي اوددښمن په مقابله کي به لاړ شي اوبیا به دویم جماعت راشي امام به دوي ته یو رکعت ولولي او داجماعت به هم په دغه وخت کي د ویم رکعت ولولي اوس داچي امام به ددویم رکعت لوستلو نه پس ددي دویم جماعت انتظار اوکړي په سلام کي اودواړه به په یو ځای سلام واړوي بیا به انتظار نه کوي بلکه امام به ځانله سلام واړوي دامختلف فیه ده، امام شافعي رَحِمَهُمَااللّٰهُ واحمد رَحِمَهُاللّٰهُ فرمایي چي انتظار به اوکړي اوچي کله دویم جماعت ددویم رکعت نه فارغ شي نو دواړه دي یو ځاي سلام واړوي امام مالک هم مخکي خو ددي قائله وو بیا هغوي ددي نه رجوع اوکړه اوو فرمایل ئي چي انتظار دي نه کوي .دشوافعو اوحنابلو استدلال دزید بن رومان دروایت نه دي اود مالکیو استدلال دقاسم بن محمد دروایت نه دي .

که چرته په حالت دحضر کي صلاة الخوف لوستل وي نو امام به اولني جماعت ته دوه رکعته اودویم ته دوه رکعته ولولي اودماښام په مونځ کي به اولنی جماعت ته دوه رکعته اودویم ته به یو رکعت ولولي .(البحر الرائق ١٤٩\٢ ،الدر المنضود ٥٤٩\٤ ...... ٥٠٠) .

**څلورم بحث** : صلاة الخوف دخپل مخصوص طریقي سره په هغي وخت کي لوستل اولی دي کله چي ټول خلک غوښتنه کوي دیو امام شاته په مونځ لوستلو باندي او که چرته داسي صورت نه وي

نو بیا اولی دادي چي دوه امامه ځانله ځانله یو یو جماعت ته پوره پوره مونځ ولولي(الدرالمنضود : ۴۹۸\۲ .البحر الرائق : ۲ \ ۱۶۹ ) .

# ﴿ اَبوَابُ الجَنَائِزِ ﴾

## دجنازي مسائل

دجنازي مسئلی :جنائز دجنازة جمع ده او جنازة کي دوه لغته دي بفتح الجیم و بکسر الجیم بفتح الجیم مړي ته ویلي کیږي اوبکسر الجیم دهغي نعش یعني دکټ نوم دي چي په کوم باندي مړي لره اوچتولي شي وقیل هما لغتان (البحر الرائق :۲ \ ۱۷۰ ).

# ﴿ بَابُ تَلقِينِ المُحتَضَرِ ﴾

## باب قریب الموت شخص ته د کلمي تلقین

﴿۱۰۴۸﴾ عَن اَبِي سَعِيدِ الخُدرِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَقِّنُوا مَوتَاكُم لاَ اِلٰهَ اِلاَّ الله رواه الجماعة الا البخاري.[1]

**ترجمه** : حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه ویلي دي چي رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چي تلقین کوئ خپلو مرګاني مریضانو ته د لا اله الا الله . د دي حدیث روایت د بخاري نه په غیر د محدثینو جماعت کړي دي.

﴿۱۰۴۹﴾ وَعَن اَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ، قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ لَقِّنُوا مَوتَاكُم لاَ اِلٰهَ اِلَّا الله رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : حضرت ابوهریره رضي الله عنه ویلي دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چي تلقین کوئ خپلو مرګاني مریضانو ته د لا اله الا الله. د دي حدیث روایت مسلم کړي دي.

﴿۱۰۵۰﴾ وعَن مُعَاذِبنِ جَبَلٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مَن كَانَ آخِرُ كَلاَمِهِ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ

---

(۱) مسلم کتاب الجنازء ج۱صـــ ۳۰۰ ، ترملي ابواب الجنائز ج۱صـــ ۱۹۲ باب ماجاء في تلقين المريض عند الموت ، ابـوداؤد كتـاب الجنائز ج ۲صـــ ۸۸ باب في التلقين ، نسائي كتاب الجنائز ج۱صـــ ۲۵۹ باب تلقين الميت ، ابن ماجة ابواب ماجآء في الجنائز صـــ ۱۰۵ باب ماجآء في تلقين الميت ...الخ ، مسند احمد ج۳ صـــ ۳ .

(۲) مسلم كتاب الجنائز ج۱صـــ ۳۰۰.

اللهُ دَخَلَ الجَنَّةَ رواه ابوداود وآخرون واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې د چا په ژوند کې اخري خبره لا اله الا الله شي داخل به شي په جنت کې. د دي حديث روايت ابوداود او نورو محدثينو کړي دي.

**مسئلة الباب** : عندالجمهور تلقين مستحب دي او دتلقين نه مراد دادې چې دده سره کينې او کلمه ورته وايي نه دا چې ده ته ويلو دپاره اوايي .(بداية المجتهد:ص: ۱۸۲)

# ﴿ بابُ تَوجِيه المُحتَضَرِ إلى القِبلَة ﴾

## باب د مخ کولو د مړي دي قبلي طرف ته

﴿۱۰۵۱﴾ عَن اَبِي قَتَادَة رضي الله عنه اَنَّ النَّبِي صلى الله عليه وسلم حِينَ قَدِمَ المَدِينَة سَأَلَ عَنِ البَرَاءِ ابْنِ مَعْرُورٍ فَقَالُوا تُوَفِّيَ اَوصٰى اَن يوَجَّه اِلَى القِبلَة فَقَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم اَصَابَ الفِطرَة ثُمَّ ذَهبَ فَصَلَّى عَلَيه رواه الحاكم في المستدرك وقال حديث صحيح.[2]

**ترجمه** : د حضرت ابي قتاده رضي الله عنه نه روايت دي نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې کله مديني منوري ته تشريف ويوړ نه پوښتنه ئي وکړه په باره براء ابن معرور کې نو خلکو وويل چې هغه وفات شوي او وصيت ئي کړي ؤ چې مخ دي ئي قبلي طرف ته واړولي شي نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې رسيدلي فطرت ( دين ) ته بيا لاړ د جنازي مونځ ئي ورباندي وکړ. د دي حديث روايت حاکم په مستدرک کې کړي دي او ويلي ئي دي چې داحديث صحيح دي.

**مسئلة الباب** : دحنفيو په نزد توجيه مستحب ده دکوم چې طريقه داده چې قريب الموت کس ته دمرګ ظاهري علامات ښکاره کيدو نه پس ښي طرف باندې يا ستوني ستاغ قبلې طرفته يي کړي ، دينه اولني صورت ډير غوره دې .(حلبي کبير ،ص:۴۹۵) بعضي ائمو ددې انکار کړې دى .(بداية المجتهد ،ص:۱۸۲).

---

(۲) ابوداؤد کتاب الجنائز ج۲صـــ ۸۸ ، باب التلقين .

(۳) مستدرك حاکم کتاب الجنائز ج۱صـــ ۳۵۳ باب يوجه المحتضر الي القبلة .

## ﴿ بَابُ قِرَاءَةِ يٰسٓ عِنْدَ الْمَيِّتِ ﴾

## مړي ته د سورت يس د لوستلو باب

﴿۱۰۵۲﴾ عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِقْرَؤُا يٰسٓ عَلٰى مَوْتَاكُمْ رواه ابوداود وابن ماجة والنسائي واعله ابن القطان وصححه ابن حبان.[1]

**ترجمه** : د حضرت معقل بن يسار رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي : ولولئ يس خپلو مړو ته . د دي حديث روايت ابوداؤد ، ابن ماجه او نسائي کړي دي . او دا حديث ابن قطان معلول ګڼړلي او ابن حبان صحيح ګڼړلي دي .

### قريب المرګ ته دسوره يسين ويلو حکمت

دلته دمرګ نه مراد محتضر دي يعني مرګ ته نزدي وخت دي دمرګ اثر ظاهريدلو باندي سورة ياسين ويل پکار دي (البحر الرائق :۲\۱۷۱ ) اوبه دي کي يي دا حکمت ليکلي دي چي دغه وخت په سري کي دتلفظ طاقت نه وي ددير کمزورتيا دوجي نه دي وخت کي هغه خپل هيڅ حاجت لره نه شي ښکاره کولي ليکن دمؤمن زړه په دي وخت بلکليه (ټول په ټوله )الله تعالى طرف ته متوجي وي نو په هغه باندي سورة ياسين شريف په دغه وخت کي ځکه لوستلي شي چي دده په ايمان اودزړه په طاقت کي اضافه وشي .ځکه چي په دي سورة کي دشريعت مهارت اصول اوهغه لوي لوي مسئلي چي کومو لره علماؤ په خپلو تصنيفاتو کي بيان کړي دي . دمختلوامتونو حالتونه ،دتقدير ثابيتيدل اوداچي دبندګانو دافعالواسناد الله تعالى طرف ته ، دتوحيد اثبات، شرک نفي اودقيامت احوال ،دحشر اونشر منظر ، حساب کتاب ، ثواب اوسزا وغيره څيزونه ذکر دي دغه شان په حديث کي دي چي دهر شي دپاره زړه وي اودقرآن زړه سورة ياسين دي لهذا دي سورت لره دهغه مخکي لوستلو سره هغه ته به روحاني طاقت اوتسلي ملاو شي اودايمانياتواستحضاربه وي (په شرط ددي چي هغه دقرآن پاک په ترجمي پوهيږي )

---

(۱) ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص ۸۹ باب القراءة عند الميت ، ابن ماجة ابواب ما جاء في الجنائز ص ۱۰۵ باب ماجاء في ما يقال عند المريض اذا حضر ، صحيح ابن حبان كتاب الجنائز ج ۶ ص ۳ فصل في المحتضر رقم الحديث ۲۹۹۱ .

# ﴿بَابُ تَغمِيضِ المَيتِ﴾
# باب د مړي د سترګو پټول

﴿١٠٥٢﴾ عَن أُمِّ سَلَمَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت دَخَلَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلَى أَبِي سَلَمَةَ وَقَد شَقَّ بَصَرُه فَأَغمَضَه ثُمَّ قَالَ إِنَّ الرُّوحَ إِذَا قُبِضَ تَبِعَه البَصَرُ فَضَجَّ نَاسٌ مِن أَهلِه فَقَالَ لَا تَدعُوا عَلَى أَنفُسِكُم إِلَّا بِخَيرٍ فَإِنَّ المَلَائِكَةَ يُؤَمِّنُونَ عَلَى مَا تَقُولُونَ ثُمَّ قَالَ أَللّٰهُمَّ اغفِر لِأَبِي سَلَمَةَ وَارفَع دَرَجَتَه فِي المَهدِيِّينَ وَاخلُفه فِي عَقِبِه فِي الغَابِرِينَ وَاغفِر لَنَا وَلَه يَارَبَّ العَالَمِينَ وَافسَح لَه فِي قَبرِه وَنَوِّر لَه فِي قَبرِه رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: حضرت ام سلمی رضي الله عنها ويلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم حضرت ابو سلمه ته راغي او د هغه سترګې کلا و او وازې پاتې شوې وې نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ورته سترګې پټې کړې بيا ئې وفرمايل چې بې شکه کله چې روح قبض کړې شي نو نظر ورپسې ولګي نو چغې کړې خلکو د اهل د ده نه نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل دعا مه کوئ د خپل ځان په باره کې مګر د خير ځکه چې ملائکي امين وائي په هغه څه چې تاسي ئې وائې بيا ئې وفرمايل چې اي الله بخښنه وکړې ابوسلمه ته او اوچته کړې درجه د ده په هدايت موندونکو کې او خليفه ئې کړې په خپلو پسماندګانو کې مونږ ته او ده ته بخښنه وکړې اي د ټول عالم پروردګاره او پراخه کړې قبر د ده او روښانه کړې قبر د ده. د دې حديث روايت مسلم کړې دی.

**مسئلة الباب**: د تغميض په استحباب باندې د علماؤ اجماع ده د کوم حکمت چې دا ليکلې شوې دی چې ددې شکل او صورت ګډوډ نشي دغه شان په دغه وخت کې به دده خوله هم بندولې شي ليکن ددې خيال ساتل پکار دي چې کله د مړ کيدو يقين يې وشي نو بيا به ورله سترګې پټولې شي په حديث باب کې مذکوره دعا " اللهم اغفر .... " الخ هر مسلمان ته پکار دي چې ياده يې کړي ترڅو چې د ضرورت په موخه يې په مړي باندې اووايي. (الدر المنضود: ٥/٢١٩)

(١) مسلم كتاب الجنائز ج١صـــ ٣٠٠.

# ﴿بابُ تَسجِيةِ المَيتِ﴾

﴿۱۰۵۴﴾ عن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت اِنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيَ سُجِّيَ بِبُرْدٍ حِبَرَةٍ رواه الشيخان.[1]

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي بي شکه رسول اکرم صلى الله عليه وسلم چې کله وفات کړي شو پټ کړي شوي وُ هغه په څادر يمني باندي. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

**مسئلة الباب** : ديو کس دمړ کيدو نه پس په هغه څادر اچول پکار دي کولاو نه دي پريخودل پکار ظاهره ده چې غسل کې خو به يي وخت لګي ليکن دا عمل په همدغه وخت کې کول پکار دي. (الدرالمنضود: ۵/۲۲۰)

# ﴿بابُ غُسلِ المَيتِ﴾

## باب د غسل د مړي

﴿۱۰۵۵﴾ عَن اُمِّ عَطِيةَ الاَنصَارِية رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت دَخَلَ عَلَينَا رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ حِينَ تُوُفِّيتْ اِبنَتُه فَقَالَ اَغسِلنَهَا ثَلاثًا اَو خَمسًا اَو اَكثَرَ مِن ذٰلِك اِن رَأَيتُنَّ بِمَاءٍ وَسِدرٍ وَ اجْعَلنَ فِي الآخِرَةِ كَافُورًا اَو شَيئًا مِن كَافُورٍ فَاِذَا فَرَغتُنَّ فَآذِنَّنِي فَلَمَّا فَرَغنَا آذَنَّاه فَاَعطَانَا حَقوَه فَقَالَ اَشعِرنَهَا آياه تَعنِي اِزَارَه رواه الجماعة وفي رواية لهم اِبدَأْنَ بِمَيَامِنِها وَمَوَاضِعِ الوُضُوءِ مِنها.[2]

**ترجمه** : حضرت ام عطيه الانصاريه رضي الله عنها ويلي دي چې تشريف راوړي وُ مونږ کره رسول الله صلى الله عليه وسلم کله چې وفات کړي شوي وه لور مبارکه د هغه صلى الله عليه وسلم نو وي فرمايل چې غسل ورکړئ تاسي ديته دري ځله او يا پنځه ځله او يا د دي نه زيات که تاسي ئي مناسب ګڼرئ په اوبو او په بيرو او په اخر کې ئي کافر ولګوئ او يا ئي فرمايلي وُ او يا د کافورو څه لږ شان شئ نو کله چې تاسو فارغ شوئ نو ما خبر کړئ نو کله چې مونږ فارغ شو نو خبر مو ورته ورکړ نو رائي کړ مونږ ته يو څادر چې دا ئي د بدن پوري نزدي ولګوئ يعني ازار تري جوړ کړئ. د دي حديث روايت د

(۱) بخاري کتاب الجنائز ج۱ص ۱۶۶ باب الدخول علي الميت بعد الموت ... ، مسلم کتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۴فصل في کفن الميت ....

(۲) بخاري کتاب الجنائز ج۱ص ۱۶۷ باب غسل الميت ...الخ ، مسلم کتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۴ فصل في غسل الميت وترا ، ترمذي ابواب الجنائز ج۱ص ۱۹۳باب ماجاء في غسل الميت ، ابوداؤد کتاب الجنائز ج۲ ص ۹۲ باب کيف غسل الميت ، نسائي کتاب الجنائز ج۱ص ۲۶۶باب غسل الميت وترا،ابن ماجة ابواب ماجاء في الجنائز ص ۱۰۶باب ماجاء في غسل الميت وترا ، مسند احمد ج۶ص ۴۰۷.

محدثینو یو جماعت کړي دي او د دوي په یو روایت کې دي چې شروع وکړئ تاسي په ښي طرفونو د دي او په ځایونو د اودس د دي.

**مسئلة الباب** : مړي ته غسل ورکول د مسلمانانو په ذمه باندې فرض کفایه دي. (رحمة الامة، ص: ٦٧)

## ﴿ بَابُ غُسلِ الرَّجُلِ امْرَأَتَه ﴾

## د سړي خپلي ښځې ته د غسل ورکولو باب

**﴿١٠٥٦﴾ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت رَجَعَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ مِنَ البَقِيعِ فَوَجَدَنِي وَاَنَا اَجِدُ صُدَاعًا فِي رَأسِي وَاَنَا اَقُولُ وَارَاسَاه فَقَالَ بَل اَنَا يَا عَائِشَةُ وَارَاسَاه ثُمَّ قَالَ مَا ضَرَّكِ لَومِتُّ قَبلِي فَقُمتُ عَلَيكِ فَغَسَلتُكِ وَكَفَّنتُكِ وَصَلَّيتُ عَلَيكِ وَدَفَنتُكِ رواه ابن ماجه وآخرون قَالَ النِيمَوِي قَولُه فَغَسَلتُكِ غَيرُ مَحفُوظٍ.**[1]

**ترجمه** : حضرت عائشې رضي الله عنها ویلي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنت البقیع نه واپس تشریف راوړ نو زه ئي په داسي حال کې ومندلم چې ځما په سر کې درد ؤ نو ما به ویل چې وارأساه یعني اي ځما سره نو رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل بلکه زه اي عائشې ولي زما سره تاته څه ضرر او نقصان دي که چرته مړه شوي ته ځما نه مخکې نو زه به پاڅم تاته به غسل درکړم زه به تاته کفن درکړم او مونځ د جنازي به درباندي وکړم او هخه به دي کړم. د دي حدیث روایت ابن ماجه او نورو محدثینو کړي دي.

نیموي رحمه الله ویلي دي چې دا قول چې (فغسلتك) دي غیر محفوظ دي.

**﴿١٠٥٧﴾ وَعَنَ اَسمَاءَ بِنتِ عُمَيسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت لَمَّا مَاتَت فَاطِمَةُ رَضِيَ اللهُ عَنهَا غَسَلَتهَا وَعَلِيُّ بنُ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ رواه البيهقي في المعرفة واسناده حسن.**[2]

**ترجمه**: حضرت اسماء بنت عُمیس رضي الله عنها ویلي دي چې کله مړه شوه فاطمه رضي الله عنها غسل ورکړ ما او حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه. د دي حدیث روایت بیهقي کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

---

(١) ابن ماجة ابواب ماجآء في الجنائز صـــ ١٠٧ باب ماجآء في غسل الرجل امرأته ...الخ .

(٢) معرفة السنن والآثار کتاب الجنائز ج ٥ صـــ ٢٣١ رقم الحديث ٧٣٥٩ و ٧٣٦١ سنن الکبری للبیهقي کتاب الجنائز ج٣ صـــ ٣٩٧ باب الرجل يغسل امرأته اذا ماتت.

## آیا خاوند ښځې ته غسل ورکولی شي ؟

قال عبدالرحمٰن الجزيري رَحِمَهُ اللَّهُ في مؤلفه كتاب الفقه على المذاهب الاربعة : لا يحل للرجال تغسيل النساء وبالعكس الا الزوجين الخ . یعني معنی دا چه نه دي حلال سړو لره چه غسل ورکړي ښځو ته او نه دي حلال ښځو ته چه غسل ورکړي سړو ته خو ولې زوجینو ته حلال دي چه هر یو د دوي دواړو نه یو بل ته غسل ورکړي مګر که ښځه مطلقه وي اګر که په رجعي طلاق سره طلاقه شوي وي نو په دغه وخت کې حلال نه دي چه یو د زوجینو بل ته غسل ورکړي او دا حکم د شوافعو او مالکیهؤ ترمنځ متفق علیه حکم دي .

او احنافو ویلي دي چه کله ښځه مړه شي نو خاوند ته جائز نه دي چه ښځې ته غسل ورکړي او دا ځکه چه د نکاح ملکیت ئي ختم شوي دي او د خپلې ښځې نه پردي او اجنبي شوي دي .

او که چرته خاوند مړ شي نو ښځې ته جائز دي چه خپل خاوند ته غسل ورکړي ځکه چه دا ښځه د خاوند په عدت کې ده او د ښځې په باره کې د خاوند زوجیت د مرګ نه روسته باقي دي اګر چه په رجعي طلاق سره طلاقه شوي وي او که چرته په بائن طلاق طلاقه شوي وي نو ښځې ته جائز نه دي چه خپل خاوند ته غسل ورکړي اګر چه په عدت کې ئي وي . (۱)

او حنابلهؤ هم ویلي دي چه په رجعي طلاق سره طلاقې شوي ښځې ته جائز دي چه خپل خاوند ته غسل ورکړي او کومه ښځه چه په بائن طلاق طلاقه شوي وي هغې ته جائز نه دي چه خپل خاوند ته غسل ورکړي . انتهى

**د شوافعو دلیلونه** : د شوافعو حضراتو مستدل د دي باب (۱۰۵۶) حدیث دي چه حضرت عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ئي روایت کړي دي چه رسول اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حضرت عائشي رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ته وفرمایل چه تاته څه نقصان او ضرر دي که چرته ته ځما نه مخکې مړه شوي نو زه به تاته غسل درکړم الخ . او همدغــي د دي باب (۱۰۵۷) حدیث هم د دوي د پاره مستدل دي کوم چه د حضرت اسماء بنت عُمیس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا نه ئي روایت شوي دي ویلي دي چه کله حضرت فاطمه رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا وفات شوه نو ما او حضرت علي ابن ابي طالب رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ورته غسل ورکړ .

احنافو حضراتو په جواب کې ویلي دي چه د نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د نکاح عصمت په موت او مرګ سره نه منقطع کیږي لکه چه د بخاري شریف په ج۱ص ۵۳۲ کې راغلي دي چه ( عن الحكم سمعت

---

(۱) الفقه على المذاهب الاربعة ج ۱ صـ ۵۰۴.

ابا وائل الخ ) ابو ائل ویلي دي چه کله حضرت علي رضي الله عنه حضرت عمار او حضرت حسن رضي الله عنهما کوفي ته ولیږل چه د دوي نه د جمل د جنګ د پاره د راوتلو طلب وکړي تر څو د حضرت علي رضي الله عنه سره نصرت وکړي کوم جنګ چه د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت عائشي رضي الله عنها تر منځ په بصره کې واقع شوي ؤ حضرت عمار رضي الله عنه خطبه ولوستله نو وي ویل چه بې شکه خامخا زه بنه پوهیم چه حضرت عائشه رضي الله عنها په دنیا او اخرت کې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم زوجه او بي بي ده خو ولي الله جل شانه ستاسي امتحان اخلي د دي د پاره چه تاسي د حضرت علي رضي الله عنه تابعداري کوئ او که حضرت عائشي رضي الله عنها تابعداري کوئ.

نو کله چه خبره داسي ده چه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم او د ازواجو مطهراتو او د حضرت علي رضي الله عنه او د حضرت فاطمي رضي الله عنها تر منځ په وفات سره د نکاح عصمت نه باطلیږي نو غسل د هغه چا چه د مړي عورت ته کتل ورته حلال وي اولی او بهتر دي د غسل د بل چانه نو حضرت فاطمي رضي الله عنها ته د دي وجهي نه حضرت علي رضي الله عنه غسل ورکړي دي چه حضرت فاطمه رضي الله عنها هم په دنیا او اخرت کې د حضرت علي رضي الله عنه زوجه او بي بي ده او په وفات سره ئي د نکاح عصمت نه باطلیږي.

شوافعو حضراتو په دي باندي تمسک کړي دي او ویلي ئي دي چه ښځي ته خاوند غسل ورکولي شي او نوري ښځي ئي په ازواجو مطهراتو د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم او په حضرت فاطمي رضي الله عنها باندي قیاس کړي دي.

احناف حضرات وائي چه دا قیاس قیاس مع الفارق دي دا ځکه چه د ازواجو مطهراتو په وفات باندي د نکاح عصمت نه باطلیږي او نه ختمیږي او د دوي نه په غیر د نورو ښځو د نکاح عصمت په مرګ سره باطلیږي او ختمیږي. نو د دي وجهي نه د نورو ښځو حکم د دوي نه جدا دي.

پورتني تحقیق او تشریح د ابن ماجه په صـ ۱۰۷ کې په نمبر ۱ حاشیه کې د نجاح په حواله ذکر شوي دي. (۱).

(۱) ابن ماجه صـ ۱۰۷، حاشیه نمبر ۱.

# ﴿بَابُ غُسلِ المَرأةِ لِزَوجِها﴾

## باب د غسل د ښځي دي خپل خاوند ته

﴿١٠٥٨﴾ عَن عَبدِالله بنِ اَبِي بَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ اَسمَاءَ بِنتَ عُمَيسٍ امرَأَةَ اَبِي بَكرٍ الصَّدِيقِ غَسَلَت اَبَابَكرِ الصَّدِيقَ حِينَ تُوُفِّيَ ثُمَّ خَرَجَت فَسَأَلَت مَن حَضَرَهَا مِنَ المُهَاجِرِينَ فَقَالَت اِنِّي صَائِمَةٌ وَاِنَّ هٰذَا يومٌ شَدِيدُ البَردِ فَهَل عَلَيَّ مِن غُسلٍ فَقَالُوا لا رواه مالك واسناده مرسل قوي.[1]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن ابي بکر ن الصديق رضي الله عنه نه روايت دي چې اسماء د عُميس لور رضي الله عنها حضرت ابوبکر الصديق رضي الله عنه ته غسل ورکړي ؤ کله چې هغه وفات کړي شو بيا هغه راؤوته نو پوښتنه ئي وکړه د هغه چانه چې حاضر شوي ؤ د مهاجرينو نه نو وي ويل چې بې شکه زه روژه يم او دا ورځ ده سخته د يخنئ نو آيا په ما باندي غسل شته نو صحابه کرامو وويل چې نه. د دي حديث روايت مالک کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي.

**مسئلة الباب** :دا خبره متفقه ده چې ښځه خپل متوفی خاوند ته غسل ورکولې شي (رحمة الامة، ص :٦٧) اول خو ددې په باره کې دصحابه کرامو عمل موجود دې ، ثانيا ددې دپاره هم چې په عدت کې في الجمله نکاح باقي وي دابوداود شريف په روايت کې دي چې مور بي بي حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها فرمايي چې کومه خبره ماته وروسته معلومه شوه که دمخکې نه معلومه وې نو بيا به حضور صلى الله عليه وسلم ته غسل ددوي بيبيانو ورکولې نه صحابو ، شارحينو ددې مطلب دا ليکلې دی چې ددېنه مراد دنکاح تعلق باقي پاتې کيدل دي دعدت په موده کې. (الدر المنضود :٢٢٣/٥)

# ﴿بَابُ التَّكفِينِ فِي الثِّيَابِ البِيضِ﴾

## په سپينو جامو کې د کفن ورکولو باب

﴿١٠٥٩﴾ عَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلبِسُوا مِن ثِيَابِكُمُ البَيَاضَ فَاِنَّهَا مِن خَيرِ ثِيَابِكُم وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوتَاكُم رواه الخمسة الا النسائي وصححه الترمذي وآخرون.[2]

---

(١) مؤطا امام مالک کتاب الجنائز صـــ ٢٠٤ باب غسل الميت .

(٢) ترمذي ابواب الجنائز ج١صـــ ١٩٣ باب ماجاء ما يستحب من الاکفان ، ابوداؤد کتاب اللباس ج٢صـــ ٢٠٦ باب في البياض ، ابن ماجة ابواب ماجاء في الجنائز صـــ ١٠٧ باب ماجاء ما يستحب من الکفن ، مسند احمد ج١صـــ٢٤٧.

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه نه روايت دي چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي واغواندئ د جامو سپينو خپلو نه پس په تحقيق جامې سپينې ستاسي د پاره بهترې جامې دي او کفن ورکړي په دې سپينو جامو کې مړو خپلو ته . د دې حديث روايت د نسائي نه په غير پنځو محدثينو کړي دي او ترمذي او نورو صحيح ګڼرلي دي .

﴿۱۰۶۰﴾ وَعَنْ سَمُرَةَ بِنِ جُنْدُبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْبِسُوا ثِيَابَ الْبِيَاضِ فَإِنَّهَا أَطْهَرُ وَأَطْيَبُ وَكَفِّنُوا فِيهَا مَوْتَاكُمْ رواه احمد والنسائي والترمذي والحاكم وصححاه.[1]

**ترجمه** : حضرت سمره ابن جندب رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي چې واغواندئ جامې سپينې پس دا ستاسي د پاره پاکيزه او بهترې جامې دي او کفن ورکړئ په دې کې مړو خپلو ته . د دې حديث روايت احمد او نسائي ترمذي او حاکم کړي دي او ترمذي او حاکم صحيح ګڼرلي دي .

**مسئلة الباب** : فقهاء کفن لپاره سپينې کپړې لره مستحب ګرځوي .(رحمة الامة ، ص:٦٩)

## ﴿ بَابُ التَّحسِينِ فِي الكَفْنِ ﴾

## باب په ښه والي د کفن کې دي

﴿۱۰۶۱﴾ عن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَفَّنَ أَحَدُكُمْ أَخَاهُ فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : حضرت جابر رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې کفن ورکوي يو ستاسي نه خپل ورور ته نو ښه کفن دي ورکړي . د دې حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۱۰۶۲﴾ وعن أَبِي قَتَادَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وَلِيَ أَحَدُكُم أَخَاهُ فَلْيُحَسِّنْ كَفَنَهُ رواه ابن ماجة والترمذي وحسنه.[3]

---

(۱) مسند احمد ج ۵ ص ۱۰ ، نسائي کتاب الجنائز ج۱ص ۲۶۸ باب الامر بتحسين الكفن ، مستدرك حاكم كتاب الجنائز ص ۳۵۴ باب الكفن في ثياب البيض ...الخ .

(۲) مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۶ فصل في كفن الميت في ثلاثة اثواب ....الخ .

(۳) ابن ماجة ابواب ماجآء في الجنائز ج۱ص ۱۰۷ باب ماجاء ما يستحب من الكفن ، ترمذي ابواب الجنائز ج۱ص۱۹۴ باب ماجاء ما يستحب من الاكفان .

**ترجمه** : حضرت ابو قتاده رضي الله عنه ويلي دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي کله چې ولي کړي شي يو ستاسي د ورور خپل نوبنه کفن دي ورکړي شي . د دي حديث روايت ابن ماجه او ترمذي کړي دي او حسن ئي ګڼړلي دي .

# ﴿ بَابُ تَكْفِينِ الرَّجُلِ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ ﴾

## سړي ته په دريؤ جامو کې د کفن ورکولو باب

﴿۱۰۶۳﴾ عَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا أَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كُفِّنَ فِي ثَلَاثَةِ أَثْوَابٍ بِيضٍ سُحُولِيَةٍ لَيسَ فِيهَا قَمِيصٌ وَلَا عِمَامَةٌ رواه الجماعة.[1]

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روايت دي چې رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ته کفن ورکړي شوي ؤ په دريؤ سپينو جامو کې چې نه ؤ په هغي کې قميص او نه پګړئ . د دي حديث روايت محدثينو يو جماعت کړي دي .

﴿۱۰۶۴﴾ وَعَن أَبِي سَلَمَةَ أَنَّه قَالَ سَأَلتُ عَائِشَةَ زَوجَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقُلتُ لَهَا فِي كَم كُفِّنَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَت فِي ثَلَاثَةِ أَثوَابٍ سُحُولِيَةٍ رواه مسلم.[2]

**ترجمه** : ابو سلمه ويلي دي چې ما حضرت عائشي رضي الله عنها نه چې د نبي اکرم صلى الله عليه وسلم مبارکه بي بي ده پوښتنه کړي وه ما هغي ته ويلي ؤ چې په څو جامو کې کفن ورکړي شوي ؤ رسول اکرم صلى الله عليه وسلم ته نو هغي وويل چې په دريؤ جامو . د دي حديث روايت مسلم کړي دي .

﴿۱۰۶۵﴾ وعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت لَمَّا ثَقُلَ أَبُو بَكرٍ قَالَ أَيُّ يَومٍ هٰذَا قُلنَا يَومُ الإِثنَينِ قَالَ فَأَيُّ يَومٍ قُبِضَ فِيهِ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قُلنَا قُبِضَ يَومَ الإِثنَينِ قَالَ فَإِنِّي أَرجُو مَا بَينِي وَبَينَ اللَّيلِ قَالَت وَكَانَ عَلَيهِ ثَوبٌ فِيهِ رَدعٌ مِن مَشقٍ فَقَالَ إِذَا أَنَا مِتُّ فَاغسِلُوا ثَوبِي هٰذَا وَضُمُّوا إِلَيه ثَوبَينِ جَدِيدَينِ فَكَفِّنُونِي فِي ثَلَاثَةِ أَثوَابٍ فَقُلنَا أَفَلَا نَجعَلُهَا جُدُدًا كُلَّهَا قَالَت فَقَالَ لَا إِنَّمَا هُوَ لِلمُهلَةِ قَالَت فَمَاتَ لَيلَة

---

(۱) بخاري كتاب الجنائز ج۱ص ۱۶۹ باب الكفن بلاعمامة ، مسلم كتاب الجنائز ص ۳۰۵ فصل في كفن الميت في ثلاثة اثواب ...الخ ، ترمذي ابواب الجنائز ج۱ص ۱۹۵ ، باب ماجاء في كم كفن النبي صلى الله عليه وسلم ، ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص۹۳ باب في الكفن ، نسائي كتاب الجنائز ج۱ص ۲۶۸ باب كفن النبي صلى الله عليه وسلم ابن ماجة ابواب ماجاء في الجنائز ص ۱۰۷ باب ماجاء في كفن النبي صلى الله عليه وسلم ، مسند احمد ج ۶ ص ۱۶۵.

۲ مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۶ فصل في كفن الميت في ثلاثة اثواب .

الثُّلَاثَاءِ رواه احمد والبخاري وقال رَدعٌ مِن زَعفرَانَ.(۱)

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي كله چې ابوبكر صديق رضي الله عنه ناروغه شو وي ويل دا كومه ورځ ده نوموني وويل چې د ګل ورځ ده وي ويل په كومه ورځ كې وفات شوي ؤ رسول الله صلى الله عليه وسلم مونې ووېل د ګل په ورځ وفات كړي شوي ؤ وي ويل چې زه هم د دي وخت نه تر شپې پوري اميد كوم هغي ويلي دي چې په ابوبكر رضي الله عنه باندي جامه وه چې په دي كې د سور رنګ نهي نشاني وي ابوبكر رضي الله عنه وويل چې كله زه مړ شم نو ځما دا جامي ووينځئ او يو ځاي كړئ د دي سره دوي نوي جامي نو ماته په دي دريؤ جامو كې كفن راكړئ نو مونږ وويل چې دا ټولي نوي كؤو نه عائشي رضي الله عنها ويلي دي نو هغه وويل چې نه دا د الانش د پاره دي حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي چې وفات شو ابوبكر رضي الله عنه د سه شنبي په شپه . د دي حديث روايت احمد او بخاري كړي دي او بخاري ويلي دي چې ردع د زعفران نشان ؤ .

**مسئلة الباب** : دائمه اربعو دې امر باندې اتفاق دې چې سړي په دريو كپړو كې كفن كول سنت دي ، البته دامام ابو حنيفه رحمه الله په نزد دا دري كپړې ازار ، رداء ، او قميص دې ليكن دائمه ثلاثه رحمهم الله په نزد دري واړه لفافې . (رحمة الامة ،ص : ٦٩)

## ﴿باب تكفين المَرأَةِ فِي خَمسَةِ أَثوَابٍ﴾

## باب د كفن وركولو دي ښځي ته په پنځو جامو كې

﴿۱۰۶۶﴾ عَن لَيلَى بِنتِ قَانِفٍ الثَّقَفِية رضي الله عنها قَالَت كنتُ فِيمَن غَسَلَ أُمَّ كلثُومٍ اَبنَةَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم عِندَ وَفَاتِها فَكَانَ اَوَّلُ مَا اَعطَانِي رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم اَلحِقَاءَ ثُمَّ الدِّرعَ ثُمَّ الخِمَارَ ثُمَّ المِلحَفَةَ ثُمَّ أُدرِجَت بَعدُ فِي الثَّوبِ الآخِرِ قَالَت وَرَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم جَالِسٌ عِندَ البَابِ مَعَه كفنُها يِنَاوِلُنَاها ثَوبًا ثَوبًا رواه ابوداود وفي اسناده مقال.(۲)

**ترجمه** : ليلي بنت قانف ثقفيه رضي الله عنها ويلي دي چې زه په هغه كسانو كې وم چې غسل ئي وركاوه د رسول الله صلى الله عليه وسلم مباركي لور ام كلثوم رضي الله عنها ته په وخت د وفات د دي كې نو اول هغه څه چې راكړي ؤ ماته رسول الله صلى الله عليه وسلم ازار ؤ بيا قميص ؤ بيا پورني ؤ بيا څادر ؤ بيا تنويستلي شوه په

---

(۱) مسند احمد ج ۶ ص ۴۵ بخاري كتاب الجنائز ج۱ص ۱۸۶ باب موت يوم الاثنين .

(۲) ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص ۹۴ باب في كفن المرأة.

بله جامه کې ليلي ويلي دي چې او رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ناست ؤ د دروازي سره او د هغه صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سره د ام کلثوم رَضِيَ اللهُ عَنْهَا کفن ؤ راکوله به ئي هغه مونږ ته يوه يوه جامه . د دي حديث روايت ابوداود کړي دي او په اسناد کې ئي خبري دي .

**دښځي کفن** :دجمهورو په نزد دښځي سنت کفن پينځه کپړي دي .هغه پينځه دامام شافعي او احمد په نزد دادي :ازار ،قميص ،لوپټه ،لفافه ،يوبله کپړه ده چي دهغي سره پټونانو لره پټولي شي . زمونږه فقهاؤ ددي پينځو کپړو نه داسي تعبير کړي دي ،ازار ،قميص ،لفافه ،دوپټه (سربند )خرقه (سينه بند ) چي دهغي په ذريعي سره ددي سيني پټولي شي خمار چي په هغي سرپټولي شي اوبيا ددي په ذريعي سره وېښتو لره پټولي کيږي چي په سينه باندي پراته وي .

ترتيب ئي دغه شان ليکلي دي چي اول دي په تخته باندي لفافه خوره کړي شي بيا ددي دپاسه ازار، ددي دپاسه خرقه، ددي دپاسه خمار اودټولودپاسه قميص اول به قميص ورواچولي شي چي دنستورو واله نه وي ددي نه پس به په لوپټي سرپټولي شي اوپه سينه چي کوم وېښتان وي هغه به پټ کړي شي،ددي نه پس به په خرقه سره سينه پټولې شي بيا ددي نه پس به ازار په دي ورواچولې شي اول به په ګس طرف ورواچولي شي اوبيا ددي نه پس به په ښي طرف ورواچولي شي ددي دپاره چي ښي اړخ دپاسه پاتي شي بيا ددي نه پس همدغه شان لفافه ورواچولي شي (رحمة الامة ،ص ٦٩ .البحر الرائق :١٧٦\٢ ،والد و المنضود :٢٤٠\٥ )

## ﴿باب مَاجاءَ فِي الصَّلوة عَلَى المَيتِ﴾

### باب په باره د هغه روايتونو کې دي چې راغلي په باره د مانځه کې په مړي باندي

﴿١٠٦٧﴾ عَن أَبِي هرَيرَة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَن شَهِدَ الجَنَازَة حَتَّى يصَلِّي فَلَه قِيرَاطٌ وَمَن شَهِدَ حَتَّى تُدفَنَ كَانَ لَه قِيرَاطَانِ قِيل وَمَاالقِيرَاطَانِ قَالَ مِثلُ الجَبَلَينِ العَظِيمَينِ رواه الشيخان. [1]

**ترجمه** : حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي څوک چې حاضر شي جنازي ته تر هغي پوري چې مونځ وکړي نو د ده د پاره د يو قيراط ثواب دي او څوک چې حاضر شي تر هغي پوري چې هخ کړي شي نو د ده د پاره د دوه قيراطه اجر دي د هغه نه پوښتنه وکړي شوه چې دوه قيراطه څومره شئ دي وي فرمايل چې په شان د دوه ؤ غرونو لويو . د دي حديث

(۱) بخاري كتاب الجنائز ج۱صــ ۱۷۷ باب من انتظر حتى يدفن ، مسلم كتاب الجنائز ج۱صــ ۳۰۷ فصل حصول ثواب القيراط ...الخ .

روایت شیخینو کړي دي.

**﴿۱۰۶۸﴾ وعَن عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا عنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَامِن مَيتٍ تُصَلِّي عَلَيه اُمَّةٌ مِنَ المُسلِمِينَ يبلُغُونَ مِائَةً كلُهم يشفِعُونَ لَه اِلَّا شَفِعُوا فِيه رواه مسلم.**[1]

**ترجمه** : د حضرت عائشي رضي الله عنها نه روایت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې نشته داسي یو مړي چې مونځ وکړي په هغې باندي د مسلمانانو یوه ډله چې رسیږي دوي سلو کسانو ته او هغوي ټول د ده د پاره شفاعت غواړي مګر خو قبول به کړي شي شفاعت د دوي د ده په باره کې. د دي حدیث روایت مسلم کړي دي.

**﴿۱۰۶۹﴾ وعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ سَمِعتُ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يقُولُ مَا مِن رَجُلٍ مُسلِمٍ يمُوتُ فَيقُومُ عَلَى جَنَازَتِه اَربَعُونَ رَجُلاً لَا يشرِكونَ بِالله شَيئًا اِلَّا شَفَّعَهمُ الله فِيه رواه احمد ومسلم وابوداود.**[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې ما رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي ؤ چې فرمایل ئي نشته یو سړي مسلمان چې مړ شي پس ؤدریږي په جنازه د ده باندي څلویښت سړي چې شرک ئي نه وي کړي الله جل شانه سره د یو شئ مګر خو قبول به کړي الله جل شانه شفاعت د دوي د ده په باره کې. د دي حدیث روایت احمد او مسلم او ابوداؤد کړي دي.

**﴿۱۰۷۰﴾ وعَن اَبِي سَلمَةَ بنِ عَبدِالرَّحمٰنِ اَنَّ عَائِشَةَ رَضِيَ اللهُ عَنهَا لَمَّا تُوُفِّي سَعدُ بنُ اَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَت اُدخُلُوا بِه المَسجِدَ حَتّٰى اُصَلِّي عَلَيه فَاَنكرَ ذٰلِك عَلَيها فَقَالَت وَاللهِ لَقَد صَلّٰى رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلَى اِبنَي بَيضَاءَ فِي المَسجِدِ سُهيل وَاَخِيه رواه مسلم.**[3]

**ترجمه** : د ابي سلمه بن عبدالرحمن نه روایت دي چې حضرت عائشي رضي الله عنها چې کله سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وفات شو ویلوؤ چې راننه باسئ هغه مسجد ته د دي د پاره چې زه هم په دي باندي جنازه وکړم نو بدو ګڼه صحابهؤ دا په هغې باندي نو حضرت عائشي رضي الله عنها وویل چې قسم دي په تحقیق مونځ کړي ؤ رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په دوه ؤ ځامنو د بیضاء باندي په مسجد کې چې

---

(۱) مسلم کتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۸ فصل في قبول شفاعة الاربعين .

(۲) مسند احمد ج۱ص ۲۷۷ ، مسلم کتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۸ فصل في قبول شفاعة الاربعين ، ابوداؤد کتاب الجنائز ج۲ص ۹۶ باب فصل الصّلوة علي الجنائز .

(۳) مسلم کتاب الجنائز ج۱ص ۳۱۳ فصل في جواز الصّلوة علي الميت في المسجد .

سُهيل او د ده ورور دي. د دي حديث روايت مسلم کړي دي.

﴿۱۰۷۱﴾ وعن اَبِي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَن صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ فِي المَسجِدِ فَلَيس لَه شَيءٌ رواه ابن ماجة وابوداود واسناده حسن.[1]

**ترجمه**: حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي چې رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چې چا مونځ وکړ په جنازه باندي په مسجد کې نو د ده د پاره هيڅ ثواب نشته. د دي حديث روايت ابن ماجه او ابوداؤد کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

﴿۱۰۷۲﴾ وَعنه اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَعَى النَّجَاشِي فِي اليومِ الَّذِي مَاتَ فِيهِ وَخَرَجَ بِهِم إِلَى المُصَلَّى فَصَفَّ بِهِم وَكَبَّرَ عَلَيه أَربَعَ تَكبِيرَاتٍ رواه الجماعة.[2]

**ترجمه**: او د حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې په تحقيق رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خبر ورکړي ؤ د نجاشي بادشاه د مرګ په هغه ورځ کې چې وفات شوي ؤ په هغي کې او تشريف ئي راوړي ؤ د صحابه کرامو سره عيدګاه ته نو د صحابه کرامو سره ئي صف جوړ کړ او په هغه باندي په جنازه کې څلور تکبيرونه وويل. د دي حديث روايت د محدثينو يو جماعت کړي دي.

﴿۱۰۷۳﴾ وَعَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى اَصحَمَةَ النَّجَاشِي فَكَبَّرَ اَربَعًا رواه الشيخان.[3]

**ترجمه**: د حضرت جابر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې بي شکه نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مونځ د جنازي کړي ؤ په اصحمه نجاشي باندي نو څلور تکبيرونه ئي ويلي ؤ. د دي حديث روايت شيخينو کړي دي.

﴿۱۰۷۴﴾ وَعَن عَوفِ بنِ مَالِكٍ الاَشجَعِي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ سَمِعتُ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ يَقُولُ اَللّٰهُمَّ اغفِرلَه وَارحَمه وَاعفُ عَنه وَعَافَاه وَاَكرِمْ نُزُلَه وَوَسِّعْ مَدخَلَه وَاغسِله بِمَاءٍ وَثَلجٍ

---

(۱) ابن ماجة ابواب ماجاء في الجنائز ص ۱۱۰ باب ماجآء في الصّلوة علي الجنائز في المسجد ، ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص ۹۸ بـاب الصّلوة علي الجنازة في المسجد .

(۲) بخاري كتاب الجنائز ج۱ص ۱۶۷ ، مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۹ فصل في النعي للناس الميت . ترمذي ابواب الجنائز ج۱ص ۱۹۸ باب ماجآء في التكبير علي الجنازة ، ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص ۱۰۱ باب الصّلوة علي المسلم يموت في بلاد الشرك ، نسائي كتاب الجنائز ج۱ص ۲۸۰ باب عدد التكبير علي الجنازة ، ابن ماجة ابواب ماجآء في الجنائز ص ۱۱۱ باب ماجآء في الصّلوة علـي النجاشـي ، مسند احمد ج۲ص ۵۲۹ .

(۳) بخاري كتاب الجنائز ج۱ص ۱۷۸ باب التكبير علي الجنازة اربعًا ، مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۰۹ فصل في التكبير علي الميت اربعًا .

وَبَرَدٍوَنَقِّه مِنَ الخَطَايَا كَمَا يُنَقَّي الثَّوبُ الاَبيَضُ مِنَ الدَّنَسِ وَاَبدِله دَارًا خَيرًا مِن دَارِه وَاَهلاً خَيرًا مِن اَهلِه وَزَوجًا خَيرًا مِن زَوجِه وَقِه فِتنَةَ القَبرِ وَعَذَابِ النَّارِ قَالَ عَوفٌ فَتَمَنَّيتُ اَن لَوكُنتُ اَنَا المَيِّتَ لِدعَاءِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ عَلَى ذٰلِكَ المَيِّتِ رواه مسلم .[1]

**ترجمه** : حضرت عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه ويلي دي چې ماد نبي كريم صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي ؤ په داسي حال كې چې مونځ ئي كاوه په يوه جنازه باندي فرمايل ئي اي الله ده ته بخښنه وكړي او په ده رحم وكړي او ده ته عفوه او معافات ورعطا كړي او ده ښه ملمستيا وكړي او د ده د ورننوتو ځاي ( قبر ) پراخه كړي او وينځي ده لره په اوبو واوره او يخ باندي صفا كړي ده لره د گناهونو نه لكه چې پاكولي شي جامه سپينه د خيري نه او بدل كړه ده لره كور بهتر د كور د ده نه او اهل بهتر د اهل د ده نه او ښځه بهتره د ښځي د ده نه او ؤساته ده لره د ازمائش او عذاب د قبر نه او د اور د عذاب نه او عوف رضي الله عنه ويلي ؤ چې ما اميد او ارزو وكړه چې كاش چې وي زه هم زه دا مړي د وجهي د دعاء د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دي مړي ته . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

﴿۱۰۷۵﴾ وعن اَبِي اِبرَاهِيمَ الاَنصَارِي عَن اَبِيه اَنَّه سَمِعَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي الصَّلٰوة عَلَى المَيِّتِ اَللّٰهُمَّ اغفِر لِحَيِّناَ وَمَيِّتِنَاوشَاهِدِنَا وَغَائِبِنَا وَذَكَرِنَا وَاُنثَانَا وَصَغِيرِنَا وَكَبِيرِنَا رواه النسائي والترمذي وقال حديث حسن صحيح .[2]

**ترجمه** : ابو ابراهيم انصاري د خپل پلار نه بيان كړي چې ده د رسول الله صلى الله عليه وسلم نه اوريدلي ؤ چې فرمايل ئي په مانځه كې په مړي باندي ( اللهم اغفر لحينا الحديث ) : اي الله بخښنه وكړي ژوندو زمونږ ته او مړو زمونږ ته او حاضرو زمونږ ته او غائبو زمونږ نارينه ؤ زمونږ ته او ښځو زمونږ ته او وړو زمونږ ته او لويو زمونږ ته.ددي حديث روايت نسائي اوترمذي كړي دي او ويلي ئي دي چې حديث حسن صحيح دي.

﴿۱۰۷۶﴾ وعن ابنِ عبَّاس رضي الله عنه عَنِ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كانَ اِذَا صَلَّى عَلَى المَيِّتِ قَالَ اللهم اغفرلحينا وميتنا وشاهدنا وغائبنا وِلَا نَاثَنَا وَلِذُكورِنَا مَن اَحيَيتَه مِنَّا فَاَحيِه عَلَى الاِسلاَمِ وَمن تَوَفَّيتَه مِنَّا فتوفَّه علي الاِيمانِ اَللّٰهُمَّ عَفوَكَ عَفوَكَ رواه الطبراني في الكبير و الاوسط وقال الهيثمي

---

(۱) مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۱۱ فصل في الدعاء للميت .

(۲) نسائي كتاب الجنائز ج۱ص ۲۸۱ باب الدعاء ، ترمذي ابواب الجنائز ج۱ص ۱۹۸ باب ما يقول في الصلوة علي الميت

اسناده حسن.[1]

**ترجمه** : د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نه روايت دي چې نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به چې کله په جنازه مونځ کاوه . دا دعا به ئي ويله :**اللهم اغفرلحينا وميتنا وشاهدنا وغائبنا ولا نائنا وَلِذُكورِنَا مَن أحييته منّا فأحيه عَلَى الإسلامِ وَمن توفيته منّا فتوفّه علي الإيمانِ اَللّٰهمَّ عَفوَك عَفوَك** رواه الطبراني في الكبير و الاوسط وقال الهيثمي اسناده حسن.يعني : اي الله بخښنه وکړي ژوندو زمونږ ته او مړو زمونږ ته حاضرو زمونږ ته او غائبو زمونږ ته او ښځو زمونږ ته او نارينه ؤ زمونږ ته څوک چې ژوندي کوي هغه لره زمونږ نه نو ژوندي ئي کړه په اسلام باندي او څوک وفات کوي هغه لره نو وفات ئي کړه په ايمان باندي اي الله غوارو مغفرت ستا عفوه ستا .

## دجنازي دمونځ يو څو مسئلي :

**اولنی مسئله** :بالاتفاق دجنازي مونځ فرض کفايه دي .(البحر الرائق :۲ \ ۱۷۹ )

په حديث کي ددي ډير فضيلت راغلي دي .داسي خود قيراط مقدار لغةً نيم دانق دي .دانق ديو درهم شپږمي حصي ته ويلې شي لهذا يو قيراط ددرهم دولسمه حصه شوه .ليکن داجر اوثواب په باب کي ددي څه نوري معني وي ځکه دصحابه کرامو په پوښتنه کولو باندي ارشاد وشو چې دقيراط نه مراد دنيکيو غر دي .

**دويمه مسئله** : دباب ددويم حديث مطابق چې دکوم کس دجنازي دمونځ لوستلو والا شميره سلو ته ورسيږي نو دهغه دا شفاعت دالله تعالى په نزد قبليږي .اوددي نه مخکي روايت کي دڅلويښتو ذکر دي . دغه شان په بعضي رواياتو کي ددريو صفونو ذکر دي چې په بعضي کي نه دسلو قيد شته اونه دڅلويښتو ددي شميري د اختلاف حل دادي چې دسوال کوونکو مختلف سوالونو کولو باندي محمول دې يعني ددي شميري حد ابتداء دنبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دطرف نه نه دي .(کما في الدر المنضود ۵\ ۲۵۰ )

**دريمه مسئله** :بالاتفاق په جومات کي دننه دجنازي مونځ اداء کولو سره اداء کيږي .بياد شوافعو اوحنابلو په نزد دکراهت نه بغير جائز دي .البته امام شافعي بهر دجومات نه افضل مقرر کړي دي . د احنافو او موالکو په نزد جومات کي مکروه دي .ديو قول مطابق مکروه تحريمي اوديو قول

---

(۱) المعجم الکبير للطبراني ج۱۲ صـــ ۱۳۲ برقم ۱۲۶۸۰ ، مجمع الزوائد کتاب الجنائز ج۳صـــ ۳۳ باب الصّلوة علي الجنازة ، المعجـــم الاوسط للطبراني ج۲صـــ ۸۱ برقم ۱۱۵۸.

مطابق مکروه تنزيهي .بيا داحنافو په نزد کراهت دي ټولو صورتونو ته شامل دي (۱)مړي او مونځ کوونکي دواړه په جومات کي دننه وي .(۲) مړي دننه وي او مونځ کوونکي بهر وي .(۳) مونځ کوونکي دننه اومړي په طرف دقبلې دجومات نه بهر وي .(۴) مړي هم اوامام اويو څو مونځ کوونکي دجومات نه بهر ليکن نور مونځ کوونکي په جومات کي دننه وي .(البحر الرائق ۱۸۶\۲ _۱۸۷ رحمة الامة ،ص : ۷۱ )

**دليلونه** :شوافعو اوحنابلو حديث دعائشي نمبر ۱۰۷۰ نه استدلال کړي دي . چي په هغي کي دي چي نبي کريم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دسهيل بن بيضاء اودهغه دورور دجنازي مونځ په جومات کي فرمايلي وُ. حضرت عائشي رضی الله عنها ددي حديث نه يي په جوازالصلاة الجنازة فی المسجد باندي استدلال کړي دي .

## داحنافو اومو الکو استدلال :

حديث دابو هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ نمبر ۱۰۷۱ نه دي چي په هغي کي دي :"من صلی علی جنازة فی المسجد فليس له شيء" .په بل روايت کي دي فلااجر له (حلبی کبير ،ص : ۵۰۷ بحواله ابو داؤد ،ونسائی )اوپه يو روايت کي دي فلا صلاة له .(البحر الرائق :۱۸۷\۲ بحواله مسند طيالسی )

## دحديث عائشي رضی الله عنها تاويل اوتطبيق بين الحديثين :

۱-په يوروايت کي دي: " فانکر الناس عليها" چي دکوم نه معلوميږي چي عام طور سره دصحابه کرامو په ذهنونو کي ددي کراهت وو آخر هغه ولي وو ؟ځکه حديث دابی هريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ راجح شو .

۲- دسهيل بن بيضاء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اودده دورور واقعه جزئي ده اودمعمول خلاف ،غالبا دڅه عارض دوجي نه دامونځ په جومات کي لوستلي وو .ممکنه ده چي داعتکاف وغيره حالت وي ددي تائيد ددينه کيږي چي دجنازي دمونځ دپاره دمسجد نبوي نه بهر باقاعده ځای مقرر وو اوهلته به دجنازي مونځ لوستلي کيدو اوحديث دابی هريره دعمومي حالت حکم دي .

۳-يادزائد نه زائد حديث دعائشي رضی الله عنها اواقعه دسهيل بن بيضاء دجواز ديان دپاره ده چي دکراهت تنزيهي نفي کوونکي نه دي اوپه حديث دابی هريره کي " ليس له شئ" او"لا صلاة له"کي دغي کراهت طرف ته اشاره شوي چي مونځ پوره نه دي .(حلبی کبير ،ص ۵۰۷ الدرالمنضود :۲۶۰\۵ )

**فائده** :دالبحر الرائق په حاشيه کي علامه شامی دحرم شريف دخلکو عمل دمخکي نه دجنازي مونځ په جومات کي ليکلي دي ليکن درواياتو حالتونه اودائمو مذهبونو تاسو کتلي شئ .والله تعالی اعلم .(البحر الرائق مع حاشيه منحة الخالق ۱۸۷\۲ )

**څلورمه مسئله** : دجنازي په مونځ کي د تکبيراتو په شميره کي روايات مختلف دي .دصحابه کرامو آثار ددي په باره کي ددريونه واخله نهه پوري دي ليکن روستو بيا دصحيح احاديثو په بناء باندي په څلورو باندي دفقهاؤ او ائمه اربعه اجماع مقرر کړې شوه.

**پنځمه مسئله** : ددريم تکبيرنه پس بالاتفاق دعالوستل دي .ليکن دعاګاني په احاديثو کي مختلف راغلي دي هيڅ يوه دعاخاص نه ده بلکه ټولې جائز دي .حديث والا دعا ويل افضل دي که چرته چاته دايادو نه وي نو " اللهم اغفر للمؤمنين والمؤمنات" دې اولولي اودسلام نه پس دعا وغيره نشته دې . (البحر الرائق :٢\١٨٣)

**فائده** : په حديث نمبر ١٠٧٥ کي حضرت عوف بن مالک فرمايلي دي چي دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دادعا مي واوريدله نو ماداارمان اوکړو چي کاش داجنازه زماوي .ډير خوش قسمته حضراتو ته پس دمرګه دنبي کريم صلى الله عليه وسلم دعا ملاؤشوي ده اودبعضي صحابه کرامو په قبر کي نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خپله ورکوز شوي دې ليکلي دي چي دحضرت ذوالبجادين رضي الله عنه سره دپينځو صحابه کرامو په قبر کي دنبي کريم صلى الله عليه وسلم کوزيدل ثابت دي . (الدرالمنضود :٥\٢٤٦)

## ﴿بَابٌ فِي تَرْكِ الصَّلٰوةِ عَلَى الشُّهَدَاءِ﴾

## باب دي په باره د پريښودلو د مانځه د جنازي کې په شهيدانو باندي

﴿١٠٧٧﴾ عَنْ جَابِرِ بنِ عَبدِالله رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يجمَعُ بَيْنَ الرَّجُلَيْنِ مِنْ قَتْلَى أُحُدٍ فِي ثَوْبٍ وَاحِدٍ ثُمَّ يَقُولُ أَيهمَا أَكثَرُ أَخذًا لِلقُرْآنِ فَإِذَا أُشِيرَ لَه أَحَدُهمَا قَدَّمَه فِي اللَّحدِ وَقَالَ أَنَا شَهِيدٌ عَلَى هٰؤُلَاءِ يومَ القِيامَة وَأَمَرَ بِدَفنِهِم فِي دِمَائِهِم وَلَم يغسِلُوا وَلَم يصَلِّ عَلَيهِم رواه البخاري .[1]

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ويلي دي چې نبي اكرم صلى الله عليه وسلم به جمع كول دوه كسان د شهداؤ د احد نه په جامه يوه كې بيا به ئي فرمايل چې كوم يو د دي دواړو نه زيات دي د حيثيته د قرآنكريم د يادولو نه نو كله به چې اشاره وشوه ده لره يو د دي دواړو ته مخكې كاوه به ئي هغه په لحد كې او فرمايل به ئي چې زه ګواه يم په دوي باندي په ورځ د قيامت كې او امر به ئي وفرمايه په ښخولو د دوي سره په وينو خپلو كې او غسل به نهٔ وركړي شوي دوي ته او نه به مونځ د

---

(١) بخاري كتاب الجنائز ج١صـ ١٧٩ باب الصلوة على الشهيد .

جنازي شوي ؤ په هغو باندي. د دي حديث روايت بخاري كړي دي.

## دشهيد په جنازي به مونځ كولي شي يانه ؟

۱- دائمه ثلاثه (امام مالک، شافعي، احمد) په نزد به نه لوستلي كيږي.
۲- دامام ابو حنيفه، صاحبينو او دجمهور تابعينو په نزد به لوستلي كيږي. (حلبی كبير، ص ۵۱۹)

## دائمه ثلاثه دليلونه :

۱- حديث دجابر رضي الله عنه "ولم يصل عليهم" يعني دغزوه احد دشهيدانو دجنازي مونځ نه وولوستلي شوي.
۲- قال النبي صلى الله عليه وسلم: "السيف محاء للذنوب" دشهيد گناهونه معاف شو" والصلاة للمغفرة". (احمد، دارمی)
۳- الله تعالى شهيدانو ته ژوندي ويلي دي او جنازه دمړي كيږي نه دژوندي.

## دجمهورو تابعينو دليلونه :

۱- دمخكي باب اولني حديث چي په هغي كي داعرابی دشهادت نه پس لفظونه دي. فصلى يعني نبي كريم صلى الله عليه وسلم دهغه شهيد دجنازي مونځ ولوستلو.
۲- حديث دابن عباس رضى الله عنه نمبر ۱۰۸۰ "فجعل يصلى عشرة عشرة" يعني نبي عليه السلام دشهيد دجنازي مونځ ولوستلو.
۳- حديث دعبد الله بن زبير رضى الله عنه نمبر ۱۰۸۱ چي ددي مطابق هم نبي كريم صلى الله عليه وسلم داحد دشهيدانو دجنازي مونځ لوستلي وو. داحديث دصحابي مرسل روايت دي. ځكه حضرت عبد الله بن زبير رضى الله عنه په هغه وخت كي تقريبا دوه نيمو كالو وو ليكن سند قوي دي.
۴- حديث دابو مالک رضى الله عنه نمبر ۱۰۸۲ چي ددي مطابق هم داحد دشهيدانو دجنازي مونځ لوستلي شوي داحديث دتابعي مرسل قوي دي.
۵- حديث دعقبه بن عامر رضي الله عنه "صلى على اهل احد صلاته على الميت" (بخاری شريف).

## دائمه ثلاثه ددليلونو جوابونه :

۱- داحد په شهيدانو باندي دجنازي مونځ كولو والا روايت دومره ډير دي چي لامحاله په حديث جابر رضى الله عنه كي داتاويل كولي كيږي چي په وجه دپلار، اوتره دشهادت جابر رضى الله عنه ددوي دجدائي په غم كي وو دغه شان دپلار په دفن كيدو كي اودكور په نورو كارونو كي مشغول وو. چي كله نبي كريم صلى الله عليه وسلم داحد دشهيدانو جنازه كوله نو جابر رضى الله عنه په هغه

وخت کي موجود نه وو بیا دنبي کريم صلی الله عليه وسلم حکم وشو چي دې شهيدانو لره ددوي په وينو ګنده شوو کپړو سره خخ کړي .جابر رضی الله عنه په خخولو کي مصروفه شو لهذا جابر رضی الله عنه چي کومه مشاهده کړي وه هغي لره یي بيان کړه .(بدائع الصنائع ۷۴\۲ ) پس ددي نه صحابه کرامو په غزوه حمراء الاسد کي مشغوله شو داپه رواياتو کي تطبيق شو .

۲- صلاة على الميت نه مقصد دعا دمغفرت نه ده بلکه ددرجاتو اوچت والي او دکرامت ظاهريدل هم دي ، همدغه وجه ده چي صرف د مسلمان د جنازي مونځ لوستلي کيږي دکافر نه لوستلي کيږي "والشهيد اولى بالاعزاز ء الكرامة". (بدائع :۷۴\۲ بتغير )

۳- شهيد په اخروي حکم کي ژوندي دي دالله تعالى ارشاد مبارک دې "بل احياء عند ربهم" (آل عمران ۱۶۹ )په دنياوي حکم کي دنورو مړو په شان دي دده ميراث تقسيم کيږي دده نه پس دده دښځي سره نکاح ته‍يک ده نو اس دجنازي مونځ هم دنياوي حکم دي لهذا داحکم داخروي حکم منافي نه دي .(بدائع :۷۴\۲ )

## ﴿بَابُ فِي الصَّلٰوة عَلَى الشُّهَدَاءِ﴾

## باب دي په باره د مانځه د جنازي کې به شهيدانو باندي

﴿۱۰۷۸﴾ عَن شَدَّادِ بنِ الهادِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ رَجُلًا مِنَ الاَعرَابِ جَاءَ اِلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَآمَنَ بِهِ وَاتبَعَه ثُمَّ قَالَ اُهاجِرُ مَعَك فَاَوصٰى بِه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ بَعضَ اَصحَابِه فَلَمَّا كَانَت غَزوَة غَنمَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ شَيئًا فَقَسَّمَ وَقَسَّمَ لَه فَاَعطٰى اَصحَابَه مَا قُسِمَ لَه وَكَانَ يرعٰى ظَهرَهم فَلَمَّا جَاءَ دَفَعُوه اِلَيه فَقَالَ مَا هٰذَا قَالُوا قِسمٌ قَسَّمَه لَك النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَاَخَذَه فَجَاءَ بِه اِلَى النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَا هٰذَا قَالَ قَسَمتُه لَك قَالَ مَا عَلٰى هٰذَا اتبَعتُك وَلٰكِنِي اتبَعتُك عَلٰى اَن اُرمٰى اِلٰى هٰهنَا وَاَشَارَ اِلٰى حَلقِه بِسَهمٍ فَاَمُوتُ فَاَدخُلَ الجَنَّةَ فَقَالَ اِن تَصدُقِ الله يصدُقك فَلَبِثُوا قَلِيلا ثُمَّ نَهضُوا فِي قِتَالِ العَدُوِّ فَاُتِيَ بِه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يحمَلُ قَد اَصَابَه سَهمٌ حَيثُ اَشَارَ فَقَالَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَهوَ هوَ قَالُوا نَعَم قَالَ صَدَقَ الله فَصَدَقَه ثُمَّ كَفَّنَه النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ فِي جُبَّة النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ قَدَّمَه فَصَلّٰى عَلَيه فَكَانَ مِمَّا ظَهرَ مِن صَلٰوتِه اَللّٰهمَّ هٰذَا عَبدُك خَرَجَ مُهاجِرًا فِي سَبِيلك فَقُتِلَ شَهِيدًا اَنَا شَهِيدٌ عَلٰى

ذٰلك رواه النسائي والطحاوي واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه** : د حضرت شداد ابن الهاد رضي الله عنه نه روايت دي چې بې شکه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته يو سړي د بانډه چيانو نه راغي نو ايمان ئې راوړ په نبي اکرم صلی الله علیه وسلم باندې او د هغه تابعداري ئې وکړه بيا ئې ووېل چې زه تاسره هجرت کوم نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم خپلو څينو اصحابو ته وصيت وفرمايه نو پس کله چې يوه غزوه وشوه نو نبي اکرم صلی الله علیه وسلم ته د غنيمت مال حاصل شو نو هغه ئې تقسيم کړ او ده ته ئې هم حصه ورکړه نو ورئې کړه برخه د ده د ملګرو ته او ؤهغه مسلمان سړي چې د صحابه ؤ نه روسته ئې د دوي حفاظت کاوه نو کله چې راغي نو ورکړه هغوي برخه د ده نو هغه ووېل چې دا څه شئ دي دوي ورته ووېل چې دا ستا د غنيمت برخه ده چې رسول الله صلی الله علیه وسلم تاته مقرره کړي ده نو هغه واخسته او نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته ئې راوړه نو وي ويل چې دا څه شئ دي هغه وفرمايل چې تاته مي په غنيمت کې برخه درکړي ده هغه ووېل چې ما په دې باندې ستا تابعداري نه ده کړي خو ولې ما ستا تابعداري په دې خبره کې کړي ده چې ؤويشتلي شم په دې ځاي باندې او اشاره ئې وکړه خپلي مرئ ته په غشي سره پس مړ شم نو چې داخل شم جنت ته نو هغه صلی الله علیه وسلم وفرمايل که چرې تا د الله جل شانه سره رښتيا ويلي وي نو رښتيني به کړي تا لره الله نو هغوي لږ شان وخت تير کړ بيا دوي ودريدل د دښمن په جنګ کې نو راوړې شو هغه نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته چې راخستلي شوي ؤ په غشي لګيدلي ؤ کوم ځاي ته ئې چې اشاره کړې وه نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې آيا دا هغه دې نو صحابه ؤ ووېل هو نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې ده الله جل شانه ته رښتيا ويلي ؤ نو الله جل شانه هغه رښتني کړ بيا کفن ورکړ هغه ته نبي کريم صلی الله علیه وسلم په چوغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم کې بيا ئې رامخکې کړ د جنازې مونځ ئې پرې وکړ او ؤڅيني الفاظ چې ښکاره شوي ؤ د مانځه د جنازې د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم نه : ( **اللهم هذا عبدك خرج مهاجراً في سبيلك فقتل شهيد انا شهيد على ذلك** ) اې الله دا ستا بنده دې ستا په لاره کې مهاجر راوتلي نو شهيد وژلي شوي دې او زه په دې باندې شاهد يم . د دې حديث روايت نسائي او طحاوي کړي دې او اسناد ئې صحيح دې .

**﴿١٠٤٩﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ أُتِيَ بِهِم رَسُولُ الله يومَ أُحُدٍ فَجَعَلَ يُصَلِّي عَشرَةً عَشرَةً وَحَمزَةُ هوَ كَمَا هوَ يرفَعُونَ وَهوَ كَمَا هوَ مَوضُوعٌ رواه ابن ماجة والطحاوي والطبراني والبيهقي وفي اسنادي**

---

(۱) نسائي كتاب الجنائز ج۱صـ ۲۷۷ باب الصلوة علي الشهداء ، طحاوي كتاب الجنائز ج۱صـ ۳۳۹ باب الصلوة علي الشهداء .

لين.[1]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رضي الله عنه ويلي دي چې راوړلي شوي ؤ شهداء د احد رسول الله ﷺ ته د احد په ورځ نو شروع ئي کړي وه چې د جنازي مونځ وکړي په لسو لسو کسانو باندي او حضرت حمزه رضي الله عنه ؤ لکه څنګه چې ؤ د صحابه کرامو شهيدان به اوچتولي شو او حضرت حمزه رضي الله عنه به ؤ لکه څنګه چې ايښودل شوي ؤ هغه د دي حديث روايت ابن ماجه کړي طحاوي طبراني او بيهقي کړي دي او د دي په اسناد کې ضعف دي.

﴿۱۰۸۰﴾ وَعَن عَبدِالله بنِ الزُّبَيرِ رضي الله عنه اَنَّ رَسُولَ الله ﷺ اَمَرَ يومَ اُحُدٍ بِحَمزَةَ فَسُجِّيَ بِبُردِهٖ ثُمَّ صَلّٰى عَلَيه فَكَبَّرَ تِسعَ تَكبِيرَاتٍ ثُمَّ اُتِيَ بِالقَتلٰى يُصَلّٰى عَلَيهِم وَعَلَيه مَعَهُم رواه الطحاوي واسناده مرسل قوي وهو مرسل صحابي رضي الله عنه.[2]

**ترجمه** : د حضرت عبد الله بن الزبير رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول اکرم ﷺ امر کړي ؤ په ورځ د احد د حضرت حمزه په باره کې نو پټ کړي په څادر کې هغه بيا ئي مونځ کړي ؤ په هغه باندي نو نهه تکبيرونه ئي کړي ؤ بيا به راوړلي شو شهيدان او مونځ ئي وکړ په هغوي باندي او په حمزه رضي الله عنه باندي د نورو شهيدانو سره. د دي حديث روايت طحاوي کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي او دا مرسل د صحابي دي.

﴿۱۰۸۱﴾ وَعَن اَبِي مَالِكٍ الغِفَارِيِ اَنَّ النَّبِي ﷺ صَلّٰى عَلٰى قَتلٰى اُحُدٍ عَشرَةً فِي كُلِّ عَشرَةٍ حَمزَةُ حتّٰى صَلّٰى عَلَيه سَبعِينَ صَلوٰةً رواه ابوداود في المراسيل والطحاوي والبيهقي واسناده مرسل قوي.[3]

**ترجمه** : د ابي مالک غفاري نه روايت دي چې نبي کريم ﷺ د جنازي مونځ وکړ په شهيدانو د احد باندي په لسو لسو کسانو باندي چې په هر لسو کسانو کې حمزه رضي الله عنه ؤ تر دي

(۱) ابن ماجة ابواب ماجاء في الجنائز ص۱۱۰ باب ماجاء في الصّلوة علي الشهدآء ...الخ ، طحاوي كتاب الجنائز ج۱صــ۳۳۸ باب الصّلوة علي الشهدآء ، سنن الكبرىٰ للبيهقي كتاب الجنائز ج۴ ص۱۲ باب من زعم ان النبي ﷺ صلي على شهدآء احد ، تلخيص الحبير كتاب الجنائز ج۲صــ ۱۱۷ نقلًا عن الطبراني .

(۲) طحاوي كتاب الجنائز ج۱صــ ۳۳۸ باب الصّلوة علي الشهدآء .

(۳) طحاوي كتاب الجنائز ج۱صــ ۳۳۸ باب الصّلوة علي الشهدآء ، مراسيل ملحقة بسنن ابي داوٗد صــ ۱۸ ، سنن الكبرىٰ للبيهقي كتاب الجنائز ج۴ صــ ۱۲ باب من زعم ان النبي ﷺ على شهدآء احد ، تلخيص الحبير ج۲صــ ۱۱۷.

پوري چې د جنازي مونځ ئي وکړ په ده باندي اويا مونځونه. د دي حديث روايت ابوداؤد کړي دي په مراسيلو کې او طحاوي او بيهقي کړي دي او اسناد ئي مرسل قوي دي.

## ﴿بَابٌ فِي حَمْلِ الْجَنَازَةِ﴾

## باب دي په وړلو د جنازي کې

﴿۱۰۸۲﴾ عَنْ اَبِي عُبَيْدَةَ قَالَ: قَالَ عَبْدُاللهِ بْنُ مَسْعُوْدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ مَنِ اتَّبَعَ جَنَازَةً فَلْيَحْمِلْ بِجَوَانِبِ السَّرِيْرِ كُلِّهَا فَاِنَّهُ مِنَ السُّنَّةِ ثُمَّ اِنْ شَاءَ فَلْيَتَطَوَّعْ وَاِنْ شَاءَ فَلْيَدَعْ رواه ابن ماجة واسناده مرسل جيد.[1]

**ترجمه**: ابو عبيده ويلي دي چې عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ويلي دي چې څوک د جنازي پسي ځي نو د جنازي د کټ څلور واړه طرفونه دي ټول اوچت کړي بې شکه دا سنت طريقه ده بيا ئي که خوښه شوه نوره نيکي دي هم وکړي او که خوښه ئي شوه پرېږدي ئي دي. د دي حديث روايت ابن ماجه کړي دي او اسناد ئي مرسل جيد دي.

﴿۱۰۸۳﴾ عَنْ اَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ مِنْ تَمَامِ اَجْرِ الْجَنَازَةِ اَنْ تُشَيِّعَهَا مِنْ اَهْلِهَا وَاَنْ تَحْمِلَ بِاَرْكَانِهَا الْاَرْبَعَةِ وَاَنْ تَحْثُوَ فِي الْقَبْرِ رواه ابوبكر بن ابي شيبة في مصنفه واسناده مرسل قوي.[2]

**ترجمه**: حضرت ابودرداء رضي الله عنه ويلي دي چې د جنازي د پوره اجر او ثواب نه دا خبره ده چې د کور والاؤ نه ئي راواخلي او څلور واړه خپې ئي اونيسي او په قبر باندي ئي خاوري واچوي د دي حديث روايت ابوبکر ابن ابي شيبه په خپل مصنف کې کړي او اسناد ئي مرسل قوي دي.

### جنازي ته اوګه ورکول:

جنازي ته اوګه ورکول د مړي اکرام او نيک کار دي. دامام شافعي په نزد دا طريقه سنت ده چې يو کس مخکنې دواړه بنپې په خپلو دواړو اوګو باندي واخلي او دويم کس روستنې دواړه بنپې په خپلو اوګو باندي واخلي، داحنافو او حنابلو په نزد په څلور کسانو څلورو واړو بنپو لره يوه يوه اونيسي. (رحمة الامة، ص ۷۲) امام مالک رحمة الله هم دغه شان فرمايلي دي. (المدونة، ص ۱۰۸).

**دامام شافعي دليل**: ان النبي صلى الله عليه وسلم حمل جنازة سعد بن معاذ بين العمودين.

---

(۱) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات ص ۱۰۷ باب ماجاء في شهود الجنائز.

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الجنائز ج۳ ص ۳۳۲ في الميت يحثي في قبره.

## دجمهورو دلیلونه :

۱- حدیث دابن مسعود رضی الله عنه ، "فلیحمل بجوانب السریر کلهافانه من السنة" دصحابي یو عمل لره سنت مقرر کول دحدیث مرفوع په حکم کي دي البته دابو عبیده بن عبد الله بن مسعود رضی الله عنه دخپل پلار نه سماع (اوریدل) ثابت نه دي ځکه سند اقوي دي .لیکن مرسل دي .

۲- قول ابي الدرداء رضی الله عنه وان تحمل بأرکانها الاربع .

۳- ابن عمر کان یدور علی الجنازة من جوانبها الاربع .(مصنف ابن ابي شیبه :۱۰۳\۳ )

۴- په خلکو کي دجنازي اوچتولو داطریقه مشهوره ده اوداډیره آسانه ده اودغورځیدلو دیرې نه محفوظ ده .(بدائع ۴۳\۲ )

## تطبیق بین الحادیث اوامام شافعي رحمة الله علیه لره جواب :

حدیث دسعد بن معاذ رضی الله عنه سند ضعیف کیدلو سره سره په دي کي دوه احتماله نور هم دي یو داچي دهغي ځای دتنګ والي دوجي نه یي کړي وي دویم داچي دجنازي داوچتولو والاضرورت شوي وي په نورو آثارو کي دعمومي حالت بیان دي چي دڅلورو کسانو اوچتول دي. والله اعلم

بیا داحنافو په نزد مستحب دادي چي اول به دمخکي نه راشي اوښې ښپې لره به په خپلي اوګي باندي کیدي ددي نه پس به په هم دغه اړخ باندي روستو راشي اوروستنې ښپه به په اوګه کیدي بیابه دمړي ګس طرف ته راشي اوبه په خپله ګسه اوګه باندي په مخکنې ښپه کیږدي .ددي نه پس به په همدغه اړخ روستو راشي اوروستنې ښپه په اوګه باندې کیدیي .یوي ښپي لره به لس لس قدمه اوچته کړي ددي دپاره چي څلویښت قدمه شي ځکه چي په یو ضعیف روایت کي ددې فضیلت راغلي دي (بدائع :۴۳\۲ )

## ﴿بَابٌ فِي أَفضَلِيةِ المَشيِ خَلفَ الجَنَازَةِ﴾

## باب دي په بهترئ د تللو کې روسته د جنازي نه

﴿۱۰۸۳﴾ عَن طَاؤُسٍ قَالَ مَامَشٰى رَسُولُ الله ﷺ حَتّٰى مَاتَ اِلَّا خَلفَ الجَنَازَةِ رواه عبدالرزاق واسناده مرسل صحیح.[1]

---

[1] مصنف عبدالرزاق کتاب الجنائز ج۳ص۴۴۵ باب المشي امام الجنازة برقم ۶۲۶۲.

**ترجمه** : طاؤس ویلي دي چې نه دي تللي رسول الله صلی الله علیه وسلم تر څو پورې چې وفات شو مګر روسته د جنازي نه. د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي دي او اسناد ئي مرسل صحيح دي.

﴿۱۰۸۵﴾ وَعَن عَبدِالرَّحمٰن بن اَبزٰی رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كنتُ فِي جَنَازَةٍ وَاَبُوبَكرٍ وَعُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنهُمَا يمشِيانِ اَمَامَهَا وَعَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ يمشِي خَلفَهَا فَقُلتُ لِعَلِي اَرَاكَ تَمشِي خَلفَ الجَنَازَة وَهٰذَانِ يمشِيانِ اَمَامَهَا فَقَالَ عَلِي لَقَد عَلِمَا اَنَّ فَضلَ المَشيِ خَلفهَا عَلَى المَشيِ اَمَامَهَا كَفَضلِ صَلٰوةِ الجَمَاعَة عَلَى الفَذِّ وَلٰكِنَّهُمَا اَحَبَّا اَن يِيسِرَا عَلَى النَّاسِ رواه عبدالرزاق والطحاوي واسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : عبدالرحمن ابن ابزی رضي الله عنه ويلي دي چې زه په يوه جنازه کې وم او ابوبکر رضي الله عنه او عمر فاروق عنهما دواړه مخکې د جنازي نه تلل او حضرت علي رضي الله عنه د جنازي نه روسته ته راوي وائي چې ما حضرت علي رضي الله عنه ته وويل چې زه دي ګورم چې ته د جنازي نه روسته ځي او هغه دواړه د جنازي نه مخکې ځي نو حضرت علي رضي الله عنه وويل چې په تحقيق دا دواړه پوهيږي چې فضيلت د تلو روسته د جنازي نه په تلو باندي مخکې د جنازي نه داسې دي لکه فضيلت د مانځه د جمع په يواځي مونځ باندي خو ولي دوي دواړه غوره کوي او خوښوي چې اسانتيا وکړي په خلکو باندي. د دي حديث روايت عبدالرزاق کړي دي او طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۱۰۸۶﴾ وَعَن عَبدِالله بنِ عَمرِو بنِ العَاصِ رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّ اَبَاهُ قَالَ لَه كن خَلفَ الجَنَازَة فَاِنَّ مُقَدَّمَهَا لِلمَلَائِكَة وَخَلفَهَا لِبَنِي آدَمَ رواه ابوبكر بن ابي شيبة واسناده حسن.[2]

**ترجمه** : د حضرت عبدالله بن عمروابن العاص رضي الله عنه نه روايت دي چې د ده پلار عمروبن العاص هغه ته ويلي ؤ چې د جنازي پسې ځه چې د جنازي مخکې طرف د ملائکو د پاره او روسته طرف ئي د بني ادمانو د بارد دي. د دي حديث روايت ابوبکر بن ابي شيبة کړي دي او اسناد ئي حسن دي.

## دجنازي نه مخکي تلل بهتر دي او که روستو :

۱- دائمه ثلاثه په نزد دجنازي نه مخکي تلل افضل دي.

۲- داحنافو په نزد روستو تلل افضل دي دا اختلاف په افضليت کي دې جائز دواړه دي.

---

(۱) مصنف عبدالرزاق كتاب الجنائز ج۳صـــ ۴۴۶ باب المشي امام الجنازة برقم ۶۲۶۳ ، طحاوي كتاب الجنازة ج۱صـــ۳۲۵ باب المشي امام الجنازة .

(۲) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الجنائز ج۳صـــ ۲۸۲ باب في الجنازة يسرع بها اذا خرج بها ام لا ، عن عبدالله بن عمر رضي الله عنه .

**دائمه ثلاثه دليلونه :**

عن ابن عمر قال ،رأيت النبي صلى الله عليه وسلم وابابكر وعمر يمشون امام الجنازة [illegible]

**داحنافو دليلونه :**

(۱) دباب اولني صحيح مرسل حديث " مامشى رسول الله صلى الله عليه وسلمحتى مات الا خلف الجنازة":

(۲)حضرت على رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وفرما يل چي قسم مې دې وي په هغه ذات باندي چي كوم ذات محمد صلى الله عليه وسلم لره برحق نبي جوړ كړي او راليږلي دي چي دجنازې نه دروستو تللو والا فضيلت په مخكې تلونكو باندې داسې دې لكه دفرضو فضيلت په نفلو باندې [الدر المنضود :۲۵۴/۵]

(۳) په روستو تللو كې به جنازې ته كتلي كيږي او دهغي نه به پند او نصيحت حاصلوي.

**حديث دابن عمر رضي الله عنه تاويل او تطبيق بين الاحاديث :**

۱- مخكې دجنازې نه تلل ددې حضراتو عادت نه وو .

چي دهغي په بناء باندي دې لره افضل وګرځولې شي بلكه دجواز په بيان باندي محمول دي.

۲- كه چرته داحضرات دجنازې نه ورستو تلل نو جنازې وړلو والا به په تنګئ كې پريږ وتل ددوي په ادب او احترام كې.ځكه به هغوي مخكي تلل دخلكو داسانتيا په رعايت كې .دباب په اثر دعلى رضي الله عنه كې ددې بيان دې ، همدارنګه چي كله اثر دعلي رضي الله عنه نه روستو تلل معلوميږي نولامحاله به داموقوف روايت دمرفوع په حكم كې شي لهذا دتاويل نه علاوه بله لاره نشته . [بدائع الصنائع ۴۵/۲]

# ﴿بَابُ القِيَامِ لِلجَنَازَةِ﴾

## باب د پاڅيدو دي د پاره د جنازي

﴿۱۰۸۷﴾ عَن عَامِرِ بنِ رَبِيعَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَأَيتُمُ الجَنَازَةَ فَقُومُوا حَتَّى تُخلِفَكُم اَو تُوضَعُ رواه الجماعة.[1]

---

(۱) بخاري كتاب الجنائز ج۱ص۱۷۵ باب القيام للجنازة ، مسلم كتاب الجنائز ج۱صــ ۳۱۰ فصل في استحباب القيام للجنازة ...، ترمذي ابواب الجنائز ج۱صــ ۲۰۱ باب ماجآء في القيام للجنازة ، ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲صــ ۹۶باب القيام للجنازة ، نسائي كتاب الجنائز ج۱ص۲۷۱باب الامر بالقيام للجنازة ، ابن ماجة ابواب اقامة الصّلاة صــ۱۱۲ باب ماجآء في القيام للجنائز، مسند احمد ج۳صــ ۴۴۶.

**ترجمه** : د حضرت عامر بن ربیعه رضي الله عنه نه روایت دي چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي کله چې ؤګورئ تاسي جنازه نو پاڅئ تر دي پوري چې تاسي روسته پریدي او یا کېښودل شي . د دي حدیث روایت د محدثینو یو جماعت کړي دي .

﴿۱۰۸۸﴾ وَعَن جَابِرِ بنِ عَبدالله رضي الله عنه قَال مَرَّبِنَا جَنَازَة فَقَامَ النَّبِي صلی الله علیه وسلم فَقُمنَا فَقُلنَا يا رَسُولَ الله اِنَّها جَنَازَة يهودِي قَالَ اِذَا رَأَيتُمُ الجَنَازَة فَقُومُوا رواه الشيخان.(۱)

**ترجمه** : حضرت جابر بن عبدالله رضي الله عنه ویلي دي چې په مونږ یوه جنازه تیره شوه نو پاڅیده نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نو مونږه هم پاڅیدو نومونږ وویل چې اي د الله جل شانه رسوله دا جنازه د یهودي وه نو وي فرمایل چې کله وګورئ تاسي جنازه نو پاڅئ . د دي حدیث روایت شیخینو کړي دي .

## مسئله : جنازې لیدلو سره اودریدل پکار دي او کنه ؟

۱- دامام نووي او بعضي شوافعو په نزد دجنازې تیریدلو په وخت کې اودریدل مستحب دي .
۲- دجمهورعلماؤ او ائمه ثلاثه (ابوحنیفه رحمه الله،مالک رحمه الله،شافعي رحمه الله) په نزد که چرته دجنازې سره دتللو اراده نه وي نو اودریدل پکار نه دي .دراجح قول مطابق دامام احمد رحمة الله علیه په نزد سړي ته داودریدلو یا نه اودریدلو اختیار دي .[الدرالمنضود ،۶۵۱/۵ _ ۶۵۲ ،هدایة المجتهد ۱۸۸]

## دبعضي شوافعو دلیل :

دباب دواړه حدیثونه :اذا رأيتم الجنازة فقوموا.

**دجمهورو دلیل** : دمخکیني باب ټول حدیثونه دجمهورو مستدل دي .

**شوافعو ته جواب** :

حدیث دعلی رضي الله عنه :"کان رسول الله صلی الله علیه وسلم امرنا بالقیام فی الجنازة ثم جلس بعد ذالک وامرنا بالجلوس "،دوجي نه اوس دجنازې احترام او دمرګ دیرې یادیدلو دپاره داودریدلو حکم منسوخ شوي ،بس صرف لیدلو سره عبرت حاصلیږي.

**یو ضمني مسئله** : مقبرې ته رسیدلو نه پس مستحب دادي چي ترسوپورې جنازې لره داوګو نه په زمکه باندې نه وي کیخودلې شوي نو ددې نه مخکې دي څوک هم نه کیني او په زمکه کیخو دلو نه پس بغیر دضرورت نه اودریدل پکار نه دي داحادیثو نه دا دواړه حکمونه ثابت دي .

---

(۱) بخاري کتاب الجنائز ج۱ص۱۷۵ باب من قام لجنازة یهودي ، مسلم کتاب الجنائز ج۱ص— ۳۱۰ فصل في استحباب القیام للجنازة ....

# ﴿بَابُ نَسخِ القِيَامِ لِلجَنَازَةِ﴾

## باب دي په نسخ د ودريدو کې د پاره د جنازې

﴿۱۰۸۹﴾ عَن نَافِعِ بنِ جُبَيرٍ اَنَّ مَسعُودَ بنَ الحَكَمِ الاَنصَارِي اَخبَرَه اَنَّه سَمِعَ عَلِيَ بنَ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يَقُولُ فِي شَانِ الجَنَائِزِ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَامَ ثُمَّ قَعَدَ وَاِنَّمَا حَدَّثَ ذٰلِكَ لِاَنَّ نَافِعَ بنَ جُبَيرٍ رَأَى وَاقِدَ بنَ عَمرٍو قَامَ حَتّٰى وُضِعَتِ الجَنَازَةُ رواه مسلم.[1]

**ترجمه**: نافع بن جبیرنه روایت دي چې مسعود بن حکم انصاري هغه ته خبرورکړي چې ده د حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه اوریدلي چې ویلي ئې دي د جنازو په شان کې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم پاڅیده بیا کیناسته او دوي دا حدیث د دې د پاره بیان کړي دي چې نافع بن جبیر لیدلي ؤ واقد بن عمرو لره چې پاڅیدلي ؤ تر دې پورې چې کېښودل شوه جنازه. د دې حدیث روایت مسلم کړي دي.

﴿۱۰۹۰﴾ وَعَنه عَن مَسعُودِ بنِ الحَكَمِ الزُّرَقِي اَنَّه سَمِعَ عَلِيَ بنَ اَبِي طَالِبٍ رضي عنه بِرَحبَةِ الكُوفَةِ وَهُوَ يَقُولُ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَمَرَنَا بِالقِيَامِ فِي الجَنَازَةِ ثُمَّ جَلَسَ بَعدَ ذٰلِكَ وَاَمَرَنَا بِالجُلُوسِ رواه احمد والطحاوي والحازمي في الناسخ والمنسوخ واسناده صحيح.[2]

**ترجمه**: او د مسعود بن حکم زرقي نه روایت دي چې ده د حضرت علي ابن ابي طالب رضي الله عنه نه په یو میدان د کوفه که اوریدلي ؤ او هغه ویل چې رسول الله صلى الله عليه وسلم امر کړي ؤ مونږ ته په ودریدو باندې په جنازه کې بیا ناست شوي ؤ د دینه روسته او امر ئې کړي ؤ مونږ ته په کیناستو باندې. د دې حدیث روایت احمد رحمه الله، طحاوي رحمه الله او حازمي کړي دي په ناسخ او منسوخ کې او اسناد ئې صحیح دي.

﴿۱۰۹۱﴾ وَعَن اِسمٰعِيلَ الزُّرَقِي عَن اَبِيهِ قَالَ شَهِدتُ جَنَازَةً بِالعِرَاقِ فَرَأَيتُ رِجَالًا قِيَامًا يَنتَظِرُونَ اَن تُوضَعَ وَرَأَيتُ عَلِيَ بنَ اَبِي طَالِبٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يُشِيرُ اِلَيهِم اَنِ اجلِسُوا فَاِنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَد اَمَرَنَا بِالجُلُوسِ بَعدَ القِيَامِ رواه الطحاوي واسناده صحيح.[3]

---

(۱) مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۱۰ فصل في استحباب القيام للجنازة ...الخ.

(۲) مسند احمد ج۱ص ۸۲، طحاوي كتاب الجنازة ج۱ص ۳۲۸ باب القيام للجنازة.

(۳) طحاوي كتاب الجنازة ج۱ص ۳۲۸ باب القيام للجنازة.

**ترجمه** : د اسماعیل زرقي نه روایت دي د ده پلار ویلي دي چې زه حاضر شوم یوي جنازي په عراق کې ما ولیده څه سړي ولاړ چې د جنازي د ایښودلو انتظار ئي کاوه او لیدلي مي ؤ حضرت علي رضي الله عنه چې اشاره ئي کوله خلکو ته د دي چې کینئ بي شکه نبي اکرم صلی الله علیه وسلم امر کړي ؤ مونږ ته په کیناستو باندي روسته د ؤدریدو نه . د دي حدیث روایت طحاوي کړي دي او اسناد ئي صحیح دي .

﴿۱۰۹۲﴾ وَعَن زَيدِ بنِ وَهبٍ قَالَ تَذَاكَرنَا القِيَامَ إِلَى الجَنَازَةِ عِندَ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَقَالَ أَبُو مَسعُودٍ قَد كُنَّا نَقُومُ فَقَامَ عَلِيٌّ رَضِيَ اللهُ عَنهُ ذٰلِكَ وَأَنتُم يهودٌ رواه الطحاوي واسناده حسن.[1]

**ترجمه** : زید ابن وهب ویلي دي چې مونږ مذاکره کوله د ؤدریدو په باره کې جنازي ته د حضرت علي رضي الله عنه سره نو ابو مسعود ویلي ؤ چې په تحقیق مونږ به هم ؤدریدو خو حضرت علي رضي الله عنه وویل چې هغه او تاسو یهودیان ئي . د دي حدیث روایت طحاوي کړي او اسناد ئي حسن دي .

## ﴿ بَابٌ فِي الدَّفنِ وَبَعضِ أَحكَامِ القُبُورِ ﴾

## باب دي په ښخولو د مړي او په ځیني احکامو د قبرونو کې

﴿۱۰۹۳﴾ عَن أَنَسِ بنِ مَالِكٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ لَمَّا تُوُفِّيَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ كَانَ بِالمَدِينَةِ رَجُلٌ يلحَدُ وَآخَرُ يضرَحُ فَقَالُوا نَستَخِيرُ رَبَّنَا وَنَبعَثُ إِلَيهِمَا فَأَيُّهُمَا سَبَقَ تَرَكنَاهُ فَأَرسَلَ إِلَيهِمَا فَسَبَقَ صَاحِبُ اللَّحدِ فَلَحَدُوا لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رواه ابن ماجة وآخرون واسناده حسن.[2]

**ترجمه** : حضرت انس بن مالک رضي الله عنه ویلي دي کله چې وفات کړي شو نبي کریم صلی الله علیه وسلم په مدینه منوره کې یو سړي ؤ چې ابو طلحه نومیده هغه به لحد ویسته او یو بل سړي ؤ چې ابو عُبیده نومیده هغه به شق ویسته نو صحابه ؤ وویل چې د خپل رب نه خیر غواړو دي دواړو ته خبر لیږو په دوي کې چې هر یو مخکې راغي هغه بل به پریږدو نو دواړو ته ئي خبر ورکړ نو د لحد والا مخکې راغي نو دوي لحد جوړ کړ د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم د پاره . د دي حدیث روایت ابن ماجه کړي او نورو محدثینو او اسناد ئي حسن دي .

---

(۱) طحاوي کتاب الجنازة ج۱ صـــ ۳۲۹ باب القیام للجنازة .

(۲) ابن ماجة ابواب اقامة الصلوات صـــ ۱۱۳ باب ماجاء في الشق .

﴿۱۰۹۴﴾ وَعَن اَبِي اِسحَاقَ اَوصَي الحَارِثُ اَن يصَلِّي عَلَيه عَبدُالله بنُ يزِيدَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ فَصَلّٰى عَلَيه ثُمَّ اَدخَلَه القَبرَ مِن قِبَلِ الرِّجلِ وَقَالَ هٰذَا مِنَ السُّنَّةِ رواه ابوداود والطبراني والبيهقي وقال اسناده صحيح.[1]

**ترجمه** : د ابي اسحق نه روايت دي چې وصيت کړي ؤ حارث چې مونځ د جنازي دي وکړي په ده باندي عبدالله بن يزيد رَضِيَ اللهُ عَنهُ نو مونځ د جنازي ئي وکړ په هغه باندي بيا ئي ننويسته قبر ته د خپو د طرف نه او وي ويل چې دا سنت طريقه ده . د دي حديث روايت ابوداؤد کړي او طبراني او بيهقي کړي دي او ويلي ئي دي چې اسناد ئي صحيح دي .

﴿۱۰۹۵﴾ وَعَنِ ابنِ عَبَّاس رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ وَاَبُوبَكرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ وَعُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنهُ يدخُلُونَ المَيتَ قَبلَ القِبلَةِ رواه الطبراني في الكبير وفي اسناده عبدالله بن خراش وثقه ابن حبان وضعفه جماعة.[2]

**ترجمه** : حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ او حضرت ابوبکر صديق رَضِيَ اللهُ عَنهُ او حضرت عمر رَضِيَ اللهُ عَنهُ ننويستي ؤ مړي قبر ته د قبلي د طرف نه . د دي حديث روايت طبراني کړي په کبيرْ کې او د دي په اسناد کې عبدالله بن خراش دي او ثقه ګڼړلي دي ابن حبان او کمزوري ګڼړلي دي د محدثينو يوي ډلي .

﴿۱۰۹۶﴾ وَعَن عَلِي رَضِيَ اللهُ عَنهُ اَنَّه اَدخَلَ يزِيدَ بنَ المُكَفَّفِ مِن قِبَلِ القِبلَةِ رواه عبدالرزاق وابوبكر بن ابي شيبة وصححه ابن حزم في المحلي .[3]

**ترجمه** : د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنهُ نه روايت دي چې ده يزيد بن مکفيف ننويستي ؤ قبر ته د قبلي د طرف نه . د دي حديث روايت عبدالرزاق او ابوبکر بن ابي شيبه کړي دي او صحيح ګڼړلي دي دا حديث ابن حزم په محلى کې.

﴿۱۰۹۷﴾ وَعَن اَبِي اِسحَاقَ قَالَ شَهِدتُ جَنَازَةَ الحَارِثِ فَمَدُّوا عَلٰى قَبرِهٖ ثَوبًا فَجَبَذَهٗ عَبدُالله بنِ يزِيدَ

---

(۱) ابوداؤد کتاب الجنائز ج۲ص۱۰۲ باب کيف يدخل الميت قبره ، سنن الکبرٰی للبيهقي کتاب الجنائز ج۴ص۵۳ باب من قال يسل الميت من قبل رجل القبر .

(۲) المعجم الکبير للطبراني ج۱۱ص۸۱ برقم ۱۱۱۲.

(۳) مصنف عبدالرزاق کتاب الجنائز ج۳ص۴۴۹ باب من حيث يدخل الميت القبر برقم ۶۴۷۲ ، مصنف ابن ابي شيبة کتاب الجنائز ج۳ص۳۲۸ من ادخل ميتا من قبل القبلة محلّٰى ابن حزم کتاب الجنائز ج۳ص۱۸۲ يدخل الميت کيف امکن...الخ.

رَضِيَ اللهُ عَنْهُ وَقَالَ اِنَّمَا هُوَ رَجُلٌ رواه ابن ابي شيبة واسناده صحيح.(۱)

**ترجمه**: ابي اسحق ويلي دي چې حاضر شوي ومه زه جنازې د حارث ته نو خوره کړه دوي په قبر د هغه باندي څه جامه نو راخلکو ده هغه عبدالله بن يزيد رضي الله عنه او وي ويل چې بي شکه دا سړي دي. د دي حديث روايت ابن ابي شيبه کړي دي او اسناد ئي صحيح دي.

﴿۱۰۹۸﴾ وَعَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ اِذَا وَضَعَ المَيتَ فِي القَبرِ قَالَ بِسمِ الله وَعَلى سُنَّةِ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه ابو داود وآخرون وصححه ابن حبان.(۲)

**ترجمه**: د حضرت ابن عمر رضي الله عنه نه روايت دي چې ۇ نبي كريم صلى الله عليه وسلم چې كله به ئي كېښوده مړي په قبر کې نو فرمايل به ئي بسم الله وعلى سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم. د دي حديث روايت ابو داؤد او نورو محدثينو کړي او صحيح گڼلي هغه، ابن حبان.

﴿۱۰۹۹﴾ وَعَن عَامِرِ بنِ سَعدِ بنِ اَبِي وَقَّاصٍ اَنَّ سَعدَ بنَ اَبِي وَقَّاصٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ فِي مَرَضِهِ الَّذِي هَلَكَ فِيهِ الحَدُوالِي لَحدً وَانصِبُوا عَلَى اللَّبِنَ نَصبًا كَمَا صُنِعَ بِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه مسلم وآخرون.(۳)

**ترجمه**: د عامر بن سعد ابن ابي وقاص نه روايت دي چې سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ويلي ۇ په خپل هغه مرض کې چې پکې وفات شو أوباسئ ماته لحد او ۇدروئ ماته کچې خښتي لکه څنګه چې رسول اكرم صلى الله عليه وسلم سره كار شوي ۇ. د دي حديث روايت مسلم او نورو محدثينو کړي دي.

﴿۱۱۰۰﴾ وَعَن اَبِي هُرَيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ اَنَّ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَلَّى عَلَى جَنَازَةٍ ثُمَّ اَتَى قَبرَ المَيتِ فَحَثَى عَلَيهِ مِن قِبَلِ رَاسِهِ ثَلَاثًا رواه ابن ماجة وابن ابي داود وصححه.(۴)

**ترجمه**: د حضرت ابو هريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم مونځ وکړ په يوه جنازه باندي بيا ئي تشريف راوړ قبر د مړي ته نو وائي چوله خاوره په سر د مړي باندي دري ځله. د دي حديث روايت ابن ماجه کړي او ابن ابي داؤد کړي دي او صحيح ئي گڼلي دي.

---

(۱) مصنف ابن ابي شيبة كتاب الجنائز ج۳ص۳۲۶ باب ما قالوا في مد الثوب على القبر.

(۲) ابوداود كتاب الجنائز ج۲ص۱۰۲ باب في الدعاء للميت اذا وضع في قبره، صحيح ابن حبان كتاب الجنائز ج۶ص۴۳ برقم ۳۱۰۰.

(۳) مسلم كتاب الجنائز ج ۱ص۳۱۱ فصل في استحباب اللحد.

(۴) ابن ماجة ابواب ماجاء في اقامة الصلوات ص۱۱۳ باب ماجاء في حثو التراب في القبر. تلخيص الحبير كتاب الجنائز ج۲ص۱۳۱ نقلا عن ابن ماجة وابن ابي داود في كتاب التفرد.

﴿۱۱۰۱﴾ وَعَنِ الْقَاسِمِ قَالَ دَخَلْتُ عَلَى عَائِشَةَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا فَقُلْتُ يَا أُمَّهْ اِكْشِفِي لِي عَنْ قَبْرِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَصَاحِبَيْهِ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا فَكَشَفَتْ لِي عَنْ ثَلٰثَةِ قُبُورٍ لَا مُشْرِفَةٍ وَلَا لَاطِئَةٍ مَبْطُوحَةٍ بِبَطْحَاءِ الْعَرْصَةِ الْحَمْرَاءِ رواه ابوداود وآخرون في اسناده مستور.[1]

**ترجمه**: قاسم ويلي دي چې زه د حضرت عائشې رضي الله عنها په خدمت کې حاضر شوي وم نو ما وويل اي موري! ښکاره کړه ماته قبر د رسول الله صلى الله عليه وسلم او د دوه د دواړو يارانو صاحبانو قبرونه نو ښکاره ئې کړل ماته درېواړه قبرونه نه ډير اوچت ؤ او نه د ځمکې سره بالکل برابر ؤ د ميدان سوربخن کاڼړي پرې پراته ؤ. د دې حديث روايت ابوداؤد او نورو محدثينو کړي دي او د دې په اسناد کې مستور الحال دي.

﴿۱۱۰۲﴾ وَعَنْ سُفْيَانَ التَّمَّارِ أَنَّهُ رَأَى قَبْرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مُسَنَّمًا رواه البخاري.[2]

**ترجمه**: د سفيان تمار نه روايت دي چې هغه ليدلي ؤ قبر مبارک د رسول الله صلى الله عليه وسلم هوار ماهي پشت. د دې حديث روايت بخاري کړي دي.

﴿۱۱۰۳﴾ وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ الرَّشَّ عَلَى الْقَبْرِ كَانَ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رواه سعيد بن منصور والبيهقي واسناده مرسل قوي.[3]

**ترجمه**: جعفر بن محمد د خپل پلار نه روايت کړي دي د اوبو چنړکاؤ شوي ؤ په قبر باندي په زمانه د رسول الله صلى الله عليه وسلم کې. د دې حديث روايت سعيد بن منصور او بيهقي کړي دي او اسناد ئې مرسل قوي دي.

﴿۱۱۰۴﴾ وَعَنْهُ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَشَّ عَلَى قَبْرِ ابْنِهِ إِبْرَاهِيمَ وَوَضَعَ عَلَيْهِ حَصْبَاءَ رواه الشافعي واسناده مرسل جيد.[4]

**ترجمه**: جعفر بن محمد د خپل پلار نه روايت کړي دي چې بې شکه رسول اکرم صلى الله عليه وسلم چنړکاؤ کړي ؤ په قبر مبارک د خپل ځوي حضرت ابراهيم رضي الله عنه او ايښي ئې ؤ واړه واړه کاڼړي په

---

(۱) ابوداؤد كتاب الجنائز ج۲ص۱۰۳ باب في تسوية القبور.

(۲) بخاري كتاب الجنائز ج۱ص۱۸۶ باب ماجاء في قبر النبي صلى الله عليه وسلم.

(۳) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الجنائز ج۳ص۴۱۱ باب رش الماء على القبر ...الخ، تلخيص الحبير كتاب الجنائز ج۲ص۱۳۳ نقلاً عن سعيد بن منصور في سننه.

(٤) مسند امام شافعي رحمه الله الباب الثالث والعشرون في صلوة الجنائز ج۱ص۲۱۵ رقم الحديث ۵۹۹.

هغې باندې.

﴿۱۱۰۵﴾ وَعَنه عَن اَبِيه اَنَّ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ رَشَّ عَلَى قَبرِهِ المَاءَ وَوَضَعَ عَلَيه حَصبًا مِن حَصبَاءِ العَرصَةِ وَرَفَعَ قَدرَ شِبرٍ رواه البيهقي وهو مرسل.[1]

**ترجمه**: جعفر بن محمد د خپل پلار نه روايت کړي دي چې بې شکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم چنړکاو کړي وي او به په قبر مبارک د هغه او ايښي ئې وُ واړه کانړي د کانړو د ميدان نه او اوچت کړي ئې وُ قبر د ده په اندازه د يوې لېشتې. د دې حديث روايت بيهقي کړي دی او هغه مرسل دی.

﴿۱۱۰۶﴾ وَعَن جَابِرٍ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ نَهَى رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اَن يُجَصَّصَ القَبرُ وَاَن يُقعَدَ عَلَيه وَاَن يُبنٰى عَلَيه رواه مسلم.[2]

**ترجمه**: حضرت جابر رضي الله عنه وېلي دي چې منع کړي رسول الله صلى الله عليه وسلم د پخولو د قبر نه او د کيناستو په قبر باندې او د ابادئ نه په قبر باندې. د دې حديث روايت مسلم کړي دی.

﴿۱۱۰۷﴾ وَعَن عُثمَانَ بنِ عَفَّانَ رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ النَّبِي صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ اِذَا فَرَغَ مِن دَفنِ المَيِّتِ وَقَفَ عَلَيه فَقَالَ استَغفِرُوا لِاَخِيكُم وَاسئَلُوا لَه بِالتَّثبِيتِ فَاِنَّه الآنَ يُسأَلُ رواه ابوداود وصححه الحاكم.[3]

**ترجمه**: حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه وېلي دي چې وُ نبي اکرم صلى الله عليه وسلم چې کله به فارغ شو د هخولو د مړي نه وبه دريده په قبر باندې نو فرمايل به ئې چې بخښنه وغواړئ د خپل ورور د پاره او سوال وکړئ د ده د پاره په تثبيت سره بې شکه دا اوس پوښتنه کيدې شي د ده نه د دې حديث روايت ابوداؤد کړي دی او حاکم صحيح ګڼړلي دی.

## د دفن کولو مسئلې

**د قبر قسمونه**: د قبر دوه قسمونه دي (۱) لحد (۲) شق.

**شق**: خو هغه دی چې زمونږ په طرفونو کې رواج دی يعني نيغ قبر، او لحد اړخ والا قبر يعني د زمکې کنستلو نه پس قبلې طرفته يو غار کنده شان بله کنستلې شي او بيا مړې په هغې کې

(۱) سنن الكبرى للبيهقي كتاب الجنائز ج۳صـــ ۴۱۱ باب لا يزاد على في القبر على اكثر من ترابه .
(۲) مسلم كتاب الجنائز ج۱صـــ ۳۱۲ فصل في تسوية القبر .
(۳) ابوداود كتاب الجنائز ج۲صـــ ۱۰۳ باب الاستغفار عند القبر ...الخ ، مستدرك حاكم كتاب الجنائز ج۱صـــ۳۷۰ بـاب الاستغفار وسوال التثبيت للميت ...الخ .

کیخودلې شي،دروستو طرفه دې لره شلوي دکوم ځاي زمکه چي سخته وي هلته دا قبر جوړيدلې شي.

**اولنې مسئله** : دقبردواړه قسمونه جائزدي ،خو په درمیانه زمکه کې کوم یو افضل دې ؟ دوه قولونه دي ؟

۱_ دجمهورو په نزد لحد مسنون او افضل دې .[رحمة الامة ،ص ۷۳]

۲_ علامه کاساني دامام شافعي په نزد شق ته مسنون ويلې دي[بدائع :۲۰/۲]ليکن په کتاب الام(۲۷٦/۱) کې پخپله امام شافعي رحمة الله عليه فرمايلي دي چي په سخته زمکه کې لحد او نرمه زمکه کې شق اختيارول پکار دي .

## دلحد دفضيلت دليلونه :

۱- دنبي عليه السلام ارشاد دې اللحد لنا والشق لغيرنا .[ابوداؤد ،ترمذي،نسائی] يعني مونږ لحد لره اختيار کړې دي هغه زمونږ دپاره اولی دېدشق په مقابله کې او مخکني امتونو شق لره اختيار کړي دي .

۲- دنبي عليه السلام قبر مبارک لحد جوړکړې شوي وو چي دهغي صورت دا بيان کړې شوي دې چي په صحابه کرامو کې يو صحابي يعني حضرت ابو طلحه رضي الله عنه لاحد وو لحدجوړونکې وو او يو صحابي يعني حضرت ابوعبيده بن الجراح رضي الله عنه شقاق وو شق جوړونکې وو .دوصال نه پس يو يو کس دواړوپسي او ليږلې شو هلته حضرت عباس رضي الله عنه دعا اوفرمايله :"**الهم خر لنبيک احب الامرين اليک**" او دوي مستجابو الدعوات وو نو لږ ساعت پس يو کس حضرت ابو طلحه انصاري رضي الله عنه ځان سره راوستلو او حضرت ابو عبيده رضي الله عنه په موقع باندي ميلاو نه شو ددې وجې نه لحدلره اختيار کړې شو .[بدائع الصنائع :۲/۶۰]

۳_ دلحد تائيد حديث دسعد بن ابي وقاص رضي الله عنه نمبر ۱۱۰۰ نه هم کيږي چي په سند صحيح سره روايت شوي دي چي دهغي الفاظ دادي:" **الحدوا لی لحدا وانصبوا عل اللبن نصبا کما صنع برسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**".

**دويمه مسئله** : مړي نره قبر کې دکوځولو څه طريقه کول پکار دي؟ددې په باره کې دوه قوله دي:

۱- دائمه ثلاثه په نزد مړي لره په قبر کې دنبي طرف نه داخلول اولی دي په دې صورت کې به کټ لره په اوګدوالي کې دقبر سره لاندي طرفته کيخودلې شي او بيا به په بتدريج مړي نره په قبر کې دسر دطرف نه داخل کړې شي .

٢- د امام ابوحنیفه رحمة الله علیه په نزد مړي لره به دقبلې دطرف نه قبر ته ښکته کولې شي یعني کټ لره به دقبر ښي طرف ته دقبر په پلن والي کې کیخودلې شي .بیائي دمړي تول وجود لره په یو ځل قبر کې داخل کړي .[بدائع الصنائع ،٢/٦١] دا اختلاف هم په افضلیت کې دي جائز دواړه صورتونه دي.

## دامام شافعي رحمة الله علیه دلیل :

حدیث نمبر ١٠٩٥عمل دعبدالله بن یزید رضي الله عنه "ادخله القبر من قبل الرجل وقال هذا من السنة"

## دامام ابوحنیفه رحمة الله علیه دلیلونه :

١- حدیث دابن عباس " ان النبي صلى الله عليه وسلم ادخل فى القبر سلا ". [سنن کبری ٤/٥٤]

٢- حدیث دابن عباس نمبر ١٠٩٦: " کان النبي صلى الله عليه وسلم وابوبکروعمر یدخلون المیت قبل القبلة " ،ددې حدیث په سند باندې کلام دې.

٣- نبی اکرم صلى الله عليه وسلم ابو دجانه رضي الله عنه لره دقبلې دطرف نه قبر ته ښکته کړې وو .(ترمذی بسند حسن)

٤- عن ابن عباس وابن عمر قالا یدخل المیت قبره من قبل القبلة.

٥- ابراهیم نخعی رحمه الله فرمائلي دي چې داهل مدینې والاعادت په اول کې په طرف دقبلې قبر ته دښکته کولو وو .لیکن روستو دزمکې دنرم کیدو دوجې نه هغوي د(سل) والا طریقه کړې یعني دښي طرفنه دداخلولو. (بدائع الصنائع :٦٢\٢)

## ائمه ثلاثه ته جوابونه :

دنبی کریم صلى الله عليه وسلم قبر ته دداخلولو دطریقې په باره کې مختلف روایات دي .پخپله دابن عباس رضي الله عنه نه یو داروایت دې .چې نبی کریم صلى الله عليه وسلم لره دقبلې طرف نه په قبر شریف کیخودلې شوي دي لیکن دابن عباس رضي الله عنه دادواړه روایتونه ضعیف دي .علاوه ددېنه چې حضور صلی الله علیه وسلم دعائشې رضي الله عنها په حجره کې وصال فرمایلې وو او انبیاء کرام علیهم السلام چې کوم ځای کې ددینه پرده او فرمایي همهلته دفن کولې شي اوس په حجره شریفه کې چې کوم ځای کې حضور صلی الله علیه وسلم دفن کړې شو په هغې کې قبلې طرفته ددیوال دنزدیکت دوجې نه ځه ګنجائش نه وو چې کټ دې هغه طرفته کیدي لهذا دضرورت دوجې نه دویم صورت اختیار کړې شو.

**دریمه مسئله** : قبر ته په کپړې سره پټول :دحنفیو رحمه الله په نزد صرف دښځې قبر لره دې پټ کړې شي .دسړي نه . نیکن دامام شافعي رحمه الله په نزد دسړي قبر لره هم پټول پکار دي ځکه چې مروي دي چې حضور صلى الله عليه وسلم دسعد بن معاذ رضي الله عنه قبر لره په کپړې سره پټ کړې وو لیکن ددې حدیث

صند ضعيف دي ، دغه شان دا هم ممکنه ده چې ديو ضرورت په بنا باندې دحضرت سعد رضي الله عنه قبر لره پټ کړې شوې وو مثلا کفن شليدل يا دباران دوجې نه وو يا دګرمئ نه دبچ کيدو لپاره داسې کړې شوي وو .(بدائع مع الحاشيه :۶۴/۲) دحنفيو دليل دباب حديث نمبر ۱۰۹۸ دې کوم کې چې په صحيح سند سره مروي دي چې عبدالله بن يزيد رضي الله عنه دسړي قبر لره دپټولو نه منع فرمايلې وه . والله اعلم

**څلورمه مسئله** : مړي لره په قبر کې دايخودلو په وخت کومه دعا ويل پکار دي ؟

ددې باره کې دباب حديث نمبر ۱۰۹۹ کې دا کلمات وارد شوي دي : "**بسم الله وعلى سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم وضعناک وعلى سنة رسول الله صلى الله عليه وسلم سلمناک**" دالله په مبارک نوم سره مو کيخودلې او دالله درسول صلى الله عليه وسلم دسنت مطابق مو خاورو ته وسپارلې .(البحر الرائق :۱۹۳/۲)

نورې دعاګانې هم منقول دي مثلا مشهوره دعا : "**بسم الله وعلى ملة رسول الله صلى الله عليه وسلم**" يعنې دالله په نوم سره مو دفن کړې او دالله درسول صلى الله عليه وسلم په دين مو خاورو ته وسپارلې. دغه شان : "**بسم الله وبالله وعلى ملة رسول الله**" . (بدائع :۶۲/۲-۶۳)

**پنځمه مسئله** : بالاتفاق قبر لره دجوړولو په وخت کچه خختې استعمالول پکار دي ، په اور کې پخې خختې نه . (رحمة الامة ، ص:۷۳)

**شپږمه مسئله** :دخاورې اچولو په وخت مستحب دي چې دسر دطرفنه دې شروع اوکړې شي او هر يو کس دې درې پيره په خپلو دواړو لاسونو خاوره ورواچوي کمافي الحديث رقم ۱۱۰۱.

**اومه مسئله** : دقبر مستحب جوړول

دامام شافعي رحمه الله په نزد دقبر مربع او مسطح جوړول مستحب دي ليکن دامام ابوحنيفه رحمه الله ، مالک رحمه الله . واحمد رحمه الله په نزد مستحب دادي چې داوښ دکوهان په شان دې جوړ کړې شي ، ددې اوچت والې ديو لېشت يا ددېنه څه زيات پکار دې .(رحمة الامة ،ص: ۷۳)

دامام شافعي رحمه الله په نزد دليل حديث دقاسم رحمه الله نمبر ۱۱۰۲ دېدکوم مطابق چې حضور صلى الله عليه وسلم او دحضرات شيخينو قبرونه نه اوچت وو او نه بالکل زمکې سره لګيدلي وو .

**دائمه ثلاثه رحمهم الله دلائل** :۱... حديث دسفيان تمار رحمه الله نمبر ۱۱۰۲ په صحيح سند سره چې حضور صلى الله عليه وسلم قبر مبارک ته اوکتل چې کوهان نما جوړ شوې وو .

۲. حديث نمبر ۱۱۰۵ چې دابراهيم بن رسول الله صلى الله عليه وسلم قبر مبارک يو لېشت اوچت جوړ کړې شوې وو .

۳. مسطح هموار قبر داهل کتابو وي. دمسلمانانو لپاره ددېنه بچ کيدل بهتر دي. (بدائع :۲۵/۲).

**امام شافعي رَحِمَهُ اللهُ ته جواب :**

دقاسم رَحِمَهُ اللهُ دحديث په سند کې عمرو بن عثمان مستورالحال دې همدارنګه دقاسم رَحِمَهُ اللهُ الفاظ "نه اوچت وو ته بالکل زمکې سره لګيدلې وو " ديو ليشت په مقدار کوهان نما اوچتيدو منافي نه دي، لهذا تطبيق وشو ممکنه ده ابتداءً مسطح وو ليکن بيا مسنم کړې شو .(بدائع : ۲۵/۲).

**فائده** : دحضرت عائشې رضي الله عنها په ژوند کې دقبرونو طرفته يوه پرده پرته وه وروسته بيا په حجره شريفه کې په مختلفو زمانو کې تعميري تغيرات کيدل، دديوال دغورځيدو واقعه هم راغله دکوم ذکر چې په صحيح بخاري (۱۸۶/۱) کې هم ده . حضرت عمر بن عبدالعزيز ددې درې واړو قبرونو ګير چاپيره په يو اوچت ديوال سره احاطه کړي اوس خو هغه قبور ثلاثه ته رسيدل هم ممکن نه دي . (حاشيه الدر المنضود :۲۷۷/۵).

**اتمه مسئله** : دخاورې غورځولو نه پس په قبر باندې داوبو يو چاڼړ کول پکار دي چې په دې سره خاوره برابريږي .(بدائع :۶۵/۲)

**نهمه مسئله** : حديث نمبر ۱۱۰۷ کې دري خبرو نه منع کړې شوې ده ، دا درې واړه خبرې مکروه دي

۱... تخصيص يعنې قبر لره په چونې سره پخول .

۲... په قبر باندې کيناسل ، ځکه چې په دې کې دمسلمان سپک والې دی او ترکِ حرمت دې .

۳... بناء على القبر يعنې کاڼړي وغيره سره دې مرتب کړې شي يا قبر باندې خيمه وغيره لره دې قـ...کړې شي .(الدرالمنضود :۲۸۰/۵،بدائع :۶۵/۲ ملخصا)

**لسمه مسئله** :ددفن کولو نه پس لږ وخت لپاره قبر سره پاتې کيدل او مړي لپاره دې دعا دمغفرت او همدارنګه دمنکر نکير دسوالونو په جواب کې دثابت قدم پاتې کيدو دعا کول مستحب دي . کما في الحديث رقم ۱۱۰۸ ، تلک عشرة کاملة .

## ﴿بَابُ قِرَاءَةِ الْقُرآنِ لِلْمَيِّتِ﴾

## باب د قرآنکريم د تلاوت دي د پاره د مړي

﴿۱۱۰۸﴾ عَنْ عَبْدِالرَّحْمٰنِ بْنِ الْعَلَاءِ بْنِ اللَّجْلَاجِ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ لِي أَبِي اللَّجْلَاجِ أَبُو خَالِدٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يَا بُنَيَّ إِذَا أَنَا مِتُّ فَالْحَدْ لِي فَإِذَا وَضَعْتَنِي فِي لَحْدِي فَقُلْ بِسْمِ اللهِ وَعَلَى مِلَّةِ رَسُولِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ سُنَّ عَلَيَّ التُّرَابَ سَنًّا ثُمَّ اقْرَأْ عِنْدَ رَأْسِي بِفَاتِحَةِ الْبَقَرَةِ وَخَاتِمَتِهَا فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

يقُولُ ذٰلِك رواه الطبراني في المعجم الكبير واسناده صَحيحٌ.[1]

**ترجمه**: عبدالرحمن بن العلاء بن الجلاج د خپل پلار نه حديث بيان كړي دي ويلي ئي دي چې ماته خپل پلار لجلاج ابو خالد ويلي ؤ چې اي بچيه كله چې زه مړ شم ماته لحد جوړ كړه او كله دي چې كښودمه زه په خپل لحد كې نو ووايه بسم الله وعلى ملة رسول الله يعني كيمي ښودي د الله جل شانه په نوم او اؤمي سپارلي په دين د رسول الله صلى الله عليه وسلم باندي بيا برابره كړه په ما باندي خاوره بيا تلاوت كړه څما سر طرف ته د بقري د سورت اولني ايتونه د (الم) نه تر مفلحون پوري او د بقري د سورت اخري ايتونه څكه چې ما اوريدلي ؤ رسول الله صلى الله عليه وسلم نه چې د دي تلاوت ئي فرمايه. د دي حديث روايت طبراني كړي دي په معجم كبير كې او اسناد ئي صحيح دي.

## دمړي لپاره ايصال ثواب

داهل سنت والجماعت په نزد مړي ته ايصال ثواب جائز دې او مړي ته ثواب رسيږي (رحمة الامة، ص:۷۴) دمړي ددفنولو نه پس سر طرفته دسوره بقره اولني آيتونه تر "المفلحون" پورې او ښپو طرفته يي دسوره بقره آخري آيتونه "امن الرسول" نه تر ختم سورت پورې ويل مستحب دي (اوګورئ حديث نمبر ۱۱۰۸) دالله تعالى نه مو دا اميد دې چې اهل قبورو باندې به دعذاب تخفيف اوفرمايي يا دمغفرت ددعا په بركت سره به ورته عذاب بالكل معاف كړي، په يو روايت كې دي چې كوم كس مقبرې ته دداخليدو نه پس دسوره يسين تلاوت اوكړي الله تعالى په هغه ورځ اهل قبورو باندې دعذاب تخفيف فرمايي او دغه كس ته ددې دتعداد په اندازه نيكې ملاويږي. (التعليق الحسن)

## ﴿بَابٌ فِي زِيَارَةِ الْقُبُورِ﴾

## باب دي په زيارت د قبرونو كې

﴿۱۱۰۹﴾ عَن بُرَيدَةَ رضي الله عنه قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صلى الله عليه وسلم كنتُ نَهيتُكم عَن زِيارَةِ القُبُورِ فَزُورُوها رواه مسلم.[2]

**ترجمه**: حضرت بريده رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي ؤم زه چې منع كړي

---

(۱) مجمع الزوائد، كتاب الجنائز ج۳ص ۴۴ باب ما يقول عند ادخال الميت القبر نقلا عن الطبراني في الكبير.

(۲) مسلم كتاب الجنائز ج۱ص ۳۱۴ فصل في الذهاب الى زيارة القبر.

مي ؤئ تاسي د زيارت د قبرونو نه نو زيارت كوئ د قبرونو . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

﴿١١١٠﴾ وَعَن عَائِشَة رَضِيَ اللهُ عَنهَا قَالَت كَيفَ أَقُولُ يَا رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ قَالَ قُولِي اَلسَّلَامُ عَلَى أَهلِ الدِّيَارِ مِنَ المُؤمِنِينَ وَالمُسلِمِينَ وَيرحَمُ الله المُستَقدِمِينَ مِنَّا وَالمُستَاخِرِينَ وَإِنَّا إِن شَاءَ الله بِكم لَلَاحِقُونَ رواه مسلم.[٢]

**ترجمه** : حضرت عائشي رضي الله عنها ويلي دي مقبري ته د رسيدو په وخت كي څه ووايم اي د الله جل شانه رسوله . هغه وفرمايل چې ووايه : اَلسَّلَامُ عَلَيكم أَهلِ الدِّيَارِ مِنَ المُؤمِنِينَ وَالمُسلِمِينَ وَيرحَمُ الله المُستَقدِمِينَ مِنَّا وَالمُستَاخِرِينَ وَإِنَّا إِن شَاءَ الله بِكم لَلَاحِقُونَ رواه مسلم. يعني : سلام دي وي په تاسو اي د مؤمنانو او د مسلمانانو د كورونو اهله او رحم دي وكړي الله جل شانه په پخوانو او روستونو زمونږ باندي او بي شكه مونږ كه د الله جل شانه اراده وشي خامخا پيوسته كيدونكي يو په تاسو پوري . د دي حديث روايت مسلم كړي دي .

﴿١١١١﴾ وَعَن بُرَيدَة رَضِيَ اللهُ عَنهُ قَالَ كَانَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيهِ وَسَلَّمَ يعَلِّمُهم إِذَا خَرَجُوا إِلَى المَقَابِرِ أَن يقُولَ قَائِلُهم اَلسَّلَامُ عَلَيكم أَهلَ الدِّيَارِ مِنَ المُؤمِنِينَ وَالمُسلِمِينَ وَإِنَّا إِن شَاءَ الله بِكم لَلَاحِقُونَ نَسأَلُ الله لَنَا وَلَكمُ العَافِيةَ رواه احمد ومسلم وابن ماجة.[١]

**ترجمه** : حضرت بريده رضي الله عنه ويلي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم به صحابه كرامو ته تعليم وركاوه چې كله به دوي مقبرو ته تلل ودي وائي ويونكي د دوي نه السلام عليكم اهل الديار من المؤمنين والمسلمين وانا ان شاء الله بكم للاحقون ونسئل الله لنا ولكم العافية د دي حديث روايت احمد ، مسلم او ابن ماجه كړي دي . يعني: سلام دي وي په تاسو باندي اي د مؤمنانو او مسلمانانو د كورونو خلكو او مونږ كه د الله جل شانه اراده وشي په تاسو پوري پيوسته كيدونكي يو او مونږ غواړو الله جل شانه نه ځان د پاره او تاسو د پاره عافيت . د دي حديث روايت احمد مسلم او ابن ماجه كړي دي .

---

(٢) مسلم كتاب الجنائز ج١ صـــ ٣١٤ فصل في الذهاب الیٰ زيارة القبور .

(٣) مسند احمد ج ٥ صـــ ٣٥٣ مسلمكتاب الجنائز ج١ صـــ ٣١٤ فصل في الذهاب الیٰ زيارة القبور ابن ماجه ابـــواب ماجـــاء في الصلوات صـــ ١١٢ باب ماجاء فيما يقال اذا دخل المقابر .

**مسئله دزيارت دقبرونو** :په اول کې دقبرونو دزيارت نه منع کړې شوې وه بيا اجازت ورکړې شو ځکه خو دسړو لپاره بالاتفاق زيارت دقبرونو جايز دې البته دښځو په باره کې څه اختلاف دې ليکن دحنفيو په نزد راجح قول مطابق ښځې که دعبرت او دنصيحت حاصلولو لپاره ددعاء للاموات لپاره لاړې شي نو جائز او دزړو ښځو دپاره خو بالکل صحيح دي البته دځوانو ښځو لپاره مکروه دي او که دچغو او سرو او دژړا لپاره ځي نو بيا دچا لپاره هم جائز نه دي. ( البحر الرائق مع الحاشيه : ۲/۱۹۵، والدر المنضود :۵/۲۸٤ ملخصا )

## ﴿ بَابٌ فِي زِيَارَةِ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ﴾

## باب دي په زيارت د قبر د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ کې

﴿۱۱۱۲﴾ عَنِ ابنِ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَن زَارَ قَبرِي وَجَبَت لَه شَفَاعَتِي

رواه ابن خزيمة في صحيحه والدارقطني والبيهقي وآخرون واسناده حسن .(۱)

**ترجمه** : حضرت ابن عمر رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ويلي دي چې رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي چا چې زيارت کړي وي دقبرځما واجب شوي دي د هغه د پاره شفاعت ځما.ددي حديث روايت ابن خزيمه په خپل صحيح کې او دار قطني او بيهقي او نورو محدثينو کړي دي او اسناد ئې حسن دي.

﴿۱۱۱۳﴾ وَعَن اَبِي الدَّردَاءِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قَالَ اِنَّ بِلَالًا رَأَى فِي مَنَامِهِ رَسُولَ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهوَ يَقُولُ لَه مَا هٰذِهِ الجَفوَة يَا بِلَالُ اَمَا آنَ لَكَ اَن تَزُورَنِي يَا بِلَالُ فَانتَبَه حَزِينًا وَجِلًا خَائِفًا فَرَكِبَ رَاحِلَتَه وَقَصَدَ المَدِينَةَ فَاَتٰى قَبرَ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَجَعَلَ يَبكِي عِندَه وَيَمَرِّغُ وَجهه عَلَيه فَاَقبَلَ الحَسَنُ وَالحُسَينُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا فَجَعَلَ يَضُمُّهُمَا وَيُقَبِّلُهُمَا فَقَالَا نَشتَهِي نَسمَعُ اَذَانَكَ الَّذِي كُنتَ تُؤَذِّنُ بِهِ لِرَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي المَسجِدِ فَفَعَلَ فِعلًا سَطحَ المَسجِدِ فَوَقَفَ مَوقِفَه الَّذِي كَانَ يَقِفُ فِيه فَلَمَّا اَن قَالَ اَشهدُ اَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ الله خَرَجَتِ العَوَاتِقُ مِن خُدُورِهِنَّ وَقَالُو اَبُعِثَ رَسُولُ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَا رَأَى يومًا اَكبَرَ بَاكِيًا وَلَا بَاكِيَة بِالمَدِينَة بَعدَ رَسُولِ الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِن ذٰلِكَ اليَومِ رواه ابن

---

(۱) صحيح ابن خزيمة شعب الايمان للبيهقي باب في المناسك ج ۳ ص ـــ ۴۹۰ برقم ۴۱۵۹ ، دار قطني كتاب الحج ج۲ص ـــ ۲۷۸ كشف الاستار كتاب الحج ج۲ص ـــ ۵۷ باب زيارة قبر سيدنا رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رقم الحديث ۱۱۹۸.

عساكرو قال التقي السبكي اسناده جيد.[1]

**ترجمه** : حضرت ابو الدرداء رضی الله عنه ويلي دي چې بې شکه حضرت بلال رضی الله عنه ليدلي ؤ په خپل خوب کې رسول الله صلی الله علیه وسلم په داسي حال کې چې هغه ورته وفرمايل دا څومره زياتي دي اي بلاله چې آيا تاته دومره وخت او فرصت نه دي حاصل شوي چې ځما زيارت وکړي اي بلاله ! نو راويدار شو هغه غمجن ويريدونکي نو سور شو په خپله سورلۍ باندي او قصد ئي وکړ مديني طرف ته نو راغي قبر د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم نو شروع ئي وکړه چې ژړل ئي د قبر مبارک سره اولوغړاوه ئي مخ خپل په قبر د نبي اکرم صلی الله علیه وسلم پوري نو راغلل حضرت حسن رضی الله عنه او حضرت حسين رضی الله عنه نو شروع شو بلال رضی الله عنه چې راجوخت ئي کړل ځان ته ( معانقه ) ئي ورسره وکړه او خکل ئي کړل دواړه نو دواړو حضرت بلال رضی الله عنه ته وويل مونږ غواړو چې واورو اذان ستا هغه چې وي ته چې اذان به دي کاوه رسول الله صلی الله علیه وسلم ته په مسجد کې نو وي کړ هغه يعني د دوي عرض ئي قبول کړ د مسجد په چت باندي اوچت شو او ودريده په خپل هغه ځاي باندي چې ودريده به په هغي باندي نو کله ئي چې د الله اکبر چغه ووهله اوچت شو اوازونه د ژړا د مديني نه او کله ئي چې د اشهد ان لااله الا الله چغه ووهله نو زيات شو اوازونه د ژړا په مدينه کې او کله ئي چې د اشهد ان محمد رسول الله اواز اوچت کړ نو راووتلي جينکۍ د پردو خپلو نه او خلکو به ويل چې آيا راپاڅيدلي دي رسول الله صلی الله علیه وسلم نو نه ؤه ليدلي يوه ورځ ډيره لويه ژړا کوونکو سړو او نه ژړا کوونکو ښځو په مدينه منوره کې روسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه . د دي حديث روايت ابن عساکر کړي دي او تقي السبکي ويلي دي چې اسناد ئي حسن دي.

**د روضې مبارک زيارت** :سردار دو عالم صلی الله علیه وسلم په قبر مبارک کې حيات دې او دا خبره د اهل سنتو د مشهورو عقائدو نه دهٔ، ځکه چې حضور صلی الله علیه وسلم کوم امتي چې هم د حضور صلی الله علیه وسلم په قبر مبارک باندې حاضر شي او سلام اوکړي ، نو حضور صلی الله علیه وسلم د ده سلام اوري او د سلام جواب هم ورکوي ، د غه شان دوصال نه پس هم روضه مبارک باندې حاضري او درود او سلام داسي يو عظيم سعادت دې کوم چې په پوره آدابو سره د حاصلولو کوشش کول پکار دي.

وفقنا الله لزيارة الحبيب المصطفى صلی الله علیه وسلم آمين

وَصَلَّى اللّٰه تعالےٰ على خير خلقه محمّد وّاٰله وصحبه وسلم

---

(۱) التحفة اللطيفة في تاريخ المدينة الشريفة لامام السخاوي ج۱ص ۲۳۱.